الغالط فلو اطلق النبیﷺ لتوهم انهٗ یاثم الناس ایضاً فقیّده و اما الروایات المطلقة فمحمولة علی المقیّدة با لعمد.......... ثمّ قال و لٰکن لا یکفر بهٰذا الکذب الا ان یستحله هٰذا هو المشهور من مذاهب العلماء الخ. (نووی شرح صحیح مسلم ج ۱، ص ۸، باب النهی عن الحدیث)

## د مـــــرتد عن الاستاد د حدیث تحقیق

**سوال:** د لاندې حدیث ''عن النبیﷺ انهٗ قال المُرتد علی نوعین مُرتد عن الدّین و مُرتد عن الاستاد اما المُرتد عن الدین فهو یُصلح با لتوبة و اما المرتد عن الاستاد فهو لا یُصلح اصلاً فهو کا لبیضة المنتة''. په یوې قلمي نسخې کښې تر نظر تیر شوی دی لیکن اشتباه مې پکښې دا ده چه حقوق په دوه قسمه دي یو حقوق الله او بل حقوق العباد۔ حقوق الله خو په توبه سره معاف کیږي او حقوق العباد د بندګانو په راضي کولو سره معاف کیږي۔ او د توبې په ذریعه خو د کافر او فاسق اصلاح کیږي۔ ملا علي قاري رحمه الله په شرح فقه اکبر کښې لیکي چه ''و توبة الکافر مقبولة'' لهذا د دې حدیث په باره کښې وضاحت وفرمایی چه د محدثینو په نزد د دې حدیث څه حیثیت دی؟ صحیح دی او که موضوعي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د استاذه کرامو او والدینو احترام په قرآن او حدیث سره ثابت دی لیکن له دې څخه دا مراد نه دي چه د نافرمان شاګرد توبه نه قبلیږي۔ لقولهٖ تعالیٰ: لَا تَقْنَطُوْا مِنْ رَّحْمَةِ اللّٰهِ اِنَّ اللّٰهَ یَغْفِرُ الذُّنُوْبَ جَمِیْعاً (سورة الزمر، آیت ۵۳) او همدارنګه غَافِرِ الذَّنْبِ وَ قَابِلِ التَّوْبِ (سورة المؤمن، آیت ۳) لهذا توبه ئې قبلیږي۔

پاتې شوه دا چه چونکه د دې روایت سند مذکور نه دی او نه ئې په کوم مخرج باندې حواله ورکړې ده نو ځکه د صحت او ضعف په اعتبار سره ئې تفصیل نه شو کولی۔ بیا هم په ظاهره سره د وضع آثار پکښې ښکاره دي چه په دې کښې د کتاب الله او سنت رسولﷺ او اجماع امت سره تعارض شامل دی۔

## د حضرت موسیٰ علیه السلام په قبر کښې لمونځ اداکول

**سوال:** حضورﷺ فرمایي چه د معراج په شپه کښې ما حضرت موسیٰ علیه السلام ولیده چه هغه پخپل قبر کښې لمونځ کاوه۔ آیا دا حدیث ثابت دی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** دا حدیث امام مسلم رحمه الله نقل کړی دی۔ حدّثنا هدّاب بن خالد و شیبان بن فروخ قال اخبرنا حمّاد بن سلمة البنانی و سلیمان التیمی عن انس بن مالك رضی الله عنه ان رسول اللهﷺ قال اتیت و فی روایة هدّاب مررت علی موسیٰ لیلة اسریٰ عند الکثیب الاحمر و هو قائم یصلّی فی القبر. (الجامع الصحیح للمسلمؒ ج ۲، ص ۲۶۸، باب فضائل موسیٰ علیه السلام)

عن انس بن مالكؓ انّ رسول اللهﷺ قال اتیت لیلة اسریٰ بی علی موسیٰ علیه السلام عند الکثیب الاحمر و هو قائمٌ یّصلّی فی قبرهٖ. (نسائی ج ۱، ص ۲۴۲، کتاب قیام اللیل و تطوّع النهار، ذکر صلوة نبی الله موسیٰ کلیم الله علیه السلام...... الخ)



## په نسبت الی الغیر باندې وعید او د هغه توجیه

**سوال:** له حضرت اسامه بن زید رضی الله عنه څخه روایت دی چه حضورﷺ وفرمایل چه که چېرته یو څوك له خپل پلار نه پرته بل سړي ته خپل پلار ووایي او په دې پوهیږي هم چه دا سړی مې پلار نه دی نو په داسې سړي باندې جنت حرام دی۔ د دې حدیث وضاحت وکړی ډیره مهرباني به مو وي؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب:** دا حدیث امام مسلم بن حجاج په صحیح مسلم کښې له حضرت ابو بکر صدیق رضی الله تعالیٰ عنه څخه نقل کړی دی۔

عن ابی بکر رضی الله عنه انّ رسول اللهﷺ یقول من ادّعٰی الی غیر ابیه و هو یعلم انهٗ غیر ابیه فا لجنّة علیه حرامٌ.

د حدیثو امامانو د دې روایت مختلف توجیهات کړي دي۔

﴿۱﴾ یو دا چه کوم سړی چه دا حلال وبولي او وئې کړي نو جنت پرې حرام دی۔

﴿۲﴾ دا چه حرام په معنیٰ د ممنوع سره دی نو په داسې سړي باندې اول جنت ته داخلیدل ممنوع دي کوم چه د فائزینو او د سلامتیٔ د خاوندانو لپاره ده او د سزا د خوړلو نه وروسته به داخلیږي۔

لما قال النوویؒ: الاوّل انهٗ حرام علی من فعلهٗ مستحلاً لهٗ. و الثانی ان جزائه انها محرمةٌ علیه اوّلاً عند دخول الفائزین الخ. (شرح النووی علی صحیح مسلم ج ۱، ص ۵۷، باب بیان حال ایمان من رغب عن ابیه و هو یعلم)

فا لمراد من استحل ذٰلك مع علمه با لتحریر و علی الروایة المشهورة فا لمراد کفرٌ لنعمة و ظاهر اللفظ غیر مرادٍ و انما ورد علی سبیل التغلیظ و الزجر لفاعل ذٰلك او المراد باطلاق الکفران فاعله فعل فعلاً شبیهاً بفعل اهل الکفر..... الخ. (فتح الملهم شرح صحیح مسلم ج ۱، ص ۲۳۶، باب بیان حال ایمان من رغب عن ابیه و هو یعلم)

## په لمانځـــــه کښې د ممنوع اشارې حقیقت

**سوال:** په ابو داؤد کښې دا حدیث راغلی دی چه حضورﷺ وفرمایل: من اشار فی صلٰوته تفهم عنه فلیعد لها یعنی الصلٰوة (ج ۱، ص ۱۴۳) آیا دا حدیث د اشاره با لسبابه له روایت سره معارض دی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** چونکه امام ابو داؤد رحمه الله تعالیٰ د اشاره با لسبابه لپاره مستقل عنوان ''باب اشاره فی التشهد'' لاندې روایتونه جمع کړي دي او دا مذکوره روایت ئې په باب الاشاره فی الصلٰوه کښې نقل کړی دی۔ له دې وجهې له دې اشارې څخه مراد به هغه اشاره وي چه د سلام یا نورو ضرورتونو لپاره په لمانځه کښې وکړی شي۔

لما قال الشیخ خلیل احمد السهارنفوری رحمه الله: الاشارة المذکورة فی هٰذا الحدیث محمولة علی الاشارة فی الصّلٰوة للحاجة کرد السّلام و غیره. (بذل المجهود شرح ابو داؤد ج ۲، ص ۱۰۷، باب الاشارة فی الصلٰوة)

## د فقیه او عــــابد د تقابلي موازنې روایت

**سوال:** "فقیه واحد اشد علی الشیطان من الف عابدٍ" دا حدیث دی که چېرته کومه عربي مقوله ده؟ که چېرته حدیث وي نو بیا د حدیثو په کوم کتاب کښې راغلی دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** دا عبارت د یوه حدیث الفاظ دي او د حدیثو په اکثرو کتابونو کښې د حضرت عبد الله ابن عباس رضی الله عنهما په روایت سره ذکر دی۔

روی محمد بن عیسی الترمذی بسندهٖ ابن عباس رضی الله عنهما قال رسول اللهﷺ فقیهٌ واحدٌ اشدّ علی الشیطٰن من الف عابد. (جامع الترمذی ج۲، ص۹۳، باب ما جاء فی عالم المدینة)

و کذا ذکر ولی الدین محمد بن عبد الله عن ابن عباس رضی الله عنهما قال قال رسول اللهﷺ فقیهٌ واحدٌ اشدّ علی الشیطٰن من الف عابدٍ. (مشکٰوة المصابیح ج۱، ص۳۴، کتاب العلم، الفصل الثانی) و مثله فی سنن ابن ماجة ج۱، ص۲۰، باب فضل العلماء و الحث علی طلب العلم.

## حضرت علي رضی الله عنه او د قوت حافظه والا روایت

**سوال:** په یوه روایت کښې راځي چه حضرت علي رضی الله عنه یو ځل حضورﷺ ته د خپل قوت حافظې د کمزورۍ شکایت وکړ نو حضورﷺ هغه ته څو کلمې او اسماء الحسنٰی ور وښودلې چه د هغو د ورد له وجهې د حضرت علي کرم الله وجهه د حافظې کمزوري ختمه شوه۔ بیا وروسته د یوه صحابي د پوښتنې په صورت کښې حضرت علي رضی الله عنه هغه کلمې ور وښودلې۔ د دې روایت حواله وښایاست؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** امام ترمذي رحمه الله دا روایت له هغو کلماتو سره کوم چه رسول اللهﷺ حضرت علي کرم الله وجهه ته د ضعف حافظې د لرې کولو لپاره ور ښوولي وو نقل کړی دی۔

عن ابن عباسٍ رضی الله عنه مختصراً: شکی علی رضی الله تفلّت القرآن عن صدرهٖ الی رسول اللهﷺ فقال یا ابا الحسن افلا اعلّمک کلماتٍ ینفعک الله بهنّ و ینفع بهنّ من علّمتهٗ و یثبت ما تعلّمت فی صدرک قال اجل یا رسول اللهﷺ فعلّمنی قال اذا کان لیلة الجمعة فان استطعت ان تقوم فی ثلث اللیل الآخر فانّها ساعه مشهورة و الدّعاء فیها مستجابٌ فان لم تستطع فقم فی وسطها فان لم تستطع فقم فی اوّلها. فصلّ رکعاتٍ تقرء فی الرکعة الاولٰی فاتحة الکتاب و سورة یٰسٓ و فی الرکعة الثانیة فاتحة الکتاب و حٰمٓ الدخان و فی الرکعة الثالثة بفاتحة الکتاب و الٓمٓ التنزیل السجدة و فی الرکعة الرابعة بفاتحة الکتاب و تبارک المفصل. سورة الملک، فاذا فرغت من التشهد فاحمد الله و احسن الثناء علی الله و صلّ علیّ و احسن و علی سائر النبیّین و استغفر للمؤمنین و المؤمنات و لاخوانک الذین سبقوک با لایمان ثم قل فی آخر ذٰلک اللّٰهم ارحمنی بترک المعاصی ابداً ما ابقیتنی و ارحمنی ان اتکلّف ما لا یعنینی و ارزقنی حسن النظر فی ما یرضیک عنّی اللّٰهم بدیع السمٰوٰت و الارض ذو الجلال و الاکرام و العزّة التی لا ترما اسئلک یا الله یا رحمٰن بجلالک و نور وجهک ان تلزم قلبی حفظ کتابک کما علّمتنی و ارزقنی ان اتلوه علی النّحو الذی یرضیک عنّی اللّٰهم بدیع السمٰوٰت و الارض ذو الجلال و



الاکرام و العزّة التی لا ترام اسئلک یا الله یا رحمٰن بجلالک و نور وجهک ان تنور بکتابک بصری و ان تطلق بهٖ لسانی و ان تفرّج به عن قلبی و ان تشرح بهٖ صدری و ان تغسل بهٖ بدنی. فانهٗ لا یُعیننی علی الحق غیرک و لا یؤتیه الا انت و لا حول و لا قوّة الا با للّٰه العلیّ العظیم. یا ابا الحسن تفعل ذٰلک ثلاث او خمسة و سبعاً تُجب باذن الله و الّذی بعثنی با لحق ما اخطاء مؤمناً. (جامع الترمذی ج۲، ص۱۹۶، باب دعاء الحفظ)

## د نهه څلویښت کروړ چنده ثواب حدیث

**سوال:** ځینې حضرات تبلیغ ته د تلونکو خلکو لپاره چه کوم فضائل بیانوي له هغو څخه یو دا هم دی چه د الله تعالی په لار کښې تلونکي ته د یوې روپۍ په مصرف کولو باندې د نه څلویښت کروړه روپۍ د مصرف کولو ثواب ورکول کیږي۔ آیا دا خبره په حدیث سره ثابته ده او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** دا خبره په کوم مستقل روایت باندې نه ده ثابته۔ البته د څو روایتونو مجموعي مضامینو ته په نظر کولو سره دا نتیجه ترې اخیستل کیدی شي چه د الله تعالی په لار کښې د وتونکي سړي لپاره په اعمالو کښې ډېر زیات تضاعف کیږي او د الله په لار کښې په مصرف کولو سره د یوې روپۍ په بدل کښې ۴۹ کروړه ثواب ورکول کیږي۔ په دې باره کښې د ابن ماجه یو روایت چه له اتو صحابهٔ کرامو رضی الله عنهم څخه روایت دی چه حضورﷺ وفرمایل: من ارسل بنفقة فی سبیل الله و اقام فی بیته فلهٗ بکل درهم سبع مائة درهم و من غذی بنفسهٖ فی سبیل الله و فی وجه ذٰلک فلهٗ بکلّ درهم سبع مائة الف درهم. (ابن ماجة ج۱، ص۱۹۸، باب فضائل النفقة فی سبیل الله)

او دوهم روایت امام ابو داؤد د حضرت معاذ رضی الله عنه څخه نقل کړی دی: قال رسول اللهﷺ انّ الصّلٰوة و القیام و الذکر یضاعف علی النفقة فی سبیل الله عزّ و جلّ بسبع مائة ضعف. (سنن ابی داؤد ج۱، ص۳۴۵، باب تضعیف الذکر فی سبیل الله)

دلته په اول روایت کښې دا ده چه کوم سړی د الله تعالی په لار کښې ووځي او مصرف وکړي نو د یوې روپۍ په بدل کښې د اوه لکو روپو د مصرف کولو ثواب ورکول کیږي او په دوهم روایت کښې دي چه د الله تعالی په لار کښې د لمانځه او روژې ثواب د انفاق في سبیل الله په نسبت ۷۰۰ چنده زیات دی نو اوس د اول حدیث اوه لکه د دوهم حدیث د اوه سوه روپو سره چه ضرب کړی شي نو نهه څلویښت کروړه جوړیږي۔

بیا هم دا ثواب یوازې تبلیغ ته په وتلو کښې منحصر نه دی بلکه د الله تعالی په لار کښې د هر وتونکي لپاره ده۔ البته تبلیغ هم د سبیل الله یوه شعبه ده۔

## د "ولد الزنا لا یدخل الجنة" تحقیق

**سوال:** دا حدیث چه "ولد الزنا لا یدخل الجنة" د محدثینو په نزد د صحت او صفت په اعتبار سره څه حیثیت لري۔ آیا صحیح دی او که ضعیف؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د دې حدیث په اړه د حدیثو د اکثره حفاظو رایه دا ده چه دا حدیث په

موضوعي حديثونو کښې شمار دی او د حديثو په ذخائرو کښې د دې حديث د صحت هيڅ يادونه نه ده شوې۔

لما قال عبد الرحمٰن الثری الشافعیؒ: ولد الزنا لا یدخل الجنّة یدور علی الالسنة و لم یثبت عن رسول اللهﷺ بل قال القاضی مجد الدین شیرازی فی سفر السعادة هو باطلٌ. (تمیز الطیّب من الخبیث ص۲۰۷)

و قال ایضاً: ذکر فی الصنوع فی احادیث الموضوع ولد الزنا لا یدخل الجنّة لا اصل لهٗ. (تمیز الطیّب من الخبیث ص۳۹۱) و مثله فی موضوعات الکبریٰ للملّا علی القاریؒ ص۳۵۱، احادیث فی ولد الزنا.

## د حضورﷺ له اجنبيه ښځې څخه د غنا (ساز او سروز) د اوريدو روايت

**سوال:** عن عائشه رضی الله عنه قالت کانت عندی امرأة تسمعی فدخل رسول اللهﷺ و هی علی تلک الحال ثمّ دخل عمر ففرّت فضحک رسول اللهﷺ فقال عمر رضی الله عنه ما یضحک یا رسول اللهﷺ محدثه فقال و الله لا اخرج حتی اسمع ما سمع رسول اللهﷺ فاسمعتهٗ. آيا دا حديث صحيح دی او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** دا روايت ځينو محدثينو په موضوعاتو کښې شمار کړی دی او د دې حديث په سند کښې ابو الفتح البغدادي دی کوم چه د محدثينو په نزد متکلم فيه دی او ځينو خو واهي الحديث او تر ساقط الروايت پورې ورته ويلي دي۔

لما قال ابن الجوزی رحمه الله: قال الخطیب ابو الفتح البغدادیؒ واهی الحدیث ساقط الروایة و اصل الحدیث باطل. (کتاب الموضوعات لابن الجوزیؒ ج۳، ص۱۱۶، باب فی اباحة الغناء)

## د غوايي د غوښې د حرمت او حلت تحقيق

**سوال:** آيا دا حديث صحيح دی چه حضورﷺ وفرمايل چه د غوا شيدې وچښی ځکه چه په هغې کښې دوا ده او په غوړيو کښې ئې شِفا ده او ځانونه ئې له غوښې څخه وساتی ځکه په غوښې کښې ئې مرض دی؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د غوا په شيدو کښې دا خبره چه شِفا پکښې ده په دې باره کښې روايتونه موجود دي کوم چه حافظ عبد الله نيشاپوري په مستدرک کښې نقل کړی دی۔

إنّ الله تعالٰی لم ینزل داءً الا انزل لهٗ شفاء الا الحرام فعلیکم با لبان البقر فانّها ترعم من کل شجر. (مستدرک حاکم ج۴، ص۱۹۷، کتاب الطّب)

ليکن د غوا له غوښې څخه مو د ممانعت روايت پيدا نه کړی شو بلکه د دې برعکس د حضورﷺ له فعل مبارک څخه ئې حلت ثابت دی۔ او که چېرته د منع روايت ثابت شي نو دا منع به په طبعيت باندې محمول شي۔

لما روی الامام مسلم بن حجاج فی صحیحه: عن عائشه رضی الله عنها اتی النبیﷺ بلحم بقر فقیل هٰذا ما تصدق به علی بریرة فقال هو لها صدقةٌ و لنا هدیة. (صحیح مسلم ج۱، ص۳۴۵، باب اباحة الهدیة للنبیﷺ و لبنی هامش و بنی المطلّب..... الخ)



و عن جابر رضی الله عنه قال ذبح رسول اللهﷺ عن عائشه رضی الله عنها بقرة یوم النّحر. (صحیح مسلم ج۱، ص۴۳۴، باب جواز الاشتراک فی الهدی و اجزأ البدنة و البقرة کل واحدة منهما عن سبعة الخ) و مثله فی سنن ابی داؤد ج۱، ص۲۵۱، باب فی هدی البقر.

## د منجياتو او مهلکاتو تشريح

**سوال:** ثلٰث مُنجیاتٌ و ثلٰث مهلکاتٌ فامّا المنجیات فتقوی الله فی السّرّ و العلانیة والقول با لحق فی الرضا و السخط و القصد فی الغناء و الفقر، و اما المهلکات فهویً متبع و شحٌّ مطاعٌ و اعجاب المرء بنفسهٖ و هو اشدّهنّ. د دې حديث حواله او تشريح را وليږئ؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** دا حديث صاحب مشکوة المصابيح ج۲، ص۴۳۴ په شعب الايمان للبيهقي په حوالې سره نقل کړی دی۔

تشريح: په دې روايت کښې مقصود دا دی چه په دنيا او آخرت دواړو کښې د هلاکت له ميندلو څخه د بچ کيدو او نجات لپاره ضروري دی چه په مؤمن کښې درې صفتونه موجود وي۔

﴿۱﴾ **خوف خدا:** يعنې په هر حالت کښې د مؤمن په زړه کښې د خدای ويره موجوده وي۔

﴿۲﴾ **قول با لحق:** يعنې په هر کښې مؤمن بايد د حق په طرف ودريږي او استقامت پرې وکړي که څوک خوشحاله کيږي او که خفه کيږي۔ که دوست وي او که دښمن۔ د هيچا لحاظ به هم نه کوي او رښتيا خبره دې کوي۔

﴿۳﴾ **قصد:** مؤمن بايد په هر حال کښې په مصارفو کښې ميانه روي وکړي که رزق ئې ډير وي او که کم، که فقر او فاقه وي او که مړښت او مالداري۔ په هر حالت کښې به ځان له افراط او تفريط يعنې اسراف او بخل څخه ځان ساتي او منځنی حالت به اختياروي۔

**مهلکات:** او همدارنګه د دنيوي او اخروي هلاکتونو څخه د بچ کيدو لپاره هم درې شيان د اسې دي چه له هغو څخه مؤمن بايد ځان وساتي۔

﴿۱﴾ **هویٰ متبع:** يعنې د نفس د خواهشاتو پيروي ځکه چه د نفس د خواهشاتو مخالفت له لويو منجياتو څخه دی لکه څرنګه چه د نفس د خواهشاتو تابعداري له اکبرو يعنې لويو مهلکاتو څخه دی۔

﴿۲﴾ **شح:** يعنې بخل کله چه د انسان په طبعيت کښې بخل ګډ شي نو بيا د هغه په مطابق تګ هم کوي او ظاهره خبره دا ده چه له دې څخه مراد بخل دی کوم چه له حرص سره مقرون دی۔

﴿۳﴾ **اعجاب المرأ بنفسه:** يعنې چه په يوه انسان کښې خودبيني (انانيت) پيدا شي نو خپل اعمال، اقوال، جمال يعنې پخپل هر کمال باندې فخر وکړي او دا له ټولو څخه زيات مهلک خصلت دی۔ او ګناه ئې هم تر ټولو زيات او نقصان ئې له ټولو څخه زيات وي۔ (مرقات شرح مشکات ج۹، ص۳۱۸، باب الغضب و الکبر الفصل الثالث)

## د اطلبوا العلم و لو بالصين

**سوال:** د اطلبوا العلم و لو بالصين حديث په باره کښې د محدثينو رايه دا ده چه دا حديث صحيح دی او که نه؟ که چېرته صحيح وي نو په کوم کتاب کښې راغلی دی؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** دا پورته ذکر شوی حديث د امام احمد بن حسين بيهقي په "شعب الايمان" کښې له حضرت انس رضی الله تعالی عنه څخه نقل شوی دی او د امام بيهقي د تحقيق مطابق د دې روايت متن خو مشهور دی ليکن اسناد ئې ټول ضعيف دی۔ لکه څرنګه چه فرمايي:

هذا الحديث شبه مشهور و اسناده ضعيف و قد روی من اوجه کلها ضعيفة. (شعب الايمان للبيهقي ج۲، ص۲۵۴)

او علامه ابن عبد البر رحمه الله هم په جامع بيان العلم و فضله ج۸، کښې له امام زهري څخه نقل کړی دی۔

او همدارنګه امام غزالي رحمه الله هم په احياء العلوم ج۱، ص۹ کښې نقل کړی دی۔

بيا هم امام ابن جوزي رحمه الله دا حديث له موضوعاتو څخه ګڼلی دی چنانچه دی فرمايي: هذا حديث لا يصح عن رسول الله ﷺ. و قال ابن حبانؒ هذا الحديث باطل لا اصل له. (الموضوعات لابن الجوزی ج۱، ص۲۱۶، کتاب العلم، باب طلب العلم و لو بالصين)

## د امت محمديه ﷺ د درې اويا فرقو ثبوت

**سوال:** حضور انور ﷺ فرمايل چه زما امت به په درې اويا فرقو ويشل کيږي۔ آيا دا د يوه صحيح حديث مفهوم دی او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** دا د يوه صحيح حديث مفهوم دی چه محدثينو له مختلفو سندونو سره روايت کړی دی۔ له حضرت ابو هريره رضی الله تعالی عنه څخه روايت دی چه رسول الله ﷺ فرمايل چه يهود او نصاریٰ به په يو اويا يا دوه اويا فرقو باندې تقسيم شوي وو او زما امت به په درې اويا فرقو ويشل کيږي۔

لما روی الترمذیؒ: عن ابی هريرة رضی الله عنه قال تفرقت اليهود علی احدیٰ و سبعين او اثنتين و سبعين فرقة و النصاریٰ مثل ذلك و تفترق اُمّتی علی ثلاث و سبعين فرقة. هذا حديث حسن صحيح. (جامع السنن للترمذی ج۲، ص۹۲)

و قال عبد القاهر بن محمد البغدادیؒ: قد رواه عن النبی ﷺ جماعة من الصحابة کانس بن مالكؓ و ابی هريرةؓ و ابی درداءؓ و جابرؓ و ابی سعيد الخدریؓ و ابی بن کعبؓ و عبد الله بن عمرو بن العاصؓ و ابی امامةؓ و واثلة بن اسقعؓ و غيرهم. (الفرق بين الفرق ص۹، الباب الاول فی بيان الحديث المأثور)

عن ابی هريرة رضی الله عنه قال قال رسول الله ﷺ تفرقت اليهود علی احدیٰ و سبعين فرقة تفترق اُمّتی علی ثلاث و سبعين فرقة. (ابن ماجة ص۲۸۷، ابواب الفتن، باب افتراق الامم)



## د تفـــرق تحقيق

**سوال:** دا لاندينی حديث چه "تفرق اُمتی ثلاث و سبعين فرقة الخ" کښې د افتراق څخه مراد څه شی دی؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په دې حديث کښې له تفرق او تقسيم څخه مراد هغه تفرق دی کوم چه په اصول الدين کښې واقع شوی وي او فروعي اختلاف ترې مراد نه دی۔ چه د کومو فرقو په فروعو کښې اختلاف وي هغه ټول په اصولو او بنيادي عقائدو کښې سره متحد وي۔ يو بل ته د کفر او ګمراهۍ نسبت نه کوي او کوم خلك چه په اصول الدين کښې متفرق دي هغوی يو او بل ته کافر او ګمراه وايي۔

لما قال الشيخ خليل احمد السهارنفوریؒ: و المراد من هذا التفرق، التفرق المذموم الواقع فی اصول الدين و اما اختلاف الامة فی فروعه فليس بمذموم بل من رحمة الله سبحانهٗ فانك ترٰی ان الفرق المختلفة فی فروع الدين متحدون فی الاصول و لا يضلّلون بعضهم بعضاً. و اما المتفرقون فی الاصول فيکفر بعضهم بعضاً و يضلّلون..... الخ. (بذل المجهود شرح ابی داؤد ج۱۸، ص۱۱۷، اوّل کتاب السنّة، باب شرح السنّة)

## د "لا تعلموهن الکتابة" تحقيق

**سوال:** "لا تنزلوهن الغرف و لا تعلموهن الکتابة" آيا دا حديث صحيح دی او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** دا روايت امام بيهقي رحمه الله په شعب الايمان کښې او حافظ ابو عبد الله حاکم پخپل مستدرك کښې له حضرت عائشه رضی الله تعالی عنها څخه نقل کړی دی۔

عن عائشه رضی الله عنها قالت قال رسول الله ﷺ لا تنزلوهن الغرف و لا تعلموهن الکتابة يعنی النساء و علموهن المغزل و سورة النور. هذا حديث صحيح الاسناد و لم يخرجاه. (مستدرك حاکم ج۲، ص۳۹۶، تفسير سورة النور، النهی عن تعليم الکتابة للنساء)

بيا هم ځينو علماوو ئې په عدم صحت باندې قول کړی دی۔

لما قال ابن الجوزیؒ: هذا الحديث لا يصح عن رسول الله ﷺ و قد ذکره ابو عبد الله النيشابوریؒ فی صحيحه و العجب کيف خفی عليه امرهٗ.

قال ابو حاکم ابن حبانؒ: کان محمد بن ابراهيم الشامی (راوی الحديث) يضع الحديث علی الشاميين لا يحل الرواية عنهٗ الا عند الاعتبار روی احاديث لا اصول لها من کلام رسول الله ﷺ لا يحل الاحتجاج به. (کتاب الموضوعات لابن الجوزیؒ ج۲، ص۲۶۹، باب تعليم النساء سورة النور و منعهن من سکنی الغرف و تعليم الکتابة)

قال الشيخ السعيد بن سيونی زغلول تحت حديث ابی هريرةؓ لا تعلموا النسآء الکتابة لا تسکنوهن الغرف...... الخ و من حديث عائشه رضی الله عنها من طريق محمد بن ابراهيم الشامی عن شعيب بن اسحاق الدمشقي عن هشام بن عروة عن ابيه عن عائشةؓ لا تسکنوهن الغرف و لا تعلموهن الکتابة و علموهنّ المغزل و سورة النور.

قال ابن الجوزی رحمه الله: هذا حديث لا يصح و قد ذکره الحاکم فی صحيحه. و اعله ابن الجوزیؒ بمحمد بن ابراهيم

الشامی. قال ابو حاتم بن حبان کان محمد بن ابراهیم الشامی یضع الحدیث علی الشامیین لا یحل الروایة عنه الا عند الاعتبار روی احادیث لا اصول لهامش کلام رسول اللهﷺ لا یحل الاحتجاج به. (حاشیة مسند الفردوس الدیلمی ج۵، ص۱۹، رقم حدیث ۷۳۱۷)

## د امام مهدي علیه السلام په باره کښې د روایتونو تحقیق

**سوال:** آیا د امام مهدي علیه السلام د راتلو په باره کښې چه کومې خبرې له خلکو څخه اوریدل کیږي آیا د صحیحو روایتونو له مخې ثابت دي او که کومه د غسې واقعه ده چه مشهوره شوې ده؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د امام مهدي علیه السلام په باره کښې واقعات درست او د صحیحو روایتونو له مخې ثابت دي او د حدیثو په اکثرو کتابونو کښې د مستقل باب لاندې ئې دا روایتونه جمع کړي دي چه په هغو کښې د امام مهدي علیه السلام حالات په تفصیل سره راغلي دي۔ مثلاً جامع ترمذي، سنن ابي داؤد، ابن ماجه، مستدرك، حاکم په مسند ابن علم، مسند ابو یعلی، مسند ابن ابي شیبه، طبقات صحیح ابن حبان او د اسې نور۔

او په مجموعي توګه د امام مهدي علیه السلام په باره کښې روایتونه د تواتر حد ته رسیدلي دي چنانچه حافظ ابن حجر رحمه الله تواتر د اسې نقل کړی دی۔

قال ابو الحسن الآمدی فی مناقب الشافعی تواترت الاخبار بان المهدی من هٰذه الأمّة و ان عیسٰی علیه السلام یُصلّی خلفه. (فتح الباری ج۶، ص۴۹۴، باب نزول عیسٰی ابن مریم علیهما السلام)

و نقل عن الشوکان انّها متواترة بلا شكّ و لا شبهة بل یصدق وصف التواتر علٰی ما هو دونها علی جمیع الاصطلاحات المحررة فی الاصول. (الاذاعة ص۱۱۳) و مثله فی عقد الدرر فی اخبار المنتظر للعلامة یوسف بن یحی المقدسی الشافعی ص۱۵.

## "الله تعالی طاق دی او طاق خوښوي" د دې روایت تحقیق

**سوال:** د دې حدیث چه الله تعالی طاق دی او طاق شی خوښوي ای د قرآن اهله تاسو طاق لمونځ یعنې وتر وکړی" څه ثبوت شته او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** دا روایت د حدیثو په اکثرو کتابونو کښې له حضرت علي رضی الله تعالی عنه څخه د اسې منقول دی۔

قال الامام محمّد بن عیسی الترمذی بسنده عن علیّ رضی اللّٰه عنه قال الوتر لیس کصلٰوتکم المکتوبة و لٰکن سُنن رسول اللهﷺ قال انّ اللّٰه وترٌ یحبّ الوتر فاوتروا یا اهل القرآن. (جامع الترمذی ج۱، ص۶۰، باب ما جاء ان الوتر لیس بختم)
و نقل ابو داؤد سلیمان بن اشعث السجستانیؒ فی سننه بسنده عن علیّ رضی اللّٰه عنه قال قال رسول اللّٰهﷺ یا اهل القرآن اوتروا فان اللّٰه وترٌ یحبّ الوتر. (سنن ابی داؤد ج۱، ص۲۰۷، باب تفریع ابواب الوتر، باب استحباب الوتر) و مثله فی سُنن ابن ماجة ج۱، ص۸۲، باب ما جاء فی الوتر.



## د "شهرا عید لا ینقصان" تحقیقؒ

**سوال:** د دې لاندیني حدیث چه "شهرا عید لا ینقصان رمضان و ذو الحجه" مطلب او مفهوم څه دی؟ لږ په وضاحت سره ئې تحقیق وکړی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د "شهرا عید لا ینقصان" په باره کښې د حدیثو د امامانو مختلف توجیهات منقول دي لیکن مشهور او قریب الی الفهم چه کوم توجیهات دي په لاندې ډول دي۔

﴿۱﴾ امام احمد بن حنبل رحمه الله د دې مطلب د اسې بیان کړی دی چه د رمضان او ذو الحجې میاشت په یو کال کښې دواړه ۲۹ ورځې نه راځي۔ که یوه ئې ۲۹ ورځې وي نو بله به ئې خامخا ۳۰ ورځې وي۔

﴿۲﴾ امام اسحٰق ابن راهویه او امام بخاري رحمهما الله د دې مطلب د اسې کړی دی او فرمایي چه په ظاهره سره د ورځو د تعداد په اعتبار سره د رمضان او ذی الحجې میاشتې اګر که ۲۹ ورځې راشي لیکن د اجر او ثواب په اعتبار سره به د دیرشو ورځو برابرې وي۔
(سنن ترمذی ج۱، ص۸۷، باب ما جاء شهرا عید لا ینقصان)

نقل هٰذین التوجیهین ابو عیسٰی ترمذی رحمه اللّٰه فی متن سنن ترمذی ج۱، ص۱۴۸، باب ما جاء شهرا عید لا ینقصان.

## د "انا نبيّ و آدم بین المآء و الطین" تحقیق

**سوال:** له یوه واعظ څخه مې د میلاد شریف په وعظ کښې د حضورﷺ د اولین والي او آخرین والي په باره کښې دا الفاظ واوریدل چه حضورﷺ وفرمایل چه "انا نبیّ و آدم بین المآء و الطین" آیا دا روایت په دغو الفاظو سره ثابت دی؟ او آیا حضورﷺ اولین او آخرین نبي دی؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په صریحو نصوصو او اجماع امت سره دا مسئله ثابته ده چه حضورﷺ اولین او آخرین پیغمبر دی۔ لیکن تر کومه ځایه پورې چه د دغو الفاظو تعلق دی نو له حضورﷺ څخه د اسې الفاظ ثابت نه دي۔ البته د معنٰی په اعتبار سره له دې روایت څخه څوك انکار نه شي کولی۔

عن ابی هریرةؓ قال قالوا یا رسول اللّٰهﷺ متٰی وجبت لك النبوّة قال و آدم بین الروح و الجسد. رواه الترمذی. (شرح طیبی ج۱۱، ص۳۵۳، باب فضائل سید المرسلین)

قال العلامة ملا علی القاریؒ: ای وجبت لی النبوّة و الحال ان آدم بین الروح و الجسد یعنی انهٗ مطروح علی الارض و صورة بلا روح و المعنٰی انه قبل تعلق روحه بجسده. (مرقات ج۱۱، ص۵۸، باب فضل سید المرسلینؐ، الفصل الثانی).

## د "طلب العِلمِ فریضة الخ" تحقیق

**سوال:** جناب مفتي صاحب! زمونږ د سکول په یوه دیوال باندې یو حدیث په دغو الفاظو سره لیکل شوی دی چه "طلب العلم فریضة علی کلّ مسلم و مسلمة" آیا دا حدیث د حدیث په کتابونو کښې شته او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په دې حدیث کښې هیڅ شك نشته چه په هر مسلمان سړي او ښځې باندې د علم حاصلول فرض دي او دا حدیث صحیح او مستندو کتابونو نقل کړی دی لیکن د "مُسلِمةٌ" لفظ چه په پورته ذکر شوي حدیث کښې راغلی دی زائد دی ځکه چه د حدیثو په کتابونو کښې نشته۔

لما ورد فی الحدیث: عن انس بن مالكؓ قال قال رسول اللهﷺ طلب العلم فریضةٌ علی کل مسلم و واضع العلم عند غیر اهله کمقلّد الخنازیر الجوهرۃ و اللؤلؤ و الذهب. (ابن ماجة ص ۱۲۰، باب فضل العلماء و الحث علی طلب العلم)

عن انس قال قال رسول اللهﷺ طلب العلم فریضةٌ علی کل مسلم واضع العلم عند غیر اهله کمقلّد الخنازیر الجوهر و اللؤلؤ الذهب. (مشکٰوۃ ص ۳٤، کتاب العلم، الفصل الثانی)

## د "اَنا مدِینة العلم و علیٌّ بابُها" حدیث تحقیق

**سوال:** جناب مفتي صاحب! ما له یوه عالم څخه په وعظ او تقریر کښې اوریدلي دي چه رسول اللهﷺ فرمایلي دي چه "انا مدینة العلم و علیٌّ بابها" یعنې زه د علم ښار یم او علي رضی الله عنه ئې دروازه ده۔ آیا دا حدیث صحیح دی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د حضرت علي رضی الله تعالی عنه په فضائلو او مناقبو کښې ډېر روایتونه راغلي دي لیکن د پورته ذکر شوي روایت الفاظ له حضورﷺ څخه ثابت نه دي۔ د حدیثو امامانو دا حدیث موضوعي بللی دی۔

قال العلامة مُلاّ علی القاریؒ: حدیث اَنا مدینة العلم و علیٌّ بابها الحدیث رواه الترمذی فی جامعه و قال انهٗ منکر و کذا قال البخاری و قال انه کذب لا اصل له و کذا قال ابو حاتم و یحیٰ و سعید. (موضوعات الکبرٰی ص ۷۱، حدیث ۲۵۱)

قال العلامة ابن الجوزیؒ: قال یحیٰ بن معین هٰذا الحدیث کذب لیس لهٗ اصل. و قال ابن عدیؒ هٰذا الحدیث موضوع یعرف بابی الصلت. آه. (الموضوعات ج۱، ص ۳۵٤، باب فضائل علی رضی الله عنه)

## د "ابو حنیفه سراج امتي" تحقیق

**سوال:** محترم مفتي صاحب! ما یوه ورځ د الدر المختار د مقدمې مطالعه کوله چه له نورو روایتونو برسیره مې د امام ابو حنیفه په اړه هم یو روایت له نظر څخه تیر شو چه په هغه کښې ئې د حضورﷺ څخه دا الفاظ نقل کړي وو چه "النعمان سراج امتي" (رواه ابو اللیث) آیا دا روایت صحیح دی او له حضورﷺ څخه ثابت دی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د امام ابو حنیفه رحمه الله په باره کښې چه کوم روایات راغلي دي اګر که په ځینو کښې ئې د ده مبارك منقبت او فضیلت خوا ته اشاره شوې لیکن روایتونه اکثر موضوعي او نه ثابت شوي دي چه له هغو څخه یو دغه روایت هم دی۔ د حنفي مذهب مشهور او معروف محدث او فقیه ملا علي قاري رحمه الله دې حدیث ته موضوعي ویلي دي۔

قال العلامة مُلاّ علی القاریؒ: حدیث "ابو حنیفة سراج اُمّتی" موضوع باتفاق المحدثین. (موضوعات الکبرٰی ص۴۷،



حرف الهمزة، رقم الحدیث ۱٤۳)

قال العلامة ابن الجوزیؒ: حدیث "یکون فی اُمتی رجل اسمه النعمان و کُنیة ابو حنیفة هو سراج اُمّتی" قال الخطیب: هٰذا حدیث موضوع تفرد بروایة البورقی. قال و حدثت عن ابی عبد الله الحاکم انه قال وضع ابو عبد الله البورقی من المناکیر عن الثقاه ما لا یحصی و افحشها هٰذا الحدیث. (الموضوعات لابن الجوزیؒ ج۲، ص٤۸، باب فضل ابی حنیفةؒ)

## د ما تقول في هذا الرجل مطلب

**سوال:** په قبر کښې د سوال او ځواب په باره کښې چه کوم روایت مروي دی په هغه کښې دا الفاظ هم راغلي دي چه "ما تقول في هذا الرجل" هذا اسم اشاره ده چه دا ترې څرګندیږي چه حضورﷺ به مخته حاضر وي او حال دا چه دی مبارکﷺ په مدینه منوره کښې پخپله روضه کښې آرام فرما دی۔ د قرآن او حدیثو په رڼا کښې د دې مسئلې وضاحت وکړی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** محدثین عظام د دې الفاظو مختلف ډول توجیهات بیان کړي دي ځینې وایي چه د حضورﷺ شبیه مبارك وړاندې کیږي، ځینې وایي په منځ کښې چه کوم حجابات دي ټول لرې کیږي۔ په داسې حال کښې چه د ابن حجر رحمه الله رایه دا ده چه د حجاباتو له لرې کیدو او شبیه پرته به سوال کیږي او دا د امتحان په صورت کښې ډېر قوي دی۔

قال ابن حجرؒ: و لا یلزم من الاشارة ما قیل من رفع الحجب بین المیّت و بینهﷺ حتی یراه..... اقوی الامتحان.... الخ. (مرقات شرح المشکٰوة)

## د "علماء امّتی کانبیآء بنی اسرآئیل" تحقیق

**سوال:** دا حدیث چه "علماء امّتی کانبیآء بنی اسرآئیل" واعظین حضرات په ډېر شد او مد سره بیانوي او په دې حدیث سره د علماوو فضیلت ثابتوي۔ آیا دا روایت له حضورﷺ څخه ثابت دی او که نه او دا د کومې درجې حدیث دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د علماء کرامو په دې خبرې باندې اتفاق دی چه دا روایت ضعیف دی په داسې حال کښې چه ځینو علماوو موضوعي هم بللی دی۔ بیا هم یو ائخې د علم د فضیلت په ډول ئې بیانول ممنوع نه دی۔

قال العلامة طاهر بن علی الهندی رحمه اللهٰ: و علماء اُمتی کانبیاء بنی اسرائیل. قال شیخنا و الزرکشیؒ لا اصل له و لا یعرف فی معتبر و روی بسند ضعیف. (تذکرة الموضوعات ص ٤۰)

قال العلامة ملا علی القاری رحمه اللهٰ: علماء اُمتی کانبیاء بنی اسرائیل. قال الدمیرؒ و العسقلانیؒ لا اصل لهٗ. و کذا قال الزرکشیؒ و سکت عنه السیوطی. (موضوعاتِ کبرٰی ص ۱۵۹، رقم حدیث ٦۱٤)

## د "ربّ کاسیة فی الدنیا عاریة فی الآخرة" تحقیق

**سوال:** د بخاري شریف په "کتاب العلم" کښې یو حدیث دی چه "ربّ کاسیة فی الدنیا عاریة فی الآخرة" د دې حدیث مطلب څه دی ما ډېر کوشش وکړ لیکن ذهن ته مې څه را نه غلل؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د حديث علماوو د دې حديث مختلف تاويلات او مقاصد بيان كړي دي۔

﴿۱﴾ ډيرې ښځې به په دنيا كښې د اعمالو په اعتبار سره ډيرې ښې معلوميږي ليكن د خپلو نورو بدو اعمالو له وجهې به په آخرت كښې له نيكو اعمالو څخه خالي وي۔

﴿۲﴾ ليكن مناسب مطلب ئې دا څرګنديږي چه ډيرې ښځې اګر كه په ظاهره ئې كالي اغوستي وي ليكن دومره نرۍ وي چه ټول بدن ئې ترې معلوميږي نو د اسې ښځې د اسې دي لكه لوڅې نو له دې وجهې به سزا وركول كيږي۔

قال الشيخ محمد زكريا السهارنپوريؒ: او حقيقي معنىٰ هم ترې مراد كيدلى شي چه ډيرې ښځې چه په دنيا كښې كومې جامې اغوستي وي شرعا معتبرې نه وي د مثال په توګه د ننه څخه ئې ټول بدن ترې ښكاره كيږي۔ نو د اسې ښځو ته به په آخرت كښې د دې عمل سزا وركول كيږي۔ (تقرير بخاري ج۱، ص۱۹۳، باب العلم)

## د "انا من نور الله و المؤمنون منّي" د حديث تحقيق

**سوال:** جناب مفتي صاحب! ځينې خلك د حضورﷺ نور د الله تعالىٰ نور بولي او د دليل په توګه دا حديث وړاندې كوي چه "انا من نور الله و المؤمنون منّي" آيا دا حديث په صحيح سند سره ثابت دى او كه نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** حضورﷺ د ذات اقدس په اعتبار سره بشر دى او د بشريت ټول خواص پكښې موجود دى۔ لهذا ده مباركﷺ ته د ذات په اعتبار سره نور ويل صحيح نه دي او تر كومه ځايه پورې چه د ذكر شوي روايت تعلق دى نو محدثينو دا روايت په موضوعاتو كښې شمار كړى دى۔

قال العلامة طاهر بن على الهندىؒ: و فى الذيل "كنت نبيًا و آدم بين الماء و الطين و كنت نبيًا و لا آدم و لا ماء و لا طين". قال ابن تيميّة موضوع و هو كمال قال و كذٰلك حديث "انا من نور اللّٰه و المؤمنون منّى الخير فى وفى اُمتى الى يوم القيامة". قال ابن حجر لا اعرفه. (تذكرة الموضوعات ص۸۶، فصل الرسول و خصاله)

قال العلامة ملا على القارىؒ: حديث "انا من نور اللّٰه و المؤمنون منى" قال العسقلانىؒ انه كذب مختلق و قال الزركشىؒ لا يعرف. و قال ابن تيمية موضوع. (الموضوعات الكبرىٰ لملا على قارىؒ ص۷۳)

## په ولاړې باندې د متيـــازو د كولو ثبوت

**سوال:** جناب مفتي صاحب! يوه صاحب بل صاحب ته وويل چه كه چېرته څوك دا ووايي چه رسول اللهﷺ په ولاړې باندې بولې كړي دي نو آيا ته ئې منې؟ نو هغه ورته وويل چه رسول اللهﷺ په ولاړې باندې بولې نه دي كړي۔ د دواړو په دې باندې اختلاف دى نو تاسو ته دا عرض دى چه د دوى دا اختلاف لرې كړى؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په ابي داؤد او د حديث په نورو كتابونو كښې په صريحو الفاظو سره راغلي دي چه دى مباركﷺ د عذر له وجهې په ولاړې باندې بولې كړي دي لهذا له دې څخه انكار مه كوى او پرته له شرعي عذر څخه په ولاړې باندې له بولو كولو څخه پرهيز وكړى۔



اخرج الامام ابو داؤد: عن حذيفة رضى الله عنه قال قال رسول اللهﷺ سباطة قوم فبال قائماً ثم دعا بماء فمسح على خفيه. (ابو داؤد ج۱، ص باب البول قائماً)

اخرج الامام الزيلعىؒ: عن حذيفة رضى الله عنه قال كنت مع النبىﷺ فانتهىٰ الى سباطة قوم فبال قائماً فتنحيث فقال اُدنه فدنوت حتىٰ قمت عند عقبه فتوضأ و مسح على خفيه. (نصب الراية بحواله مسلم ج۱، ص۱۶۳، كتاب الطهارت)

## د سبحـــان من زين الرجال باللحٰى تحقيق

**سوال:** د "سبحان من زين الرجال باللحٰى و زين النسآء بالذوائب (الحديث) حديث اوريدل كيږي۔ مهرباني وكړى د دې حديث حواله وښايى؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** دا حديث د احاديثو په كتابونو كښې په مختلفو الفاظو سره راغلى دى۔ د مثال په توګه:

قال الامام السرخسىؒ: روى عن النبىﷺ انه قال ان للّٰه تعالىٰ ملائكة تسبيحهم سبحان من زين الرجال باللحٰى و النساء بالقرون و الذوائب. (المبسوط ج۲۶، ص۷۲، كتاب الديات)

قال العلامة عبد الرؤف المناوىؒ: سُبحان من زين الرجال باللحٰى و النساء بالذوائب. (كنوز الحقائق على هامش الجامع الصغير ج۱، ص۱۴۲) و مثله فى مسند الفردوس للديلمىؒ ج۲، ص۹۰.

## د انبياء كرامو پخپلو قبرونو كښې د لمانځه د اداكولو مسئله

**سوال:** محترم مفتي صاحب! يوه عالم دين د معراج واقعه بيانوله او وئې فرمايل چه حضورﷺ فرمايي چه ما د معراج په شپه كښې حضرت موسىٰ عليه له خپل قبر سره په لمانځه وليده نو آيا دا روايت صحيح دى او كه نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له مرګ نه وروسته يو انسان د اعمالو په كولو باندې مكلف نه پاتې كيږي لكه لمونځ او د اسې نور اداكول پرې لازم نه وي۔ البته د الله تعالىٰ د ځينو نيكو بندګانو د اسې كول په ذوقي امورو باندې محمول دى۔ تر كومه ځايه پورې چه د ذكر شوي حديث تعلق دى نو دا حديث په صحيح سند سره له جناب نبي كريمﷺ څخه ثابت دى۔ چنانچه امام مسلم بن قشيرو فرمايي:

عن انس بن مالك رضى الله عنه ان رسول اللهﷺ قال اتيت و فى رواية مررتُ على موسىٰ ليلة اسرى بى عند الكثيب الاحمر و هو قائمٌ يصلّى فى قبره. (الجامع الصحيح لمسلم ج۲، ص۲۶۸، باب فضائل موسىٰ عليه السلام)

۳۲۳۸۶. مررت ليلة اسرىٰ بى على موسىٰ عند الكثيب الاحمر و هو قائمٌ يصلّى فى قبره. (كنز العمال ج۱۱، ص۵۱۱)

## د "لا صلوٰة لجار المسجد الخ" مطلب

**سوال:** مونږ له علماوو څخه اوریدلي دي چه د نوافلو ادا کول په کور کښې افضل دي لیکن له دې حدیث شریف چه "لا صلوٰة لجار المسجد الا فی المسجد" څخه څرګندیږي چه نوافل هم په جوماتکښې ادا کول ضروري دي۔ نو اوس پوښتنه دا ده چه که چېرته د نوافلو په کور کښې ادا کول افضل وي نو بیا د دې حدیث مطلب څه دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د حدیثو علماوو دا روایت په فرائضو باندې محمول کړی دی چه د فرائضو ادا کول په جومات کښې ضروري دي او د نوافلو په کور کښې ادا کول افضل دي۔

عن النبی ﷺ لا صلوٰة لجار المسجد الاّ فی المسجد آه. نقل الشیخ المفتی عزیز الرحمٰن عن السراج المنیر: هذا محمول علی الفریضة و ما الحق بها ففعلها فی المسجد افضل و ما عدا ذٰلك ففعله فی البیت افضل من فعله فی المسجد.

(السراج المنیر بحواله عزیز الفتاوٰی ج۱، ص ۱٤۰)

قال العلامه مفتی عزیز الرحمٰنؒ: اول حدیث معمول بها دی په دې طریقې سره چه حدیث په فرائضو باندې محمول کوو او کوم چه په دې حکم کښې وي او نوافل په کور کښې ادا کول افضل دي۔

(عزیز الفتاوٰی ج۱، ص ۱٤۰، کتاب ما یتعلق بالحدیث)

## د "من صلّی علیّ عند قبری الخ" تحقیق

**سوال:** ځینې خلک د سماع النبي ﷺ فی القبر قائل نه دي او هغوی دا حدیث چه "من صلّی علیّ عند قبری سمعته و من صلّی علیّ نائیا ابلغته" ضعیف بولي۔ آیا په رښتیا هم دا روایت ضعیف او د حجت قابل نه دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د دې حدیث په باره کښې اګر که ځینو حضراتو د تضعیف خبره کړې ده لیکن اکثرو محدثینو د دې حدیث توثیق کړی دی۔ لهذا دا روایت د سماع النبي ﷺ فی القبر په باره کښې د حجت قابل دی۔

کما ذکر العلامة ابو الطیب محمد شمس الدین العظیم آبادیؒ: تحت ذٰلك الحدیث قال ابن القیمؒ و قد صح اسناد هٰذا الحدیث، و سألت شیخنا ابن تیمیة عن سماع یزید بن عبد اللّٰه من ابی هریرةؓ فقال کانه ادرکه و فی سماعه منه نظر انتهٰی کلامه. و قال النوویؒ فی الاذکار و ریاض الصالحین اسناده صحیح. و قال ابن حجرؒ رواته الثقات آه. (عون المعبود ج٦، ص۲۲، کتاب المناسك)

## د "لا یبیع احدکم الخ" حـــــدیث وضاحت

**سوال:** جناب مفتي صاحب! ما په یوه کتاب کښې یو حدیث ولیده چه په دې ډول دی "عن النبی ﷺ قال لا یبیع بعضکم علی بیع بعض" له دې څخه مطلب څه دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** دا روایت امام ترمذيؒ په جامع الترمذي کښې نقل کړی دی او د دې دوه مطلبونه کیدلی شي۔



﴿۱﴾ چه د عاقدینو په منځ کښې بیعه تامه شوې وي او یو بل سړی راشي او بائع ته دا ووایي چه زه تا ته د دې شي زیات قیمت درکوم او ته له ده سره بیع فسخ کړه او دا شی ما ته راکړه۔

﴿۲﴾ دوهم مطلب ئې دا دی چه د دواړو ترمنځ خبرې اترې شروع وي او بائع په مشتري باندې د شي پلورلو ته تیار هم وي چه دریم سړی راشي او بائع ته دا ووایي چه زما نه زیاتې پیسې واخله او د بیع عقد له ماسره وکړه۔ د دې حدیث له مخې دواړه صورتونه ناجائز او حرام دي۔

## په "قال جاء رسول اللّٰه ﷺ بیتنا و انا صبیٌ" حدیث او په فقهي روایتونو کښې تطبیق

**سوال:** عن عبد اللّٰه بن عمر بن ربیعة قال جاء رسول اللّٰه ﷺ بیتنا و انا صبی صغیر فذهبت العب فقال ای لی یا عبد اللّٰه تعال اعطیك فقالْ رسول اللّٰه ﷺ ما زدت ان تعطیه قالت اردت ان اعطیه تمراً قال اما انك کم تعطی لکتبت علیك کذبةً.

(در منثور ج۳، ص ۲۹۱)

او ابن عابدین رحمه اللّٰه له دې څخه له خپل بچي سره دروغ لره مستثنٰی ګرځولې ده قال ابن عابدینؒ: قال رسول اللّٰه ﷺ کل کذب مکتوبٌ لا محاله الاّ ثلاثة الرجل مع امرأته او ولده و الرجل یصلح بین اثنین و الحرب. (رد المحتار ج٤، ص٤۲۷، قبیل احیاء الموات)

نو په دغو دواړو روایتونو کښې څنګه تطبیق کیږي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د دې تعارض بین الروایات په حل کښې تطبیق دا دی چه په اول حدیث کښې له کذب څخه مراد صحیح کذب دی او په دوهم حدیث کښې صوري کذب ترې مراد دی چه هغه تعریض ویل کیږي او عیني او حقیقي کذب ترې مراد نه دی۔

قال العلامة الشامیؒ: قوله قال ای صاحب المجتبٰی و عبارته قال کل کذب مکتوب لا محالة الا ثلاثة الرجل مع امرأته او ولده و الرجل یصلح بین اثنین و الحرب فان الحرب خدعة قال الطحاوی و غیره هو محمول علی المعاریض لان عین الکذب حرامٌ...... فا لاستثناء فی الحدیث لما فی الثلاثة من صورة الکذب و حیث ابیح التعریض لحاجة لا یباح لغیرها لانه یوهم الکذب و ان لم یکن اللفظ کذباً قال فی الاحیاء نعم المعاریض تباح بغرض حقیقی کتطیب قلب الغیر با لمزاح...... جاز الکذب...... قال الشارح ابن الشحنه نقل فی البزازیة انه اراد به المعاریض لا الکذب الخالص. (رد المحتار علی الدر المختار ج٥، ص۲۷٥، قبیل احیاء الموات)

قال العلامة سید احمد الطحطاویؒ: و المراد التعریض عبارة المجتبٰی الطحاوی و غیره هو ای الحدیث محمول علی المعاریض لان الکذب حرام آه. و ظاهره ان التعریض لا یباح الاّ فی هٰذه الصور. (حاشیة الطحطاوی علی الدر المختار ج٤، ص ۲۱۱، قبیل احیاء المواتؒ) و مثله فی حاشیة کشف الاستار علی الدر المختار ج۲، ص۲٥٤، فصل فی البیع، قبیل باب احیاء الموات.

## احـــــادیث وحی غیر متلو دي

**سوال:** احادیث الٰهي وحی بلل کیږي او اکثره علماء کرام ورته وحی غیر متلو وایي په داسې حال کښې چه احادیث د رسول اللّٰه ﷺ له خبرو څخه عبارت دي۔ نو احادیثو ته څرنګه وحی ویل کیدلی شي؟ دلیل ئې څه دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** احادیث هم د قرآنکریم غوندې وحی دي چه علماء کرام وحی غیر متلو ورته وايي- نو کله چه الفاظ او معنٰی دواړه د الله تعالی له خوا نازل شوي وي نو هغو ته وحی متلو وايي کوم چه قرآنکریم دی او کله چه معنٰی د الله تعالی له خوا او الفاظ د حضور ﷺ له خوا څخه وي نو هغه ته وحی غیر متلو او احادیث ویل کیږي او دلیل ئې دا دی چه:

﴿۱﴾ وَمَا یَنْطِقُ عَنِ الْهَوٰی اِنْ هُوَ اِلاَّ وَحْیٌ یُّوْحٰی ☆ (سورة النجم، آیت ٤)

﴿۲﴾ وَمَا کَانَ لِبَشَرٍ اَنْ یُّکَلِّمَهُ اللّٰهُ اِلاَّ وَحْیاً اَوْ مِنْ وَّرَآءِ حِجَابٍ اَوْ یُرْسِلَ رَسُوْلاً. (سورة الزمر، آیت ٥١)

قال العلامة ملا جیون المستدل لا یخلوا اما ان یتمسّك با لوحی او غیره و الوحی امّا متلوٌ و هو الکتاب او غیره و هو السنة. (نور الانوار ص٦، تقسیم اصول الشرع) و مثله فی کشف الاسرار علی المنار ج١، ص ١٠، تقسیم اصول الشرع.

## بـــل څوك خپل پلار جوړول او د "فا لجنة علیه حرام" حــدیث کښې د حــرمت تحقیق

**سوال:** له حضرت اُسامه بن زید رضی الله عنه څخه روایت دی چه د دواړو جهانو سردار حضرت محمد رسول الله ﷺ فرمایلي دي چه "چا چه یو بل څوك خپل پلار جوړ کړ او په دې هم پوهیده چه دی مې پلار نه دی نو په د اسې سړي باندې جنت حرام دی" آیا په دې حدیث شریف کښې د حرام له لفظ څخه همیشنی حرمت مراد دی او که څنګه؟ بینوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په دې حدیث شریف کښې د جنت د حرامیدو مطلب دا دی چه څوك دې ګناه لره حلال وبولي نو په هغه باندې جنت د تل لپاره حرام ګرځي او چه څوك ئې حلال و نه بولي نو په هغه د جنت د حرامیدو مطلب دا دی چه په هغه باندې له فائزینو او اهل السلامه سره د جنت اولنی دخول حرام دی- په جهنم کښې د سزا تر تیرولو وروسته به جنت ته داخلیږي-

قال العلامة محی الدین النووی: قوله فا لجنّة علیه حرام..... احدهما انهٗ محمول علی من فعله مستحلاً لهٗ و الثانی ان جزائه انها محرمة علیه اولاً عند دخول الفائزین و اهل السلامة ثمّ انه قد یجازی فیمنعها عند دخولهم ثمّ یدخلها بعد ذٰلك و قد لا یجازی بل یعفوا الله سبحانه و تعالٰی عنه. (نووی شرح مسلم ج١، ص٥٧، باب حال ایمان من رغب عن ابیه و قد یعلم)

قال العلامة شبیر احمد العثمانی: قوله "فا لجنّة علیه حرامٌ الخ" اما محمول علی من فعله مستحلاً او علی ان جزائه انها محرمة علیه اولاً عند دخول الفائزین و اهل السلامة و یمکن العفو عنه بفضل الله سبحانه و تعالٰی. (فتح الملهم شرح صحیح مسلم ج١، ص٢٣٦، باب حال ایمان من رغب الخ) و مثله فی ارشاد الساری لشرح صحیح البخاری للقسطلانی ج٩، ص٤٥٥، باب من ادعی الی غیر ابیه، کتاب الفرائض.

## په دې حدیث کښې چه "بعثنی با لحق لا یقبل الله صدقة" د صدقې د قبول تحقیق

**سوال:** دا لاندینی حدیث چه "و الذی بعثنی با لحق لا یقبل الله صدقة من رجل و له قرابات محتاجون الی صلته و یصرفها الی غیره". کښې له عدم قبول څخه څه مراد دي؟ بینوا توجروا-



**الجواب باسم ملهم الصواب:** علامه ابن عابدین رحمه الله دا حدیث په دغو الفاظو سره نقل کړی دی: عن ابی هریرةؓ مرفوعاً الی النبیﷺ انه قال یا امة محمد و الذی بعثنی با لحق لا یقبل الله صدقة من رجل و له قرابة محتاجون الی صلته و یصرفها الی غیرهم و الذی نفسی بیده لا ینظر الله الیه یوم القیامة.

او بیا علامه ابن عابدین رحمه الله له عدم قبول څخه عدم ثواب مراد اخیستی دی اګر که له فرضو څخه ئې غاړې خلاصیږي-

قال العلامة ابن عابدین رحمه الله: و المراد بعدم القبول عدم الاثابة علیها و ان سقط بها الفرض لان المقصود منها سد خلة المحتاج الخ. (رد المحتار علی هامش الدر المختار ج٢، ص٧٥، قبیل باب صدقة الفطر)

قال الطحطاوی: قوله لا تقبل صدقة الرجل، ای لا یثاب علیها و ان سقط الفرض و مثل الرجل المرأة کذا فی کتابه الدر. (طحطاوی علی المراقی ص٥٩٤، باب المصرف) و مثله فی البنایة فی شرح الهدایة ج٤، ص٢١٤، قبیل باب صدقة الفطر.

## د "بئر بضاعه" حدیث تحقیق او د احنافوؒ جواب

**سوال:** د حدیثو علماء کرام څه فرمایي د دې مسئلې په باره کښې چه په مشکوٰة شریف ج٥، ص٥٢، الفصل الثاني، باب الاحکام المیاه کښې یو حدیث را نقل کړی دی چه: عن ابی سعید ن الخدریؓ قال قیل یا رسول الله انتوضأ من بیر بضاعة و هی بیر یلقٰی فیه الحیض و لحوم الکلاب الخ. رواه احمد و الترمذی و ابو داؤد و النسائی. آیا دا حدیث په ترمذي شریف، ابي داؤد او نسایي شریف کښې له همدې عبارت سره راغلی دی او که نه؟ او که راغلی وي نو احنافو ئې څه ځواب کړی دی؟ بینوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د "بئر بضاعه" حدیث په مسند احمد ج٣، ص٤١٥ کښې له ابي سعید خدري رضی الله عنه په سند سره او دسنن ترمذي ج١، ص٦٢ په "باب ما جاء ان الماء لا ینجسه شیء" او د ابو داؤد ج١، ص١١، باب ما جاء في بئر مضاعه" او د سنن نسایي ج١، ص٦٢، کتاب المیاه، باب ذکر بیر البضاعه کښې په ادنی لفظي تغیر سره راغلی دی- او احنافو د دې حدیث مختلف ځوابونه کړي دي چه د دې کوهي اوبه باغونو ته ورکول کیدلې نو ځکه د دې حکم د جاري اوبه غوندې وو او یا کوهی لوی وو او ناپاکي پرې اثر نه کاوه چه له وجهې ئې د اوبه په رنګ، خوند او بوی کښې فرق راغلی وی یعني په دغو شیانو کښې ئې فرق نه راتلو-

قال العلامة ابو جعفر الطحاوی: فقالوا ما ذکرتموه من بیر بضاعة فلا حجة لکم فیه لان بیر بضاعة قد اختلف فیها ما کانت فقال قوم کانت طریقاً للماء الی البساتین فکان الماء لا یستقر فیها فکان حکم مائها کحکم ماء الانهار....... فلا ینجس مائه الاّ ان یغلب علی طعمه او لونه او ریحه او یعلم انها فی الماء الذی یؤخذ منها فان علم. (شرح معانی الآثار للطحاوی ج١، ص١٦، کتاب الطهارة، باب ما یقع فیه النجاسة)

قال الشیخ محمود حسن الدیوبندی: قال اهل المعانی فی الاصول الاصل فی اللام ان یکون للعهد ما لم تکن قرینة صارفة فا للام فی قولهٗ الماء آه. للعهد الخارجی و المعهود هو الماء فی بیر بضاعة یعنی الماء الذی فی بیر بضاعة لا یتنجس لان مطلق الماء لا یتنجس و عدم نجس مائه لانهٗ کان جاریاً فی البساتین و حکم الجاری........ و اجاب الطحاوی بان

السوال عن حکم الماء کان بعد اخراج النجاسات من بیر بضاعة الخ. (التقریر للترمذی فی کتاب الترمذی ص۵، باب ما جاء ان الماء لا ینجسه شیء، کتاب الطهارة) و مثله فی اعلاء السنن ج۱، ص۱۷۷، حدیث بیر بضاعة، کتاب احکام المیاه.

## د "لاتشدوا الرحال الخ" حدیث تشریح

**سوال:** لا تشدوا الرحال الا الی ثلاثة مساجد مسجدی هٰذا و مسجد الاقصیٰ و مسجد الحرام. دا یو حدیث دی۔ د دې حدیث مطابق له دریو جوماتونو پرته د ثواب په نیت سره نورو ځایونو ته سفر کول او د سامان تړل جائز نه دي۔ آیا په رښتیا هم مسئله همداسې ده او که د دې حدیث مطلب بل شی دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د حدیث له الفاظو څخه په ظاهره سره همدا مطلب را ووځي لیکن په حقیقت کښې د دې حدیث مطلب دا نه دی بلکه اصل مطلب ئې دا دی چه له نوموړیو ځایونو پرته په اعمالو کښې د ثواب د زیاتوالي په نیت سره سفر کول ممنوع دی او په دې حدیث کښې علت نیت، تقرب او د سفر ثواب و دغو جوماتونو ته دی۔ د نورو ځایونو په دې باندې قیاس کول قیاس مع الفارق دی۔ لهذا په دې حدیث کښې د قبرونو زیارت، تعلیم او تعلم او د دین د تبلیغ او د اسې نورو لپاره په سفر کولو کښې هیڅ ممانعت نشته۔ څکه چه هغه سفرونه د قبرونو د زیارت په نیت، د تعلیم او تعلم او د اسې نورو په نیت سره کیږي چه د خاص ثواب په نیت سره او په دې باندې چه کوم ثواب حاصلیږي هغه د نورو وجوهاتو په بناء سره حاصلیږي۔

قال الحافظ ابن حجر العسقلانیؒ: و منها ان المراد حکم المساجد فقط و انهٗ لا تشدوا الرحال الی مسجد من المساجد للصلوٰة فیه غیر هٰذه الثلاثة و اما قصد غیر المساجد لزیارة صالح او قریب او صاحب او طلب علم او تجارة او نزهة فلا یدخل فی النهی و یؤیده ما روی احمد الخ. (فتح الباری شرح صحیح البخاری ج۳، ص۵۳، کتاب التهجد، باب فضل الصلوٰة فی مسجد مکة و المدینة)

قال العلامة عینیؒ: و قال شیخنا زین الدین من احسن محامل هٰذا الحدیث ان المراد منه حکم المساجد فقط و انه لا یشد الرحل الی مسجد من المساجد غیر هٰذه الثلاثة فاما قصد غیر المساجد من الرحلة فی طلب العلم و فی التجارة و التنزه و زیارة الصالحین و المشاهد و زیارة الاخوان و نحو ذٰلک فلیس داخلاً فی النهی و قد ورد ذٰلک مصرحاً به فی بعض طرق الحدیث الخ. (عمدة القاری شرح صحیح البخاری ج۷، ص۲۵۴، باب فضل الصلوٰة فی مسجد مکة و المدینة، کتاب التهجد) و مثله فی فیض الباری علی صحیح البخاری ج۲، ص۴۳۳، کتاب التهجد، باب فضل الصلوٰة فی مسجد مکة و المدینة.

## په "المولود حتی یبلغ الحنث ما یعمل من حسنه الخ" او په فقهي روایت کښې تطبیق

**سوال:** و اخرج ابن مردویة عن انس بن مالکؓ قال قال رسول اللهﷺ المولود حتی یبلغ الحنث ما یعمل من حسنة اثبت لوالده او لوالدیه و ان عمل سیئة لم یکتب علیه و لا علی والدیه فاذا بلغ الحنث و جری علیه القلم الخ. درمنثور. (تفسیر معارف القرآن ج۶، ص۲۴۱) او علامه ابن عابدین رحمه الله فرمایي چه: و قد قالوا حسنات الصبی له لا لابویه بل لهما ثواب التعلیم. (رد المحتار حاشیة الدر المختار ج۱، ص۴۲۶)



و فی خلاصة الفتاویٰ: الصبی اذا عمل من الحسنات قبل ان یجری علیه القلم کان ثواباً له لا لابویة و لو علم الوالد تلک الطاعة کان للوالد ثواب التعلیم. (خلاصة الفتاویٰ ج۴، ص۴۱)

نو اوس پوښتنه ذکر شوی حدیث او په نوموړي فقهي روایت کښې څنګه تطبیق کیږي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** دلته د تعارض په دفع کښې دا خبره ممکنه ده چه په حدیث کښې له ثواب څخه مراد ثواب السبب دی او د فقهاوو په عبارتو کښې له ثواب څخه مراد ثواب العمل دی لکه چه د مرقات له دې عبارت څخه څرګندیږي۔

قال العلامة مُلّا علی قاری رحمه الله: (الاّ من صدقة جاریة او علم ینتفع به او ولد صالح)...... و اما الثلاثة المذکورة فانها اعمال تحدث بعد وفاته فلا تنقطع عنه لانه سبب تلک الاعمال و فی مقام آخر قال و فی معناه کتب العلوم الشرعیة فیکون له ثواب السبب. (مرقاة المفاتیح علی مشکوٰة المصابیح ج۱، ص۲۶۹، کتاب العلم، الفصل الاول)

و قال العلامة رافعی رحمه الله: هٰذا قول عامة المشائخ و قال بعضهم ینتفع المرء بعلم ولده بعد موته و یکون لوالده اجر ذٰلک من غیر ان ینقص من اجر الولد شیء آه سندهي. (التقریرات الرافعی ج۱، ص۱۱۹، کتاب الجنائز) و مثله فی شرح الطیبی علی مشکوٰة المصابیح ج۱، ص۳۶۱، کتاب العلم، الفصل الاول.

## د "یتبع المیت ثلاثة اهله الخ" حدیث تشریح

**سوال:** په ریاض الصالحین ج۱، ص۱۷۱ حدیث نمبر ۴۶۱ کښې چه کوم حدیث له حضرت انس رضی الله تعالی عنه څخه مروي دی چه: یتبع المیت ثلاثة اهله و ماله و عمله فیرجع اثنان و یبقٰی واحدٌ یرجع اهله و ماله و یبقٰی عمله. متفقٌ علیه.

په دې حدیث کښې عمل او اهل خو واضح دی لیکن له مال څخه څه مراد دي کوم چه له مړي څخه واپس کیږي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په دې حدیث کښې له "ماله" څخه مراد غلام، کنیز، خیمې، له کفن څخه زیات شوي څادرونه، کټ، هغه سامان کوم چه د تدفین په وخت کښې په قبرستان کښې کار ترې اخیستل کیږي او د اسې نور چه د اتول ترې واپس کیږي۔

قال العلامة ملا علی القاریؒ: یتبعه اهله ای اولاده و اقاربه و اهل صحبته و معرفته و ماله کا لعبید و الاماء و الدابة و الخیمة و نحوها قال المظهر اراد بعض ماله و هو ممالیکه و قال الطیبیؒ: اتباع الاهل علی الحقیقة و اتباع المال علی الاتساع فان الماء حینئذٍ له نوع تعلق با لمیت من التجهیز و التکفین و مؤنة الغسل و الحمل و الدفن فاذا دفن انقطع تعلقه با لکلیة و عمله فیرجع اهله و ماله و یبقٰی عمله. (مرقات المفاتیح شرح مشکوٰة المصابیح ج۹، ص۳۵۶، کتاب الرقاق، الفصل الاوّل)

قال العلامة ابن حجر العسقلانیؒ: قوله یتبعه اهله و ماله و عمله هٰذا یقع فی الاغلب و رب میت لا یتبعه الا عمله فقط و المراد من یتبع جنازته من اهله و رفقته و دوابه علی ما جرت به عادة العرب و اذا انقضٰی امر الحزن علیه رجعوا سواء اقاموا بعد الدفن ام لا...... قال الکرمانیؒ التبعیة فی حدیث انسؓ بعضها حقیقة و بعضها مجاز فیستفاد منه استعمال اللفظ الواحد فی حقیقة و مجازه. (فتح الباری شرح صحیح البخاری ج۱۱، ص۳۱۵، کتاب الرقاق، الفصل الاول) و مثله فی حاشیة مشکوٰة المصابیح للعلامة تبریزی ج۲، ص۴۴۰، کتاب الرقاق، الفصل الاول.

## د صحیح مسلم په مقـــــدمې کښې د خطاب د ضمائرو مرجع

**سوال:** جناب مفتي صاحب! د صحیح مسلم په مقدمه کښې چه کوم عبارتونه د خطاب د ضمائرو راغلي دي لکه یرحمك الله، لما سهل الانتصاب لما سئلت وغیرها". نو د خطاب د دې ضمائرو مرجع څوك دی؟ حل ئې کړی ډیره مهرباني به مو وي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د مسلم شریف په مقدمې کښې چه د خطاب څومره ضمائر راغلي دي د هغو مرجع یا خو د امام مسلم رحمه الله کوم یو شاګرد ترې مراد دی او یا ئې څوك ملګری او معاصر ترې مراد دی لکه څرنګه چه د مسلم شریف په سبب تالیف او له ضروري واقعاتو څخه څرګندیږي۔

قال الشیخ المفتی محمد فرید مد ظله العالی: ذکر فی بعض حواشی مسلم ان المخاطب لهٰذا امّا بعض تلامذته و اما معاصره المصاحب له. (فتح المنعم شرح مسلم ص۱۷)

قال محمد طاهر رحیمی: د دې مخاطب ابو اسحٰق ابراهیم د صحیح مسلم راوي دی او د اد تالیف د سبب خواته اشاره ده چه ستاسو دا غوښتنه وه چه زه په متداوله احادیثو کښې له اسانیدو سره یوه د اسې لنډه غونډې مجموعه مدونه کړم الخ۔ (عمدة المفهم فی حل مقدمة مسلم ص۲۳)

## په مهر نبوت کښې د لیکنې تحقیق

**سوال:** جناب مفتي صاحب! د حضورﷺ د مبارکو اوږو تر منځ چه کوم مهر نبوت وو په هغه کښې څه لیکل شوي وو او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په مهر نبوت کښې څه لیکل شوي وو او که نه۔ د علماوو په دې کښې اختلاف دی۔

علامه ابن حبان او د اسې نور د دې خبرې تصحیح کړې ده چه محمد رسول الله پرې لیکل شوی وو او له ځینو نورو روایتونو څخه څرګندیږي چه "سر فانت المنصور" پرې لیکل شوي وو۔ لیکن د ځینو نورو اکابرینو رایه دا ده چه دا روایتونه د ثبوت درجې ته نه دي رسیدلي او په مهر نبوت کښې هیڅ نه وو لیکل شوي۔

قال العلامة ملا علی القاریؒ: و قال العسقلانیؒ و روایة کاثر محجم او کرکبة عنز او کشامة خضراء او سوداء مکتوب فیها محمد رسول الله او سر فانك المنصور لم یثبت منها شیء و تصحیح ابن حبان. (جمع الوسائل فی شرح الشمائل ج۱، ص۷۲، باب ما جاء فی خاتم النبوّة)

اخبرنا نصر بن الفتح بن سالم الربعی العابد بسمرقند: حدثنا رجاء ابن مرجی الحافظ حدثنا اسحاق بن ابراهیم القاضی بسمرقند حدثنا ابن جریج عن عطاء عن ابن عمر قال کان خاتم النبوّة فی ظهر رسول الله مثل البندقة من لحم علیه مکتوبٌ محمد رسول الله. (الاحسان بترتیب صحیح ابن حبان ج۸، ص۷۲، رقم حدیث ۶۲۶۹، باب ذکر حقیقة الخاتم) و مثله فی خصائل ترمذی شرح شمائل ترمذی ص۲۸، باب ما جاء فی خاتم النبوّة.



## د "فانها تذهب حتّٰی تسجد تحت العرش الخ" حدیث تشریح

**سوال:** د بخاري شریف یو حدیث دی چه: عن ابی ذرٍ قال کنت مع النبیﷺ فی المسجد عند غروب الشمس فقال یا ابا ذر اتدری این تغرب الشمس قلت الله و رسوله اعلم قال فانها تذهب حتّٰی تسجد تحت العرش فذٰلك قوله تعالی: وَالشَّمْسُ تَجْرِیْ لِمُسْتَقَرٍّ لَّهَا ذٰلِكَ تَقْدِیْرُ الْعَزِیْزِ الْعَلِیْمِ ☆ (سورة یٰسٓ)

اوس پوښتنه دا ده چه د ټولو ملکونو اوقات جدا جدا دي لکه دلته په پاکستان کښې شپه ده او په ډیرو نورو ملکونو کښې ورځ وي۔ نو که چېرته مونږ له دې ځای څخه د شپې په دولس بجې دا خبره خپره کړو چه لمر د عرش لاندې په سجدې کښې پروت دی نو په هغه وخت کښې د دنیا په ډیرو ملکونو کښې د ورځې اته بجې وي۔ د هغه ځای خلك وایي چه دلته خو لمر ختلی دی او ځلیږي۔ لهذا دا خبره صحیح نه ده چه په دې وخت کښې لمر د عرش لاندې په سجدې کښې پروت دی۔ نو مهرباني وکړی د دې حدیث تشریح وکړی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د اشکالو د دفع کولو لپاره د امت علماوو د دې حدیث مختلف توجیهات بیان کړي دي۔ مثلاً علامه آلوسي رحمه الله فرمایي چه د لمر روح پورته ځي او سجده کوي کوم چه د لمر د حرکت سره معارض نه دی خصوصاً کله چه د غه غروب په نسبت و معظم معموره سره مراد وي۔ او ځینې علماوو دا توجیه کړې ده چه چونکه عرض د تمامو کائناتو له پاسه ده او لمر د خپل رفتار په وخت کښې خامخا د عرش لاندې تیریږي نو ځکه په دې کښې کومه خبره د عقل خلاف نه ده۔ البته ماوراء العقل خو خامخا ده۔ چونکه دا خبره حضورﷺ کړې ده کومه چه تعلق ئې له وحی سره ده نو ځکه مونږ ئې د ادراك او مشاهدې مکلف نه یو بلکه زمونږ لپاره دا ضروري ده چه ایمان پرې راوړو۔

قال العلامة بدر الدین العینی رحمه الله: الا رضون السبع فی ضرب المثال کقطب الرحی و العرش العظیم ذاته کا لرحی فاینما سجدت الشمس سجدت تحت العرش و ذٰلك مستقرها........ السمٰوٰت و الارضون و غیرهما من جمیع العالم تحت العرش فاذا سجدت الشمس فی ای موضع یصح ان یقال سجدت تحت العرش......... لا ینکر ان یکون لها استقرار تحت العرش من حیث لا ندرکه و لا نشاهده و انما اخبر عن غیب فلا نکذبه و لا نکفره ان علمنا لا یحیط به. (عمدة القاری شرح صحیح البخاری ج۱۵، ص۱۱۹، باب صفة الشمس و القمر بحسبان، کتاب بدأ الخلق)

قال العلامة قسطلانی رحمه الله: و الجواب ان الارضین السبع فی ضرب المثال کقطب رحٰی و العرش العظیم ذاته بمثابة الرحٰی فاینما سجدت الشمس سجدت تحت العرش........ الخ. (ارشاد الساری شرح صحیح البخاری ج۵، ص۲۵۸، باب صفة الشمس و القمر، کتاب بدء الخلق) و مثله فی عون الباری لحل ادلة البخاری ج۴، ص۱۷، غروب الشمس سجودها تحت العرش.

## د "من تشبّه بقومٍ فهو منهم" حدیث مطلب

**سوال:** جناب مفتي صاحب! له څو ورځو راهیسې مې په ذهن کښې یوه پوښتنه راڅي چه د "من تشبّه بقوم فهُو مِنهُم" له حدیث څخه څرګندیږي چه له کفارو سره مطلق مشابهت اختیارول منع دي. حالانکه نن صبا په ډیرو امورو کښې مسلمانان له کفارو سره مشابهت لري. نو له تاسو څخه هیله کیږي چه د دې حدیث په صحیح مفهوم باندې مونږ پوه کړی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** دا حدیث چه "من تشبّه بِقوم فهُو مِنهُم" له حضور ﷺ څخه ثابت دی مګر په دې کښې له کفارو سره مطلقاً مشابهت ترې مراد نه دی بلکه له دې څخه په هغو امورو کښې مشابهت اختیارول ترې مراد دی چه د هغوی مذهبي او دیني شعار او رسم او رواج وي لکه د زنار او نورو شیانو اغوستل او د اسې نور.

قال العلامة طیبی رحمه اللّٰه: (قوله من تشبّه بقومٍ) هٰذا عام فی الخلق و الخلق و الشعار و اذا کان الشعار اظهر فی التشبیه ذکر فی هٰذا الباب. (شرح طیبی ج۸، ص۲۱۹، کتاب اللباس، الفصل الثانی)

قال العلامة ظفر احمد العثمانی رحمه اللّٰه: په دغو امورو کښې تشبیه کوم چه د کفارو مذهبي شعار یا دیني رسم او قومي رواج دی، لکه زنّار او د اسې نور اغوستل یا د مجوسیانو (اور پرستو) خاص ډول خولۍ. کوم چه د هغو د مذهب شِعار دی په هغو کښې تشبّه حرام بلکه په ځینو صورتونو کښې کفر دی. (امداد الاحکام ج۱، ص۲۸۶، کتاب ما یتعلق با لحدیث و السنة) و مثله فی مرقاة المفاتیح شرح مشکوٰة المصابیح ج۸، ص۲۵۵، کتاب اللباس، الفصل الثانی.

## تطبیق بین الاحادیث

**سوال:** ږیرې ته د خضاب (تور رنګ) د ورکولو په باره کښې لاندیني څو حدیثونه د بنده په علم کښې دي چه له وجهې ئې حتمي فیصله نه شي کولی. مخکښې له دې نه د حرمت وجه دا بیانیده چه چونکه خضاب او وسمه حرامه ده ځکه چه وسمه جرم نیسي او په اودسه کښې خلل پیدا کیږي. اوس په دې نوي دور کښې په نوري نکریزې کښې دا علت نشته نو له دې وجهې د دې استعمال به جائز وي. لیکن په احادیثو کښې ترجیح نه شم ورکولی او تاسو ته رجوع کول ضروري ګڼم. احادیث په لاندې ډول دي:

﴿۱﴾ عن ابی ذرؓ قال قال رسول اللّٰه ﷺ ان احسن ما غیّر به الشیب الحناء و الکتم. (رواه الترمذی و ابو داؤد و النسائی)

﴿۲﴾ عن ابن عباسؓ عن النبی ﷺ قال یکون فی آخر الزمان یخضبون بهٰذا السواد کحواصل الحمام لا یجدون رائحة الجنة. (رواه النسائی و ابو داؤد)

﴿۳﴾ عن ابن عباسؓ قال مر علی النبی ﷺ رجل قد خضب با لحناء فقال ما احسن هٰذا قال فمر آخر قد خضب با لحناء و



الکتم فقال ﷺ هٰذا احسن من هٰذا ثم مرّ آخر قد خضب با لصفرة فقال هٰذا احسن من هٰذا کله. (رواه ابو داؤد)

﴿٤﴾ عن ابی هریرةؓ قال قال رسول اللّٰه ﷺ غیروا و لا تشبهوا با لیهود. (رواه الترمذی)

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په احادیثو کښې څه تعارض نشته. وجه دا ده چه په احادیثو کښې ممانعت په خالص تور خضاب باندې محمول دی او په کوم حدیث کښې چه اجازه ورکړ شوې ده هغه په غیر خالص تور باندې محمول دی. هذا ما یفهم من معتبرات الفقه.

## د ثـــلاث مهلکات تحقیق او تشریح

**سوال:** جناب مفتي صاحب! د لاندې ذکر شوي حدیث د الفاظو او صحت تشریح وکړی او پوره ئې هم کړی. حدیث شریف دا دی: "ثلاث مهلکات" اوله حصه مې یاده نه ده او دوهمه او دریمه حصه ئې غالباً دا ده چه "هواءٌ متبع و اعجاب المرء بنفسهٖ" ډیره مهرباني به مو وي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** مکمل حدیث دا دی: عن ابی هریرةؓ ان رسول اللّٰه ﷺ قال ثلثٌ منجیاتٌ و ثلثٌ مهلکاتٌ فام المنجیات فتقوی اللّٰه فی السر و العلانیة و القول با لحق فی الرضاء و السخط، و القصد فی الغنی و الفقر. و اما المهلکات فهوی متبع و شح مطاع و اعجاب المرأ بنفسه و هو اشدّهن. (بیهقی بحواله مشکوٰة ج۲، ص باب الغضب و الکبر)

او لنډه تشریح ئې په لاندې ډول ده:

## منجیـــات

﴿۱﴾ **خوف:** له نبوي ارشاد څخه دا مقصد را ووځي چه په دنیا او آخرت کښې له هلاکت څخه د بچ کیدو او نجات د پیدا کیدو لپاره ضروري ده چه په مسلمانانو کښې درې صفتونه موجود وي او دغه درې صفتونه چه په کوم مسلمان کښې هم وي نو هغه به له هلاکت څخه مامون او محفوظ (په امن او حفاظت) کښې او له کامیابي سره به هم څنګه وي.

اول صفت دا دی چه په اعلانیه او تخلیه دواړو حالتونو کښې له الله تعالی څخه ویریږي او دا خبره ښکاره ده چه د چا په زړه کښې د خدای ویره په دومره اندازې سره وي چه په ښکاره او پټ دواړو حالتونو کښې له الله تعالی څخه یو شان ویریږي نو هغه به یقینا د دین او دنیا دواړو هلاکتونو څخه په امن وي او ځکه به په امن وي چه له هغه څخه به نه د الله تعالی حقوق او نه د بندګانو حقوق تلف شوي وي او په دواړو حالتونو کښې به د الله تعالی د حدودو پابندوي. او په دنیاوي ژوند کښې به هم په دې بناء کامیابه وي چه له د اسې خلکو سره الله تعالی په دنیا کښې د ښه ژوند او په آخرت کښې د جنت وعده فرمایلې ده. وَ اَمَّا مَنْ خَافَ مَقَامَ رَبِّهٖ وَ نَهَی النَّفْسَ عَنِ الْهَوٰی فَاِنَّ الْجَنَّةَ هِیَ الْمَاْوٰی (الآیة) "یعنې کوم خلك چه صبا ته د قیامت په ورځ د الله تعالی په وړاندې له دریدلو څخه ویریږي او د نفس د خواهشاتو ناجائزه پیروي نه کوي نو د هغه استوګن ځای جنت

د "من تشبه بقوم فهو منهم"

**سوال:** جناب مفتي صاحب! له څو ورځو راهيسې مې په ذهن كښې يوه پوښتنه راځي چه د "من تشبه بقوم فهو مِنهم" له حديث څخه څرګنديږي چه له كفارو سره مطلق مشابهت اختيارول منع دي۔ حالانكه نن صبا په ډيرو امورو كښې مسلمانان له كفارو سره مشابهت لري، نو له تاسو څخه هيله كيږي چه د دې حديث په صحيح مفهوم باندې مونږ پوه كړې؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** دا حديث چه "من تشبه بقوم فهو مِنهم" له حضور ﷺ څخه ثابت دى مګر په دې كښې له كفارو سره مطلقاً مشابهت ترې مراد نه دى بلكه له دې څخه په هغو امورو كښې مشابهت اختيارول ترې مراد دى چه د هغوى مذهبي او ديني شعار او رسم او رواج وي لكه د زنار او نورو شيانو اغوستل او د اسې نور۔

قال العلامة طيبى رحمه الله: (قوله من تشبّه بقوم) هٰذا عام فى الخلق و الخلق و الشّعار و اذا كان الشّعار اظهر فى التشبيه ذكر فى هٰذا الباب. (شرح طيبى ج٨، ص ٢١٩، كتاب اللباس، الفصل الثانى)

قال العلامة ظفر احمد العثمانى رحمه الله: په دغو امورو كښې تشبيه كوم چه د كفارو مذهبي شعار يا ديني رسم او قومي رواج دى، لكه زنّار او د اسې نور اغوستل يا د مجوسيانو (اور پرستو) خاص ډول خولۍ۔ كوم چه د هغو د مذهب شِعار دى په هغو كښې تشبّه حرام بلكه په ځينو صورتونو كښې كفر دى۔ (امداد الاحكام ج١، ص٢٨٦، كتاب ما يتعلق با لحديث و السنة) و مثله فى مرقاة المفاتيح شرح مشكوٰة المصابيح ج٨، ص ٢٥٥، كتاب اللباس، الفصل الثانى.

## تطبيق بين الاحاديث

**سوال:** ډيرې نه د خضاب (تور رنګ) د وركولو په باره كښې لانديني څو حديثونه د بنده په علم كښې دي چه له وجهې ئې حتمي فيصله نه شي كولى۔ مخكښې له دې نه د حرمت وجه دا بيانيده چه چونكه خضاب او وسمه حرامه ده ځكه چه وسمه جرم نيسي او په اودا سه كښې خلل پيدا كيږي۔ اوس په دې نوي دور كښې په نوري نكريزې كښې دا علت نشته نو له دې وجهې د دې استعمال به جائز وي۔ ليكن په احاديثو كښې ترجيح نه شم وركولى او تاسو نه رجوع كول ضروري ګڼم۔ احاديث په لاندې ډول دي:

﴿١﴾ عن ابى ذرؓ قال قال رسول الله ﷺ ان احسن ما غيّر به الشّيب الحناء و الكتم. (رواه الترمذى و ابو داؤد و النسائى)

﴿٢﴾ عن ابن عباسؓ عن النبى ﷺ قال يكون فى آخر الزمان يخضبون بهٰذا السواد كحواصل الحمام لا يجدون رائحة الجنة. (رواه النسائى و ابو داؤد)

﴿٣﴾ عن ابن عباسؓ قال مر على النبى ﷺ رجل قد خضب با لحناء فقال ما احسن هٰذا قال فمر آخر قد خضب با لحناء و

الكتم فقال ﷺ هٰذا احسن من هٰذا ثم مرّ آخر قد خضب با لصفرة فقال هٰذا احسن من هٰذا كله. (رواه ابو داؤد)

﴿٤﴾ عن ابى هريرةؓ قال قال رسول الله ﷺ غيروا و لا تشبهوا با ليهود. (رواه الترمذى)

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په احاديثو كښې څه تعارض نشته۔ وجه دا ده چه په احاديثو كښې ممانعت په خالص تور خضاب باندې محمول دى او په كوم حديث كښې چه اجازه وركړ شوې ده هغه په غير خالص تور باندې محمول دى۔ هذا ما يفهم من معتبرات الفقه.

## د ثلاث مهلكات تحقيق او تشريح

**سوال:** جناب مفتي صاحب! د لاندې ذكر شوي حديث د الفاظو او صحت تشريح وكړى او پوره ئې هم كړى۔ حديث شريف دا دى: "ثلاث مهلكات" اوله حصه مې ياده نه ده او دوهمه او دريمه حصه ئې غالباً دا ده چه "هواءٌ متبع و اعجاب المرء بنفسه" ډيره مهرباني به مو وي؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** مكمل حديث دا دى: عن ابى هريرةؓ ان رسول الله ﷺ قال ثلثٌ منجيات و ثلثٌ مهلكاتٌ فام المنجيات فتقوى الله فى السر و العلانية و القول با لحق فى الرضاء و السخط، و القصد فى الغنى و الفقر. و اما المهلكات فهوى متبع و شح مطاع و اعجاب المرأ بنفسه و هو اشدّهن. (بيهقى بحواله مشكوٰة ج٢، ص باب الغضب و الكبر)

او لنډه تشريح ئې په لاندې ډول ده:

## منجيـــات

﴿١﴾ **خوف:** له نبوي ارشاد څخه دا مقصد راووځي چه په دنيا او آخرت كښې له هلاكت څخه د بچ كيدو او نجات د پيدا كيدو لپاره ضروري ده چه په مسلمانانو كښې درې صفتونه موجود وي او دغه درې صفتونه چه په كوم مسلمان كښې هم وي نو هغه به له هلاكت څخه مامون او محفوظ (په امن او حفاظت) كښې او له كاميابي سره به هم څنګه وي۔

اول صفت دا دى چه په اعلانيه او تخليه دواړو حالتونو كښې له الله تعالى څخه ويريږي او دا خبره ښكاره ده چه د چا په زړه كښې د خداى ويره په دومره اندازې سره وي چه په ښكاره او پټ دواړو حالتونو كښې له الله تعالى څخه يو شان ويريږي نو هغه به يقيناً د دين او دنيا دواړو هلاكتونو څخه په امن وي او ځكه به په امن وي چه له هغه څخه به نه د الله تعالى حقوق او نه د بندګانو حقوق تلف شوي وي او په دواړو حالتونو كښې به د الله تعالى د حدودو پابندوي۔ او په دنياوي ژوند كښې به هم په دې بناء كاميابه وي چه له د اسې خلكو سره الله تعالى په دنيا كښې د ښه ژوند او په آخرت كښې د جنت وعده فرمايلې ده۔ وَ اَمَّا مَنْ خَافَ مَقَامَ رَبِّهٖ وَ نَهَى النَّفْسَ عَنِ الْهَوٰى فَاِنَّ الْجَنَّةَ هِىَ الْمَاْوٰى (الآية) "يعنې كوم خلك چه صبا ته د قيامت په ورځ د الله تعالى په وړاندې له دريدلو څخه ويريږي او د نفس د خواهشاتو ناجائزه پيروي نه كوي نو د هغه استوګن ځاى جنت

دی" او په دنیا کښې د ښه ژوندون وعده له دې آيت کريمه څخه څرګندېږي چه "مَنْ عَمِلَ صَالِحاً مِّنْ ذَكَرٍ اَوْ اُنْثٰى وَ هُوَ مُؤْمِنٌ فَلَنُحْيِيَنَّهٗ حَيٰوةً طَيِّبَةً (الآية) "يعنې کوم خلك چه د خدای د وېرې له وجهې د نيك عمل پابند وي که ښځه وي او که سړی هغو ته مونږ په دنيا کښې ښه ژوند ورکوو.

﴿۲﴾ **قول با لحق:** دوهم صفت کوم چه د نجات دارومدار پورې تړلی دی دا دی چه مسلمان بايد په هر حالت کښې قو با لحق يعنې حقې خبرې به کوي. اګر که له وجهې ئې څوك خوشحاله کيده او که خفه کيده، دوست ته وي او که دښمن ته. له نبوي ارشاد څخه دا مطلب څرګندېږي چه د عدل او انصاف اصول په يوه حالت کښې هم مه پرېږدی او له حقې خبرې څخه د يوه وينښته غوندې انحراف و نه کړی. بلکه حق ويل هر وخت خپل شعار جوړ کړی اګر که له دښمانو سره مو مقابله هم راشي. دا هم يو داسې بهترين صفت او انساني کمال دی چه نه يوائې دا چه د مؤمن او مسلم لپاره په دنيا او آخرت کښې د نجات ذريعه ګرځي او نه يوائې د کاميابۍ چابي ده بلکه پرته د مذهب، قوم او نسل له امتيازه چه په کوم سړي او يا قوم کښې دا صفت موجود وي نو هغه به د بين المللي صفت او عزت مستحق او د عوامو او خواصو، دوست او دښمن د ټولو په زړونو کښې به محبوب وي. او همدا وجه ده چه قرآنکريم خپلو منونکو ته په عدل او انصاف باندې د قائم کيدو تاکيد او حکم کړی دی او له دې څخه ئې په هيڅ وخت کښې د وروسته پاتې کيدو اجازه نه ده ورکړې. يٰاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا كُوْنُوْا قَوّٰامِيْنَ لِلّٰهِ شُهَدَآءَ بِالْقِسْطِ (الآية) "يعنې ای د ايمان خاوندانو د خدای په خاطر د حق ګواهان جوړ شی او په عدل او انصاف باندې قائم اوسی" وَلَا يَجْرِمَنَّكُمْ شَنَاٰنُ قَوْمٍ عَلٰى اَنْ لَّا تَعْدِلُوْا (الآية) "يعنې له يوه قوم سره بغض او عناد دې تاسو لره په ظلم او بې انصافي اماده نه کړي" وَ كُوْنُوْا مَعَ الصّٰدِقِيْنَ (الآية) "يعنې تاسو ته حکم دی چه له رېښتوني خلکو سره شی"

﴿۳﴾ **اعتدال:** دريم صفت چه په هغه باندې د انسان د نجات دارومدار دی اعتدال دی. له ارشاد نبوي څخه دا مقصد ذهن ته راځي چه انسان په هر حالت کښې که د دولت مندي حالت وي او که د فقر او غريبي حالت وي د اعتدال لحاظ دې وکړي. نه دې بې ځايه اسراف او فضول خرچي وکړي او نه دې بخل او کنجوسي خپل شعار جوړ کړي چه بالکل مصرف هم نه کوي. د اعتدال په اختيارولو سره ئې يوې خوا ته اقتصادي حالت ښه وي او په معاشي ژوند کښې به له مشکلاتو سره نه مخامخ کيږي. نو د دې لپاره ويل شوي دي چه "ما افتقر من اقتصد" د اعتدال خاوند سړی به هيڅ کله په فقر او فاقې کښې نه مبتلا کيږي. او بلې خوا ته له هغې مهلکې بيمارۍ څخه به محفوظ پاتې کيږي کومه چه د "شحّ" په نامه سره نومول شوې ده او د مهلکاتو په لړۍ کښې راځي.

همدا هغه صفت دی چه قرآنکريم د نيکو بندګانو علامه بللې ده. د الله تعالی ارشاد دی چه: "وَ الَّذِيْنَ اِذَآ اَنْفَقُوْا لَمْ يُسْرِفُوْا وَ لَمْ يَقْتُرُوْا وَ كَانَ بَيْنَ ذٰلِكَ قَوَاماً" "يعنې د الله تعالی نيك بنګان هغه دي چه



کله مصرف کوي نو نه اسراف کوي او نه له مطلوب مقدار څخه کمی کوي"

دا د منجياتو لنډه تشريح وه او اوس د مهلکاتو لنډه غوندې تشريح کيږي چه په لاندې ډول دي:

## مهلکـــــات

﴿۱﴾ **هوای نفس:** انسان لره په دنيوي او اخروي په دواړه قسمه هلاکتونو کښې اچوونکي صفتونه هم درې دي. که چېرته انسان ځان ترې محفوظ نه کړي نو خطره ده چه له يو نه يو هلاکت کښې به مبتلا کيږي. اول صفت د نفس د خواهشاتو ناجائزه پيروي او د خواهشاتو اتباع ده چه په حديث شريف کښې د هویٰ متبع په نامه سره ياده شوې ده. هوائ نفس داسې مهلك او خطرناك مرض دی چه کله يو وارې انسان پکښې مبتلا شي نو صحت ئې په خطر کښې ولوېږي او د الٰهي هدايت ټولې دروازې پرې تړل کيږي او د ګمراهۍ ټولې دروازې پرې خلاصيږي. بالآخره انسان د هلاکت په يوې کندې کښې غورزيږي. په دنيا کښې د ګمراهۍ ښکار کيږي او په آخرت کښې له جهنم پرته بل د امن ځای ورته نه پيدا کيږي. دا لاندې آيتونه په غور سره مطالعه کړی:

﴿۱﴾ اَفَرَاَيْتَ مَنِ اتَّخَذَ اِلٰهَهٗ هَوٰهُ وَ اَضَلَّهُ اللّٰهُ عَلٰى عِلْمٍ وَّ خَتَمَ عَلٰى سَمْعِهٖ وَ قَلْبِهٖ وَ جَعَلَ عَلٰى بَصَرِهٖ غِشٰوَةً فَمَنْ يَّهْدِيْهِ مِنْ بَعْدِ اللّٰهِ اَفَلَا تَذَكَّرُوْنَ ☆

"آيا تاسو ښودلی شی چه کومو خلکو د نفس خواهش خپل خدای او معبود جوړ کړی وي چه له هغه پسې روان وي او الله تعالی ئې په زړونو او غوږونو باندې مهر لګولی وي او په سترګو باندې ئې پرده اچولې وي او له علم سره سره ئې ګمراهان کړي دي. نو له خدای څخه پرته بل څوك شته چه هغو ته حقه لاره وښايي؟ تاسو په دې باندې غور ولې نه کوی؟"

﴿۲﴾ فَاَمَّا مَنْ طَغٰى وَ اٰثَرَ الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا فَاِنَّ الْجَحِيْمَ هِيَ الْمَاْوٰى.

"کوم خلك چه د الله تعالی له حکم څخه باغي شي او د بغاوت طريقه غوره کړي او دنيوي ژوند ته په اخروي ژوند باندې ترجيح ورکړي نو هغې دنيا ته په تللو سره جهنم ته تلونکي دي".

﴿۲﴾ **شحّ مطاع:** د انسان لپاره دوهم مهلك او تباه کُن صفت د حرص او بخل اطاعت دی. دا عادت هم داسې بد عادت دی چه کله په انساني نفس کښې راسخ شي او انسان خپل محکوم او تابع جوړ کړي نو بيا له سخت جهاد پرته خلاصون ترې ممکن هم نه دی. او د دې عادت تابع او محکوم انسان په ټول ژوند کښې په لازمي توګه سره حقوق الله او حقوق العباد دواړه ډير په بد حالت سره پامال او تر پښو لاندې کوي چه انجام ئې د هغه په حق کښې له هلاکت او تباهۍ پرته بل هيڅ نه وي. نو د دې لپاره قرآنکريم په واضحو الفاظو سره دا اعلان کړی دی چه "وَ مَنْ يُّوْقَ شُحَّ نَفْسِهٖ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ" "يعنې هغه خلك به کاميابه وي چه د بخل او حرص له اطاعت څخه محفوظ وي"

او کوم خلك چه د حرص او بخل په مرض کښې مبتلا وي هغو ته قرآنکريم دا خبرداری ورکړی

دی چه که چېرته دلته د امتحان په څو ورځني ژوند کښې د دې ازاله و نه شي نو په آخرت کښې به له سخت هلاکت او تباهۍ کښې مبتلا وي. د الله تعالى ارشاد دی:

وَلَا يَحْسَبَنَّ الَّذِيْنَ يَبْخَلُوْنَ بِمَا اٰتٰهُمُ اللّٰهُ مِنْ فَضْلِهٖ هُوَ خَيْرًا لَّهُمْ بَلْ هُوَ شَرٌّ لَّهُمْ سَيُطَوَّقُوْنَ مَا بَخِلُوْا بِهٖ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ.

"يعني کوم خلك چه د خدای پاك په ورکړ شوي نعمت باندې بخل کوي نو هغوی دې دا ګمان نه کوي چه دا بخل به د دوی لپاره ګټور ثابتيږي بلکه دا به د دوی لپاره انتهايي مضر او تاواني وي. د قيامت په ورځ له هغه مال څخه چه بخل پرې شوی وي ښامار جوړيږي او د دوی په غاړو کښې به د غاړکۍ په توګه اچول کيږي".

د بخل او حرص ترمنځ تلازم موجود دی چه کوم يو په انسان کښې وي نو هغه بل به خامخا پکښې وي او کوم انجام چه د يوه دی د هغه بل هم هغه انجام دی".

﴿۳﴾ **اعجاب نفس:** دريم صفت کوم چه يو اځې د انسان لپاره مهلك نه بلکه د مهلکاتو په قطار کښې د صدر مقام لري. اعجاب د خود بينۍ او تکبر صفت دی. خود بيني او تکبر د ټولو مهلکاتو څخه ځکه لوی مهلك دی چه دا صفت په کوم انسان کښې وي نو په هغه انسان کښې د الله تعالى بندګي ورکيږي. او هغه انسان د الٰهي اطاعت لپاره نه تياريږي بلکه قرار قرار دا صفت انسان ته پخپله د ربوبيت او الوهيت خوبونه ور ويني. او يو وخت داسې راځي چه بيا انسان د خدايي دعوه کوي. فرعون له همدې وجهې د "اَنَا رَبُّكُمُ الْاَعْلٰى" نعره لګولې وه او نمرود هم له همدې وجهې د ابراهيم عليه السلام په مقابله کښې د "اَنَا اُحيٖ وَاُمِيْتُ" دعوه کړې وه او ابو جهل هم له همدې وجهې د حضور ﷺ متابعت ته نه تياريده. او د حُنين په غزا کښې د اعجاب له وجهې مسلمانانو اوله ماته وخوړه. وَيَوْمَ حُنَيْنٍ اِذْ اَعْجَبَتْكُمْ كَثْرَتُكُمْ فَلَمْ تُغْنِ عَنْكُمْ كَثْرَتُكُمْ شَيْئًا وَّ ضَاقَتْ عَلَيْكُمُ الْاَرْضُ بِمَا رَحُبَتْ ثُمَّ وَلَّيْتُمْ مُّدْبِرِيْنَ☆

تکبر هغه صفت دی چه ډېر زر له انسان څخه خپل حقيقت هيروي او ورو ورو ئې د خدايي د دعوې لپاره تياروي.

زما په ناقص علم کښې په دې وخت کښې چه د حديث کوم تشريح وو درته وړاندې شو. د پوره تشريح لپاره نور وخت هم په کار دی. په هر حال د حديث په باره کښې دا ويل کيدلی شي چه دا هم د حضور ﷺ له هغو ارشاداتو څخه دی چه د جوامع الکلم په نامه سره ياديږي.

6

# كتاب السلوك

جلد دوم

قال الله تعالیٰ

# ثم جعلنك على شريعة من الامر فاتبعها

جلددوم



# كـــــتاب السلوك

## (د تصوف احكام او مسئلې)

## د شريعت او طـــــريقت حقيقت

**سوال:** آيا شريعت او طريقت دواړه سره يو دي او كه بيل بيل شيان دي؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** شريعت د تكليفه احكامو مجموعي نوم دی كه ظاهري اعمال وي اوكه باطني احكام وي۔ د دې لپاره د متقدمينو علماوو په اصطلاح كښې فقهې ته د امرِ مجموع مترادف ويل شوي دي۔ چنانچه له امام ابو حنيفه رحمه الله څخه د فقه دا تعريف منقول دی:

"هو معرفة النفس ما لها و ما عليها" (توضيح و تلويح ص٢٨، بحث تعريف فقه)

البته متاخرينو علماوو په دې كښې لږ غوندې بدلون كړی دی يعنې ظاهري اعمال ئې د شريعت او باطني اعمال ئې د طريقت په نومونو نومولي دي۔ ليكن په حقيقت كښې دواړه يو شی دي ځكه چه كوم سړی چه طريقت له شريعت څخه بيل ګڼي هغه په ګمراهۍ كښې مبتلا دی۔

لما قال مجدد الف ثاني رحمه الله: ظاهر را بظاهر شريعت و باطن را بباطن شريعت كه عبادت از حقيقت است متجلی و متزين دارند چه حقيقت و طريقت عبارت از حقيقت شريعت است، و طريقت آن حقيقت نه آنكه شريعت امری ديگر است و طريقت و حقيقت ديگر كه الحاد و زندقه است. (مكتوبات دفتر اول مكتوب ٥٧، ج١، ص٧٣)

قال الشاه غلام علیؒ: در بيان آنكه كمالات الٰهيه در هر خاندان برنك ديگر ظهرو نموده اند ليكن معيار آنها شريعت است. (مكتوبات شاه غلام على ص٩٣، مكتوب هفتاد و پنجم) و مثله فی المرقات شرح مشكٰوة ج١، ص٥٢٦، كتاب العلم، الفصل الثالث.

## د بيعت حقيقت

**سوال:** ځينې خلك بيعت يوازې تر جهاده پورې مخصوص ګڼي او وايي چه د پيري او مريدي په نامه سره كوم بيعت چه مروج دی هيڅ حقيقت ئې نشته بلكه دا يو خود ساخته رسم دی آيا په رښتيا هم دا خبره صحيح ده اوكه څنګه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د احسان مرتبه او د نفس تزكيه په هر مسلمان باندې لازم دی۔ په دې زمانې كښې د احسان مرتبه او د نفس تزكيه په تصوف سره حاصليږي او په دې خبرې باندې اكثره مشائخ متفق دي او د احسان د مرتبې په اړه حضور ﷺ فرمايلي دي چه "الا حسان ان تعبد الله كانك تراه فان لم تكن تراه فانه يراك" او مسنونه بيعت د حضور ﷺ له صحابهٔ كرامو رضی الله عنهم څخه ثابت دی۔

لما قال خطيب ولی الدين التبريزیؒ: الاحسان ان تعبد الله كانك تراه فان لم تكن تراه فانهٗ يراك. (مشكٰوة المصابيح

ص ۱۱، کتاب الایمان، الفصل الاول)

و قال الشاه ولی الله محدث الدهلویؒ: و استفاض عن رسول اللهﷺ ان الناس کانوا یبایعونه تارةً علی الهجرة و الجهاد و تارةً علی اقامة ارکان الاسلام الخ. (شفاء العلیل ترجمه القول الجمیل ص ۱۵، الفصل الاول)

قال العلامة فقیر الله الحنفیؒ: و هی سنة لیست بواجبة لان الناس بایعوا النبیﷺ و تقربوا بها الی الله تعالٰی و ما وجدنا الدلیل علی تاثم تارکها و لم ینکر احد من الائمة المهدیین من الصحابة و التابعین علٰی تارکها فکان الاجماع السکوتی علی انها لیست بواجبة آه. (قطب الارشاد ص ۵۴۳، بحث تکرار البیعة ماثورة)

## د شریعت د پابند سړي لپاره د بیعت حکم

**سوال:** آیا د کوم کامل مرشد څخه بیعت سنت دی او که واجب؟ په دې باره کښې زمونږ لاربښوونه وکړئ؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته د شریعت پابند مرشد وجود ولري نو د باطني صفايي لپاره له هغه څخه بیعت کول نه یواځې جائز بلکه مستحب او سنت دی ځکه چه د خپل اصلاح فکر ضروري دی۔

کما قال الشاه ولی الله الدهلویؒ: فاعلم ان البیعة سنة و لیس بواجبة. (شفاء العلیل ترجمه القول الجمیل ص ۲۱، الفصل الثانی)

قال العلامة فقیر الله الجلال آبادیؒ: و هی سنة لیست بواجبة لان الناس بایعوا النبیﷺ الخ. (قطب الارشاد ص ۵۴۳، بحث تکرار البیعة ماثورة) و مثله فی انوار القدسیة ص ۵.

## د مرشد لپاره د شرائطو تذکره

**سوال:** چا ته په بیعت کوونکي مرشد کښې کوم کوم شرائط ضروري دي او که هر سړی هر چا ته بیعت ورکولی شي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** مرشد چونکه د فیض د حصول ذریعه وي او الله تعالٰی ته په رسیدو کښې مرسته او امداد کوي نو د دې لپاره علماء حق د دې اهم منصب لپاره لاندې شرائط ذکر کړي دي۔

﴿۱﴾ مُرشد باید عالم وي۔

﴿۲﴾ مرشد باید متقي وي۔

﴿۳﴾ په دنیا او آخرت کښې د ژهد رغبت ورکوونکی وي۔

﴿۴﴾ امر بالمعروف او نهی عن المنکر کوونکی وي۔

﴿۵﴾ د مشائخو د صحبت والاوي۔

په کوم سړي کښې چه دا شرائط موجود وي نو له هغه څخه بیعت او یا د هغه چا ته بیعت ورکول جائز دي۔ د دغو شرائطو په نه موجودوالي کښې هیچا ته د بیعت د اخیستلو اجازه نشته۔

لما قال الشاه ولی الله الدهلویؒ: فشرط من یأخذ البیعة امور احدها علم الکتٰب و السنة، و الشرط الثانی العدالة و



التقوٰی، و الشرط الثالث ان یکون زاهداً فی الدنیا راغباً فی الآخرة، والشرط الرابع ان یکون آمراً با لمعروف ناهیا عن المنکر، و الشرط الخامس ان یکون صحبة المشائخ و تأدب بهم دهراً طویلاً و اخذ منهم نور الباطن و السکینة. (شفاء العلیل ترجمة القول الجمیل ص ۲۳ تا ۳۰، الفصل الاوّل، حکمت بیعت)

قال الشاه غلام علی رحمه الله: پیر کسی است که متبع سنت پیغمبر خداﷺ باشد ظاهراً و باطناً و تارك بدعت و بر عقیده بزرگان سلف مانند حضرت غوث الثقلینؒ و شیخ الاسلام گنج شکرؒ مستقیم بود و از علم ضروری فقه بهره داشته باشد الخ. (مکتوبات شاه غلام علیؒ ص ۱۰۹، مکتوب هشتاد و پنجم، رساله اوّل) و مثله فی مرصاد العباد للشیخ نجم الدین کبرٰی ص ۱۵۸.

## د ښځې لپاره د بیعت حکم

**سوال:** آیا په پیري او مریدي کښې د ښځې لپاره بیعت جائز دی او که نه؟ او که چېرته جائز وي نو صورت به ئې څه وي خصوصاً کله چه ښځه غیر محرم وي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** نن صبا له مشائخو څخه چه کوم بیعت کېږي هغه په اصل کښې د توبې بیعت وي لهذا چه په کوم سړي کښې نوموړي تول شرطونه موجود وي او د پردې اهتمام هم موجود وي نو د ښځو لپاره له مرشد څخه بیعت کول مرخص او جائز دي۔

کقوله تعالٰی: يٰاَيُّهَا النَّبِیُّ اِذَا جَاءَكَ الْمُؤْمِنَاتُ يُبَايِعْنَكَ عَلٰى اَنْ لَّا يُشْرِكْنَ بِاللّٰهِ. (سورة الممتحنة، آیت ۱۲)

لیکن دا به د توبې بیعت وي او په دې کښې به د یوه او بل لاسونه نه مسه کېږي ځکه چه رسول اللهﷺ د بیعت په وخت کښې د ښځو لاسونه نه وو مس کړي۔

کما ذکر الامام البخاریؒ: ان عائشة رضی الله عنها زوج النبی اخبرتهٗ انّ رسول اللهﷺ کان یمتحن من هاجر الیه من المؤمنات بهٰذه الآیٰت بقول الله تعالٰی يٰاَيُّهَا النَّبِیُّ اِذَا جَاءَكَ الْمُؤْمِنٰتُ يُبَايِعْنَكَ اِلی قوله غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ـــــ قال عروة قالت عائشةؓ فمن اقر بهٰذا الشرط من المؤمنات قال لها رسول اللهﷺ قد بایعتك کلاماً و لا و الله ما مسّتْ یده ید امرأة قط فی المبایعة. (الجامع الصحیح البخاری ج ۲، ص ۷۲۶، سورة الممتحنة، باب اذا جائکم المؤمنات)

پاتې شوه دا خبره چه حضورﷺ ښځو ته څنګه بیعت ورکاوه نو له ځینو روایتونو څخه څرګندیږي چه حضورﷺ د اوبو په لوښي کښې د ښځو لاسونه ننه ایستل او هغه ئې مس کول۔ لکه څرنګه چه علامه آلوسي په روح المعاني کښې له ابن مردویه څخه نقل کړی دی۔ (روح المعاني ج ۲۸، ص ۸۱، پاره ۲۸، آیت ۱۲، سورت الممتحنه)

لیکن په تصحیح کښې ئې تامل کړی دی۔

د مشائخو او صوفیاء کرامو په نزد ښځو ته د بیعت ورکولو مختلفې طریقې نقل شوي دي۔ ځینې مشائخ په اوبو کښې د لاسونو په ننه کولو سره له ښځو څخه بیعت اخیست لکه څرنګه چه شاه کلیم الله جان آبادي خلیفه خاص شیخ نظام الدین اورنګ آبادي په "نظام القلوب ص ۵" کښې ذکر کړی دی۔ لیکن په دې خبرې باندې تول مشائخ صوفیاء کرام متفق دي چه که چېرته یوه نامحرمه ښځه بیعت وغواړي نو په پرده کښې به کښیني او بیعت به اخلي۔

کما قال مجدد الف ثانیؒ: نوشته بودند بعضی عورت طلب مشغولی می نمایند اگر محارم اند چه مانع است و الا در پرده بنشیند و طریقه را اخذ نمایند. (مکتوبات ج۱، ص ۴۸۰، دفتر اول حصه چهارم، مکتوب ۲۵۶)

قال محمد عبد اللّٰه الحانی الخالدی النقشبندیؒ: و قال رضی اللّٰه عنه مجیباً لمن سأله عن طریق التعلیم للنساء ان کانت المرأة محرمة فای مانع و الا فتجلس وراء الحجاب و تاخذ الطریقة. (البهجة السنیة فی آداب الطریقة النقشبندیة ص ۴۰، فصل فی بیان ما یتعلق با لاخذ و الشروع فی سلوك الطریقة العلمیة)

## له بـــــدعتي پير څخه د بيعت د اخيستلو حکم

**سوال:** آيا د بدعتي او ناقص پير څخه بيعت اخيستل جائز دي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** پير او شيخ چونکه د وصول الی اللّٰه ذريعه وي نو د دې لپاره د هغه په انتخاب کښې ډير احتياط په کار دی۔ د بدعتي او ناقص پير بيعت خپل ځان تباهي ته اچول دي۔ نو د دې لپاره له بدعتي پير څخه بيعت اخيستل صحيح نه دي ځکه چه د ارشاد له شرائطو څخه يو دا هم دی چه د شيخ عمل او عقيده بايد صحيح وي که چېرته عمل او عقيده ئې د حضور ﷺ د طريقې او سنتو مطابق نه وي نو هغه سړی شيخ او پير نه شي جوړيدلی۔

کما قال مجدد الف ثانيؒ: و قوی ترین اسباب فتور در طلب انابت است شیخ ناقص که بسلوك و جذبه کار را تمام ناکرده بمسند شیخی خود را کشیده طالب را صحبت او سمِ قاتل است و انابتِ او مرض مهلك. (مکتوبات مجدد الف ثانی ج۱، ص ۱۴۴، مکتوب ۶۱)

قال شاه ولی اللّٰه محدث الدهلوی رحمه اللّٰه: و الشرط الثانی العدالة و التقوٰی فیجب ان یکون مجتنباً عن الکبائر غیر مصر علی الصغائر. (شفاء العلیل ترجمة القول الجمیل ص۲۸، الفصل الثانی، شرط دوم مرشد) و مثله فی مرصاد العباد ص۱۵۸.

## د بيعت د مـــــاتولو حکم

**سوال:** ما له يوه پير څخه بيعت اخيستی وو او اوس په هغه کښې د شريعت او سنتو ځينو نقائص پيدا شوي دي نو آيا زه د ا بيعت ماتولی شم او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د شيخ او مرشد په انتخاب کښې له احتياط څخه کار اخيستل په کار دي او له غير متبع سنت سړي څخه بيعت اخيستل نه دي په کار۔ کوم سړی چه په شريعت باندې عمل نه کوي هغه ناقص دی او د هغه د بيعت په ماتولو کښې هيڅ قباحت نشته۔

کما قال مجدد الف ثانيؒ: و قوی ترین اسباب فتور در طلب انابت است شیخ ناقص که بسلوك و جذبه کار را تمام ناکرده بمسند شیخی خود را کشیده طالب را صحبت او سمِ قاتل است و انابتِ او مرض مهلك. (مکتوبات مجدد الف ثانی ج۱، ص ۱۴۴، مکتوب ۶۱)

قال شاه ولی اللّٰه محدث الدهلوی رحمه اللّٰه: و الشرط الثانی العدالة و التقوٰی فیجب ان یکون مجتنباً عن الکبائر غیر مصر علی الصغائر. (شفاء العلیل ترجمة القول الجمیل ص۲۸، الفصل الثانی، شرط دوم مرشد) و مثله فی مرصاد العباد ص۱۵۸.



## د فائدې د نه حصول په صورت کښې د بيعت د ماتولو حکم

**سوال:** له يوه مرشد څخه د بيعت له اخيستلو وروسته چه فائده ترې نه حاصليږي نو له د اسې پير څخه د بيعت ماتول څنګه دي؟ او که چېرته ئې ګټه هم رسيده نو بيا ئې ماتول څرنګه دي؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له يوه مرشد څخه د بيعت له کولو وروسته که چېرته څه فيض له هغه څخه نه حاصليده نو بيا له کوم بل تابع د سنت پير څخه د بيعت تجديد جائز دی۔ او که چېرته فائده ترې حاصليدله نو ماتول ئې صحيح نه دي۔ په د اسې سړي کښې بې برکتي پيدا کيږي او د اسې سړی د مشائخو له فيض څخه محروم کيږي۔

کما قال شاه ولی اللّٰه محدث الدهلویؒ: فاعلم ان تکرار البیعة من رسول اللّٰه ﷺ ماثور و کذٰلك عن الصوفیة اما من شخصین فان کان بظهور خلل فی من بایعه فلا بأس و کذٰلك بعد موته او غیبته المنقطعة و اما بلا عذر فانه یشبه المتلاعب و یذهب البرکة و یصرف الشیوخ عن تعهده. (شفاء العلیل ترجمة القول الجمیل ص۳۵، حکمت تکرار بیعت)

قال شاه غلام علیؒ: قال العلامة فقیر اللّٰه اما من الشخصین فان کان بظهور الخلل فیمن تبعه فلا بأس. (قطب الارشاد ص۵۴۲، بحث تکرار البیعة ماثور)

## د بــــدعتي پير د بيعت ماتولو حکم

**سوال:** ما له يوه پير څخه بيعت کړی وو او وروسته ښکاره شوه چه د مشرکانه او بدعتانه عقائدو خاوند دی نو آيا د د اسې پير د بيعت ماتول زما لپاره جائز دي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د يوه مسلمان لپاره عقيده يو بنيادي حيثيت لري۔ کوم سړی چه مشرکانه او مبتدعانه عقائد ولري هغه ناقص وي او له ناقص شيخ څخه بيعت اخيستل حرام دي۔ د دې لپاره د دې ډول عقيده لرونکي سړي د بيعت په ماتولو کښې هيڅ قباحت نشته بلکه د بيعت ماتول ئې ضروري دي۔

لما قال مجدد الف ثانيؒ: و قوی ترین اسباب فتور در طلب انابت است شیخ ناقص که بسلوك و جذبه کار را تمام ناکرده بمسند شیخی خود را کشیده طالب را صحبت او سمِ قاتل است و انابتِ او مرض مهلك. (مکتوبات مجدد الف ثانی ج۱، ص ۱۴۴، مکتوب ۶۱)

قال شاه ولی اللّٰه الدهلوی رحمه اللّٰه: و الشرط الثانی العدالة و التقوٰی. (شفاء العلیل ترجمة القول الجمیل ص۲۸، دوهم فصل، د مُرشد دویم شرط) و مثله فی مرصاد العباد ص۱۵۸.

## د مــــرشد له وفات نه وروسته د بل مرشد د بيعت حکم

**سوال:** که چېرته د چا مرشد وفات شي نو آيا له کوم د شريعت تابع مرشد څخه بيعت کولی شي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د مرشد له وفات څخه وروسته له کوم بل د شريعت تابع مرشد څخه

بیعت یو اځې د ا نه چه صحیح دی بلکه ضروري دی۔ تر څو چه د وصول الی الله مرتبه ورته حاصله شي۔

لما قال شاه ولی اللهؒ: و كذٰلك بعد موته و غيبته المنقطعة. (شفاء العليل ترجمة القول الجميل ص۳۵، حکمت تکرار بیعت)

قال العلامة شاه الشكارپوریؒ: و كذٰلك بعد موته و الغيبة المنقطعة. (قطب الارشاد ص۵۴۳، تکرار البیعة ماثور) و مثله فی مکتوبات مجدد الف ثانی ج۲، ص۱۷۵، مکتوب۶۳)

## د حدادي ذکر طریقه او حقیقت

**سوال:** جناب مفتي صاحب! د صوفیه وو په نزد د حدادي ذکر یوه اصطلاح مشهوره ده۔ د دې ذکر شرعي حقیقت څه دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** حدادي ذکر له اسلافو څخه منقول دی کوم چه په دوو زنګنونو باندې کښیني او د لا اٰله کلمه له زړه څخه ادا کوي او دواړه لاسونه د آسمان خوا ته پورته کوي او د الا الله لفظ له آسمان څخه په تصور کښې اخلي او په دواړه لاسونو باندې ئې په زړه باندې ضرب کوي ۔ د ذکر دا طریقه د حدادي په نامه سره نومول شوې ده۔

کما قال الولی الکامل شیخ نظام الدینؒ: طریق ذکر حدادی دو زانو بنشیند چنانچه هر دو سرین بر زمین باشد و کلمه لا اِله را از دل کشیده هر دو دست دراز کرده بطرف آسمان برو لفظ الاَّ اللّٰه از آسمان گرفته هر دو دست بسته بر دل سخت ضرب کنند فائدهٔ بسیار و تاثیر بے شمار است. (نظام القلوب ص۲۳)

## د معکوس صلٰوة حکم

**سوال:** د معکوس صلٰوة ادا کول شرعا څنګه دي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** معکوس صلٰوة په اصل کښې یوه مجاهده وي او په مجاهده کښې نقل ضروري نه دی اګر که د چشتیې په مشائخو کښې د دې ذکر راغلی دی لیکن د نورو ادله وو څخه ثابت نه دی۔ لیکن بیا هم دې ته مجازاً صلٰوة ویل کیږي۔

لما قال شاه ولی الله رحمه الله: و للچشتیه صلٰوة تسمّٰی صلٰوة المعکوس لم نجد من السنة و لا اقوال الفقهاء ما نشد ها به فلذٰلك حذفناها و العلم عند اللّٰه. (شفاء العلیل ترجمة القول الجمیل ص۸۶، صلٰوة المعکوس)

## په ذکر کښې په زړه باندې ضربونه لګول

**سوال:** ځینې صوفیاء کرام د ذکر په وخت کښې په زړه باندې ضرب لګوي۔ آیا د ذکر کولو په وخت کښې د اسې عمل کول ضروري دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په شرعي اعتبار سره په ذکر کښې ضرب لګول د باطن د تصفیې لپاره او د علاج په توګه لګول کیږي۔ کوم ضروري عمل نه دی۔ لیکن جائز دي ځکه چه راسخینو علماوو یو اځې له ذکر سره پخپلو کتابونو کښې ذکر کړي دي۔

لما قال شاه ولی الله رحمه الله: فمنه اسم الذات اما بضربةٍ واحدةٍ و صفته ان یقول الله با لشد و المد و الجهر بقوة



القلب و الحلق جمیعاً ثم یلبث حتٰی یعود الیه نفسه ثم یفعل هٰكذا و هٰكذا. (شفاء العلیل ترجمة القول الجمیل ص۵۸، څلورم فصل، مشائخ جیلانیة)

قال العلامة شکار پوریؒ: او بضربة بان یقول الله با لشدّ و المد و الجهر بقوة القلب الخ. (قطب الارشاد ص۵۴۹، الطرق الی الله تعالٰی بعدد انفاس المخلوقات) و مثله فی نظام القلوب ص۱۵.

## په ذاکرینو باندې د وجد (جذبې) د راتلو حکم

**سوال:** په ځینو ذاکرینو باندې د ذکر په وخت کښې وجد او جذبه راځي۔ آیا د ذکر د کولو په وخت کښې د جذبې راتلل ثابت دي او که څنګه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په ذاکر باندې د وجد او جذبې راتلل حق دي او ګڼ اسباب لري۔ نو د دې لپاره که چېرته د وجد او جذب په حالت کښې د جومات بې حرمتي او شور و شغف نه وي نو جائز دی لیکن دا د کوم کمال دلیل نه دی بلکه د ضعف دلیل دی۔ بیا هم په ننني زمانې کښې په ذاکرینو باندې د وجد راتلل یو رسم جوړ شوی دی کوم چه د دوی په نزد د کمال دلیل ګڼل کیږي۔ نو له دې وجهې د اسې وجد او جذبې علماوو منع کړي دي۔

کما قال العلامة ابن عابدینؒ: التحقیق القاطع للنزاع فی امر الرقص و السماع یستدعی تفصیلاً ذکره فی العوارف المعارف و احیام العلوم و خلاصة ما اجاب به العلامة التحریر ابن کمال پاشا بقوله.

ما فی التواجد ان حققت من حرج — و لا التمایل ان اخلصت من بأس

فقمت تسعی علی رجل و حق لمن — مولاه ان یسعی علی الرأس

الرخصة فیما ذکر من الاوضاع

(رد المحتار ج۴، ص۲۵۹، کتاب البیوع، باب المرتد)

قال العلامة ـاماد افندی رحمه اللّٰه: و فی التسهیل فی الوجد مراتب و بعضه یسلب الاختیار فلا وجه للانکار بلا تفصیل. (مجمع الانهر فی شرح ملتقی الابحر ج۲، ص۵۵۲، فصل فی المتفرقات) و مثله فی طحطاوی شرح مراقی الفلاح ص۱۷۴، کتاب الکراهیة.

## په ذکر کښې له الله تعالٰی سره د معانقې د کولو حکم

**سوال:** یو سړی وایي چه ما د ذکر په دوران کښې له الله تعالٰی سره معانقه کړې ده۔ آیا د ده دا دعوه صحیح ده او که نه؟ او په دې دعوې سره ئې په ایمان باندې کوم اثر پریوځي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته له دې څخه مراد مراقبه او یا په خوب کښې له الله تعالٰی سره معانقه مراد وي نو جائز دی او که چېرته د ویښې په حالت کښې معانقه ترې مراد وي نو دا ناممکنه ده ځکه چه په دنیا کښې د الله تعالٰی لیدل محال دي۔ له دې وجهې د دې ډول دعوې کولو څخه د ایمان د ضائع کیدو خطره وي۔

لما قال العلامة ملا علی القاریؒ: بعد بحثٍ طویل و الحاصل ان الامة قد اتفقت علی انه تعالیٰ لا یراه احد فی الدنیا بعینه. (شرح فقه الاکبر ص۱۲۳، رؤیة الباری جل شانه فی الدنیا)

قال العلامة ابن عابدین رحمه اللّٰه: ان الامام رضی اللّٰه عنه قال رأیت ربّ العزة فی المنام تسعاً و تسعین مرة. (رد المحتار ج۱، ص۵۱، مطلب یجوز تقلید المعضول مع وجود الافضل)

## د دلائل خیرات د وظیفه کولو حکم

**سوال:** ځیني صوفیاء کرام د دلائل خیرات وظیفه کوي او سالکینو ته هم د دې اجازه ورکوي آیا داسې کول جائز دي او که نه؟ او د دلائل خیرات وظیفه کول څه ګټه لري؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د دلائل خیرات اکثره برخه چونکه په درود شریف باندې مشتمله ده۔ د دې لپاره د وظیفې په ډول سره لوستل ئې جائز دي بلکه د ثواب کار او د رحمتونو د نزول ذریعه د، ځکه چه په حضور ﷺ باندې د درود شریف لوستل د اجر او ثواب باعث دی۔

کما ذکر مسلم بن حجاجؒ: عن ابی هریرةؓ ان رسول اللّٰه ﷺ قال من صلّی علی واحدة ﷺ عشراً. (صحیح مسلم ج۱، ص۱۷۵، باب صلوٰة علی النبی ﷺ بعد التشهد)

قال الخطیب ولی الدین تبریزیؒ: و عن ابی هریرة قال قال رسول اللّٰه ﷺ من صلّی علیّ واحدة صلی اللّٰه علیه عشراً. (مشکوٰة ج۱، ص۳، باب الصلوٰة علی النبی ﷺ و فضلها) و مثلهٗ فی القول البدیع ص۱۰۹.

## په عملیاتو کښې د شیخ د اجازې حکم

**سوال:** آیا د اورادو، وظائفو او عملیاتو لپاره له شیخ څخه اجازه اخیستل ضروري دي او که نه؟ په داسې حال کښې چه ځیني په تعویذ اتو او نورو عملیاتو کښې د شیخ اجازه ضروري بولي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د اورادو او وظائفو په لوستلو کښې د چا د اجازې ضرورت نشته۔ البته که چېرته د شیخ اجازه وي نو فیض او برکات نور هم پکښې زیاتیږي۔

لما قال العلامة السیوطیؒ: الاجازة من الشیخ غیر شرط فی جواز التصدی للاقراء و الافادة فمن علم من نفسه الاهلیة جاز له ذٰلك و ان لم یجزه احد الخ. (الاتقان فی علوم القرآن ج۱، ص۱۳۵، الفصل الثالث فی کیفیة الاخذ بافراد القرأة)

قال العلامة جلال آبادی رحمه اللّٰه: الاجازة من الشیخ غیر شرط فی جواز التصدی للافادة و الاقراء فمن علم من نفسه الاهلیة جاز لهٗ ذٰلك و ان لم یجزهٗ احد الخ. (قطب الارشاد ص۶۴۳، الخاتمة فی ذکر الاجازة) و مثله فی امداد الفتاوٰی ج۵، ص۵۵۳، کتاب السلوك.

## د مشائخو خپلو مریدانو ته د توجه د کولو حکم

**سوال:** د تصوف په سلسله کښې خلك د شیخ له خوا مریدانو ته توجه ضروري بولي او د کمال بنیاد ئې ګڼي۔ نو آیا شرعاً د مشائخو خپلو مریدانو ته توجه کول څنګه دي او طریقه ئې څنګه ده؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د مشائخو خپلو مریدانو ته توجه کول جائز دي کوم چه له ربانیینو علماوو څخه منقول دي او طریقه ئې له خپلو مشائخو څخه زده کړی۔ لکه څرنګه چه ځینو



بزرګانو پخپلو کتابونو کښې ذکر کړي دي۔

لما قال شاه ولی اللّٰه رحمه اللّٰه: اما هٰذه التصرّفات عند کبرآئهم اصحاب الفناء فی اللّٰه و البقاء به فلها شان عظیم و اما عند سائرهم فا لتاثیر فی الطالب یتوجه الشیخ الی نفسه الناطقة و یصادمها با لهمة التامة القویة لم یستغرق فی نسبة با لجمعیة و هٰذا الخ. (شفاء العلیل ترجمة القول الجمیل ص۱۱۲، شپږم فصل، تصرفات نقشبندیة)

قال فقیر اللّٰه جلال آبادیؒ: و التصرفات الموجبة للکمال عند کبراء المشائخ و سائرهم تصرفات اصحاب الفنا فی اللّٰه و البقاء به و لها شان عظیم فا لتاثر فی باطن الطالب ان یتوجه الشیخ الی نفسه الناطقة و یصادمها با لهمة التامة القویة الخ. (قطب الارشاد ج۱۲، ص۶۰۶، و للنقشبندیة تصرّفات)

## د میلمه پالنې په خاطر د اورادو او وظائفو د پرېښودلو حکم

**سوال:** که چېرته یو څوك د اورادو او وظائفو معمول ولري نو د میلمه د راتلو په صورت کښې خپل اوراد ورته پرېښودلی شي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** میلمانه په دوه ډوله دي یو هغه میلمه چه هر وخت یعنې همیشه راځي او عادت ئې وي نو د داسې میلمه لپاره دې میزبان خپل وظائف نه قضاء کوي او که چېرته داسې میلمه وي چه کله کله راځي نو د په دې صورت کښې د خپلو معمولاتو پرېښودل او له میلمه سره کښیناستل افضل او بهتر دي۔

لما قال محافظ الدین محمد بن بزاز الکردریؒ: نزل به ضیف و له ورد من النفل فان کان ینزل کثیراً فا لورد افضل و الا فا لاشتغال با لضیف افضل. (فتاوٰی بزازیة علی هامش الهندیة ج۴، ص۲۸، کتاب الصلوٰة، نوع فیما یکره)

قال عالم بن العلاء الانصاریؒ: رجل نزل به ضیف و له ورد من صلوٰة التطوع فان کان هٰذا الرجل کثیر الضیافة لا یترك ورده. (فتاوٰی تاتارخانیة ج۱، ص۶۳۳، کتاب الصلوٰة، الفصل العاشر)

## د ذکر په مجلس کښې د مشائخو د روحونو راتګ

**سوال:** ځیني صوفیاء کرام وایي چه د ذکر په مجلس کښې د مشائخو ارواح راځي او له دې څخه د ارواحو تجسد څرګندیږي۔ آیا د شریعت مقدسه په رڼا کښې دا عقیده درلودل صحیح دي او که څنګه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د انبیاوو او اولیاوو ارواح دنیا ته راتلی شي۔ مولانا رشید احمد ګنګوهي صاحبؒ، قاضي ثناء اللّٰه پاني پتي او شاه ولي اللّٰه دهلويؒ صاحب پخپلو خپلو تصانیفو کښې د دې جواز لیکلی دی لیکن له دې څخه عوامي عقیده جوړول نه دي په کار۔ ځکه چه دا ډول حکایتونه کله کله مفضي الی الشرك جوړیږي۔

کما قال العلامة آلوسیؒ: فقد وقعت رؤیته ﷺ بعد وفاته لغیر واحد من الکاملین من هٰذه الامّة. (روح المعانی ج۲۲، ص۳۵، سورة الاحزاب، آیت ۴۰)

قال العلامة جلال الدین السیوطیؒ: و لا یمتنع رؤیة ذاته الشریفة بجسد روحه و ذٰلك لانه ﷺ و سائر الانبیاء احیاء ردت

الیهم ارواحهم بعد ما قبضوا و اذن هم با لخروج من قبورهم و التصرّف فی الملکوت العلوی و السفلی. (الحاوی للفتاوٰی ج۲، ص۲۶۳، القول بامکان رؤیة النبیﷺ فی الیقظة)

## د څلويښتو ورځو د چلـــــې حکم

**سوال:** ځيني صوفياء کرام د څلويښتو ورځو د چلې اهتمام کوي۔ آيا د اسې کول جائز دي او که نه؟ او که چېرته جائز وي نو په وضاحت سره ئې بيان کړی؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته له دې چلې څخه مقصود الٰهي عبادت وي او دا چله د طيباتو له تحريم څخه خالي وي نو په جواز کښې ئې څه شك نشته او د څلويښتو ورځو تعين ځکه کوي چه کوم عبادت چه تر څلويښتو ورځو پورې د نيت په خلوص سره وشي هغه راسخ ګرځي۔

قال الله تبارك و تعالی: وَ اِذْ وٰعَدْنَا مُوْسٰی اَرْبَعِيْنَ لَيْلَةً ثُمَّ اتَّخَذْتُمُ الْعِجْلَ مِنْ بَعْدِهٖ وَ اَنْتُمْ ظٰلِمُوْنَ☆ (سورة البقرة، آيت ۵۱)

علامه ابو عبد الله القرطبي پخپل تفسير کښې ليکي: و بهٰذا استدل الصوفية علی الوصال و ان افضله اربعون يوماً. (تفسير قرطبیؒ ج۱، ص۳۹۶، سورة البقرة)

او د حضورﷺ ارشاد ګرامي دی چه: عن انس بن مالكؓ قال قال رسول اللهﷺ من صلّی الله اربعين يوماً فی جماعة يدرك التكبير الاولی كتب له برأتان براة من النار و براة من النفاق. (الجامع الترمذی ج۳، ص۳۳، ابواب الصلوة)

په دې کښې هم د څلويښتو ورځو خصوصيت راغلی دی۔

له مشائخو څخه د دې د جواز تصريحات او شرائط هم منقول دي لکه د روژې نيول، د شپې قيام، کم غږيدل، کم خوړل او د اسې نور۔

لما قال شاه ولی الله رحمه الله: قال المشائخ من اراد الدخول فی الاربعينية يلزمه مراعات امور دوام الصيام و دوام القيام و تقليل الكلام و الطعام و المنام و الصحبة مع الانام و المواظبة فی الوضوء فی حالات اليقظة و عند المنام و ربط القلب مع الشيخ علی الدوام و ترك الغفلة رأساً. (شفاء العليل ترجمة القول الجميل ص۸۳، شرائط چلّه نشيني)

## د اولياء الله وو پېژنـــــدنه

**سوال:** جناب مفتي صاحب! د شريعت مطهره په رڼا کښې د اولياء الله وو پېژندګلوي څه شی دی؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** هر هغه مسلمان چه د شريعت پابند وي، متقي او پرهيزګار وي او له صغيره او کبيره ګناهونو څخه ځان وساتي نو هغه له اولياء الله وو يعنې د خدای له دوستانو څخه دی۔

لما قال العلامة تفتازانیؒ: الولی هو العارف با لله تعالی و صفاته حسب ما يمكن المواظب علی الطاعات المجتنب عن المعاصی المعرض عن الانهماك فی اللذات و الشهوات. (شرح العقائد ص۱۰۵، تحت قول النسفی و كرامات الاولياء حق)

قال العلامة اشرف علی التهانویؒ: هو العارف با لله تعالی و صفاته حسب ما يمكن المواظب علی الطاعات المجتنب عن المعاصی المعرض عن الانهماك فی اللذات و الشهوات. (كشاف اصطلاحات الفنون ج۲، ص۱۵۲۸، فی التحقيق لفظ مولی الموالاة، الولی) و مثله فی النبراس ص۴۷۵، كرامات الاولياء حق.



## په کـــــافرانو کښې د اولياوو د موجودوالي حکم

**سوال:** ځيني خلك وايي چه په کفارو کښې هم اولياء وي۔ دا خبره تر کومه ځايه پورې صحيح ده؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته د د اسې خلکو له اولياوو څخه مراد د توجه او تصرف خاوند کيدل وي نو دا په کفارو کښې هم وجود لري کوم چه د اولياء الشيطان په نامه نوموَل شوي دي۔ او که چېرته له اولياء څخه د هغوی مراد عرفي او اصطلاحي اولياء الرحمٰن وي نو دا يوازې په مؤمنانو کښې وي او په کافرانو کښې نه وي۔

کما قال الله تبارك و تعالی: اَلَاۤ اِنَّ اَوْلِيَآءَ اللّٰهِ لَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَ لَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ☆ اَلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَ كَانُوْا يَتَّقُوْنَ☆ (سورة يونس، آيت ۶۳/۶۲)

قال العلامة التفتازانیؒ: الولی هو العارف با لله تعالی و صفاته حسب ما يمكن المواظب علی الطاعات المجتنب عن المعاصی المعرض عن الانهماك فی اللذات و الشهوات. (شرح العقائد ص۱۰۵، تحت قوله النسفیؒ و كرامات الاولياء حق) و مثله فی شرح المقاصد ج۵، ص۷۲، شمول قدرة الله تعالی.

## د اولياء الله وو را جمع کيـــــدل

**سوال:** ځيني خلك وايي چه اولياء الله جمع کيږي۔ آيا دا خبره صحيح ده او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د صوفياء کرامو په نزد اولياء الله کله کله سره جمع کيږي ليکن دا ټولې خبرې يوازې کشفيات او مخفي امور دي۔ په فتوٰی او قلم سره ئې حق نه شي ادا کيدلی۔ البته د صوفياوو په نزد دا خبرې موجودې دي چه د غوث په موجودوالي کښې ژوندي اولياء سره جمع کيږي او د ځينو وفات شويو اولياوو ارواح هم جمع کيږي۔ ليکن دا ټولې خبرې له عوامي جهالت څخه پټ ساتل په کار دي۔

او په دې باندې د مفصل بحث په کولو سره علامه عبد العزيز سلجاماسي مالکي رحمه الله فرمايي:

حضرت صاحب وفرمايل چه په دې غارِ حرّا کښې دفتر لګيږي کوم چه حضورﷺ په هغه کښې له بعثت څخه مخکښې عبادت کاوه او غوث له غار څخه د باندې د اسې کښيني چه مکه ئې بنی۔ اورې ته برابرېږي الخ۔ (ابريز ص۵۱۹، څلورم باب، ديوان صالحين)

حضرت وفرمايل چه د تير شويو خلکو ځيني کاملين هم په ديوان کښې حاضر وي۔ (ابريز ص۵۲۱، څلورم باب، ديوان صالحين)

او وئې فرمايل چه کله کله حضورﷺ هم په دې مجلس کښې شرکت کوي۔ (پورتنۍ حواله)

## د فوت شوي اولياء الله وو نسبت معلومول

**سوال:** آيا يو سړى د يوه وفات شوي ولي الله نسبت معلومولى شي او كه نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** يو متقي او پرهيزګاره سالك د مراقبې په ذريعه د فوت شوي اولياء الله وو نسبت معلومولى شي او د نقشبنديه مشائخو ته په دې كښې مهارت حاصل دى۔

لما قال شاه ولى الله رحمه الله: اما الاطلاع على نسبة اهل الله فطريقه ان يجلس بين يديه ان كان حيًا او قبره ان كان ميتاً و يفرغ نفسهٗ عن كل نسبة و يفضى بروحه الى روح هٰذا الشخص زمانا الخ. (شفاء العليل ترجمة القول الجميل ص۱۱۶، طريقه اطلاع نسبت اهل الله)

قال العلامة شكار پوریؒ: و اما الاطلاع على النسبة اهل الله فطريقه ان يجلس بين يديه ان كان حيًا و عند قبره ان كان ميتاً. (قطب الارشاد ص۶۵۶)

## د ولايت لپاره د بيعت مسئلــــــه

**سوال:** آيا ولايت د طريقت له بيعت پرته چا ته حاصليدلى شي او كه نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د شريعت د تابع يوه شيخ څخه بيعت كول يو مستحب كار دى۔ د ولايت د حصول لپاره چه څومره ذرائع دي له چا څخه بيعت اخيستل ئې كاميابه ذريعه ده او كوم خلك ئې چه شرط بولي نو هغوى په دې خبرې كښې په غلطي باندې دي۔

## د لومړي مرشد په موجود والي كښې له بل څخه د بيعت د اخيستلو مسئله

**سوال:** كه چېرته يو سړى د لومړي مرشد په موجود والي كښې له بل مرشد څخه بيعت وكړي نو آيا د اسې كول ورته جائز دي او كه نه؟ او د مرشد له وفات څخه وروسته د دوهم بيعت څه حكم دى؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د طريقت بيعت چونكه د فيض د حصول لپاره اخيستل كيږي نو د دې لپاره كه چېرته له لومړي مرشد څخه د بيعت نه وروسته د فيض د حصول يقين ئې نه وي نو له بل څخه بيعت كول جائز دي۔ ليكن دا كار عادت جوړول نه دي په كار ځكه چه له دې څخه بې بركتي پيدا كيږي او له مرشد څخه د فيوضاتو او بركاتو حصول مشكل كيږي۔

كما قال الشيخ التهانويؒ و شاه ولي اللهؒ: نو كله چه د شيخ په موجود والي كښې دوهم بيعت جائز دى نو د شيخ له وفات څخه ورسته به په طريقهٔ اولىٰ سره جائز وي۔

لما قال شيخ الطائفة مجدد الف ثانى رحمه الله: بدانكه مقصود حق است و پير وسيله است بوصول جنابِ قدسى حق تعالىٰ اگر طالبى رُشد خود را پيش شيخ ديگر بيند و دل در صحبتِ او حق سبحانه جمع يا برور است كه در حيات پيرى اذن پير طالب پيش اذن شيخ بر ود و طلبِ رشد ازو نمايد اما بايد كه از پير اوّل انكار نكند و جز به نيكى ياد نه نمايد. (مكتوبات مجدد الف ثانىؒ ج۲، ص۱۷۵، دفتر دوم، حصه هفتم مكتوب ۱۳)

قال شاه ولى الله فا علم ان تكرار البيعة من رسول الله ﷺ ماثور و كذٰلك عن الصوفية اما من الشخصين و ان كان



بظهور خلل فى بايعه فلا بأس و كذٰلك بعد موته و غيبته المنقطعة و اما بلا عذر فانه يشبه التلاعب. (شفاء العليل ترجمة القول الجميل ص۳۵، حكمتِ تكرار بيعت) و مثله فى مكاتيبِ شريفة شاه غلام علىؒ ص۲۰، مكتوب شانزدهم.

## د كــــــامل پير د جوړيدو شــــــرط

**سوال:** يو سړى وايي چه كامل پير او شيخ هغه دى چه مريد ته د رسول الله ﷺ په لاس د هغه بيعت وكړي او كه دا نه شي كولى نو د اسې پير ناقص دى۔ نو آيا د نوموړي سړي دا خبره صحيح ده او كه نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** كوم سړى چه د بيعت لپاره دا شرط لګوي نو هغه په غلطى باندې دى ځكه دا خبره نه له قرآن او نه له حديثو څخه ثابته ده او نه صوفياء كرامو د مرشد په شرائطو كښې ذكر كړي دي۔

لما قال شاه ولى الله: شرط من ياخذ البيعة امورٌ احدها علم الكتاب و السُّنّة الخ. (شفاء العليل ترجمة القول الجميل ص۲۳، فصل دوم، حكمت بيعت)

قال العلامة جلال آبادیؒ: اعلم ان للمشيخه و اخذ البيعة شروط منها علم الكتاب و السّنة الخ. (قطب الارشاد ص۵۲۶، بحث شروط المشيخه) و مثله فى مرصاد العباد ص۱۸۵.

## د يوه پير د ځينو الفاظو حكم

**سوال:** يو پير چا ته وويل چه "مقبولك مقبولي و مردودك مردودي" آيا په د اسې ويلو سره كوم كار مقبول يا مردود كيدلى شي او كه نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** كه چېرته له دې الفاظو څخه دا مراد وي چه كوم شى ستا خوښ وي هغه زما هم خوښ دى او كوم شى چه ستا خوښ نه وي نو هغه زما هم خوښ نه دى نو بيا دا خبره صحيح ده۔ او كه چېرته ئې مراد دا وي چه زما په ويناسره كوم شى مقبول يا مردود كيږي نو دا بيا غلطه ده۔ د يوه كار د مقبول والي او مردود والي فيصله له ادلّه اربعه وو څخه پرته بل څوك نه شي كولى۔

كما قال الشيخ مُلاّ جيونؒ: ان اصول الشرع ثلاثة...... الكتاب و السنة و اجماع الامة....... و اصل الرابع القياس. (نور الانوار ص۶، تقسيم اصول الشرع)

قال العلامة فخر الاسلام رحمه الله: و اصول الفقه الكتاب و السنّة و الاجماع و القياس. (توضيح و التلويح ص۳۳) و مثله فى المولوى على الحسامى ص۴.

## د لمانځه او د روژې د معافى بې بنياده دعوىٰ

**سوال:** زمونږ په كلي كښې يو سړى خپل ځان ته پير وايي او په اعلانيه توګه سره دا اعلان كوي چه ما ته الله تعالى روژې او لمونځونه معاف كړي دي او ﴿زيره هم وهي۔ آيا په رښتيا هم چا ته لمونځونه او روژې معاف كيدلى شي؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته دد دې سړي په دماغو کښې فرق او يا په صريح ډول سره ليونی وي نو خبرو ته ئې اعتبار نشته۔ او که چېرته ئې عقل صحيح وي او د اسې خبرې کوي نو بيا زنديق دی او په د اسې سړي باندې اعتماد لرل او تعلق ورسره ساتل حرام دی او د اسې سړی واجب القتل دی۔

كما قال العلامة التفتازانيؒ: و لا يصل العبد ما دام عاقلاً بالغاً الى حيث ليسقط عنه الامر و النهى لعموم الخطابات الواردة فى التكاليف و اجماع المجتهدين على ذٰلك الخ. (شرح العقائد ص١١٩، و لا يصل العبد......... الخ)

قال العلامة ابن عابدينؒ: و نازعه فى نور العين بان ما ذكره من المعنى الوصفى و هو معنى الوصفى اما العرفى الذى جرى عليه اصطلاح الملاحدة و القلندرية فهو ان جميع الاشياء مباحة لك فا لحق ان يكفر القائل ان كان من تلك الفئة. (رد المحتار ج٤، ص٢٥٩، مطلب فى معنى درويش درويشان) و مثله فى النبراس ص٥٦٢، اختلفوا فى ان نبوة النبى افضل ام ولاية.

## مرشد ته د کعبې او پيغمبر ويلو حکم

**سوال:** يو سړی د خپل مرشد په اړه وايي چه زما مرشد زما لپاره کعبه او پيغمبر دی۔ د داسې الفاظو د ويلو حکم څه دی؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** دا پورته ذکر شوي الفاظ د مقدس شريعت سره ټکر دي۔ له دې وجهې کوم طريقت او الفاظ چه له شريعت سره ټکر وي هغه مردود او د قبول وړ نه دی۔

لما قال مجدد الف ثانیؒ: كل حقيقة ردته الشريعة فهو زندقة. (مكتوبات ج١، ص١١٤، دفتر اول، مكتوب ٤٣)

و قال شاه غلام على دهلویؒ: آنكه كمالات الٰهية در هر خاندان برنك ديگر ظهور نموده اند ليكن معيار اينها شريعت است. (مكتوبات شاه غلام علیؒ ص٩٣، مكتوب هفتاد و پنجم) و مثله قطب الارشاد ص١٣، مقدمة.

## د پيـــــر په باره کښې له مبالغه آميزي څخه کار اخيستل

**سوال:** يو سړی د خپل پير په اړه وايي چه کله تا پير قبول کړ نو په هغه کښې خدای هم دی او رسولﷺ هم او د پير لاس د خدای لاس دی۔ او پير د خدای نائب دی۔ شرعاً د دغو الفاظو د ويل حکم څه دی؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته دا الفاظ له يوه عالم او ديندار سړي څخه صادر شوي وي نو په هغو کښې به تاويل کيږي او که چېرته له کوم فاسق او فاجر سړي څخه صادر شوي وي نو دا د شريعت مخالف الفاظ دي۔ اګر که په طريقت کښې استعمال شوي دي ليکن مردود دي ځکه چه کوم طريقت د شريعت څخه مخالف وي هغه زنديقيت دی۔

لما قال مجدد الف ثانیؒ: كل حقيقة ردته الشريعة فهو زندقة. (مكتوبات ج١، ص١١٤، دفتر اول، مكتوب ٤٣)

قال شاه غلام على دهلویؒ: آنكه كمالات الٰهية در هر خاندان برنك ديگر ظهور نموده اند ليكن معيار اينها شريعت است. (مكتوبات شاه غلام علیؒ ص٩٣، مكتوب هفتاد و پنجم) و مثله قطب الارشاد ص١٣، مقدمة.





## له پير څخه پـــــرده کول

**سوال:** ځينې ښځې له پير څخه پرده نه کوي آيا د ښځو لپاره له پير څخه پرده کول ضروري دي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د پردې په اړه چه کوم نصوص راغلي دي هغه عام دي۔ پير او نور غير محارم ټول پکښې شامل دي۔ نو له دې وجهې د نورو خلکو غوندې له پير څخه هم د ښځو لپاره پرده ضروري ده۔ کوم خلك ئې چه اهتمام نه کوي نو هغوی پکښې غلط شوي دي۔

لما قال العلامة ابن نجيمؒ: و لا ينظر من اشتهى الى وجهها الا الحاكم و الشاهد و ينظر الطبيب الى موضع مرضها. (البحر الرائق ج٨، ص١٩٢، كتاب الكراهية، فصل فى النظر)

و قال العلامة فخر الدين الزيلعیؒ: و لا ينظر من اشتهى الى وجهها الا الحاكم و لشاهد و ينظر الطبيب الى موضع مرضها. و الاصل فيه انه لا يجوز ان ينظر الى وجه امرأة اجنبية مع الشهوة. (تبيين الحقائق ج٦، ص١٧، كتاب الكراهية، فصل فى النظر) و مثله فى رد المحتار ج٦، ص٣٦٧، كتاب الحظر و الاباحة. فصل فى النظر.

## د تصوف د څلـــــورو سلسلو ثبوت

**سوال:** ځينې خلك د څلورو طريقو يا سلسلو څخه انکار کوي او وايي چه د دې هيڅ اصل نشته۔ آيا په ربښتيا هم د دغو سلسلو څه ثبوت نشته؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د طريقت له څلورو سلسلو (قادريه، سهرورديه، چشتيه او نقشبنديه) څخه انکار بنه خبره نه ده ځکه چه دا سلسلې د تواتر حد ته رسيدلي دي او د مشائخو معمول به ګرځيدلي دي او پخپلو خپلو کتابونو کښې ئې په باقاعده توګه ذکر کړي دي۔

لما قال شاه ولی اللہؒ: و بعد از زمان اين خانوادها خانوادهای ديگر پيدا شدند چون جاميه، قادريه، اكبريه، سهرورديه، كيرويه. اويسيه و خانوادۂ خواجگان، خانوادۂ معينيه كه احيائے طريقه چشتيه است و نقشبنديه كه احيائے خانوادۂ خواجگان است. (همعات ص١٥)

قال العلامة شكار پوریؒ: ان الطرق الى الله كثيرة كا لشاذلية و السهروردية و القادرية الى غير ذٰلك. (قطب الارشاد ص٥٤٤، الفصل ان العلماء من المتكلمين و الفقهاء و المحدثين الخ) و مثله فى شفاء العليل ترجمة القول الجميل ص٤٠، حكمت تكرار بيعت.

## له تصوف سره د نه تعلق تشريح

**سوال:** ځينې خلك وايي چه کوم خلك له تصوف سره نه دي تړلي هغوی فاسقان دي۔ په داسې حال کښې چه ډير علماء کرام هم له تصوف سره تړلي نه دي۔ نو آيا دوی ټول فاسقان دي؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کوم خلك چه دا وايي چه کوم خلك له تصوف سره نه دي تړلي هغوی فاسقان دي۔ نو که چېرته له تصوف څخه مراد نفس مروجه بيعت وي نو دا خبره غلطه ده ځکه چه بيعت واجب نه بلکه سنت دی۔ او که چېرته له تصوف څخه د باطن تزکيه او له ګناهونو

ښخه اجتناب مراد وي نو بيا دا خبره صحيح ده لکه څرنګه چه اکابرو هم دا خبره کړې ده.

کما قال العلامة ملا علی القاریؒ: عن امام مالكؒ من تفقه و لم يتصوّف فقد تفسق و من تصوّف و لم يتفقه فقد تزندق و من جمع بينهما فقد تحقق. (مرقات شرح مشکٰوة ج ۱، ص ۵۲۶، کتاب العلم، الفصل الثالث)

و قال الامام عبد الوهاب الشعرانیؒ اجمع اهل الطيق علی وجوب اتخاذ الانسان له شيخاً يرشده الیٰ زوال تلك الصفات الخ. (انوار القدسية ص ۵) و مثله فی تفسير المظهری ج ۲، ص ۱۰۴.

## څلور طــــــريقې يا سلسلې په حقه دي

**سوال:** څلور طريقې يا څلور سلسلې په حقه دي او که نه؟ او دغه سلسلې کومې کومې دي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د وصول الی الله ګڼې طريقې دي. او په دغو کښې ځينې طريقې او سلسلې زر او په آسانه سره انسان منزل مقصود ته رسوي. د دې سهولت او آسانتيا لپاره له مشائخو ښخه دا طريقې او سلسلې منقولې دي. ليکن په دغو کښې څلور طريقې په جنوبي ايشيا کښې ډير دي چه په لاندې ډول دي.

﴿۱﴾ الطريقة العالية النقشبندية: منسوب به خواجه بهاؤ الدين نقشبندؒ.

﴿۲﴾ الطريقة العالية القادرية: منسوب به شيخ عبد القادر جيلانیؒ.

﴿۳﴾ الطريقة العالية الچشتيه: منسوب به خواجه معين الدين چشتيؒ.

﴿۴﴾ الطريقة العالية السهروردية: منسوب به خواجه شهاب الدين السهروردیؒ.

کما قال العلامة شکار پوریؒ: قال الشيخ العارف با لله ابو اسحٰق ابراهيم ان الطرق الی الله کثيرة کا لشاذلية و السهروردية و القادرية الی غير ذٰلك. (قطب الارشاد ص ۵۴۴، الفصل ان العلماء من المتکلمين و الفقهاء و المحدثين الخ)

لما قال شاه ولی اللهؒ: و با لجملة خانوادهٔ بسيار بودند و بيسار خواهد بود و حصرا آن يا معقول.

ثم قال: و بعد از زمان ايں خانوادها خانوادهای ديگر پيدا شدند چون جاميه، قادريه، اکبريه، سهرورديه، کيرويه. اويسيه و خانوادهٔ خواجگان، خانوادهٔ معينيه که احياے طريقه چشتيه است و نقشبنديه که احياے خانوادهٔ خواجگان است. (همعات ص ۱۳) و مثله فی شفاء العليل ترجمة القول الجميل ص ۴۰، حکمت تکرار بيعت.

## د تصوف د مراقباتو او اذکــــــارو حکم

**سوال:** د نقشبنديې په سلسله کښې چه کومې اوه لطيفې او اذکار دي په قرون ثلاثه کښې خو ئې وجود نه وو. له دې ښخه څرګنديږي چه دا بدعت دي. نو آيا د نقشبنديې د سلسلې د اوه لطائفو او اذکارو ثبوت شته او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د احسان د مرتبې حصول په هر مسلمان باندې ضروري دی چه حضورﷺ په دې ارشاد کښې اشاره ورته کړې ده چه "ان تعبد الله کانك تراه" اوس نو دا مرتبه په الٰهي ذکر سره پيدا کيږي. نو ځينو مشائخو چه کوم اذکار د احسان د مرتبې د حصول لپاره مقرر کړي دي هغه محض آلات دي چه نو موړې مرتبه پرې حاصليږي. او په آلاتو او معالجاتو



کښې دا ضروري نه ده چه له شارع ښخه دې منقول وي. يوائې دا ضروري ده چه له شريعت سره ټکر نه وي. او لطائف سبعه يوائې آلات دي کوم چه له شريعت سره متصادم نه دي. د مشائخو په کتابونو کښې د هغو په باقاعده توګه سره ذکر راغلی دی.

کما قال العلامة شکار پوریؒ: اعلم ان الله تعالٰی خلق فی الانسان ستّة لطائف بل عشرة خمسة منها من عالم الامر و هی القلب و الروح و السر و الخفی و الاخفٰی و الخمسة من عالم الخلق الخ. (قطب الارشاد ص ۵۶۴، بيان اللطائف الستّة)

قال شاه غلام علی الدهلوی رحمه الله: طريق مشغولی بذکر حق سبحانه و تعالٰی با توجه بلطائفِ سبعه تا دلان حرکت ذکر پيدا شود اين است الخ. (مکاتيب شريفة شاه علام علیؒ ص ۱۴، مکتوب دويم) و مثله فی تفهيمات الالٰهية ج ۱، ص ۲۲۹، ما معنی لطائف السبعة.

## د ذکر سلطان الاذکــــــار حکم

**سوال:** جناب مفتي صاحب! سلطان الاذکار کوم ذکر دی؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د لطيفه قلبي ذکر هغه ذکر دی چه سالك کله پخپل تول جسم سره ذکر وکړي نو د نقشبنديې په سلسله کښې دې ذکر ته ذکر سلطان ويل کيږي.

کما قال العلامة جلال آبادیؒ: ثم يلاخط اسم الذات فی اللطيفة القالبية و هی جميع البدن و اذا غلب الذکر و احاط البدن کله حتٰی صار کل خير من البدن ذاکراً مثل القلب تسمّٰی هٰذه الحالة سلطان الاذکار. (قطب الارشاد ص ۵۶۷، فی بيان اللطائف الستّة)

و قال العلامة محمد بن عبد الله البانی رحمه الله: فينتقل الی لطيفة الجسد و هی ان يذکر بتجمع الجسد مستحضراً لها فی نظر القلب بطريق المشاهدة فی الجميع ان تعبد الله کانك تراه و لا يزال علی ذٰلك حتٰی تصير جميع اجزائه تذکر بدنك و يحصل سُلطان الذکر (البهجة السنية فی آداب الطريقة النقشبندية ص ۴۹)

## د غوث او قطب د وجود حکــــــم

**سوال:** د صوفياء کرامو په کلام کښې د قطب، غوث او ابدال الفاظ په کثرت سره ليدل کيږي. آيا په حديث او شريعت کښې دا مراتب موجود دي او که نه؟ او که چېرته موجود وي نو تفصيل ئې بيان کړی ډيره مهرباني به مو وي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د اولياء الله وو وجود په قرآن او حديث سره ثابت دی. په پورته ذکر شوي مراتبو کښې يوائې د ابدال ذکر په صراحت سره په حديثو کښې راغلی دی. په صحاح سته کښې يوائې د ابو داؤد د يوه اورده حديث په ضمن کښې د ابدال الشام ذکر راغلی دی کوم چه د ام المؤمنين سيده حضرت ام سلمه ښخه روايت دی.

عن نبیﷺ قال يکون اختلاف عند موت خليفة فيخرج رجل من اهل المدينة هارباً الی مکّة فياتيه ناسٌ من اهل مکّة فيخرجونه و هو کاره فيبايعونه بين الرکن و المقام و يبعث اليه بعث من الشام فيخسف بهم با لبيداء بين مکّة و مدينة فاذا رأی الناس ذٰلك اتاه ابدال الشام الخ.

په ابو داؤد ج۲، ص۲۳۳، کتاب السنن په اول د کتاب المهدي کښې صراحتاً د ابدالو ذکر موجود دی۔

د امام ولي الدين صاحبؒ په مشکات کښې د امام احمد ابن حنبل رحمه الله د مسند په حوالې سره له حضرت علي رضی الله عنه څخه روايت نقل کړی دی۔

عن شريح بن عبيد قال ذكر اهل الشام عند عليؓ و قيل العنهم يا امير المؤمنين قال لا انى سمعت رسول اللهﷺ يقول الابدال يكونون بالشام و هم اربعون رجلاً كلما مات رجل ابدال الله مكانه رجلاً يُسقى بهم الغيث و ينصر بهم الاعداء و يصرف عن اهل الشام بهم العذاب. رواه احمد. (مشكوٰة المصابيح ص ٦٠٤، باب ذكر اليمن و الشام، الفصل الثالث)

د باقي مراتبو ذکر په حديثو کښې صراحتاً نه دی راغلی۔ البته اشارتاً ترې معلومیږي لکه څرنګه چه علامه جلال الدين سيوطيؒ او ملا علي قاري له ابن عساکر څخه نقل کړی دی۔

قال رسول اللهﷺ ان لله عز وجل فى الخلق ثلاث مائة قلوبهم على قلب آدم و لله فى الخلق اربعون قلوبهم على قلب موسىٰ و لله فى الخلق سبعة قلوبهم على قلب ابراهيم و لله فى الخلق خمسة قلوبهم على قلب جبرائيل و لله فى الخلق ثلاثة قلوبهم على قلب ميكائيل و لله فى الخلق واحد قلبه على قلب اسرافيلؑ الخ. (اخرجه ابن عساكر الحاوى للفتاوىٰ ج۲، ص۲٤٧، و ايضاً ذكره ملا على قاريؒ فى مرقات ج٩، ص٣٥٦)

کوم چه قطب، غوث او د نقيبا خو اته اشاره کيږي او علماء راسخينو دې لره همد اسې بيان کړی دی۔ ليکن د ايو اڅې د عبديت او قرب مدارج دي نه د عوامي ربوبيت مدارج۔

قال العلامة ملا على القاريؒ: قلتُ مهم الاقطاب فى الاقطار ياخذون الفيض من قطب الاقطاب المسمّٰى بالغوث الاعظم فهم بمنزلة الوزراء تحت حكم الوزير الاعظم. (مرقات شرح مشكوٰة ج٩، ص٣٥٥، كتاب الفتن، الفصل الثانى) و مثله فى رسائل ابن عابدينؒ ج٢، ص٢٦٤.

## د متصـــــرف حکم

**سوال:** تصرف څه شی دی؟ آيا کوم ولي او يا پير متصرف جوړيدلی شي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د تصرف دوه معناوي دي۔ يوه ئې عوامي ده چه د اولياوو قوت او د هغوی کار دی نو دا معنیٰ غلطه ده۔ دوهمه معنیٰ ئې شرعي او اصطلاحي او د فن تصوف معنیٰ ده چه مراد ترې په قوت توجه سره د مختلفو آثارو پيدا کول دي۔ نو په دې کښې تصرف او متصرف دواړه صحيح دي۔

كما قال الشيخ اشرف على التهانوىؒ: و حقيقة هذا التائيد افاضة كيفيات خاصة محمودة و القائها فى النفس آثار خاصة تتعدد حسب اختلاف المقاصد و يسمّى هٰذا التائيد فى عرف اهل التصوّف تصرفاً و توجهاً و همة و جمع الخواطر. (بوادر النوادر ص ٧٨١، رسالة التعرف فى تحقيق التصرف)

و قال شاه ولى اللهؒ: (اجمالاً) و للنقشبندية تصرفات عجيبة من جميع الهمة على مراد فيكون على وفق الهمة. (شفاء العليل ترجمة القول الجميل ص ١١١، الفصل السادس، تصرفاتِ نقشبنديه) و مثله فى قطب الارشاد ص ٦٠٥، ف للنقشبنديه.



## د اصحاب القبورو تصـــرف

**سوال:** جناب مفتي صاحب! د اصحاب القبورو د تصرفاتو څه ثبوت شته او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته د اصحاب القبور څخه مراد د هغوی دعا، توجهات او فيوضات وي نو بيا د هغوی دا تصرف موجود او صحيح دی او که نه نو اصطلاحي تصرف او غيبي تسلط ترې ثابت نه دی بلکه دا د شرك يو ډول دی۔

كما قال شاه ولى اللهؒ: در آنجا بوجه استم قدم زده است حضرت شيخ محى الدين عبد القادر جيلانىؒ گفته اند كه در ايشان در قبر خود مثل احيا تصرّف ميكند. (همعات ص ٦١)

و لما قال محمد بن سليمان الرصاوىؒ: معنى البيت ان كرامات الاولياء حال كونهم فى الدنيا لها وجود و ثبوت وقوع اى حال حياتهم و كذا بعد الموت بمعنى اكرامه فى قبره او حال حضرت فيه و توسيعه لا بمعنى تفرقة فى العالم كما يعقده جهلة العوام. (نخبة اللآلى شرح بدء الامالى ص ٧٣)

قال شاه ولى الله: و ذلك لان شيخ عبد القادرؒ له شعبة من السويان فى العالم و ذلك انهٗ لما مات صار بهيئة الملاء الاعلىٰ و نطبع فيه الوجود سارى فى العالم كله. (تفهيمات الالٰهية ج۱، ص۱۱، تفهيم ٣٤) و مثله فى امداد الفتاوىٰ ج٥، ص١، كتاب السلوك.

## له وفات څخه وروسته د اولياء الله وو د تصرفاتو حکم

**سوال:** آيا له وفات څخه وروسته د اولياوو تصرف ثابت دی او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د اولياوو له وفات څخه وروسته له تصرف څخه مراد که چېرته غيبي تسلط او غائبانه ندا وي نو دا صريح شرك دی او که له دې څخه مراد کرامت وي نو له وفات څخه وروسته هم د اولياوو د کراماتو له اثراتو څخه انکار کول کومه معنیٰ نه لري۔

كما قال محمد بن سليمان الحلبى الرصاوىؒ: تحت قول الماتن كرامات الولى بدار دنيا لها كون فهم اهل النوال. و حاصل معنى البيت ان كرامات الاولياء حال كونهم فى الدنيا لها وجود و ثبوت و وقوع اى حال حياتهم و كذا بعد الموت بمعنى اكرامه فى قبره و حال حضرة فيه و توسيعه لا بمعنى تفرقة فى العالم كما يعقده جهلة العوام. (نخبة اللآلى فى شرح بدء الامالى ص٧٣)

و قال العلامة عبد الغنى النابلسى رحمه الله: (كرامات)..... (الاولياء) الاحياء و الاموات اذ الولى لا ينعزل عن ولايته بالموت الخ. (الحديقة الندية شرح الطريقة المحمدية ج۱، ص۲۹۲) و مثله فى روح المعانى ج۲۸، ص١٠٨.

## له مـــــرګه وروسته د اولياوو د کراماتو حکم

**سوال:** ځينې خلك له مرګه وروسته د اولياوو کراماتو ته شرك وايي۔ آيا په رښتيا هم له مرګه وروسته د اولياوو لپاره کرامات ثابت نه دي؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د اهل سنت و الجماعت په نزد له مرګه وروسته هم د اولياوو کرامات محقق او ثابت دي او فعلاً ئې ثبوت هم شته۔

کما قال محمد بن سلیمان الحلبی الرضاویؒ: و حاصل معنی البیت ان کرامات الاولیاء حال کونهم فی الدنیا لها وجود و ثبوت وقوع ای حال حیاتهم و کذا بعد الموت بمعنی اکرامه فی قبره. (نحبة اللآلی فی شرح بدء الامالی ص۷۳)

قال العلامة عبد الغنی النابلسی رحمه الله: (و کرامات الاولیاء) الاحیاء و الاموات اذ الولی لا ینعزل عن ولایته با لموت کا لنبی لا ینعزل عن نبوته با لموت. (الحدیقة الندیة شرح الطریقة المحمدیة ج۱، ص۲۹۲) و مثله فی روح المعانی ج۲۸، ص۱۰۸.

## د اولیاء الله وو له خپلو مرید انو سـره د مدد کولو حکم

**سوال:** ځیني خلك وايي چه فلانی بزرګ او یا مرشد د مصیبت په وخت کښې د خپل فلاني مرید غائبانه امداد وکړ. په مقدس شریعت کښې د داسې عقیدې ځای شته او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د داسې د ځینو واقعاتو په جزوي توګه سره څرګندیدل ثابت دي لکه څرنګه چه شیخ الحدیث حضرت مولانا زکریا صاحب رحمه الله په فضائل درود شریف ص۱۱۳ کښې وايي. لیکن له دې څخه عوامي عقیده مه جوړوی ځکه چه له دې څخه کُلي علم غیب ثابتیږي کوم چه مفضی الی الشرك دی۔

کما قال العلامة ابن نجیمؒ: لو تزوج بشهادة الله و رسول لا ینعقد و یکفر للاعتقاده ان النبی ﷺ یعلم الغیب. (البحر الرائق ج۳، ص۸۸، کتاب النکاح)

قال العلامة قاضی خانؒ: لو تزوّج بشهادة الله و رسوله لا ینعقد و یکفر للاعتقاد ان النبی ﷺ یعلم الغیب. (فتاوٰی قاضی خان ج۳، ص۵۷۶، کتاب النکاح، باب الشهادة) و مثله فی مجمع الانهر ج۱، ص۳۲۲، کتاب النکاح.

## د کشف القبور د علم حکـــم

**سوال:** کشف القبور څنګه علم دی؟ آیا د قبر د ننه حالات چا ته کشف کیدلی شي او که نه؟ او که چېرته کیدلی شي نو دا علم زده کیدلی شي او که نه؟ او دا هم وواییٔ چه کشف په علم غیب کښې داخل دی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کله کله انسان ته کشف قبور کیږي. دا کوم باقاعده علم نه بلکه یو غیر اختیاري کیفیت وي. له دې وجهې په دې کښې تعلیم او تعلم نه جاري کیږي او دې ته علم غیب هم نه ویل کیږي ځکه چه دا د کشف سره تعلق لري او کشف له ظن سره تعلق لري او د ظن فائده ورکوي. کوم جازم علم نه دی. د مشائخو په کتابونو کښې باقاعده د دې تذکره موجوده نه. حضور ﷺ ته هم د قبر کشف شوی وو لکه څرنګه چه په مشکوٰة باب عذاب قبر کښې به پوره تفصیل کښې نقل کړی شوی دی. د دې حدیث لاندې ملا علي قاري صاحبؒ په مرقات شرح مشکوٰة کښې لیکي:

و هذا الحدیث مثل قوله علیه الصلوة و السلام لو علمتهم ما اعلم لضحکتم قلیلاً و لبکیتم کثیرا. و فیه ان الکشف بحسب الطاقة حتی کوشف بما لا یستطیع یطیح و یهلك. (مرقات شرح مشکوٰة ج۱، ص۳۴۶، کتاب الایمان)



قال العلامة شکار پوریؒ: و قالوا اذا دخل المقبرة قرأ بسورة انا فتحنا فی رکعتین ثم یجلس مستقبل المیت الخ. (قطب الارشاد ص۵۵۵، الشغل العاشر) و مثله فی شفاء العلیل ترجمة القول الجمیل ص۸۵، پنځم فصل، کشف القبور)

## د دوزخ د فناء کید و حکم

**سوال:** ځیني صوفیاء کرام او اهل کشف وايي چه دوزخ په آخر کښې فنا کیږي. آیا دا خبره صحیح ده او که څنګه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د کشف په معاملو کښې اهل کشف ښه پوهیږي. لیکن له ظاهري نصوصو څخه خو دا معلومیږي چه دوزخ نه فنا کیږي بلکه د کفارو د تعذیب لپاره به د همیشه لپاره وي۔

کما قال العلامة عبد العزیز پرهارویؒ: ذهب شرذمة قلیلة من المسلمین الی ان وهم بعض الکشف (ثم قال بعد الکلام الطویل) و علیك با لکف عن طعنه. (نبراس ص۳۶۱)

و قال العلامة ثناء الله پانی پتیؒ: و به قال من الصوفیة محی الدین ابن العربی رحمه الله لکن هٰذا قول مردود. (تفسیر مظهری ج۵، ص۱۱۷)

## د جلالي او جمالـــي صفتونو فرق

**سوال:** جلالي او جمالي صفتونه کوم کوم دي؟ او د هغو د مراقبې څه حکم دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** صوفي علماوو د جلالي او جمالي صفتونو مختلف تعریفونه کړي دي. ځیني وايي چه په کومو صفاتو کښې چه قهر او غصه وي هغه جلالي صفات دي او په کوم صفاتو کښې چه د نرمي او شفقت یادونه راغلې وي هغه جمالي صفات دي. او ځیني وايي چه باطني صفاتو ته جلالي او او باطن ته جلال ویل کیږي او له دغو صفاتو څخه د فیض اخیستنې ته د جلال او جمال مراقبه ویل کیږي۔

کما قال قاضی محمد علی تهانویؒ: و در کشف اللغات میگوید و نیز صفات باطن حق تعالٰی را جلال گویند و ظاهر را جلال. (کشاف اصطلاحات الفنون ج۱، ص۲۴۴)

قال العلامة آلوسیؒ: و الصفات اما جمالیة او جلالیة و للاولی السبق کما یشیر الیه حدیث سبقت رحمتی غضبی. (روح المعانی ج۱، ص۵۱، مبحث فی لفظ الاسم) و مثله فی تفهیمات الالهیة ج۲، ص۲۲۲.

## لــــه کائناتو سره د الله تعالٰی د معیت حقیقت

**سوال:** د الله تعالٰی سره د کائناتو معیت څنګه منل صحیح دي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د الله تعالٰی لپاره له کائناتو سره د ذاتي او علمي معیت په منلو کښې هیڅ تضاد نشته ځکه چه له علمي معیت څخه پخپله ذاتي معیت هم متحقق کیږي۔

کما قال ارشاد الله قاضی مبارك رحمه الله: فا لموجودات باثرها من حیث الوجود الرابطی معلومة و صور العلمیة له تعالٰی فعلمه تعالٰی الاجمالی تلك الاشیاء نفسه ذاته تعالٰی. (قاضی شرح السلم ص۱۵)

قال شاه اسمٰعیل شهیدؒ: و منهم من تفطن بعلاقیة القیومیة بینه (ای لاهوت) و (ای الکثرات) علی نحو الابداع اکمل تفطنٍ. (العبقات ص ۲۰) و مثله فی المکتوبات شاه غلام علی دهلویؒ ص ۵۱، مکتوب ۶۸.

## د وحدت الوجود او وحدت الشهود مسئله

**سوال:** د وحدت الوجود او وحدت الشهود مسئله له ظاهري شریعت سره ټکر دی او که نه؟ او په دغو دواړو کښې کوم یو صحیح دی؟ په داسې حال کښې چه ځینې خلك ئې شرك بولي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** وحدت الوجود او وحدت الشهود دواړه کشفي مسائل دي۔ په قلم او فتوٰی سره ئې اظهار مشکل دی لیکن له تحقیق نه وروسته دا معلومیږي چه له ظاهري شریعت سره ئې کوم تصادم او تضاد نشته او اقرب الی الصواب او شهود معلومیږي د شهودي صوفیه وو په نزد۔

کما قال مجدد الف ثانیؒ: توحید دو قسم است شهودی و وجودی و آنچه لا بد است توحید شهودی است که فناء بآن مربوط است و توحید شهودی با عقل و شرع مخالفت ندارد بخلاف وجودی. (مکتوبات مجدد الف ثانی ج۱، ص ۱۱۱، مکتوب ۴۳، دفتر اوّل)

قال العلامة قاضی ثناء الله پانی پتیؒ: و علی هٰذا التاویه هٰذه الآیة تدل علی التوحید الشهودی کما قال به المجدد رضی الله عنه دون التوحید الوجودی. (التفسیر المظهری ج۱، ص ۱۱۹، سورة البقرة) و مثله فی مکاتیب شریفة شاه غلام علی دهلویؒ ص ۲۲، مکتوب.

## د حقیقت المحمدي ﷺ اصطلاح

**سوال:** ځینې صوفیاء کرام د محمدي ﷺ حقیقت اصطلاح استعمالوي۔ د دې اصطلاح شرعا استعمال جائز دی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** محمدي ﷺ حقیقت چه یقین ثاني او د واحدیت مرتبه هم ورته ویل کیږي دا ټول کشفي امور دي او له ظاهري شریعت سره متصادم نه بلکه د امت د اکابرو اولیاء الله وو د دې مقام ادراك کړی دی او په دې باندې غړیدلي دي۔

کما قال مجدد الف ثانیؒ: در جواب گویم که حقیقتِ محمدی نهایت مقامات نزول محمد علیه السلام است ازواج تنزیه و تقدیس و حقیقت کعبه نهایت مقامات عروج کعبه است. (مکتوبات مجدد الف ثانیؒ ج۱، ص ۳۳۴، مکتوب ۲۰۹)

قال العلامة فقیر الله جلال آبادیؒ: و ثانیاً ان نبیناﷺ سمّی باسمین محمد ولایة هٰذا الاسم ناشیة عن الاسم الٰهی الذی یناسب تربیة هٰذا العالم السفلی و سمیت با لحقیقة المحمدیة. (قطب الارشاد ص۵۹۳، حقیقة الکعبة فوق حقیقة المحمدیة) و مثله فی روح المعانی ج۱، ص ۵۱، سورة البقرة.



## د استاد او پیر د حقوقو حکم

**سوال:** که چېرته د یو سړي استاد او مرشد دواړه یو ځای موجود وي۔ نو آیا په نوموړي باندې د پیر حق زیات دی او که د استاد؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** مرشد او استاد دواړه د علم او عمل او رشد او هدایت ذرائع دي نو له دې وجهې د دواړو حقوق سره برابر دي۔ لهذا که چېرته پیر او استاذ اختلاف راشي نو سړی دې د دوی په معاملاتو کښې مداخلت نه کوي او که چېرته مجبور شي نو د حق اتباع دې وکړي لیکن بیا هم د اکابرینو له خبرو څخه معلومیږي چه د شیخ درجه په استاذ باندې مقدمه ده۔

کما قال مجدد الف ثانیؒ: منها شرافت علم باندازه شرف و رتبه معلوم است. معلوم هر چند شریف تر علم آن عالی تر پس علم باطن که صوفیاء بآن تمازند اشرف باشد از علم ظاهر که نصیب علماء ظواهر است بر قیاس شرافت علم ظاهر بر علم حجامت و حیاکت پس رعایت آداب پیر که علم باطن لاه از واحد کنند باضعاف زیادت باشد از رعایت آداب استاذ که علم ظاهر او استفاده نمایند و همچنین رعایت آداب است از علم ظاهر باضعاف زیاده است از رعایت آداب استاذ حجام و حائك. (مبدأ و معاد ص ۱۱۶۱)

## په خوب کښې د شریعت خلاف حکم لیدل

**سوال:** که چېرته یو څوك په خوب کښې ووینې چه حضور ﷺ ورته د شریعت خلاف د کوم کار حکم کوي نو آیا په داسې خوب باندې به عمل کیږي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په ذکر شوي صورت کښې که چېرته مبارك ارشاد د شریعت صریح مخالف وي نو بیا به عمل نه پرې کیږي او که د شریعت صریح مخالف نه وي نو بیا به عمل کول پرې په کار دي۔

لما قال مجدد الف ثانیؒ: ازین قبیل است که بعضی در مناجات حضرت پیغمبر علیه السلام را می بنید و بعضی احکام را اخذ می کنند که فی الحقیقة خلاف آن احکام متحقق است. درین صورت القائے شیطانی متصور نیست که مختار علماء عدم تمثل شیطان است بصورت خیر البشر علیه الصلٰوة و السلام بهر صورتیکه باشد پس درین صورت نیست الا تصرّف متخیله که غیر واقع و ناپنده است. (مکتوبات امام ربانی ج۱، ص۲۱۵، مکتوب ۱۰۷)

قال العلامة ملا علی القاریؒ: و لذا لم یعتبر احد من الفقهاء جواز العمل فی الفروع الفقهیة بما یظهر للصوفیة من الامور الکشفیه او حالات المنامیة. (مرقاة ج۹، ص۳۵۸، کتاب الفتن)

## د حضور ﷺ په خوب کښې چا ته د قربانۍ د کولو حکم ورکول

**سوال:** یوه غریبه ښځه ده لیکن ډیره ذاکره یعنې د خدای په ذکر کښې ډیره مشغوله ده۔ دا وایي چه په مراقبې کښې مې له حضور ﷺ سره ملاقات وشو او د قربانۍ د کولو حکم ئې راته وکړ۔ نو اوس پوښتنه دا ده چه په دې ښځې باندې قرباني واجبه ده او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په خوب او مراقبې کښې د حضور ﷺ سره ملاقات ممکن دی او کوم

حکم چه حضور ﷺ ارشاد فرمایلی وي که چېرته د ظاهري شریعت خلاف وي نو عمل به نه پرې کوي او که د شریعت سره موافق وي نو عمل کول پرې مناسب دي ځکه چه دا د کشف غوندې دی.

له دې وجهې که چېرته دا ښځه په اختیاري توګه سره قرباني وکړي نو صحیح ده او که نه نو قرباني پرې واجبه نه ده.

کما قال ملا علی القاری: و لذا لم یعتبر احد من الفقهاء جواز العمل فی الفروع الفقیه بما یظهر للصوفیة من الامور الکشفیه او من حالات المنامیة. (مرقات ج۹، ص۳۵۸، کتاب الفتن)

قال مجدد الف ثانی: الهام مثبت حل و حرمت نه بود و کشف ارباب باطن اثبات فرض و سُنت نماید. (مکتوباتِ امام ربانی ج۲، ص۱۵۶، ص۱۵۵، مکتوب۵۵)

## په کشف باندې د عمل کولو حکم

**سوال:** کشف په څو قسمونو دی او په کشف باندې عمل کول جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کشف په دوه قسمه دی۔ (۱) د شریعت مخالف (۲) د شریعت موافق۔ نو کوم کشف چه د شریعت موافق وي په هغه باندې به عمل کېږي او کوم کشف چه د شریعت مخالف وي هغه مردود دی او عمل به نه پرې کېږي او د یوه غیر صاحب کشف لپاره کشف دلیل نه شي جوړېدلی۔

کما قال ملا علی القاری: و لذا لم یعتبر احد من الفقهاء جواز العمل فی الفروع الفقهیة. بما یظهر للصوفیة من الامور الکشفیه او من حالات المنامیة. (مرقات شرح مشکوٰة ج۹، ص۳۵۸، کتاب الفتن)

قال مجدد الف ثانی: الهام مثبت حل و حرمت نه بود و کشف ارباب باطن اثبات فرض و سُنت نماید اربابِ ولایت خاصه یا عامه در تقلید مجتهدان برابر اند کشوف و الهامات ایشان را مزیت نمی بخشند. (مکتوبات امام ربانی ج۲، ص۱۵۶/۱۵۵، مکتوب۵۵)

## د شیخ د تصور حکم

**سوال:** د تصوف په سلسله کښې اول سبق د شیخ د تصور سبق دی په داسې حال کښې چه په ظاهره سره دا عمل د شریعت خلاف څرګندیږي۔ نو آیا د شیخ تصور جائز دی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د تصوف په سلسله کښې د شیخ تصور جائز دی لیکن بهتره دا ده چه د علاج او دوا په توګه استعمال شي نه د ثواب په توګه۔ ځکه چه په دې سره د ذاکر زړه او فکر مجتمع کېږي او د شیخ د تصور په نتیجه کښې د رسول الله ﷺ عظمت په زړه کښې کښېني کوم چه د تعلق مع الله له بنیادي عواملو څخه دی۔

لما قال شاه ولی الله: قالوا و الرکن الاعظم ربطه القلب بالشیخ علی وصف المحبة و التعظیم و ملاحظه صورته. (شفاء العلیل ترجمة القول الجمیل ص۸۰، الفصل الخامس)



و قال العلامة شکار پوری: و اذا غاب الشیخ عنه یخیل صورته فی خیاله بوصف المحبة و التعظیم فانهٔ یفید فائدة صحبته. (قطب الارشاد ص۵۵۸، الشغل العاشر) و مثله فی الکتاب البهجة السنیة فی آداب الطریقة العالیة النقشبندیة ص۴۲.

## د اولیاء الله او د خپلو مریدانو د امداد کولو حکم

**سوال:** د ځینو خلکو عقیده ده چه اولیاء الله د خپلو مریدانو په مشکل وخت کښې امداد کوي او په عالم کښې تصرف کوي۔ د داسې خلکو په باره کښې د شریعت څه حکم دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته د هغو خلکو د شیخ له تصرف څخه مراد د صوفیاء کرامو اصطلاحي تصرف وي نو صحیح ده ځکه چه دا ډول تصرف په اصل کښې غائبانه دعا وي۔ او که چېرته له تصرف څخه مراد غیبي تسلط وي نو د دې لپاره به د کُلي علم غیب ضرورت وي او دا عقیده درلودل شرک دی۔

قال العلامة ابن نجیم المصری: لو تزوج بشهادة الله و رسوله لا ینعقد و یکفر لاعتقاده ان النبی ﷺ یعلم الغیب. (البحر الرائق ج۳، ص۸۸، کتاب النکاح)

و قال العلامة قاضی خان: رجل تزوّج امراة بغیر شهود فقال الرجل و المراة خدا و پیغمبر را گواه کردیم قالوا یکون کفراً لانهٔ اعتقد ان رسول الله ﷺ یعلم الغیب. (فتاوٰی قاضی خان علی هامش الهندیة ج۳، ص۵۷۶، باب ما یکون کفرا من المسلم)

## د شیخ لپاره مریدان د ځینو حلالو شیانو له استعمالولو څخه د منع کولو حکم

**سوال:** جناب مفتي صاحب! ځینو شیوخ خپل مریدان د ځینو د اسې شیانو له استعمال څخه منع کوي کوم چه شرعا حلال وي۔ نو آیا د دغو حضراتو دا عمل د شریعت له مخې صحیح دی او که نه؟ او آیا مریدانو لپاره ئې په داسې حکم باندې عمل کول ضروري دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** شیخ د خپل مرید د نفس د اصلاح لپاره د هغه د مزاج موافق چه کوم شی غواړي د تربیت حکم ورکوي لیکن دا حکم علاجاً وي شرعاً نه وي نو د دې لپاره بلا اعتقاد حرام د حلالو شیانو د خپل مرید لپاره د نه استعمال امر صحیح دی او د مرشد د داسې حکم په عملي کولو کښې ګناه نشته۔ بلکه د مرید لپاره د علاج په توګه د خپل شیخ د داسې حکم عملي کول ضروري دي۔ لکه څرنګه چه طبیب حاذق کله کله د مریض حالت ته په کتو سره د یوه حلال شي خوړل پرې بندوي کوم چه د هغه طبیعت ئې هم ډېر خوښوي۔ د داسې حالت د یوه شیخ د دې حکم غوندې دی۔

## د ذکر د حلاوت مسئله

**سوال:** یوه مسئله چه د پوښتنې قابله ده هغه دا چه په ذکر کښې د حلاوت (خوږوالي) د حصول څه طریقه ده او ما ته د ذکر حلاوت څرنګه حاصلیدلی شي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د خدای په ذکر کښې د حلاوت د حصول طریقه دا ده چه د ذکر په

فضیلت کښې وارد شوي آیتونه او حدیثونه خپلې مخې ته حاضر کړې او ذکر وکړې نو انشاء الله حلاوت به درته حاصل شي۔

## د پر مختګ د نه کولو په صورت کښې د شیخ د بدلولو مسئله

**سوال:** حضرت مفتي صاحب! بنده له یوه پیر صاحب څخه بیعت کړی دی چه تقریبا کال ئې پوره کیږي لیکن هیڅ ترقي مې نه ده کړې، فیض نه را رسیږي۔ سره له دې چه له خپل شیخ سره ډیر محبت هم لرم او ډیره علاقه مې هم ده وروسره، په هد ایاتو باندې ئې عمل هم کوم۔ نو آیا زه د روحاني ترقي او شیخ د فیض لپاره خپل شیخ پرېښودلی شم او له بل شیخ څخه بیعت کولی شم او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته په رښتیا هم ستا له خپل شیخ سره ډیر عقیدت او کمال محبت وي او د هغه په هد ایاتو باندې له عمل کولو سره سره تا ته روحاني ترقي او فیض نه دی نصیب شوی نو مناسبه دا ده چه شیخ پخپله تا چېرته له کوم بل شیخ څخه د بیعت د اخیستو مشوره درکړي۔ او که نه نه په بل صورت کښې ته پخپله هم هغه لره پرېښودلی شې او د بل د شریعت تابع شیخ څخه بیعت اخیستلی شې شرعا دا هیڅ پروا نه لري۔

لما قال العلامه اشرف علي التهانويؒ: بل شیخ ته رجوع په هغه وخت کښې وکړی چه کله د یوه معتد بهٖ مودې او وخت نه وروسته هم پخپل ځان کښې اصلاح محسوس نه کړي۔ او د اصلاح دا معنی ده چه د معاصي له دواعي څخه ځان وساتي لیکن شرط پکښې دا دی چه لومړي شیخ په مجوزه تد ابیرو باندې په پوره توګه مو عمل کړی وي او سره له دې مو هم کامیابي حاصله کړې نه وي۔ او که نه نو مصد اق ئې دا دی چه نسخه دې استعمال کړې نه ده او له حکیم صاحب څخه شکایت کوی چه د هغه له علاج څخه ما ته نفع نه ده حاصله شوې۔ (انفاس عیسیٰ ص۲۹، حصه اول)

## د اجازې لپاره د شیخ بیعت ضروري نه دی

**سوال:** که چېرته یو د شریعت تابع شیخ یوه دیند اره سړي ته د بیعت د ورکولو اجازه ورکړي په داسې حال کښې چه نوموړی سړی له همدې شیخ څخه بیعت نه وي اخیستی۔ نو آیا د مذکوره شیخ نوموړي سړي ته د بیعت اجازه ورکول صحیح دي او که نه؟ او آیا نوموړی سړی نورو ته بیعت ورکولی شي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** اګر که عموماً یو مرشد یوه د اسې سړي ته د بیعت د ورکولو اجازه ورکوي چه له هغه څخه ئې بیعت کړی وي۔ لیکن که چېرته کوم بل نیک او دیند اره سړي ته د بیعت اجازه ورکړي نو دا اجازه ئې هم صحیح ده او د اسې سړی نورو ته هم بیعت ورکولی شي۔ زمونږ له اکابرینو څخه حضرت تهانوي صاحبؒ حضرت عبد الرحمٰن کاملپوري صاحب ته له



بیعت پرته اجازه ورکړې وه۔ کله چه هغه ته د حضرت تهانوي صاحبؒ اجازه نامه ورکړی شوه نو تهانه بهون ته لاړ او د حضرت تهانويؒ په خدمت کښې ئې عرض وکړ چه ما خو له تاسو څخه بیعت هم نه دی کړی نو بیا دا اجازه نامه دې څرنګه راکړه؟ په دې باندې حضرت تهانوي صاحبؒ ورته وفرمایل چه که چېرته د بیعت لپاره اجازه شرط وي نو راځه چه اوس بیعت درکړم۔ (ماخوذ از ملفوظات فقیه الامت ج۲، ص۵۳، حصه ۱۰)

## د جومات په خانقاه باندې فضیلت

**سوال:** یوه خانقاه جومات ته نژدې ده۔ پیر صاحب او مرید ان ئې د جومات په ځای په خانقاه کښې لمونځونه کوي او عقیده ئې دا ده چه له جومات څخه په خانقاه کښې د لمانځه ثواب ډیر دی۔ آیا شرعا د دوی دا عمل صحیح دی او که نه؟ او آیا په رښتیا هم له جومات څخه په خانقاه کښې د لمانځه ادا کول افضل دي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په جومات کښې د لمانځه د ادا کولو فضیلت په ډیرو احادیثو کښې راغلی او د خانقاه په باره کښې دا ډول هیڅ فضیلت نه دی راغلی او نه خانقاه د جومات په حکم کښې راتلی شي اګر که هلته اصلاح او د نفس د تزکیه سلسله جاري وي لیکن د لمانځه ادا کول په جومات کښې بهتر دي نه په خانقاه کښې۔ له دې وجهې د دغو حضراتو دا عقیده فاسده ده۔ په شریعت مطهره کښې ئې هیڅ ثبوت نشته۔

عن ابی هریرة رضی الله عنه قال قال رسول اللهﷺ صلوٰة الرجل فی الجماعة تضعف علی صلوته فی بیته و فی سوقه خمساً و عشرین ضعفاً و ذٰلك انهٗ اذا توضأ فاحسن الوضوء ثم خرج الی المسجد لا یخرجه الا الصلوٰة لم یخطُ خطوة الا رفعت لهٗ بها درجة و حط عنه بها خطیئته الخ. مشکوٰة المصابیح ص۶۸، باب المساجد، الفصل الاول)

لما قال العلامة ابن عابدینؒ: و ان صلّی فی مسجد حیه منفرداً فحسن...... لقولهﷺ لا صلوٰة لجار المسجد الا فی المسجد. (رد المحتار ج۱، ص۵۵۵، باب الامامة)

## آیا له کوم شیخ څخه بیعت کول ضروري دي

**سوال:** جناب مفتي صاحب! زمونږ یو ملګری له چا څخه بیعت اخیستی دی او مونږ ته هم هر وخت د بیعت کولو تلقین کوي چه تاسو هم چېرته له کوم شیخ څخه بیعت وکړی او یو څوك خپل پیر جوړ کړی۔ نو اوس پوښتنه دا ده چه آیا له کوم شیخ څخه بیعت کول د شریعت له مخې ضروري ده او که څنګه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د انسان یو ظاهر وي او یو باطن۔ نو د ظاهر د اصلاح او بنه والي او په دې اړه د شرعي احکامو د تعبیر، تشریح او په هغو باندې د پوهیدلو لپاره لکه څرنګه چه په څلورو امامانو کښې د یوه تقلید او د هغه په لاربښوونه کښې د خپلو عبادتونو صحیح کول ضروري دي همد ارنګه د باطن د اصلاح او بنه والي او د هغه په اړه د داسې نورو امورو د

صحیح کیدو لپاره له یوه د شریعت تابع پیر څخه بیعت کول ضروري دي۔ په دې کښې هیڅ قباحت او بدي نشته لیکن دا خبره په ذهن کښې کښینوی چه بیعت کوم شرعي ضرورت نه بلکه یو علاج دی۔

لما في امداد السلوك: پس که چېرته سالك عالم وي او نو هغه به پخپله د دین له ضروریاتو څخه خبر وي او که نه نو د اسې شیخ ولټوی چه هغه ته لومړی د وحدانیت د صحیح کولو عقائد او فقهي مسائلو تعلیم ورکړي او له هغه څخه وروسته د مجاهدې او زهد او تقوٰی لاره ور وښایي۔ مشهور متل دی چه د چا پیر نه وي نو د هغه پیر شیطان وي۔ پس د دې مطلب هم همدا دی چه د چا چه څوك لارښوونکی نه وي یعني نه پخپله علم ولري چه لار پرې ووینی او نه ورته د کوم کامل مرشد صحبت ور په برخه وي چه حقه لاره ور وښایي نو د اسې سړي لره شیطان گمراه کوي۔ (امداد السلوك ص۵۶، د شیخ ضرورت)

## له یوه نیك او ښه سړي څخه د دُعا د غوښتلو حکم

**سوال:** اکثره د اسې لیدل کیږي چه د دین بزرگان کله چه له یوه او بل سره ملاقات کوي نو یوه او بل ته سره وایي چه ما پخپلو دعاگانو کښې هیر نه کړې او یا دا چه زمونږ په حق کښې دعاگانې کوی۔ نو آیا شرعا له بل څخه د دُعا التجاء (غوښتنه) صحیح ده او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د خپل ځان لپاره پخپله دعا کول او یا له نورو څخه دُعا غوښتل شرعا صحیح دي۔ پخپله نبي کریم ﷺ له صحابه وو څخه دعا غوښتې ده۔ په دې کښې شرعا څه قباحت او بدي نشته او نه دا د اسلام له اصولو سره منافي ده۔

لما قال الشیخ الاسلام مولانا السید حسین احمد المدني: په هر حال څومره چه وي د انسانانو خصوصاً د مسلمانانو د اصلاح او په هدایت کښې پرته له طمعې کوشش وکړی او له خپلو نیکو دعاگانو څخه ئې مه هیروی او واقفینِ پُرسانِ حال ته مسنون سلام وړاندې کړی۔ (مکتوبات شیخ الاسلام ج۲، ص۳۰۸، مکتوب۶۶)

## د پیر د نامـــه د وظیفه کولو حکم

**سوال:** ځیني خلك د پیران پیر شیخ عبد القادر جیلانيؒ او یا د معین الدین اجمیريؒ د نومونو وظیفه کوي نو آیا د یوه پیر او یا بزرگ د نامه وظیفه کول شرعاً جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د ورد او وظیفي لپاره د الله تعالی اسماء الحسنٰی کافي دي۔ د کوم پیر او فقیر نومونه د وظیفي په توگه استعمالول شرعا جائز نه دي۔ نو د دې لپاره د صورت مسئوله مطابق له د اسې وظائفو څخه پرهیز ضروري دی۔

لما قال العلامه مفتي محمود حسن گنگوهيؒ: د وظیفې په توگه د پیر صاحب نوم اخیستل جائز نه دي۔ (فتاوٰی محمودیه ج۱۵، ص۹۱، باب السلوك)



## په نیکو اعمالو کښې د زړه د نه لگیدلو علاج

**سوال:** جناب مفتي صاحب! نن صبا له ما سره یوه عجیبه معامله کیږي چه مخکښې زه د صوم او صلات یعني روژې او لمانځه ډیر پابند وم۔ هر لمونځ به مې په جمعې سره ادا کاوه لیکن یوه دوه هفتې کیږي چه د لمانځه خوا ته مې شوق او رغبت کم شوی دی او له جمعې سره مې ډیر کم لمونځونه په نصیب کیږي۔ نو آیا د دې کیفیت سبب او علاج څه دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** دا ډول یو سوال حضرت گنگوهي صاحبؒ په مخکښې هم شوی وو۔ نو ده وفرمایل چه په نیکو اعمالو کښې د رغبت او محبت د کموالي درې سببونه دي: (۱) د ناجنس صحبت (۲) ناموافقه غذا (۳) د معصیت صدور۔ نو له دې وجهې تاسو هم خپل ځان ته نظر وکړی چه په دغو دریو اسبابو کښې په تاسو کښې کوم یو سبب پیدا شوی دی هغه پرېږدی انشاء الله بیرته به مو له نیکو اعمالو سره رغبت او شوق پیدا شي۔

## د تصور فنا فی الشیخ شرعي حیثیت

**سوال:** د اهل تصوفو په نزد دا یوه مسلمه قاعده ده چه یو سالك تر هغه وخته پورې ترقي نه شي کولی تر څو پورې چه هغه ته د فنا فی الشیخ درجه نه وي حاصله شوې نو گوا که چه په تصوف کښې فنا فی الشیخ ته د ترقي بنیادي درجه حاصله ده۔ د دې شرعي حیثیت څه شی دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د متصوفینو دا مسلمه قاعده چه فنا فی الشیخ ته د درجاتو د ترقۍ لپاره بنیادي حیثیت حاصل دی صحیح ده۔ د امت صلحاوو دا قاعده جائزه گرځولې ده او فرمایلي ئې دي چه له دې پرته کوم اثر نه شي مرتب کیدلی۔

لما قال الشیخ الاسلام مولانا سید حسین احمد مدنيؒ: الغرض فنا فی الشیخ کیدل په سلوك کښې ضروري او د کامیابۍ قوي ترینه ذریعه ده۔ د حضرت شیخ الهند دا الفاظ او دا ډول نورې جملې د دې فنائیت فی الشیخ ښکارندوی دي کوم چه د حضرت شیخ الهند په سلوك کښې کمال څرگندوي۔ (مکتوبات شیخ الاسلام ج۳، ص۲۲۰، مکتوب ۸۸)

لما قال العلامه رشید احمد گنگوهي: (سوال) فنا فی الشیخ او فنا فی الرسول ﷺ څه دي او له څه شي څخه ثابت دي او صوفیاء کرام دغو لره په کوم نسبت بیانوي؟

(جواب) دا دواړه لفظونه د مشائخو اصطلاح گانې دي۔ د مشائخو اتباع او د محبت غلبه د خدای د رضا لپاره وي۔ د دې اصل د شریعت له مخې ثابت دی۔ فَاتَّبِعُونِي يُحْبِبْكُمُ اللهُ (الآیه) (فتاوی رشیدیه، تالیفات رشیدیه ص۱۹۸، کتاب السلوك)

## د سترگو د بندولو په صورت کښې ذکر کول

**سوال:** جناب مفتي صاحب! زمونږ په علاقې کښې یو پیر صاحب دی کوم چه خپلو مریدانو او متعلقینو ته وایي چه سترگې پټې کړی او ذکر وکړی۔ آیا د ذکر کولو شرعا همدا طریقه ده او

که په خلاصو سترگو باندې هم ذکر کول صحیح دي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** الٰهي ذکر په هر حالت کښې کول جائز دي که سترگې پټې وي او که خلاصې۔ البته په تصوف کښې د شیخ په وړاندې عامي سړي ته په کار دي چه سترگې پټې کړي او ذکر وکړي ځکه چه د اسې نه وي چه د ذکر په وخت کښې له خپل پیر څخه د اسې عمل ووینې چه د خپل پیر په باره کښې ورته بدبیني پیدا شي۔ نو د دې لپاره د نوموړي پیر صاحب دا خبره د علاج په توگه صحیح ده۔

## رضا بالقضا او دعا کول

**سوال:** له څو ورځو راهیسې مې په ذهن کښې یو سوال پیدا شوی دی چه په انسان باندې د مصائبو او آلامو (دردونو) راتلل خو د الله تعالی له خوا څخه وي او دا د الله تعالی حکم وي۔ نو باید چه هغه په دغو مصائبو باندې صبر وکړي او د الله تعالی په قضاء باندې د رضا اظهار وکړي لیکن بلې خوا ته دا معلومیږي چه کله په چا باندې کوم مصیبت راشي نو د هغه د دفع کولو لپاره دعاگانې شروع کوي۔ نو آیا دا دعاگانې د رضا بالقضا منافي خو نه دي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په انسان باندې د آلامو او مصیبتونو راتلل اگر که د الله تعـــالی په امر او حکم سره راځي او انسان باید چه د الله تعالی په د اسې فیصلې باندې راضي و اوسي او باید چه د الله تعالی له خوا څخه نې برداشت کړي۔ لیکن چونکه انسان ډیر کمزوری او ضعیف دی چه له وجهې نې د مصائبو او آلامو په وخت کښې په فتنو کښې د مبتلا کیدو خطره وي نو د دې لپـــاره مقدس شریعت هغه ته د مصیبت او الم په وخت کښې د دعا تعلیم ورکړی دی او دعا دې د اسې کوي چه ای الله د مصیبتونو راتلل هم ستا له خوا څخه رحمت دی او لرې کول نې هم ستــــا رحمت دی۔ مونږ چونکه ډیر کمزوري یو او د دغو مصیبتونو د برداشت کولو طاقت په مونږ کښې نشته نو د دې لپاره پخپل فضل او کرم سره دا مصیبتونه له مونږ څخه لرې کړه۔ دا ډول دُعا د رضا بالقضاء منافي نه ده۔ البته په کومو دعاگانو کښې گیلې او شکایتونه او جزع او فزع وي نو بیا د اسې دعاگانې د رضا بالقضاء منافي وي۔ او له دې وجهې د اسې دعاگانې منع دي۔

لما قال الشیخ مولانا اشرف علي تهانوي: د دُعا معنیٰ دا ده چه ای الله تعالی مونږ ستا په اجازې سره هغه شی غواړو کوم چه زمونږ په علم کښې مصلحت او خیر وي نو که چېرته ستا په علم کښې هم خیر وي نو راته نې کړه او که نه نو مه راکوه۔ مونږ په دواړه حاله راضي یو لیکن د دې رضاء علامه دا ده چه د نه قبلیدو له وجهې مو زړه تنگ او شکمن نه شي۔ دعاگانې کول دُعاد رضاء خلاف نه ده۔ (انفاس عیسیٰ حصه اول ص ۲۳۴، رضا بالقضاء)



## اشـــارةً او کنایةً غیبت کول

**سوال:** که چېرته د یوه سړي په باره کښې د بل سړي په وړاندې په طنزیه انداز سره دا وویل شي چه هو زه هغه ډیر ښه پیژنم په د اسې حال کښې چه هغه مخاطب سړي ئې تعریف کاوه نو آیا د اسې جمله د غیبت په حکم کښې راځي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** فقهاء کرامو د غیبت مختلف ډولونه بیان کړي دي چه په هغو کښې یو ډول دا هم دی چه د یوه سړي تعریف څوک واوري او طنزاً یعنې د مسخرې په توگه ئې په ځواب کښې دا الفاظ ووایي چه هو زه ئې ښه پیژنم چه هغه څنگه دی۔ نو د دې لپاره د دې ډول الفاظو څخه اجتناب وکړي۔ هو که چېرته دا کلمات طنزاً د مسخرې په توگه نه وي نو بیا څه پروا نه لري۔

لما قال العلامة الحصکفیؒ: بغمز العین و الاشارة بالید و کل ما یفهم منه المقصود فهو داخل فی الغیبة و هو حرام. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۶، ص ۴۱۰، کتاب الکراهیة)

## د یو چا پس شا حقائق بیانول هم په غیبت کښې راځي

**سوال:** یو سړی د څو کسانو په وړاندې د یوه ملگري غیبت کاوه چه د مجلس په حاضرینو کښې یو سړي له دې کار څخه منع کړ هغه په ځواب کښې ورته وویل چه زه خو حقائق بیانوم دا خو غیبت نه دی۔ نو اوس پوښتنه دا ده چه آیا پس شا د یوه سړي واقعي او حقیقي امور بیانول په غیبت کښې داخل دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** هره هغه خبره چه د چا په نشت والي کښې بیان کړی شي او هغه خبره په هغه باندې بده لگیده نو په غیبت کښې داخله ده۔ اگر که ربښتیا هم وي او د چا په باره کښې د هغه په نشت والي کښې د دروغ خبرې بیانول غیبت نه بلکه بهتان دی چه یوه بیله کبیره گناه ده۔

لما قال العلامة الحصکفیؒ: الغیبة ان تصف اخاک حال کونه غائباً بوصف یکرهه اذا سمعه....... و عن ابی هریرة رضی الله عنه قال قیل یا رسول اللهﷺ ما الغیبة قال ذکرک اخاک بما یکره قال رأیت ان کان فی اخی ما اقول؟ قال ان کان فیه ما تقول فقد اغتبته و ان لم یکن فیه ما تقول فقد بهته. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۶، ص ۴۱۰، کتاب الکراهیة)

عن ابی هریرة رضی الله عنه قال قیل یا رسول اللهﷺ ما الغیبة قال ذکرک اخاک بما یکره قال رأیت ان کان فیه ما اقول قال ان کان فیه ما تقول فقد اغتبته و ان لم یکن فیه ما تقول فقد بهته. (الجامع الترمذی ج۲، ص۱۵، باب ما جاء فی الغیبة) و مثله فی العرف الشذی علی الترمذی ج۲، ص۱۵، باب ما جاء فی الغیبة.

## د ربط قلب بالشیخ وضاحت

**سوال:** جناب مفتي صاحب! د اهل تصوفو په نزد "ربط قلب بالشیخ" اصطلاح استعمالیږي۔ د دې معنی او مطلب څه شی دی؟ مهرباني وکړی د دې اصطلاح وضاحت وفرمایئ تر څو چه زړه مو جمع او تسلي مو وشي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د متصوفینو په نزد د ربط الشیخ مطلب دا دی چه خپل زړه د خپل

شیخ خوا ته داسې متوجه کړي چه د الله تعالی له خوا څخه چه کوم فیضان رحمت د شیخ (مرشد حقاني) په قلب باندې کیږي هغه د ده خوا ته هم متوجه شي یعنې د شیخ له وجهې د ده په زړه هم د رحمت فیضان نازل شي۔

## د قلندر او مجذوب مطلب

**سوال:** جناب مفتي صاحب! مونږ ډیر ځله دا اوریدلي دي چه په اولیاء الله وو کښې فلانی قلندر دی او فلانی مجذوب دی۔ او فلانی د قلندرانو له ډلې څخه دی نو اوس پوښتنه دا ده چه د دغو دواړو اصطلاحاتو مطلب څه دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د صوفیاء کرامو په اصطلاح کښې هغې ډلې ته قلندر وایي چه د هغوی د جوارحو اعمال یعنې ظاهري اعمال کم وي لیکن قلبي اعمال ئې ډیر زیات وي او قلبي اعمال دا دي چه له الله تعالی سره ئې معامله درسته وي او د زړه ساتنه ئې کړې وي چه غیر حق ته نه وي متوجه شوی بلکه اکثره وخت ئې زړه په ذکر او شغل کښې محفوظ وساتل شي او همدارنګه په زړه کښې ئې له یوه مسلمان سره کینه او حسد نه وي۔ له ټولو سره ئې نیکي او خیر خواهي وي او د وخت حقوق ادا کړي چه هیڅ وخت ئې هم له ذکر څخه خالي تیر نه شي او د غم او خوشحالۍ حقوق ادا کړي۔ د الله تعالی د نعمت په وخت کښې د هغه شکر ادا کړي او د حزن او غم په حالت کښې له الله تعالی څخه راضي وي۔ له دې برسیره نور هم ډیر قلبي اعمال دي۔ (شریعت او طریقت ص۳۴۲)

لنډه دا چه قلندر هغه سړی دی چه د ظاهري اعمالو په ځای ئې قلبي اعمالو ته ډیره توجه ورکړې وي

او مجذوب هغه وي چه عقل ئې د غیبي وارد له وجهې زائل شوی وي او کله کله ئې د احوالو او وارداتو د غلبې له وجهې په اخلاطو کښې هم تغیر راغلی وي نو د دې لپاره په علت سره ئې پیژندګلوي مشکله ده۔ البته د مجذوب سره چه کښېنې نو د زړه کشش دې د آخرت خوا ته پیدا شي او نخښه ئې دا ده چه د دې زماني اهل بصیرت پرې نکیر نه وي کړی۔ (شریعت او طریقت ص۳۴۳)

## د الصوفي لامذهب لهٗ وضاحت

**سوال:** جناب مفتي صاحب! د "الصوفي لا مذهب له" څه مطلب دی؟ په ظاهره خو دا ترې څرګندیږي چه صوفي غیر مقلد او لا مذهبه وي په داسې حال کښې چه ډیر صوفیاء کرام شافعی المذهب وي او ډیر صوفیاء کرام حنفي، مالکي او حنبلي مسلکه وي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** حکیم الامت حضرت تهانوي صاحبؒ په انفاس عیسیٰ کښې د ذکر شوي مقالې وضاحت کوي او فرمایي: چه د "الصوفي لا مذهب له" دا مطلب نه دی چه صوفي



لا مذهبه وي بلکه مطلب ئې دا دی چه صوفي محتاط وي او په هرې مسئلې کښې د احتیاط طرف غوره کوي او ورع او تقوی هم دې ته وایي۔ زمونږ فقهاء کرامو د دې تصریح کړې ده چه رعایة الخلاف و الخروج منه اولی ما لم یرتکب مکروه مذهبه چه له اختلاف څخه وتل مستحب دي تر څو چه د خپل مذهب د یوه مکروه ارتکاب ترې و نه شي۔ (انفاس عیسیٰ ص۲۸۳، ارشادات)

## د سیر الی الله او سیر فی الله مطلب

**سوال:** د دار العلوم حقانیې جناب مفتي صاحب! بنده ته د تصوف په اړه یوه مسئله پیښه شوې ده او هغه دا چه د سیر الی الله او سیر فی الله په مطلب نه پوهیږم۔ مهرباني وکړئ د تصوف د دې اصطلاح وضاحت را ته وکړئ؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د ذکر شوي صورت په وضاحت کولو سره حضرت تهانوي رحمه الله فرمایي چه د تعلق مع الله دوه درجې دي۔ یو سیر الی الله دی چه دا محدوده درجه ده او یو سیر فی الله ده چه دا غیر محدوده درجه ده۔ سیر الی الله دا ده چه د نفس د امراضو علاج ئې شروع کړ تر دې پورې چه له امراضو څخه شفا پیدا کړي او په ذکر او شغل سره تعمیر شروع کړي تر دې پورې چه د ذکر له هغو انوارو څخه معمور (آباد) یعنې د تخلیې او تحلیې قواعد وپیژني او موانع ئې مرتفع شي۔ او د امراضو له معالجې څخه خبر شي، د نفس اصلاح ئې وشي، اخلاق رذیله ئې زائل شي، په اخلاق حمیده سره او د ذکر په انوارو ئې زړه ښایسته شي۔ او په طبیعت ئې د اعمال صالحه رغبت پیدا شي او په اعمالو او عبادت کښې آساني ورته پیدا شي، نسبت او تعلق مع الله ورته حاصل شي نو دا سیر الی الله شو۔ او له دې نه وروسته سیر فی الله شروع کیږي چه د الله تعالی د ذات او صفاتو د استعداد موافق ئې انکشاف شروع کیږي۔ په مخکښیني تعلق کښې ئې زیاتوالی راځي، د اسرارو او حالاتو ورد ئې شروع کیږي چه دا غیر محدوده درجه ده۔ او دې ته سیر فی الله وایي۔ (شریعت او طریقت ص۳۶۰)

## د "استغفارنا یحتاج الی استغفار کثیر" مطلب

**سوال:** جناب مفتي صاحب! د عید میلاد النبي په موقع کښې مې له یوه واعظ څخه د یوه بزرګ یوه مقوله واوریده چه زمونږ استغفار د نورو ډیرو استغفارونو محتاج دی۔ زه په دې خبرې باندې پوه نه شوم۔ تاسو مهرباني وکړئ ما د دې مقولې په مطلب باندې پوه کړئ؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** دا مقوله د حضرت سري سقطي رحمه الله مقوله ده۔ دی فرمایي چه "استغفارنا یحتاج الی استغفار کثیر" چه مطلب ئې دا دی چه مونږ چه کوم استغفار کوو یوازې د رسم د پوره کولو لپاره د استغفار الفاظ استعمالوو او په زړه کښې د ګناه د پرېښودلو هیڅ اراده او قصد مو نه وي بلکه په زړونو کښې مو د ګناه د بار بار کولو قصد وي۔ او دا د استهزاء صورت دی کوم چه دا صورت پخپله یوه عظیمه ګناه ده۔ نو د دې ډول استغفار په باره کښې ئې

فرمایلي دي چه "استغفارنا یحتاج الی استغفار کثیر" یعنې زمونږ استغفار د ډیرو استغفارونو محتاج دی۔

## د زړه د روښانه کولو طـــــــریقه

**سوال:** په زړه کښې رڼا او نور څنګه پیدا کیږي؟ او طریقه ئې څه ده؟ د شریعت مطهره په رڼا کښې زمونږ لارښوونه وکړی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د عبادتو په کولو سره او له محرماتو او ګناهونو څخه په لرې اوسیدو باندې په زړه کښې نور پیدا کیږي او د منهیاتو په کولو سره د انسان زړه مړ کیږي۔ له دې وجهې د زړه په ایماني نور سره د روښانه کولو لپاره ضروري ده چه تاسو د الٰهي عبادت خوا ته متوجه شی او له منکراتو څخه ځان وساتی انشاء الله زړونه به مو منور وګرځي۔

## د ریاکاري له ویرې څخه نوافل او د اسې نور عبادت د پریښودلو حکم

**سوال:** جناب مفتي صاحب! زما د نوافلو د ادا کولو او ذکر او اذکار سره ډیر شوق دی لیکن ځکه ئې نه کوم چه خلك به ووایي چه ډیر لوی عبادت ګذار دی تر څو چه چیرته په ما کښې ریا پیدا نه شي نو آیا زما دا عمل صحیح دی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په عبادت کښې ریا کاري اګر که لویه ګناه ده۔ یو مسلمان تر خپله وسه پورې باید چه ځان ترې وساتي۔ لیکن د ریاکارۍ له ویرې د نیك عمل پریښودل هم د کومې عقلمندۍ او هوښیارۍ خبره نه ده۔ نو د دې لپاره کوم نیك عمل (نفل، ذکر او اذکار) ته یوائې د دې لپاره پریږدې چه د اسې نه وي چه په دې کښې ریا کاري را څخه وشي دا بالکل نامناسبه او د شرعې خلاف عمل دی۔ تا ته چه کله هم د عبادت شوق پیدا کیږي نو فوراً په نوافلو او ذکر او اذکارو باندې شروع وکړه او ښه پکښې مشغول شه۔

## یوائـــې د سلام په اچولو سره پرته له کوم شـــــرعي عذره له چا سره په خبرې نـــــه کولو باندې وعید له منځه ځي

**سوال:** له یو: صاحب سره مې دومره تعلقات خراب دي چه زه خبرې کول هم نه ورسره غواړم او نه ئې ورسره کوم۔ لیکن په حدیث شریف کښې چه کوم وعید د دې په باره کښې وارد دی له هغه څخه هم ډاریږم۔ نو ماته یو د اسې تدبیر وښایاست چه زما له هغه سره ډیرې خبرې اترې هم رانه شي او له دې وعید څخه هم بچ شم؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د یوه مسلمان وررور سره له دریو ورځو څخه زیات پرته له کوم شرعي عذره خبرې نه کول جائز نه دي۔ لیکن د دې مطلب دا نه دی چه د هغه سره د اسې دوستانه تعلقات جوړ کړی چه شپه او ورځ له هغه سره توقې او مسخرې وکړی۔ او هر وخت ورسره کښینی بلکه یوائې د سلام په اچولو سره د خبرې اطلاق کیږي۔ له دې وجهې که چیرته له



هغه سره د کوم شرعي عذر له وجهې خبرې اترې نه کوې نو مه ئې کوه یوائې سلام اچول ورته کافي دي۔ په دې سره هم ستا غاړې خلاصیږي۔ تر ډیره وخته پورې ګپ شپ لګول او خبرې اترې کول ضروري نه دي۔

## د خلافت او سجاده نشیني شـــــرعي حیثیت

**سوال:** جناب مفتي صاحب! نن صبا په خانقاهي نظام کښې یو عام قانون دی چه کله یو پیر زوړ شي نو هغه یو څوك د خپل ځان قائم مقام او جان نشین مقرروي او د خپلو مریدانو، ملګرو او خپلوانو په وړاندې ئې دستاربندي کوي او په دې سلسله کښې ډیر په جوش او خروش سره تقریب او مجلس منعقدوي۔ نو آیا په اسلام کښې یو څوك خپل له خپلې خوا څخه د خلیفه د ټاکلو ګنجائش شته او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** یو اهل سړی خپل جانشین ټاکل او د خپل ځان له خوا څخه ئې خلیفه جوړول کوم د شرعې خلاف عمل نه دی۔ په اسلامي تعلیماتو کښې ئې ګنجائش موجود دی۔ د یوه روایت مطابق کوم چه امام بخاري رحمه الله او امام مسلم رحمه الله روایت کړی دی چه رسول الله ﷺ حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه ته د خپل خلافت او جانشیني لپاره اشاره کړې وه۔ لیکن په دې کښې د دې خبرې خیال ساتل ضروري دي چه کوم یو خپل جانشین او یا خلیفه ټاکل مقصود وي په هغه کښې به هغه ټول صلاحیتونه موجود وي کوم چه په یو تابع د شریعت او مصلح پیر او مرشد کښې شتون ولري۔ او چه په چا کښې اهلیت نه وي اسلام هغه ته د خلافت د ورکولو او قائم مقام د جوړولو اجازه نه ورکوي۔ نن صبا ډیرو نا اهلو خلکو ته خلافت ورکول کیږي کوم چه د بې دینۍ او فساد ذریعه جوړیږي۔

لما قال العلامه اشرف علي التهانويؒ: د اکثرو مشائخو عادت دی چه هغوی د فیض د القاء او سلسلې د اجراء لپاره له خپلو اتباعو څخه یو یا ډیر کسان خپل جانشین او خلیفه ټاکي کله په خپل ژوند کښې او کله د وفات له قید سره۔ لیکن له دې ټولو څخه مقصود د ضرورتونو مشترك والی دی۔ البته دا ضروري ده چه هغه سړی اهل وي۔ د حدیث شریف له اصل څخه ثابتیږي چه یوه ښځه د حضور ﷺ په خدمت کښې حاضره شوه او د کوم کار په باره کښې ئې خبرې وکړې۔ ده مبارك ﷺ ورته وفرمایل چه دوباره راشه اوکه چیرته دې زه پیدا نه کړم نو حضرت ابو بکر صدیق رضی الله عنه ته لاړه شه۔ دې حدیث لره بخاري او مسلم رحمهما الله روایت کړی دی۔ لیکن کوم رسم او رواج د خلیفه توب چه مشهور شوی دی چه کله د شیخ په ژوند او کله ئې په وفات کښې د سلسلې خلك سره جمع کیږي او د شیخ د اقاربو او خدامو څخه کوم چه زیات مخصوص ووینې که هغه اختصاص دنیوي اختصاص هم وي او ګواکه چه په هغه کښې اهلیت هم نه وي هغه ته دستاربندي کوي۔ دا بالکل د فساد طریقه، د طالبینو راهزني او د عوامو د دین او د دنیا اضاعت ده۔ امام مالك روایت کوي چه حضرت عمر رضی الله عنه

وفرمایل چه زه د خلافت دا عهده د اسې سړي ته نه حواله کوم چه اهل ئې نه وي- البته د داسې سړي لپاره ئې خوښوم چه رغبت ئې د اهل اسلام د توقیر خوا ته وي- پس دا خلك د نورو په نسبت ډیر مستحق دي- په دې حدیث سره د نا اهلو خلکو د خلیفه توب ابطال ثابتیږي- (شریعت او طریقت ص۴۴۳، پنځم باب، متفرقات)

# كتاب السياسة

قال الله تعالیٰ

# یا ایها الذین اٰمنوا اطیعوا الله

# و اطیعوا الرسول

# و اولی الامر منکم



# کتاب السیاسة

## د سیاست احکام او مسئلې

### د سیاست حقیقت او د هغه حکم

**سوال:** سیاست څه ته وایي؟ د شریعت له مخې په سیاست کښې برخه اخیستل څه حکم لري؟ آیا حضور ﷺ او صحابهٔ کرامو رضي الله عنهم اجمعین چېرته په سیاست کښې برخه اخیستې ده او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د سیاست معنې او مفهوم د لغت د کتابونو له مخې داسې څرګندیږي۔

"پاس داشتن ملك و حکم راندن بر رعیت". (شمس اللغات ص۲۶۶)

السیاسة القیام علی الشیء بما یصلحه. و السیاسة فعل السائس یقال هو یسوس الدواب اذا قام علیها و راضها. و الوالی یسوس رعیته. (لسان العرب ج۶، ص۴۲۹/۴۳۰)

له دغو تعریفاتو څخه څرګندیږي چه سیاست یو داسې فن دی چه د هغه په ذریعه د ملك او قوم د بهترۍ لپاره فکر او تدبیر پکښې کیږي۔ اګر که د موجوده دور تش په نامه جمهوریت خوښوونکو دوه مخې پالیسي او دوکه او فریب د سیاست مید ان داسې بدنام کړی دی چه له وجهې ئې د کوم شریف او باعزت سړي لپاره په دې مید ان کښې قدم کیښودل د ملامت والي موجب ګڼل کیږي۔ لیکن د دې تر څنګ د شرعي نقطه نظر له مخې د اسلامي سیاست بُنیاد دا دی چه ملك او قوم ته یو داسې نظام مهیا شي چه په هغه باندې د تګ په صورت کښې انسان له کامیابیو سره مخامخ شي او د دې مقصد لپاره الله تبارك و تعالیٰ ګڼ شمیر انبیاء کرام لیږلي دي چه انسانانو ته داسې ښوونې وکړي چه په هغو باندې د عمل په کولو سره انسان په دُنیا او آخرت کښې له کامیابي سره هم څنګ شي۔

دین او مذهب د انسان له عقائدو څخه را واخله د سیاست تر مید انه پورې د اصلاح غوښتنه کوي۔ سیاست لکه څرنګه چه د دُنیوي نظامونو پورې تړلی دی د دې لپاره دا د شریعت یوه مستقله موضوع ده۔

د اسلام د قانون شارح (څیړونکی) علامه ابو الحسن الماورديؒ فرمایي:

الامامة موضوعة لخلافة النبوّة فی حراسة الدین و سیاسة الدنیا. (الاحکام السلطانیة ج۲، ص۵، الباب الاول فی عقد الامامة)

السیاسة "استصلاح الخلق بارشادهم الی ما فیه مصلحتهم. النهج المتبع فی تدبیر مرفق من مرافق الحیاة العامة. تدبیر المعاش مع العموم علی طریق العدل. (لاروس ص۶۸۷)

همدا وجه ده چه د انبیاء کرامو په تعلیماتو کښې سیاست یوه مستقله شعبه پاتې شوې ده۔ په

حدیث شریف کښې راځي چه:

عن النبی ﷺ قال کانت بنو اسرائیل تسوسهم الانبیاء کلما هلك نبی خلفه نبی و انه لا نبی بعدی و ستکون خلفاء فتکثرون قالوا فما تامرنا یا رسول اللهﷺ قال فوا ببیعة الاول فالاول و اعطوهم حقهم فان الله سائلهم عما استرعاهم.

و قال النوویؒ فی شرح المسلم تحت هٰذا الحدیث: "قولهﷺ کانت بنو اسرائیل تسوسهم الانبیاء کلما هلك نبی خلفه نبی". ای یتولون امورهم کما یفعل الامراء و الولاة با لرعیة ـــــ "و السیاسة القیام علی الشیء بما یصلحه. (النووی شرح المسلم ج۲، ص۱۲۶، کتاب الامارة، باب وجوب الوفاء ببیعة الخلیفة)

سیاست یو د اسې عمل دی چه د هغه په ذریعه سره انسان د خلافت منصب ته رسیدلی شي او د ا عمل پخپله له سرور کائناتﷺ څخه هم ثابت دی۔

د لاندینی آیت کریمه چه: وَ اجْعَلْ لِّیْ مِنْ لَّدُنْكَ سُلْطَانًا نَّصِیْرًا۔ (سورة الاسراء، آیت۸۰) په تفسیر کښې مفسرین حضرات د اسې لیکي:

قال الامام طبریؒ: و اجعل لی ملکاً ناصراً ینصرف علی من ناوانی و عزاً اقیم به دینك و ادفع به عنه من اراده بسوء. (جامع البیان ج۹، ص ۱۵۰، سورة بنی اسرائیل)

و قال الامام شهاب الدین الآلوسی البغدادیؒ: وَ اجْعَلْ لِّیْ مِنْ لَّدُنْكَ سُلْطَانًا نَّصِیْرًا بنی اسرائیل و علّم نبی الله انه لا طاقة له بهٰذا الامر الا بسلطان فسأل سُلطاناً نصیراً لکتاب الله تعالی و حدوده و فرائضه فان السلطان عزة من الله عزّ و جلّ جعلها بین اظهر عباده لو لا ذٰلك لا غار بعضهم علی بعض و اکل شدیدهم ضعیفهم. (روح المعانی ج۱۵، ص ۱۴۴، سورة بنی اسرائیل)

و قال الامام بیضاویؒ: و کذٰلك کل نبی استخلفهم فی عمارة الارض و سیاسة الناس و تکمیل نفوسهم و تنفیذ امره فیهم. (تفسیر بیضاوی شریف ص ۶۳/۶۲، سورة بنی اسرائیل)

## په مروجه سیاست کښې د ګډون حکم

**سوال:** د موجوده زمانې په سیاست کښې برخه اخیستل او کوشش ورته کول شرعاً څه حکم لري؟ بینوا توجروا۔

**الجواب:** په موجوده زمانه کښې خلك په سیاست کښې د مختلفو مقاصدو د لاس ته راوړلو لپاره برخه اخلي۔ ځینې خلك د خپل سیاسي دوکان د پلنولو لپاره خوځند په نظر راځي په د اسې حال کښې چه د غیر شرعي نظامونو لکه سوشلزم، نیشنل ازم، کپیټلزم او د اسې نورو لپاره محنت کوي او ځینې خلك په علاقایي او قومي تعصبونو په سیاست کښې خپله بقاء وینې، د دغو مقاصدو د حصول لپاره په سیاست کښې برخه اخیستل او د هغه لپاره جد او جهد کول په یقیني توګه له بې ځایه او بې فائدې سعیې سره برابره ده په د اسې حال کښې چه د اسلامي معاشرې د قیام لپاره کوشش کول د وخت او زمانې له اهم ترینو ضرورتونو څخه دی۔ د دې لپاره که چېرته یو څوك د د اسې بې دینه نظام د ترویج او خپرولو په مقابله کښې د اسلامي معاشرې د قیام لپاره جدو جهد کوي نو یقیناً د ا یو مستحسن اقدام دی بلکه د بې دینې د چپاول د مقابلې لپاره د خپل طاقت او همت مطابق په دې مید ان کښې برخه اخیستل د



علماء کرامو د منصبي فرائضو برخه ده او یو عظیم جهاد دی۔

لما قال علیه الصلوٰة و السلام: عن ابی سعید الخدریؓ عن النبیﷺ قال ان من اعظم الجهاد کلمة عدل عند سلطان جائر. (ترمذی ج۲، ص ۴۰، ابواب الفتن)

و قال العلامة مُلّاً علی القاری رحمه الله: تحت هٰذا الحدیث "افضل الجهاد کلمة حق عند سلطان جائر". و قال المظهر و انّما کان افضل لان ظلم السلطان یسری فی جمیع من تحت سیاسته و هو جم غفیر فاذا نهاه عن الظلم فقد اوصل النفع الی خلق کثیر بخلاف قتل کافر. (مرقاة المفاتیح ج۷، ص ۲۲۲، کتاب الامارة و القضاء، الفصل الثانی) و مثله فی ابی داؤد ج۲، ص ۲۴۱، کتاب الملاهم. ب. الامر و النهی.

البته چېرته چه علماء کرام د کوم اصلاحي اړخ په ځای پخپله د کوم غیر شرعي سیاست ښکار شي او خپل دیني تشخص تر پښو لاندې کړي نو په د اسې حالت کښې د خپل دیني تشخص ساتنه د علماء کرامو تر ټولو لویه ذمه واري ده۔

لما قال الله تبارك و تعالی: یٰاَیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا عَلَیْکُمْ اَنْفُسَکُمْ لَا یَضُرُّکُمْ مَّنْ ضَلَّ اِذَا اهْتَدَیْتُمْ اِلَی اللّٰهِ مَرْجِعُکُمْ جَمِیْعًا فَیُنَبِّئُکُمْ بِمَا کُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ☆ (المائدة، آیت ۱۰۵)

## د شرعي امارت د برپاکولو حکم

**سوال:** په پاکستان کښې مختلفې ډلې په انتخاباتو کښې برخه اخلي چه د هرې ډلې جلا جلا مقصدونه وي او ځینې ډلې خو تر کامیابیدو وروسته د غیر شرعي نظامونو د جاري کولو کوششونه کوي په د اسې حال کښې چه دیني ډلې د اسلامي نظام د جاري کولو لپاره په انتخاباتو کښې برخه اخلي۔ نو اوس د پاکستان د خلکو په ځانګړې توګه په مسلمانانو باندې ئې د شرعي نقطۀ نظر له مخې کومه ذمه واري اړول کیږي چه په ملك کښې د اسلامي خلافت یا جمهوري نظام د برپا کولو د حمایت کوونکو ډلو څخه به کومه ډله کامیابوي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب:** د ټولو مسلمانانو د ا ذمه واري ده چه یوه د اسې ډله به د اقتدار په چوکۍ ته رسوي کوم چه په عملي توګه اسلامي نظام په ملك کښې جاري کولی شي۔ په شرعي نظام کښې د خلیفه یا امیر لویې ذمه واری د ا دي:

د الٰهي احکامو په عملي توګه جاري کول، حدود او قصاص جاري کول، د جُمعې او اخترونو لمونځونه جاري کول، اسلامي لښکر منظم کول، د غلو او لارشکوونکو له منځه وړل، د عوامو جګړې او اختلافات حل کول او د اسې نور۔ د شرعي نقطۀ نظر له مخې په ټولو مسلمانانو باندې واجب دي چه د د اسې خلافت په برپا کولو کښې یو له بل تعاون او مرسته وکړي او که نه نو ټول به ګنهګار وي۔

لما قال الامام سعد الدین تفتازانیؒ: ثم الاجماع علی ان نصب الامام واجب و انما الخلاف فی انهٗ یجب علی الله او علی الخلق بدلیل سمعی او عقلی و المذهب انهٗ یجب علی الخلق سمعاً لقوله عم من مات و لم یعرف امام زمانه فقد مات میتة جاهلیة. (شرح العقائد النسفی ص ۱۱۰، الخلافة و الامارة)

و قال الامام شاه ولی الله محدث الدهلوی رحمه الله: اعلم انه یجب ان یکون فی جماعة المسلمین خلیفة لمصالح لا تتم الا بوجوده و هی کثیرة جداً یجمعها صنفان، احدهما ما یرجع الی سیاسة المدینة من ذب الجنود التی تغزوهم و تقهرهم و کف الظالم عن المظلوم و فصل القضایا و غیر ذلک.......... و ثانیهما ما یرجع الی الملّة و ذلک ان تقویه دین الاسلام علی سائر الادیان لا یتصوّر الا بان یکون فی المسلمین خلیفة ینکر علی من خرج من الملّة و ارتکب ما نصحت علی تحریمه او ترک ما نصت علی افتراضه اشد الانکار و بذل اهل سائر الادیان یأخذ منهم الجزیة عن یدهم صاغرون. (حجة الله البالغة ج ۲، ص ۱۴۸، ابواب سیاسة المدن)

و قال الامام عمر النسفیؒ: و المسلمون لا بد لهم من امام یقوم بتنفیذ احکامهم و اقامة حدودهم و سد ثغورهم و تجهیز جیوشهم و اخذ صدقاتهم و قهر المتغلبة و المتلصصة و قطاع الطریق و قامة الجمع و الاعیاد و قطع المنازعات الواقعة بین العباد و قبول الشهادات القائمة علی الحقوق. (شرح العقائد النسفی ص ۱۱۰، الخلافة و الامارة) و مثله فی احکام السلطانیة لابی یعلی ص ۱۹، فصول فی الامامة.

## په اسلام کښې د امیر د انتخابولو طـــریقه

**سوال:** په اسلام کښې د امیر د انتخاب یعنې کوم سړی د امیر او خلیفه په توګه د مقررولو لپاره کومه طریقه باید خپله شي؟ بینوا توجروا.

**الجواب:** په اسلامي سیاست کښې د امیر د انتخابولو لپاره څلور طریقې لیدل کیږي.

﴿۱﴾ د لومړي ډول مثال د حضرت ابو بکر صدیق رضی الله عنه خلافت دی چه یو څو د اهل حل او عقد غړي را یو ځای شول او د حضرت ابو بکر صدیقؓ په لاس ئې بیعت وکړ او له هغه وروسته عامو خلکو بیعت کول ترې شروع کړل.

لما قال العلامة الماوردی رحمه الله: ان بیعة ابی بکر رضی الله عنه انعقدت بخمسة اجتمعوا علیها ثم تابعهم الناس فیها و هم عمر بن الخطاب و ابو عبیدة بن الجراح و اسید بن حضیر و بشر بن سعد و سالم مولی ابی حذیفة رضی الله عنهم. (الاحکام السلطانیة ص ۷، الباب الاوّل فی عقد الامامة)

﴿۲﴾ د استخلاف بل صورت دا وي چه د وخت خلیفه د اهل حل او عقد له څو غړو سره د مشورې په کولو سره د کوم د اسې سړي په باره کښې وصیت وکړي چه په هغه کښې د خلافت ټول شرائط موجود وي. لکه څرنګه چه حضرت ابو بکر صدیق رضی الله عنه د حضرت عمر فاروق رضی الله په باره کښې وصیت کړی وو چه تر ما وروسته به حضرت عمر فاروق رضی الله عنه خلیفه وي.

لما قال الامام شاه ولی الله محدث الدهلویؒ: طریق دوم استخلاف خلیفه است متجمع شروط را یعنی خلیفهٔ عادل بمقتضای نصح مسلمین شخصی را از میان مستجمعین شروط خلافت اختیار کند و جمع نماید مردمان را و نص کند باستخلاف وی و وصیت نماید باتباع وی. پس این شخص میان سائر مستجمعین خصوصیتی پیدا کند و قوم را لازم است که همان شخص را خلیفه سازند انعقاد خلافت حضرت عمر فاروق رضی الله عنه بهمین طریق بود. (ازالة الخفاء ص ۵، مقصد اول)

﴿۳﴾ **شوری:** د دې مطلب دا وي چه د وخت خلیفه به د څو کسانو یوه شورې جوړه کړي چه زماله



خلافت څخه وروسته به دا کسان مشوره سره کوي او یو څوک به خلیفه ټاکي لکه څرنګه چه حضرت عمر فاروق رضی الله عنه د شپږو کسانو یوه شورې جوړه کړې وه او د دې شورې غړو حضرت عثمان رضی الله عنه خلیفه ټاکلی وو.

لما قال الامام ابو الحسن الماورديؒ: و الثانی ان عمر رضی الله عنه جعل الشوریٰ فی ستة لیعقد لاحدهم برضاء الخمسة. (الاحکام السلطانیة ص ۷، الباب الاول فی عقد الامامة)

﴿۴﴾ **استیلاء:** د دې مطلب دا دی چه کوم سړی د نومړو دریو طریقو څخه پرته په کومې بلې طریقې باندې خلیفه شي، بیا استیلاء هم په دوه قسمه ده. (۱) یوه هغه استیلاء ده چه یو څوک په زور او طاقت سره خپل ځان خلیفه کړي او په هغه کښې د خلافت ټول شرائط موجود وي نو دا ډول شرعاً جائز دی. (۲) هغه استیلاء ده چه یو څوک په زور او طاقت سره ځان خلیفه وټاکي لیکن د خلیفه شرائط پکښې موجود نه وي نو دا ډول به د ضرورت د نظریې لاندې منل کیږي، شرعاً د هیڅ یوه مسلمان لپاره د هغه په خلاف قدم پورته کول صحیح نه دي. البته تر څو پورې چه له د اسې خلیفه څخه د دین په ضروریاتو کښې کمی نه وي راغلی نو په مسلمان رعیت باندې ئې اطاعت کول او له هغه سره جهاد او د اسې نورو ته ورتلل لازم دي.

حضرت شاه ولی الله محدث دهلویؒ د اسې خلافت په باره کښې فرمایي:

طریق چهارم استیلاء است، چون خلیفه بمیرد و شخصی متعدی خلافت گردد بغیر بیعت و استخلاف و همه را بر خود جمع سازند بایتلاف قلوب یا بقهر و نصب قتال خلیفه شود و لازم گردد بر مردمان اتباع فرمان او در آن چه موافق شرع باشد. و این دو نوع است.

یکی آنکه مستولی مستجمع شروط باشد و صرف منازعین کند بصلح و تدبیر از غیر ارتکاب محرمی و این قسم جائز است و رخصت و انعقادِ خلافت معاویه بن سفیان بعد حضرت مرتضیٰ و بعد صلح امام حسین رضی الله عنه بهمین نوع بود.

دیگر آنکه مستجمع شروط نباشد و صرف منازعین کند بقتال و ارتکاب محرم و ان جائز نیست و فاعل آن عاصی است لیکن واجب است قبول احکام او چون موافق شرع باشد و اگر عُمّال او اخذ زکوٰة کنند از ارباب اموال ساقط شود و چون قاضی او حکم نماید نافذ گردد و همراه او جهاد می توان کرد. و این انعقاد بنا بر ضرورت است زیرا که در عزل او افنائی نفوس مسلمین و ظهور حرج و مرج شدید لازم می آید و بیقین معلوم نیست که این شداید مفضی شود به اصلاح یا نه. یحتمل که دیگری بدتر از اوّل غالب شود پس ارتکاب فتن که قبح او متیقن بود است چرا باید کرد برای مصلحتی که موهوم است و محتمل و انعقاد خلافت عبد الملک بن مروان و اوّل خلفای بن عباس بهمین نوع بود. (ازالة الخفاء عن خلافة الخلفاء ص ۵، مقصد اول)

و قال الامام شاه ولی الله فی طرق انعقاد الخلافة: و تنعقد الخلافة بوجوه.

﴿۱﴾ بیعة اهل الحل و العقد من العلماء و الرؤساء و امراء الاجناد ممن یکون لهٗ رأی و نصیحةً للمسلمین کما انعقدت خلافة ابی بکر رضی الله عنه.

﴿۲﴾ و بان یوصی الخلیفة الناس به کما انعقدت خلافة عمر رضی الله عنه.

(۳) او یجعل شوریٰ بین قوم کما کان عند انعقاد خلافة عثمان بل علیؓ ایضاً رضی الله عنهما.
(۴) او استیلاء رجل جامع للشروط علی النّاس و تسلّطه علیهم کسائر الخلفاء بعد خلافة النبوّة ثم ان استولی من لم یجمع الشروط لا ینبغی ان یبادر الی المخالفة لان خلعه لا یتصوّر غالباً الّا بحروب و مضائقات و فیها من المفسدة اشد مما یرجیٰ من المصلحة. و سئل رسول اللهﷺ عنهم فقیل افلا ننابذهم؟ قال لا ما اقاموا فیکم الصلوٰة و قال الا ان تروا کفراً بواحاً عندکم من الله فیه برهان و با لجملة فاذا کفر الخلیفة بانکار ضروری من ضروریات الدّین حل قتاله بل وجب و الّا لا. (حجة الله البالغة ج۲، ص۱۴۹/۱۵۰، ابواب السیاسة المدن، انعقاد الخلافة بوجوه) و مثله فی الاحکام السلطانیة لابی یعلیٰ ص۲۳، فصول فی الامامة.

## د ښځې بـــــادشاهي يا امامت شرعاً ناجـــائز دی

**سوال:** د اسلامي نقطهٔ نظر له مخې کومه ښځه د کوم اسلامي ملك بادشاه جوړيدلی شي او که نه؟ که چېرته په مروجه جمهوري نظام کښې کومې ښځې ته اقتدار ور وسپارل شي نو په د اسې حالت کښې به ئې شرعاً څه حيثيت وي؟

**الجواب:** د قرآن او حديثو له مخې د ملك د بادشاه يا خليفه د جوړيدو لپاره له نورو شرائطو سربيره نارينتوب يو اهم شرط دی. د خلافت په اسلامي نظام کښې هيچېرته د ا ښه نه بريښي چه کومې ښځې ته د اقتدار واګې په لاس ورکړل شي.

لما قال الامام سعد الدين التفتازانيؒ: (تحت قول النسفی) "و يشترط ان يكون من اهل الولاية المطلقة الكاملة". ای مسلماً حراً ذکراً عاقلاً بالغاً...... و النساء ناقصات عقلٍ و دينٍ. (شرح العقائد النسفی ص۱۱۳، الخلافة و الامارة)
و قال العلامة ابن عابدينؒ: (تحت قول در مختار) "و يشترط كونه مسلماً حراً ذکراً". و لان النساء امرن با لقرار فی البيوت فکان مبنی حالهن علی الستر و اليه اشار النبیﷺ حيث قال کيف يفلح قوم تملکهم امرأة. (رد المحتار ج۱، ص۴۰۵، باب الامامة)

د بادشاه تر جوړيدو وروسته د هغه د منصبي فرائضو په ښه توګه د ادا کولو لپاره د کومو خبرو چه ضرورت دی الله تعالیٰ هغه په نارينه وو کښې پيدا کړي دي. البته د کورني او خانداني امورو د تکفّل ذمه واري الله تعالیٰ د ښځې په اوږو اچولې دی. د دې لپاره ښځې ته په دې ميدان کښې د خپلو ذمه واريو د په ځای کولو لپاره چه د کومو شيانو ضرورت وو په مکمله توګه هغې ته ورکړ شوي دي په د اسې حال کښې چه په نارينه وو کښې هغه نشته.
د ښځې لپاره د پردې رعايت، له پرديو سره له بې ځايه ګډون څخه ممانعت او د خپل عصمت د لمنې پاك ساتل د اسې امور دي چه د قيادت ميد ان ته ئې له ورتلو څخه منع کوي.
د رسول اللهﷺ د فرمان مطابق د کوم قوم به تر دې لويه بد نصيبي کومه وي چه خپله حکمراني ښځې ته وسپارله.
لما ورد فی الحديث: عن ابی بکرة رضی الله عنه قال نفعنی الله بکلمة سمعتها من رسول اللهﷺ ايام الجمل بعد ما كدت ان الحق باصحاب الجمل فاقاتل معهم قال لما بلغ رسول اللهﷺ ان اهل فارس قد ملكوا عليهم بنت کسریٰ قال



لن يفلح ولّوا امرهم امرأة. (صحيح البخاری ج۲، ص۶۳۷، کتاب المغازی)
و قال الامام بغویؒ: (تحت هٰذا الحديث) اتفقوا علی ان المرأة لا تصلح ان تكون اماماً و لا قاضياً لان الامام يحتاج الی الخروج لاقامة امر الجهاد و القيام بامور المسلمين....... و لان المرأة ناقصة و الامامة و القضاء من کمال الولايات فلا يصلح لها الا الكامل من الرّجال. (شرح السّنة ج۱۰، ص۷۷، کتاب الامارة و القضاء، باب کراهية تولية النساء)
قال العلامة الامام القرطبیؒ: و اجمعوا علی ان المرأة لا يجوز ان تكون اماماً. (الجامع لاحکام القرآن ج۱، ص۲۷۰، سورة البقرة)

چونکه د رسول اللهﷺ فرمان د يو کافر قوم په باره کښې دی د دې لپاره د هيڅ يو قوم له دې څخه مستثنٰی کول جائز نه دي. که په مروجه جمهوريت کښې يا د خلافت په اسلامي طريقه کښې ښځې ته د ا موقع په لاس ورکړ شي نو په هر حالت کښې به د ښځې حکمراني يو خدايي عذاب وي.

## د اولو الامـــــر حقيقت

**سوال:** په جمهوريت يا شهنشاهيت کښې چه کوم خلك د حاکميت دعوه لرونکي دي آيا د ا خلك د "اولو الامر" په حقيقت کښې د اخل دي او که نه؟ تر څو چه د هغو تابعداري د رعيت لپاره لازم شي او د هغه په خلاف آواز پورته کول بغاوت وبلل شي؟

**الجواب:** د شريعت له مخې د "اولو الامر" حقيقت له خلافت علی منهاج النبوّت سره خاص نه دی بلکه اميران او بادشاهان هم که چېرته د عوامو د حقوقو د تحفظ ذمه واري په ښه توګه وپالي او د ټاکنې په کومه ځانګړې توګه ټاکل شوی وي او د عوامو تائيد ورته حاصل وي که په جمهوريت کښې وي يا د حکومت په کوم بل نظام کښې وي نو د ا خلك هم په "اولو الامر" کښې ګڼل کيږي.

لما قال الامام جصاصؒ: و الصحيح عندی انهم الامراء و العلماء جميعاً امّا الامراء فلان اصل الامر منهم و الحکم اليهم اما العلماء فلان سؤالهم واجب متعين علی الخلق و جوابهم لازم. (احکام القرآن ج۱، ص۱۸۹، سورة البقرة)

البته که چېرته اميران او سلاطين د کوم خلاف شرع نظام په مسلمانانو باندې د نافذولو کوشش وکړي نو د هغو په خلاف د آواز پورته کول نه يوازې د ا چه جائز دی بلکه د مسلمانانو ديني او اخلاقي ذمه واري ده.

لما قال الامام قرطبیؒ: فی تفسير "اولی الامر" روی عن علی ابن ابی طالب رضی الله عنه انهٗ قال حق علی الامام ان يحکم با لعدل و يؤدی الامانة و اذا فعل ذٰلك وجب علی المسلمين ان يطيعوه لان الله تعالیٰ امر باداء الامانة و العدل ثم امر بطاعته. (تفسير الجامع لاحکام القرآن ج۵، ص۲۵۹، سورة النسآء)
لما قال الامام الشوکانیؒ: "و اولی الامر" هم الائمة و السلاطين و القضاة و کل من کانت لهٗ ولاية الشّرعية لا ولاية طاغوتية و المراد طاعتهم فيما يأمرون به و ينهون عنه ما لم تکن معصية فلا طاعة لمخلوق فی معصية الله کما ثبت ذٰلك عن رسول اللهﷺ (فتح القدير للشوکانی ج۱، ص۴۸۱، سورة النساء) و مثله فی جامع البيان للطبری ج۴، ص۱۴۷، سورة النساء.

## خـــــلافت یا ملوکیت

**سوال:** خلافت علٰی منهاج النبوّت تر څه وخته پورې وو او له هغه وروسته د حکومت نظام د خلافت په ځای ملوکیت ته منتقل شو؟ همد ارنګه په خلافت او ملوکیت کښې څه فرق دی او د ملوکیت دور له کوم وخت څخه شروع کیږي؟

**الجواب:** د خلافت علٰی منهاج النبوّت دور پرله پسې تر دیرشو کالو پورې وو بیا له هغه وروسته د ملوکیت دور شروع شو. البته په دې منځ کښې د اسې خلفاء راغلي دي چه د هغو د عدل او انصا له وجهې د هغو د حکومت دورې هم په خلافت علٰی منهاج النبوّت کښې شمارل کیږي.

هو! د حضور ﷺ د فرمان مطابق د خلافت علٰی منهاج النبوّت دور تر دیرشو کلونو پورې پاتې وو. له هغه وروسته د مسلمانانو د خپل منځي اختلافاتو په وجه خلافت په ملوکیت باندې بدل شو.

لما ورد فی الحدیث: قال رسول الله ﷺ الخلافة فی اُمّتی ثلاثون سنة ثم ملك بعد ذٰلك. ثم قال سفینة امسك خلافة ابی بكرؓ ثم قال و خلافة عمرؓ و خلافة عثمانؓ ثم قال امسك خلافة علیؓ فوجدناها ثلاثین سنةً قال سعید فقلت لهٗ ان بنی اُمیّة یزعمون ان الخلافة فیهم قال كذبوا بنوا الزرقاء بل هُم ملوك من شر الملوك. (ترمذی ج۲، ص ٤٦، كتاب الفتن)

په بنو اُمیه وو کښې د حضرت عمر بن عبد العزیزؒ تقوٰی، خدا ی ویریدنه او للّٰهیت له وجهې د هغه دور یو ښه دور بلل کیږي چه اسلافو هم له همدې وجهې د هغه دور د خلفاء راشدینو په دور کښې شمار کړی دی.

عن سفیانؒ یقول الخلفاء خمسة ابو بكر و عمر و عثمان و علی و عمر ابن عبد العزیز رضی الله عنهم. (ابو داؤد ج۲، ص ۲۸۰، كتاب الامارة)

عن سفیانؒ قال قال رسول الله ﷺ خلافة النبوّة ثلاثون سنة ثم یؤتی الله الملك من یشآءُ. (ابو داؤد ج۲، ص۲۸۲، كتاب الامارة)

## د خلافت په ملوکیت باندې د بدلیدو اسباب

د رسول الله ﷺ تر رحلت وروسته د اسلام دښمنانو د مسلمانانو قوت او د ملي یو والي د توټې توټې کولو لپاره پوره پوره کوششونه وکړل لیکن د رسول الله ﷺ په لاس تربیه شوي خلفاء راشدین په ځانګړې توګه د حضرت ابو بکر او حضرت عمر رضی الله عنهما په دور کښې هغو ته موقع په لاس ور نغله البته بیا ئې هم خپل خوځښتونه د زمکې لاندې په زور او شور سره جاري وساتل. د حضرت عثمان رضی الله عنه تر شهادت وروسته د اسلام دُښمنان په ښکاره توګه میدان ته را ووتل چه تر ټولو لوی دلیل ئې پخپله د حضرت عثمان رضی الله عنه دردناك شهادت دی.

قال العلامة ابن كثیر رحمه الله: مكان اوّل من دخل علیه رجل یقال له الموت الاسود فخنقه خنقاً شدیداً حتّٰی غشی علیه و جعلت نفسه تتردد فی حلقه فتركه و هو یظن انهٗ قد قتله......... ثم دخل علیه آخر و معهٗ سیف فضربه به فاتقاه بیده



فقطعها...... فكان اوّل قطرة فیها سقطت علٰی هٰذه الآیة "فَسَیَكْفِیْكَهُمُ اللّٰهُ وَ هُوَ السَّمِیْعُ الْعَلِیْمُ" ثم جاء آخر شاهداً سیفه فاستقبلته نائلة بنت الفرافصة لتمنعه منه و آخذت السیف فانتزعه منها فقطع اصابعها. (البدایة و النهایة ج۷، ص۱۹۷)

چه له دې وروسته د جمل، صفین او د اسې نور جنګونه د دې څرګند ثبوتونه دي. دا هغه عوامل وو چه له وجهې ئې د خلافت علٰی منهاج النبوّت بنیادونه سُست شول چه په نتیجه کښې ئې قرار قرار د خیر القرون دور پای ته ورسیده او د خلافت ځای ملوکیت ونیو.

په خلافت او ملوکیت کښې ښکاره فرق دا دی چه د خلافت د انتخابولو طریقه کومه چه د خلفاء راشدینو په دور کښې مروجه وه هغه په ملوکیت کښې نشته. د خلفاء راشدینو په دور کښې له رعایاوو څخه په خوښه بیعت اخیستل کیده په د اسې حال کښې چه په ملوکیت کښې د دې برعکس په زور او جبر سره بیعت اخیستل کیده. د دې اندازه په مدینه منوره کښې پخپله د حضرت امیر معاویه رضی الله عنه له یوه تقریر څخه لګیږي. ده مبارکؓ وفرمایل:

اما بعد: فانی و الله ما ولیت امركم حین ولیته و انا اعلم انكم لا تسرون بولایتی و لا تُحبّونها و انی لعالم بما فی نفوسكم من ذٰلك و لكنی خالستكم بسیفی هٰذا مخالسة. (البدایة و النهایة ج۸، ص۱۳۵)

د دې نتیجه دا شوه چه د ملوکیت په دور کښې د خلفاء راشدینو غوندې د ساده ژوند په ځای د قیصر او کسرٰی غوندې شان او شوکت او د بادشاه او رعیت تر منځه پیره دار او دروازه بان حائل جوړ شو. د رعیت د خیر خواهۍ په ځای امیران د انانیت (ځان ځاني) ښکار شول او له هغو څخه د اسې کارونه وشول چه له دې منصب سره ښه نه ښکاریدل.

## د خـــــلافت د منصب د انتخاب معیار

**سوال:** که چېرته یو څوك د اعمالو له مخې د دین پابند وي. په تقوٰی او دینداري کښې لوی شهرت ولري لیکن په ملکي او بین الاقوامي حالاتو باندې د ژورې کتنې خاوند نه وي چه له وجهې ئې د بادشاهي له چلولو سره نابلده وي نو آیا د خلافت د منصب لپاره د اسې سړي ته ترجیح ورکول کیدلی شي او که نه؟

**الجواب:** د یوه مسلمان لپاره تقوٰی او دینداري بې له شکه ډیر ښه شی دی کوم چه یوائې د هغه تر خپل شخصیته پورې اړه لري. د خلافت په منصب کښې چونکه له ذاتي کردار څخه پورته ئې د خدای له مخلوق سره اړیکي جوړیږي. د دې لپاره په دې میدان کښې د خلافت په کارونو باندې خبر لرونکي سړي ته به ترجیح ورکول کیږي. البته د داسې منصب په غوره کولو کښې د دجل، تلبیس (دوکه او فریب) ظلم او زیاتوالي څخه د حفاظت لپاره د اُمید وار (وکیل) ذاتي کردار او اخلاق هم په نظر کښې نیول ضروري دي.

لما قال العلامة سعد الدین تفتازانی رحمه الله: تحت قول النسفیؒ و لا یشترط فی الامام ان یكون معصوماً و لا ان یكون افضل من اهل زمانه لان المساوی فی الفضیلة بل المفضول الاقل علماً و عملاً ربما كان اعرف بمصالح الامامة و مفاسدها و اقدر علی القیام بمواجبها خصوصاً اذا كان نصب المفضول ادمع للشر و ابعد عن اثارة الفتنة....... مع انه لا

يجوز نصب امامين فى زمان واحدٍ قلنا غير الجائز هو نصب امامين مستقلين. (شرح العقائد النسفى ص۱۱۳، الخلافة و الامارة)

و قال العلامة محمد عبد العزيز الفرهاروى رحمه الله: لان اعظم مدار السلطنة هو على المهارة بامور الدنيا لا على المهارة بالعلم الشرع و كثرة العبادة. (النبراس ص۱۱۳، الخلافة و الامارة) و مثله فى رد المحتار ج۱، ص۴۰۵، باب الامامة.

## د قومي او علاقايي امير شرعي حيثيت

**سوال:** كه چېرته يو قوم په متفقه توګه د شريعت په نامه يو ديني عالم خپل امير وټاكي نو د شرعي نقطه نظر له مخې به ئې حيثيت څه وي او د داسې امير د واك او اختيار دائره څه ده؟ بينوا توجروا۔

**الجواب:** د امير د شرائطو په پام كښې نيولو سره كه چېرته يو قوم په اجتماعي توګه يا د رأيو په اكثريت سره كوم معتمد سړى خپل امير وټاكي نو د اسې اقدام د شريعت له مخې د ستاينې وړ دى بلكه د شرعي نقطهٔ نظر له مخې په كور (حضر) او سفر كښې د دې خبرې رعايت ضروري دى۔

لما ورد فى الحديث: عن ابى سعيد الخدرىؓ ان رسول اللهﷺ قال اذا خرج ثلاثة فى سفرٍ فليؤمروا احدهم. (ابو داؤد ج۱، ص۳۵۱، كتاب الجهاد)

البته په قوم باندې لازم دي چه په شرعي امورو كښې به د داسې امير اطاعت كوي۔ ليكن په غير شرعي كارونو كښې به د امير اطاعت او قول ته اعتبار نه وركول كيږي۔

لما ورد فى الحديث: عن ابن عمرؓ عن النبىﷺ انهٗ قال على المرءِ المسلم السمع و الطاعة فيما احبَّ و كره الا ان يؤمر بمعصية فان امر بمعصية فلا سمع و لا طاعة. (صحيح مسلم ج۲، ص۱۲۵، كتاب الامارة)

داسې امير ته لكه څرنګه چه كُلي اختيارات حاصل نه وي د دې لپاره حدود او قصاص ئې د اختيار له دائرې څخه د باندې دى۔

لما قال العلامة علاؤ الدين ابو بكر بن مسعود الكاسانى رحمه الله: و اما شرائط جواز اقامتها فمنها ما يعم الحدود كلها و منها ما يخصّ البعض دون البعض اما الذى يعم الحدود كلها فهو الامامة و هو ان يكون المقيم للحد هو الامام او من ولاه الامام و هٰذا عندنا......... لان الامام و لاية على جميع دار الاسلام ثابتة. (بدائع الصنائع ج۷، ص۵۸/۵۷، كتاب القضاء)

و قال الامام الهمام نجم الملّة و الدين عمر النسفىؒ: و يشترط ان يكون من اهل الولاية المطلقة الكاملة سائساً قادراً على تنفيذ الاحكام و حفظ حدود دار الاسلام و انصاف المظلوم من الظالم. (شرح العقائد النسفى ص۱۴/۱۳، الخلافة و الامارة)

قال العلامة الحصكفىؒ: هى صغرىٰ و كبرىٰ فا لكبرىٰ استحقاق تصرف عام على الانام. (الدر المختار على هامش رد المحتار ج۱، ص۴۰۴، باب الامامة) و مثله فى رد المحتار ج۱، ص۴۰۴، باب الامارة.

## د ووټ شرعي حيثيت

**سوال:** د انتخاباتو په مروجه طريقه كښې د ووټ شرعي حيثيت څه شى دى؟

**الجواب:** په اوسنى دور كښې ووټ مختلف حيثيتونه لري۔

﴿۱﴾ ووټ د شهادت او ګواهي حيثيت لري، ووټ اچوونكى چه كوم وكيل ته ووټ وركوي هغه د دې خبرې ګواهي وركوي چه زه دا وكيل د ملك او قوم لپاره ګټور او خير خواه ګڼم۔



﴿۲﴾ ووټ د مشورې حيثيت لري، ووټ اچوونكى د حكومت د نظم او نسق په سلسله كښې د خپلې رأيې اظهار كوي چه په سياسي امورو كښې څوك ډير ښه، ايماندار او ديانتدار دى۔

﴿۳﴾ ووټ د سفارش حيثيت لري، ووټ اچوونكى د خپل وكيل لپاره د يوې اهمې عُهدې د سنبالولو سفارش كوي۔

﴿۴﴾ ووټ د وكالت حيثيت لري۔ ووټ اچوونكى د خپل ځان لپاره د حكومت په كور كښې وكيل ټاكي چه هغه به په حكومت كښې زما مسئلې حل كوي۔

﴿۵﴾ ووټ د سياسي بيعت حيثيت لري، ووټ اچوونكى د خپل ووټ په ذريعه مقامي كانديد په واسطه د ملك له بادشاه سره بيعت كوي۔ په دې بيعت كښې دا ضروري نه ده چه د ملك د بادشاه يا د وخت د خليفه په لاس مخامخ بيعت وكړى شي بلكه بيعت د خط او كتابت په ذريعه هم كيدلى شي۔ او همدارنګه د ټاكل شوي وكيل له خوا څخه د ملك د بادشاه په لاس بيعت هم پخپله له بادشاه سره بيعت ګڼل كيږي۔

لكه څرنګه چه په بخاري شريف كښې دي چه نبي كريمﷺ حضرت عباده بن صامتؓ ته وفرمايل چه له خلكو څخه زما په حق كښې بيعت واخله۔

عن عبادة بن الصامتؓ يقول قال لنا رسول اللهﷺ و نحن فى مجلس تبايعونى على ان لا تشركوا با لله شيئاً. (صحيح البخارى ج۲، ص۱۰۷۱، كتاب الاحكام)

و عن عبد الله بن دينارؒ قال شهدت ابن عمرؓ حيث اجتمع الناس على عبد الملك كتب انى اُقر با لسمع و الطاعة لعبد الله عبد الملك امير المؤمنين على سنة الله و سنة رسول اللهﷺ ما استطعت و ان نبى قد اقروا بمثل ذٰلك. (صحيح البخارى ج۲، ص۱۰۶۹، كتاب الاحكام)

له دې څخه څرګنده شوه چه د انسان لپاره د خپلې رأيې د استعمالولو د حق معامله ډيره نازكه او اهمه ده۔ كه چېرته چا كوم نا اهل ته ووټ وركړ نو ووټ ئې په شهادتِ زور يعنې د دروغو په ګواهي، غلط سفارش او غلطې مشورې كښې داخليږي او د دې ډول غلطو اعمالو ارتكاب د قرآن او حديثو صريح مخالفت دى۔

لقوله تعالى: فَاجْتَنِبُوا الرِّجْسَ مِنَ الْاَوْثَانِ وَ اجْتَنِبُوْا قَوْلَ الزُّوْرِ حُنَفَآءَ لِلّٰهِ غَيْرَ مُشْرِكِيْنَ بِهٖ. (الحج، آيت ۳۰)

مَنْ يَّشْفَعْ شَفَاعَةً حَسَنَةً يَّكُنْ لَّهٗ نَصِيْبٌ مِّنْهَا وَ مَنْ يَّشْفَعْ شَفَاعَةً سَيِّئَةً يَّكُنْ لَّهٗ كِفْلٌ مِّنْهَا. (سورة النسآء، آيت ۸۵)

و قال عليه الصلوة و السلام: المستشار مؤتمن. (ترمذى ج۲، ص۱۰۵)

و عن تميم الدارىؓ ان النبىﷺ قال الدّين النصيحة قلنا لمن قال لله و لكتابه و لرسوله و لائمة المسلمين و عامتهم. (صحيح البخارى ج۱، ص۵۴، كتاب الايمان، صحيح المسلم ج۱، ص۵۴، كتاب الايمان)

د ووټ د شرعي حيثيت لپاره وګورى (۱) جواهر الفقه ج۲، ص۲۹۶ تر ۳۰۱۔ (۲) نوي فقهي مسائل ج۱، ص۲۶۵ تر ۲۶۶، متفرقات۔ و مثله فى النسائى ج۲، ص۱۶۴، كتاب الامارة.

## د ووټ د حق د نه استعمالولو حکم

**سوال:** په اوسنی دور کښې د انتخاباتو په وخت د ووټ اچولو په دوران کښې ځینې خلك بالکل خپل ووټ نه استعمالوي۔ آیا د مقدس شریعت له مخې د ووټ حق استعمالول ضروري دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب:** ووټ د یو ډول گواهي حیثیت لري او په گواهي کښې تفصیل دا دی چه گواهي کله واجبه وي او کله د فرضو تر اندازې ته ورسیږي او کله بیا د استحباب او اباحت په درجې کښې وي۔ په کوم ځای کښې چه د گواهي په نه کولو کښې د مُدعي حق له منځه ځي نو په هغه ځای کښې گواهي ورکول واجب دي او په کوم ځای کښې چه د گواهانو تعداد زیات وي هلته گواهي ورکول مستحب او مباح دي۔

لما قال العلامة القرطبیؒ: فی تفسیر هٰذه الآیة وَ لَا یَاْبَ الشُّهَدَآءُ اِذَا مَا دُعُوْا فاذا کانت الفسحة لکثرة الشهود و الامن من تعطل الحق فا لمدعو مندوب و له ان یتخلف لادنیٰ عذر و ان تخلف لغیر عذر فلا اثم علیه و لا ثواب لهٗ و اذا کانت الضرورة و خیف تعطل الحق ادنیٰ خوف قوی الندب و قربٌ من الوجوب. و اذا علم ان الحق یذهب و یتلف بتاخر الشاهد عن الشهادة فواجب علیه القیام بها لا سیما ان کانت محصلة و کان الدعاء الی ادائها. (الجامع لاحکام القرآن ج۳، ص۳۹۸، سورة البقرة)

په انتخاباتو کښې د ووټ اچولو په دوران کښې هر سړی باید دا اند ازه ولگوي چه که چېرته ما فلاني حقدار سړي ته ووټ ور نه کړ نو د هغه په مقابله کښې به یو فاسق او فاجر سړی کامیاب شي نو په دا سې حالت کښې د ووټ حق استعمالول ضروري دي۔ او که چېرته دا خطر موجود نه وي نو بیا د ووټ په نه استعمالولو باندې څه مؤاخذه نشته۔

همدارنگه که چېرته په کومې انتخابي حلقې کښې برخه اخیستونکی کاندید فاسق او فاجر وي نو د ووټ اچوونکي لپاره بنیگړه په دې کښې ده چه خپل ووټ بالکل استعمال نه کړي۔ په حقیقت کښې د ووټ د استعمالولو دوه اړخونه شول۔ او دا خو پخپله د ووټ اچوونکي پخپل صوابدید پورې منحصره وي چه زما لپاره د ووټ په استعمالولو کښې څه گټه ده او په نه استعمالولو کښې مې څه نقصان دی۔ خپلې دیني او دنیوي گټو ته په پام کښې نیولو سره دې ووټ استعمال کړي۔ د دې لپاره چه ووټ یو ډول د سفارش حیثیت لري او که چېرته سفارش ښه وي نو ثواب به ئې وي او که نه وي نو د گناه مستوجب به وي۔

قال العلامة القرطبی فی تفسیر هٰذه الآیة "مَن یَّشفع شَفَاعَةً حَسَنَةً یَّکُن لَّهٗ نَصِیبٌ مِّنهَا وَ مَن یَّشفع شَفَاعَةً سَیِّئَةً یَّکُن لَّهٗ کِفلٌ مِّنهَا". (النساء، آیت ۸۵)

و قال مجاهد و الحسن و ابن زیاد و غیرهم فی شفاعات الناس بینهم فی حوائجهم فمن یشفع لینفع فلهٗ نصیب و من یشفع لیضرّ فلهٗ کفل. (الجامع لاحکام القرآن ج۵، ص۲۹۵، سورة النساء)

و قال الامام ابن جریر الطبری فی تفسیر هٰذه الآیة وَ لَا یَاْبَ الشُّهَدَآءُ اِذَا مَا دُعُوْا یجب فرض ذٰلك علی من دعی للاشهاد



علی الحقوق اذا لم یوجد غیره فاما اذا وجد غیره فهو فی الاجابة الی ذٰلك مخیر ان شاء اجاب و ان شاء لم یجب. (جامع البیان للطبری ج۳، ص۱۲۷، سورة البقرة)

و قال الامام احمد مصطفی المراغی رحمه الله: فی حق الشهادة و هو فرض کفایة لا یجب علی من دعی الیه الا اذا لم یوجد غیر یقوم مقامه. (تفسیر المراغی ج۳، ص۷۵، سورة البقرة)

## د دین لپاره د ووټ په استعمالولو کښې د والدینو نافرماني گناه نه ده

**سوال:** یو سړی دیندار دی او د شریعت پابند دی۔ چه کله د انتخاباتو وخت راځي نو هغه یوې دیني ډلې ته خپل ووټ ورکوي په داسې حال کښې چه پلار ئې د سیکولر ذهنیت خاوند ده او خپل ووټ غیر مذهبي ډلې ته ورکوي او خپل دیندار زوی ته هم وایي چه زما د خوښې ډلې ته خپله رأیه ورکړه۔ اوس پوښتنه دا ده چه د شریعت له مخې د زوی لپاره د پلار د دې خبرې منل صحیح دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د یوه نیك بخته زوی لپاره د والدینو فرمانبردار اري ضروري ده لیکن په داسې امورو کښې نه چه د دین ته ئې نقصان رسیږي او د الله تعالیٰ د ناراضایي سبب گرځي۔ په نوموړي صورت کښې زوی د خدای په نزد د خپل مسئولیت احساس کړي یوه د اسې فیصله دې وکړي چه د الله تعالیٰ په دربار کښې ئې غاړې پرې نیولې نه وي۔

لما قال علیه الصلوٰة و السلام: لا طاعة فی معصیة الله انما الطاعة فی المعروف. (صحیح مسلم ج۲، ص۱۲۵، کتاب الامارة، نسائی ج۲، ص۲۶۶، کتاب البیعة)

و عن ابن سیرین ان عمران بن حصین قال للحکم الغفاری ا سمعت النبی ﷺ یقول لا طاعة لمخلوق فی معصیة الخالق قال نعم. (کنز العمال ج۵، ص۹۲، حدیث ۱۴۴۰۱)

عن ابن جریر کرش عن علیؓ قال لا طاعة لبشر فی معصیة الله. (کنز العمال ج۶، ص۷۷، حدیث ۱۴۹۱۱)

و قال الامام شوکانی محمد بن علیؒ: و کل مم کانت له ولایة شرعیة لا ولایة طاغوتیة و المراد طاعتهم فیما یأمرون به و ینهون عنه ما لم تکن معصیة فلا طاعة لمخلوق فی معصیة الله. (تفسیر فتح القدیر للشوکانی ج۱، ص۴۸۱، سورة البقرة)

## د ووټ د ورکولو په وخت کښې کوم شخص یا ډلې ته ترجیح ورکول

**سوال:** په اوسنی دور کښې د انتخاباتو په وخت کښې د حلقې خلك کوم کاندید د مثال په توگه زید نیك، دیندار او مدبر گڼي لیکن سره له دې بیا هم د هغه په مقابلې کښې خپل ووټ بکر ته ورکوي کوم چه تر زید څه نا څه په دیندار اري کښې کمزوری دی۔ د حلقې د خلکو دا اقدام شرعاً څنگه دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب:** په انتخاباتو کښې د ووټ د اچولو په وخت اهل او تر ټولو نیك سړي ته ترجیح ورکول ضروري دي۔ البته که چېرته د نیك سړي په اړه دا یقین وي چه پارلمان ته ورسیږي نو د صدارتي او وزارتِ عظمیٰ په انتخاباتو کښې کوم فاسق او فاجر ته ووټ ورکوي نو په دې

صورت کښې به ترجیح نه ورکول کیږي۔ بلکه کوم سړی چه مخکښې کوم دیندار ه صد ارتي کاندید ته ووټ ورکوي نو د اسې سړي ته د صوبایي او قومي پارلمانونو په انتخاباتو کښې ترجیح ورکول ضروري دي۔

قال العلامة الحاکم نیسشابوریؒ: عن ابن عباس رضی الله عنهما قال قال رسول اللهﷺ عن استعمل رجلاً من عصابة و فی تلك العصابة من هو ارضٰی لله منه فقد خان الله و خان رسوله و خان المؤمنین. (المستدرك علی الصحیحین ج٤، ص٩٢)

و عن حذیفة رضی الله عنه قال قال رسول اللهﷺ ایما رجل استعمل رجلا علٰی عشرة انفس علم ان فی العشرة افضل ممن استعمل فقد غش الله و غش رسوله و غش جماعة المؤمنین. (کنز العمال ج٦، ص١٩ ص٢٥، حدیث١٤٦٥٣ و ١٤٦٨٧)

## خپله ښځه له ووټ اچولو څخه د منع کولو حکم

**سوال:** د ووټ اچولو په دوران کښې یو سړی خپله ښځه له ووټ اچولو څخه منع کوي او ښځه د خپل خاوند د ویرې له وجهې د ووټ له اچولو څخه محرومه پاتې کیږي۔ د شریعت له مخې ښځه باید کومه طریقه غوره کړي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب:** ووټ یو ډول ګواهي ده او ګواهي کله واجبه وي او کله فرض کفایه، په اوسنیو حالاتو کښې چه د ووټ اچولو کوم نظام دی نو په هغه کښې ووټ اچوونکي زیات وي د دې لپاره ووټ اچول له زیات څخه زیات د فرض کفایه په حکم کښې داخلیږي او په فرض کفایه کښې قاعده دا ده چه که چېرته د ضرورت مطابق یو څو کسان د خپلې رأیې حق استعمال کړي نو د نورو غاړې پرې خلاصیږي۔ د دې لپاره که چېرته خاوند خپله ښځه د ووټ له اچولو څخه منع کوي نو شرعاً کومه ګناه پرې نشته۔ نه په خاوند نه په ښځه۔ بلکه د ښځې لپاره عزت او حیاء په دې کښې ده چه د خاوند خبره ومني او د ووټ له اچولو څخه ډډه وکړي۔

لما قال العلامة ابن نجیم المصریؒ: ان الشهادة فرض کفایة اذا قام بها البعض سقط عن الباقین و تتعین اذا لم یکن الا شاهدان. (البحر الرائق ج٧، ص٥٧، کتاب الشهادة)

و قال العلامة عبد الرحمٰن الجوزی القرشیؒ: انما یلزم الشاهد ان لا یابی اذا دعی لاقامة الشهادة اذا لم یوجد من یشهد غیره. فاما ان کان قد تحملها جماعة لم تتعین علیه و کذٰلك فی حال تحملها لانه فرض علی الکفایة کا لجهاد فلا یجوز لجمیع الناس الامتناع منه. (زاد المسیر فی علم التفسیر ج١، ص٣٣٩، سورة البقرة)

## د خپلوي په بنیاد د ووټ اچولو حکم

**سوال:** کوم کاندید ته د ښه او بد له تمیز پرته یوائې د خپلولي له مخې ووټ ورکول جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب:** د اهل او حقداري په ځای یوائې د خپلولي او وروروليٌ له مخې کوم امیدوار ته ووټ ورکول عصبیت او جهالت دی او حضور نبي کریمﷺ د عصبیت په دلدل کښې له ښکار شوي



خلکو څخه بیزاري ښکاره کړې ده۔

لما ورد فی الحدیث: و عن ابی هریرة رضی الله عنه قال قال رسول اللهﷺ من خرج من الطاعة و فارق الجماعة فمات میته جاهلیة....... و من قاتل تحت رأیه عمیة یدعوا الی عصبیة او یغضب لعصبیة فقتل فقتلهٗ جاهلیة. (سنن النسائی ج٢، ص١٥٦، کتاب المحاربة، باب التغلیظ فیمن قاتل تحت رأیه عمیة)

لما فی الحدیث: و عن فسیلة قالت سمعت ابی یقول سألت النبیﷺ فقلت یا رسول الله امن العصبیة ان یحب الرجل قومه قال لا ولٰکن من العصبیة ان یعین الرجل قومه علی الظلم. (سنن ابن ماجة س٢٨٣، باب العصبیة) و مثله فی کنز العمال ج٣، ص٥٠١، رقم حدیث ٧٦٥٧.

## د دیندار کـــــــاندید په حق کښې د ووټ ورکولو قسم ماتول

**سوال:** زید د انتخاباتو په وخت کښې د عمر په باره کښې دا قسم وکړ چه خپل ووټ به عمر ته ورکوم لیکن څو ورځې وروسته د عمرو په مقابله کښې بکر هم خپل ځان کاندید کړ او د ټولو کلیوالو په نزد بکر له عمرو څخه د دیني او دنیوي اعتبار له مخې د ښه کردار خاوند دی۔ اوس زید وایي چه ما کوم قسم کړی وو هغه د بکر په حق کښې ماتولی شم او که نه؟

**الجواب:** بکر لکه څرنګه چه د دینداری او دیانتداری له وجهې د ووټ صحیح حقدار دی نو ځکه زید باید خپل قسم مات کړي او بیا دې کفاره ادا کړي او خپل ووټ د بکر په حق کښې استعمال کړي، شرعاً ئې غاړې هم نه وي نیولې۔

لما روی امام النسائی: عن عدی بن حاتم قال قال رسول الله من حلف علی یمین فرأی غیرها خیراً منها فلیأت الذی هو خیر و لیکفر عن یمینه. (سنن النسائی ج٢، ص١٤١، کتاب الایمان و النذور، باب من حلف علی یمین فرأی خیراً منها)

و قال الامام ابو البرکات عبد الله بن احمد بن محمود النسفیؒ: و من حلف علی معصیةٍ ینبغی ان یحنث و یکفر. (کنز الدقائق ص١٥٥، کتاب الیمین) و مثله فی سنن النسائی ج٢، ص١٤١، کتاب الایمان و النذور، باب من حلف علی یمین فرأی خیراً منها.

## د مسلمانانو او مرزایانو متحدې ډلې ته د ووټ ورکولو شرعي حیثیت

**سوال:** یوې مسلمانې ډلې له قادیانیانو سره انتخابي اتحاد وکړ، د اسې متحده ډلې ته رایه ورکول د مسلمانانو لپاره جائز دي او که نه؟

**الجواب:** قادیانیان لکه څرنګه چه مرتد او له اسلام څخه وتلي دي، له هغو سره یو والی اګر که د وختي مصلحت پر بناء څه معمولي ګټې لاس ته راځي لیکن د هغو د ارتداد او کفر له وجهې د هغو چه کوم مذموم او شوم مقاصد دي نو په یو والي کښې ئې هغه حیثیت له متاثر کیدو پرته نه شي پاتې کیدلی۔ د دې لپاره له قادیانیانو سره اتحاد ګټه کمه او تاوان زیات لري۔ رسول اللهﷺ اګر که له یهودیانو سره اتحاد کړی وو لیکن په هغه باندې کوم اسلامي شعار نه وو متاثر شوی۔ البته د نومړي صورت مطابق که چېرته مسلمان د کوم نیك مقصد د پوره کولو لپاره له

قادیانیانو سره اتحاد وکړي نو څه پروا نه لري۔ په بنیادي توګه له کفارو او مشرکینو سره اتحاد کول ممنوع نه دی۔ د الله تعالی ارشاد دی چه: لَا يَتَّخِذِ الْمُؤْمِنُونَ الْكَافِرِينَ أَوْلِيَاءَ مِنْ دُونِ الْمُؤْمِنِينَ وَمَنْ يَفْعَلْ ذٰلِكَ فَلَيْسَ مِنَ اللّٰهِ فِي شَيْءٍ إِلَّا أَنْ تَتَّقُوا مِنْهُمْ تُقٰـــــةً وَيُحَذِّرُكُمُ اللّٰهُ نَفْسَهُ وَإِلَى اللّٰهِ الْمَصِيرُ☆ (سورة آل عمران، آیت۲۸)

لیکن چېرته چه مسلمانانو ته له کفارو او مشرکینو سره په یو والي کښې دیني او دنیوي ګټې وي نو په د اسې صورت کښې له هغو سره اتحاد پروا نه لري۔

حضور نبي کریم ﷺ هم مدینې منورې ته تر راتګ وروسته د یهودیانو له دوو مشهورو قبائلو بنو نضیر او بنو قریظه سره اتحاد کړی وو او د حدیبیې صلح هم د دې اتحاد او معاهدې یوه کړی وه۔ همدارنګه نن دې هم حالاتو ته وکتل شي چه که چېرته د مسلمانانو له کفارو سره په اتحاد کښې کومه معقوله فائده وي نو په د اسې اتحاد کښې شرعاً کومه بدي نشته۔

لما قال العلامة شمس الدين السرخسيؒ: و لان رسول اللهﷺ صالح اهل مكة عام الحديبية على ان وضع الحرب بينه و بينهم عشر سنين فكان ذٰلك نظراً للمسلمين لمواطئة كانت بين اهل مكة و اهل خيبر و هى معروفة و لان الامام نصب ناظراً و من النظر حفظ قوه المسلمين اولاً فربما ذٰلك فى الموادعة اذا كانت للمشركين شوكة. (المبسوط للسرخسى ج۱۰، ص۸۶، كتاب السير)

و قال الامام ابو بكر الجصاص فى تفسير هٰذه الآية وَإِنْ جَنَحُوا لِلسَّلْمِ فَاجْنَحْ لَهَا قال ابو بكر قد كان النبىﷺ عاهد حين قدم المدينة اصنافاً من المشركين منهم النضير و بنو قينقاع و قريظة و عاهد قبائل من المشركين. (احكام القرآن ج۳، ص۸۶، سورة الانفال)

قال فى الهندية: و اذا رأى الامام ان يصالح اهل الحرب او فريقاً منهم و كان ذٰلك مصلحة للمسلمين فلا باس به و ان رأى الامام موادعة اهل الحرب و ان يأخذ على ذٰلك مالا فلا باس به لكن هٰذا اذا كان با لمسلمين حاجة اما اذا لم تكن فلا يجوز. (الفتاوى الهندية ج۲، ص۱۹۶، الباب الثالث فى الموادعة و الامان الخ)

## د فـــــاسق او فاجر په حق کښې د ووټ د استعمـــــالولو حکم

**سوال:** د کوم فاسق او فاجر سړي په حق کښې د خپلې رأیې استعمالول شرعا جائز دي او که نه؟

**الجواب:** ووټ یو امانت او سفارش دی یا یو ډول ګواهي ده۔ د دې اعتبار له مخې کوم فاسق او فاجر سړي ته باید خپلې رأیې ور نه کړی بلکه کوم امانتدار، دیانتدار او دیندار سړي ته ئې باید ورکړی کوم چه د ملك او قوم لپاره ګټور ثابت شي۔ البته په کوم ځای کښې چه د ډلې په بنیاد باندې انتخابات تر سره کیږي نو بیا دې د شخصیت په مقابله کښې د ډلې منشور او دستور په پام کښې نیول ډیر مناسب دي۔

﴿۱﴾ قوله تعالى: إِنَّ اللّٰهَ يَأْمُرُكُمْ أَنْ تُؤَدُّوا الْأَمَانَاتِ إِلَى أَهْلِهَا. (النساء، آیت۵۸

﴿۲﴾ قوله تعالى: مَنْ يَشْفَعْ شَفَاعَةً حَسَنَةً يَكُنْ لَهُ نَصِيبٌ مِنْهَا وَمَنْ يَشْفَعْ شَفَاعَةً سَيِّئَةً يَكُنْ لَهُ كِفْلٌ مِنْهَا. (سورة النسآء، آیت۸۵)

و نقل الامام القرطبىؒ فى تفسير هٰذه الاية هى فى شفاعات الناس بينهم فى حوائجهم فمن يشفع لينفع فلهٗ نصيب و من



يشفع ليضر فلهٗ كفلٌ. (الجامع لاحكام القرآن ج۵، ص۲۹۵، سورة النساء)

و قال الدكتور وهبة الزحيلى: ثانياً العدالة، اى الديانة و الاخلاق الفاضلة و هى معتبرة فى كل الولاية و هى ان يكون صادق اللهجة ظاهر الامانة عفيفاً عن المحارم، متوقيا المآثم، بعيدا من الريب، مامونا فى الرضاء و الغضب، مستعملاً لمروءة مثله فى دينه و دُنياهُ. (الفقه الاسلامى و ادلته ج۶، ص۶۹۴، الباب السادس نظام الحكم فى الاسلام، المبحث الرابع شروط الامام)

## د ووټ د لاس ته راوړو په غرض په خلکو کښې د روپو د ویشلو حکم

**سوال:** په انتخاباتو کښې ځینې کاندید ان د خپلې حلقې په خلکو کښې څه نا څه روپۍ ویشي یا د خوراك او څښاك ځینې شیان په دې غرض ویشي چه صبا د ووټ اچولو په وخت کښې دا خلك خپل ووټونه ما ته راکړي۔ شرعا د دغو ویشل شویو شیانو حیثیت څه دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب:** که چېرته د کاندید مقصد دا وي چه د پیسو په ذریعه زه له خلکو څخه ووټونه اخلم نو په دې غرض سره خلکو ته پیسې ورکول جائز نه دي۔ د دې لپاره چه ووټ یا خو د شهادت شرعي حیثیت لري یا د سفارش۔ او د فقهاوو په نزد په ګواهي باندې شرعا پیسې اخیستل جائز نه دي۔

لما قال العلامة ابن الهمام رحمه الله: بخلاف الشهادة فانها فرض يجب على الشهادة ادائها فلا يجوز فيها التعارض اصلاً. (فتح القدير ج۷، ص۲، كتاب الشهادة)

او که چېرته د کاندید غرض د ووټ د اخیستلو او خرڅولو نه وي بلکه یوازې د لالچ ورکولو لپاره وي چه خلك روپۍ ووینې او ووټونه ما ته راکړي نو په دې صورت کښې د تقسیم شویو شیانو حیثیت د رشوت دی۔ او رشوت اخیستل او ورکول دواړه حرام دي۔ د دې لپاره د ووټ په بدل کښې څه اخیستل او ورکول دواړه ناجائز دي۔

لقوله عليه السلام: لعن الله الراشى و المرتشى و الرائش الذى يمشى بينهما. (كنز العمال ج۶، ص۱۱۴، حديث ۱۵۰۸۰)

و عن ابى هريرة رضى الله عنه قال لعن رسول اللهﷺ الراشى و المرتشي فى الحكم. (ترمذى ج۱، ص۲۴۸، ابواب الحكام، باب ما جاء فى الراشى و المرتشي) و مثله فى سنن ابى داؤد ج۲، ص۱۴۸، كتاب القضاء، باب فى كراهية الرشوة.

## د ښځې لپاره د رأیې حق استعمالول

**سوال:** د صوبایي او قومي پارلمانونو د انتخاباتو په موقع کښې ښځه خپله رأیه استعمالولی شي او که نه؟

**الجواب:** ووټ په حقیقت کښې د یو ډول ګواهۍ حیثیت لري۔ د ووټ په ذریعه ووټ اچوونکی د کاندید د اهلیت ګواهي ورکوي او همدارنګه ووټ اچوونکی د خپلې حلقې کاندید په حق کښې رأیه او مشوره ورکوي۔ شریعت مطهره ښځه هم د رأیې، مشورې او همدارنګه د ګواهۍ اهل ګڼلې دی۔

لقوله تعالٰی: فَاِنْ لَّمْ یَكُوْنَا رَجُلَیْنِ فَرَجُلٌ وَّ امْرَاَتَانِ. (البقرة، آیت ۲۸۲)

د خلفاء راشدینو د خلافت په روښانه دور کښې چه کله حضرت عمر فاروق رضی اللّٰه عنه خلافت پای ته ورسیده نو حضرت عبد الرحمٰن بن عوف رضی اللّٰه عنه چه کله د حضرت عثمان رضی اللّٰه عنه د خلافت لپاره له خلکو څخه د مشورې او رأیې غوښتنه وکړه نو په دې موقع کښې ئې له پاك لمنو ښځو څخه هم د مشورې او رأیې غوښتنه وکړه.

لما قال الامام ابن کثیر رحمه اللّٰه: ثم نهض عبد الرحمٰن بن عوف رضی اللّٰه عنه یستشیر الناس فیهما و یجتمع رأی المسلمین برأی رؤس الناس و اقیادهم جمیعاً و اشتاتاً مثنٰی و فرادٰی و مجتمعین سرّاً و جهراً حتٰی خلص الی النساء المخدرات فی حجابهن و حتٰی سئل الوالدین فی المکاتب و حتٰی سئل من یرد من الرکبان و الاعراب الی المدینة فی مدة ثلاثة ایامٍ بلیالیها. (البدایة و النهایة ج۷، ص ۱۵۱)

البته د یوې مسلمانې ښځې لپاره د ووټ د اچولو لپاره ضروري ده چه د پردې او نورو شرعي امورو په پام کښې نیولو سره د خپل ووټ حق استعمال کړي او که نه نو په ګناه کښې د ککړیدو څخه د ووټ نه اچول بهتر دي.

حضرت مولانا کفایت اللّٰه دهلوي رحمه اللّٰه فرمایي: "د ښځې لپاره ووټ اچوونکی جوړیدل ممنوع نه دي لیکن د ووټ د اچولو په وخت کښې به د شرعي پردې لحاظ پرې لازم وي" (کفایت المفتي ج۹، ص۳۷۱، کتاب السیاسه)

د ښځې د ګواهي په باره کښې علامه ابن الهمام رحمه اللّٰه فرمایي: و ما سوٰی ذٰلك من المعاملات ای و کل ما سوی ذٰلك یقبل فیه رجلان او رجل و امرأتان سواء کان الحق مالاً او لا کا لنکاح و الطلاق و الوکالة و الوصیة و نحو ذٰلك کا لعتق و الوجعیة و النسب. (فتح القدیر ج۶، ص ۴۵۰/۴۵۱، کتاب الشهادة)

و قال العلامة ابن حجر العسقلانیؒ: عن مسروق...... کانت عائشةؓ افقه الناس و اعلم الناس و احسن الناس رأیا فی العامة. (الاصابة فی تمیز الصحابة ج۴، ص ۳۶۰، ذکر عائشه)

و قال العلامة عمرؒ کحالة فی ترجمة شفاء بنت عبد اللّٰه: یقول الشفاء بنت عبد اللّٰه....... صحابیة جلیلة ذات عقل و فضل و جودة رأی کان عمر بن الخطاب رضی اللّٰه عنه یقدمها فی الرأی و یرضاها و یفضلها و ربما ولاها شیئاً من امر السوق. (اعلام النساء لعُمر کحالة ج۲، ص ۳۰۰)

## په مروجه مغربي طرز باندې په کیدونکي انتخاباتو کښې د علماوو د برخې اخیستلو حکم

**سوال:** په مروجه انتخاباتو کښې کوم چه په مغربي طریقې سره ترسره کیږي آیا علماء کرام په د اسې انتخاباتو کښې برخه اخیستلی شي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب:** د علماء کرامو لپاره لازم دي چه د خپل دیني تشخص پخپل حال کښې د ساتلو ترڅنګ په سیاسي لیکه کښې د منکراتو مخنیوی وکړي او د اقتدار خاوندانو ته د شرعي خلاف



کارونه ورپه ګوته کړي او له منکراتو څخه ئې وژغوري. او دا ډول امر بالمعروف او نهی عن المنکر په انتخاباتو کښې د شریکیدو څخه پرته نه ترلاسه کیږي. د دې لپاره علماء کرام د ضرورت په خاطر د مروجه انتخاباتو په ذریعه د اقتدار ایوان ته په رسیدو سره د حق آواز پورته کوي.

د فقهې مشهوره قاعده ده کومه چه علامه ابن نجیم المصري رحمه اللّٰه را نقل کړې ده. دیؒ فرمایي:

من ابتلی ببلیتین و هما متساویان یأخذ بایتهما شاء و ان اختلفا یختار اهونهما لان مباشرة الحرام لا تجوز الا لضرورة و لا ضرورة فی حق الزیادة. (الاشباه و النظائر مع شرح للحموی ج۱، ص۲۸۶، القاعدة الخامسة الضرر لا یزال)

و قال الامام القرطبیؒ فی تفسیر هٰذه الآیة مَا كَانَ لِيَاْخُذَ اَخَاهُ فِىْ دِيْنِ الْمَلِكِ. ای سلطانه........ عادته ای بظلم بلا حجة مجاهد فی حکمه و هو استرقاق السراق

یعنې حضرت یوسف علیه السلام د خپل ورور د پاتې کولو لپاره د مصر د ملك د قانون په پام کښې نیولو سره عمل پرې کړی وو. (الجامع لاحکام القرآن ج۹، ص۲۳۸، سورة یوسف)

په مروجو انتخاباتو کښې د نومورې طریقې لاندې برخه اخیستل د امر بالمعروف او نهی عن المنکر تر پریښودلو څخه اهون (سپك) دی. له دې وجې علماء کرام هم د مغربي طرز جمهوریت مطابق په کیدونکو انتخاباتو کښې برخه اخلي.

## په انتخابي مهم کښې د مخالف امیدوار په حق کښې د ناښائسته الفاظو د استعمالولو حکم

**سوال:** د انتخاباتو په دوران کښې ځینې کاندیدان په انتخاباتي جلسو کښې په لاسپیکرونو کښې په ښکاره توګه خپل مخالف کاندید په حق کښې ښکنځا او بې دریغه ناښائسته الفاظ استعمالوي. د شریعت له مخې د چا په حق کښې د ناښائسته الفاظو استعمالول جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب:** شریعت مطهره د کوم مسلمان بې ځایه سپکول او د هغه په حق کښې د ناښائسته الفاظو استعمالول یو بد خصلت ګڼلی دی. همدارنګه کوم مسلمان ته ښکنځل د فسق او فجور علامه ده. هر مسلمان باید په هر وخت کښې خپله ژبه پخپلې قابو کښې وساتي او د چا زړه آزار نه کړي. په جذباتو کښې د راتلو په صورت کښې باید خپل مسئولیت شاته و نه غورځوي. د اسلامي ویاړونو په هر میدان کښې خیال ساتل ډیر ضروري دي.

لما روی البخاریؒ: عن ابی هریرة رضی اللّٰه عنه قال قال رسول اللّٰهﷺ من کان یؤمن با للّٰه و الیوم الآخر فلیکرم ضیفه و من کان یؤمن با للّٰه و الیوم الآخر فلا یؤذ جاره و من کان یؤمن با للّٰه و الیوم الآخر فلیقل او لیصمت. (صحیح البخاری ج۲، ص۸۸۹، کتاب الادب، باب لا تحقرن جارة لجارتها)

و ایضاً: عن النبیﷺ قال سبّاب المسلم فسوق و قتاله کفر. (سنن النسائی ج۲، ص۱۵۶، کتاب المحاربة)

لما فی الحدیث: عن ابی هریرة رضی الله عنه سمع رسول الله ﷺ یقول ان العبد یتکلّم با لکلمة ما یتبین فیها یزل بها فی النار ابعد ما بین المشرق. (صحیح البخاری ج۲، ص۹۵۹، کتاب الرقاق، باب حفظ اللسان و من کان یؤمن با لله الخ)

ایضاً: عن عبد الله رضی الله عنه قال قال رسول الله ﷺ سبّاب المسلم فسوق و قتاله کفر. (صحیح البخاری ج۲، ص۸۹۳، کتاب الادب، باب ما ینهی عن السباب و اللعن)

## په انتخاباتو کښې پخپله د کاندید جوړېدلو حکم

**سوال:** د ایم این اے او ایم پي اے د مراعاتو او د یوه ګټمن کاروبار په ګڼلو سره خلک پخپله خپل ځان کاندیدوي او دې میدان ته ور دانګي چه د ځینو خو نه کوم منشور وي او نه د ملک د بهترۍ او ترقۍ کوم پروګرام په مخکښې لري. نو آیا په ذاتي توګه په انتخاباتو کښې کاندید جوړېدل شرعاً جائز دي او که نه؟

**الجواب:** شریعت مطهره په اصولي توګه د کومې عُهدې یا چوکۍ د غوښتلو خلاف دی. د امارت، وزارت او د اسې نورو عُهدو ته رسیدو لپاره مناسبه دا ده چه له عوامو څخه یوه خلک یو څوک وټاکي او کوم سړی چه پخپله خپل ځان د امارت یا وزارت لپاره وړاندې کوي نو شریعت د د اسې اقد ام مخالفت کوي.

لقوله علیه السلام: ان و الله لا نولّی علی هٰذا العمل احداً سأله و لا احداً حرص علیه. (صحیح مسلم ج۲، ص۱۲۰، کتاب الامارة)

و ایضاً: عن عبد الرحمٰن بن سمرةؓ قال قال رسول الله ﷺ لا تسئل الامارة فانك ان اعطیتها عن مسئلة وکلت الیها و ان اعطیتها عن غیر مسئلة اعنت علیها. (السنن النسائی ج۲، ص۲۵۸، کتاب الامارة)

لما ورد فی الحدیث: عن ابی ذرؓ قال قلتُ یا رسول الله ﷺ الا تستعملنی قال فضرب بیده علی منکبی ثم قال یا اباذر انك ضعیف و انها امانة و انها یوم القیامة خزیٌ و ندامة الا من اخذها بحقها و ادّی الذی علیه فیها. (صحیح المسلم ج۲، ص۱۲۱، کتاب الامارة)

البته که چېرته په کوم ځای کښې د نا اهلو نمائندګانو له وجهې د عوامو حقوق ضائع کیدل یا بې دینه او فاسق او فاجر د ټاکل کیدو په صورت د بې دینې د خپریدو خطر وي نو د فواحشو او مظالمو د مخنیوي لپاره انتخابي میدان ته ور د انګل کومه ګناه نه ده. په دې شرط چه کاندید پخپله د شرعي په کوم خلاف کار کښې د را ګیریدو خطر نه محسوساوه. لکه څرنګه چه حضرت یوسف علیه السلام د مصر بادشاه ته ویلي وو. قَالَ اجْعَلْنِیْ عَلٰی خَزَآئِنِ الْاَرْضِ اِنِّیْ حَفِیْظٌ عَلِیْمٌ. (یوسف) او که نه وي نو د اسې میدان ته پخپله د راتلو له وجهې د بې دینۍ د ذریعې جوړېدل یقیني وي نو پخپله د بې دینۍ لپاره سبب جوړېدل پخپله یو جرم دی.



## د انتخابي وعدو شرعي حکم

**سوال:** د انتخابي مهم په دوران کښې یوه کاندید له خلکو سره ډول ډول وعدې وکړې او له خلکو څخه ئې عهد او پیمان واخیست چه تر کامیابیدو وروسته به زه فلاني فلاني کارونه کوم لیکن چه کله کامیاب شو نو نه ئې هغه وعدې ور په زړه وې او نه ئې کوم کار تر سره کړ بلکه پخپل عیش او عشرت کښې مصروف شو. د د اسې وعدو د نه پوره کولو په شریعت کښې څه حکم دی؟

**الجواب:** په شریعت کښې د کوم کار د کولو لپاره دوه ډول الفاظ استعمالیږي چه په یوه ته وعده او بل ته معاهده ویل کیږي. په شریعت مطهره کښې د معاهدې په پوره کولو باندې ډېر زور اچول شوی دی او کله کله خو معاهده د قسم شکل هم غوره کوي. او که چېرته معاهده ماته شي نو د یمین یعنې قسم کفاره په سړي لازمیږي.

لما قال الامام ابو بکر جصاص رحمه الله فی تفسیر قوله تعالٰی: وَ اَوْفُوْا بِعَهْدِ اللّٰهِ اِذَا عٰهَدْتُّمْ وَ لَا تَنْقُضُوا الْاَیْمَانَ بَعْدَ تَوْکِیْدِهَا. العهد ینصرف علی وجوه فمنها الامر قال الله تعالٰی: وَ لَقَدْ عَهِدْنَآ اِلٰٓی اٰدَمَ مِنْ قَبْلُ. و قال اَلَمْ اَعْهَدْ اِلَیْکُمْ یٰبَنِیْٓ اٰدَمَ. و المراد الامر و قد یکون العهد یمیناً و دلالة الآیة علی ان المراد فی هٰذا الموضع الیمین ظاهر لانهٗ قال وَ لَا تَنْقُضُوا الْاَیْمَانَ بَعْدَ تَوْکِیْدِهَا. و لذٰلك قال اصحابنا ان من قال علی عهد الله ان فعلت کذا انه حالف و قد روی فی حدیث حذیفة حین اخذه المشرکون و اباه فاخذوا منه عهد الله ان لا یقاتلوا معن النبی ﷺ فلما قدما المدینة ذکرا ذٰلك للنبی ﷺ فقال تفی لهم بعهدهم و تستعین الله علیهم. (احکام القرآن ج۳، ص۲۳۵، سورة النحل)

دویم ډول وعده ده. په وعدې باندې وفا کول شریعت مطهره له مکارم اخلاقو څخه ګڼلی دی. که چېرته یو څوک له چا سره وعده وکړي چه زه انشاء الله ستا لپاره فلانی کار کوم او د وعدې کولو په وخت کښې د هغه کار د کولو اراده ئې هم په زړه کښې وي نو وروسته له کومې وجهې د هغه کار په نه کولو باندې نه ګناهګاریږي. البته وعده پخپل وخت کښې پوره کول یو ډېر ښه کار دی او د انساني ځوانمردي ښائست هم دی.

لما روی ابو داؤد فی سننه: عن زید بن ارقم عن النبی ﷺ قال اذا وعد الرجل اخاه و من نیته ان یفی فلم یف و لم یجیء للمیعاد فلا اثم علیه. (سنن ابی داؤد ج۲، ص۳۲۶، کتاب الادب، باب فی العدة)

و قال العلامة فخر الحسن الجنجوهی فی شرح هٰذا الحدیث قوله فَلَا اِثْمَ عَلَیْهِ قیل فیه دلیل علی ان الوفاء با لوعد لیس بواجب شرعی بل هو من مکارم الاخلاق بعد ان کان نیته الوفاء. (تعلیق المحمود علی هامش ابی داؤد ج۲، ص۳۲۶، کتاب الادب، باب العدة)

و قال الامام ابن حجر العسقلانیؒ: لان خلف الوعد لا یقدح الا اذا کان العزم علیه مقارناً للوعد. اما لو کان عازماً ثم عرض لهٗ مانع او بدا له رأی فهٰذا له توجد منه صورة النفاق. (فتح الباری ج۱، ص۹۰، کتاب الایمان، باب علامات النفاق)

و روی ابو داؤد: عن ابن عمر ان رسول الله ﷺ قال ان للغادر ینصب لهٗ لواء یوم القیامة فیقال هٰذه غدرة فلان بن فلان. (سنن ابی داؤد ج۲، ص۲۳، فی الباب فی الوفاء با لعهد)

په دغو دواړو کښې دې وکتل شي چه کاندید کوم ډول وعده کړې ده. که چېرته ئې د معاهدې

په شکل کښې کړې وي نو بیا به خپله معاهده پوره کوي او که نه نو ګنهګار به وي او که د وعدې په شکل کښې وي نو بیا هم د انساني اخلاق او شرافت غوښتنه دا ده چه خپله وعده پوره کړي او که نه وي نو بیا نه ګنهګارېږي. هو! د وعدې د کولو په وخت کښې به ئې د پوره کولو خامخا اراده وي او که نه وي نو بیا به د نفاق علامه وي.

## آیا ښځه د پارلمان غړې جوړیدلی شي؟

**سوال:** په نننی زماني کښې د انتخاباتو په موقع کښې سړي او ښځې پوره پوره برخې اخلي. آیا په اسلام کښې دا جائز دي چه ښځه دې د پارلمان (ولسي جرګې) غړې غوره شي؟

**الجواب:** له فتنو ځخه په دې ډك دور کښې د حالاتو له مخې ښځه باید د پارلمان له غړیتوب ځخه ځان وژغوري ځکه چه په موجوده حالاتو کښې د انتخاباتو لپاره د منډې ترړې په دوران کښې د ښځې لپاره د پردې ساتل مشکل تر سترګو کیږي. البته که چیرته ښځه په انتخاباتو کښې د اسې برخه واخلي چه د پردې خاصه پاملرنه پکښې کوي او د کوم غیر شرعي کار ارتکاب و نه کړي نو په داسې صورت کښې د ښځه لپاره د انتخاباتو منډه ترړه او په پارلیمان کښې غړیتوب ورکولو کښې د جواز ګنجائش شته.

ځکه چه د اسمبلي او پارلمان غړي د عوامو او قوم له خوا ځخه د هغوی وکیلان وي او د ښځې لپاره دا جائز دي چه د چا وکیله شي. د حنفي فقهې په کتابونو کښې د وکیل په شرائطو کښې چیرته هم د نارینتوب شرط نه دی لګول شوی او د بدایته المجتهد له عبارت ځخه دا ځرګندیږي چه د ائمه اربعه وو په نزد د ښځې وکالت صحیح دی. یو اځې د نکاح په عقد کښې د امام شافعي او امام مالك په نزد ښځه وکیله نه شي جوړیدلی.

لما قال الامام ابن رسد الحفيدؒ: و شروط الوکیل ان لا یکون ممنوعاً بالشرع من تصرفه فی الشیء الذی وکل فیه فلا یصح توکیل الصبی و لا المجنون و لا المرأة عند مالكؒ و الشافعیؒ علی عقد النکاح. (بدایة المجتهد و نهایة المقتصد ج۲، ص۲۹۶، الباب الاول، کتاب الوکالة)

همدارنګه د اسمبلي او پارلمان غړي د اهلِ حل او عقد حیثیت لري. د همدغو په ووټونو باندې بیا وزیر اعظم او د هیواد رئیس جمهور ټاکل کیږي. د سیاست مشهور امام علامه ماورديؒ د اهلِ حل او عقد په شرائطو کښې د نارینتوب یادونه نه ده کړې. دیؒ فرمایي:

فاما الاختیار فالشروط المعتبرة فیهم ثلاثة. احدها العدالة الجامعة لشروطها. و الثانی العلم الذی یتوصل به الی معرفة من یستحق الامامة علی الشروط المعتبرة فیها. و الثالث الرأی و الحکمة المودیان الی اختیار من هو للامامة اصلح و بتدبیر المصالح اقوم و اعرف. (الاحکام السلطانیة للماورديؒ ص۶، الباب الاول فی عقد الامامة)

قال العلامة ابو یعلی الموصلی رحمه الله: اما اهل الاختیار فیعتبر فیهم ثلاث شروط احدها العدالة و الثانی العلم الذی یتوصل به الی معرفة من یستحق الامامة. و الثالث ان یکون من اهل الرأی و التدبیر المؤدیین الی اختیار من هو للامامة اصلح. (الاحکام السلطانیة ص۱۹، فصول فی الامامة)



که چیرته په اسلامي تاریخ او د اسماء الرجال په کتابونو باندې نظر واچول شي نو په ښکاره توګه به ولیدل شي چه حضرت عمر فاروق رضی الله عنه د خپل خلافت په دور کښې یوه صحابیهؓ د بازار د نظم او نسق لپاره ماموره کړې وه او دې صحابیېؓ ته په رأیې او مشورې کښې ترجیح ورکول کیدله. دا صحابیه حضرت اسماء رضی الله عنها نومیدله.

علامه ابن الحجر العسقلاني رحمه الله د دې صحابیې د یادونې تر څنګ لیکي چه: الشفاء بنت عبد اللهؓ بن عبد شمس بن خلف......... و کان عمرؓ یقدمها فی الرأی و یرعاها و یفضلها و ربها و لاها شیئاً من امر السوق. (الاصابة فی تمیز الصحابة ج۴، ص۳۴۱)

له دې برسیره په صحابهٔ کراموؓ کښې ام المؤمنین حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها د ډیر لوړ مقام خاونده وه. صحابهٔ کرامو ته چه کله هم په کومې مسئلې کښې مشکل ور پیښ شو نو له دې مبارکې ځخه به ئې د هغې په باره کښې خامخا پوښتنې کولې او د دېؓ رأیې ته به ډیر اهمیت ورکول کیده.

علامه ابن حجر العسقلاني رحمه الله د دېؓ په شان کښې د اسې لیکي: و قال ابو الضحی عن مسروق رایت مشیخه اصحابِ رسول اللهﷺ الاکابر یسألونهٗ عن الفرائض. و قال عطاء بن ابی رباح کانت عائشةؓ افقه الناس و اعلم الناس و احسن الناس رأیاً فی العامة......... و قال ابو بردة بن ابی موسیٰ عن ابیه ما اشکل علینا امر فسئلنا عنه عائشةؓ الا وجدنا عندها فیه علماً. (الاصبة فی تمیز الصحابة ج۴، ص۳۶۰، ترجمة عائشةؓ)

له دغو عبارتونو ځخه ځرګنده شوه چه ښځې له کورنیو معاملاتو ځخه پرته د مملکت په انتظام کښې هم د ځه کردار د ادا کولو اجازه شته. د احنافوؒ په نزد له حدود او قصاص ځخه پرته په نورو مسائلو کښې ښځه قاضیه هم جوړیدلی شي.

لما قال العلامة ابن الهمامؒ: و اما الذکورة فلیست بشرط الا للقضاء فی الحدود و الدماء فتقضی المرأة فی کل شیء الا فیهما. (فتح القدیر ج۶، ص۳۵۷، کتاب ادب القاضی)

که چیرته ښځه د شرعي امورو په پام کښې نیولو سره د اسمبلي یا پارلمان غړې جوړه شي نو شرعاً په دې کښې کومه خبره نشته لیکن په نننی زماني کښې په پارلمان کښې د ښځو کردار ته په کتو سره د دې اجازه ورکول د هیڅ یوه دیني مقصد لپاره ګټور نه دی بلکه په عمومي توګه سره کوي د دې لپاره دوی ولسي جرګو یا پارلمانونو ته نه لیږل ډیر ښه او راجح دي. البته له نوموړو دلائلو ځخه هیڅکله هم دا نه ثابتیږي چه ښځه د هیواد بادشاه یا رئیس جمهوره جوړیدلی شي ځکه چه د ښځې د بادشاهۍ په باره کښې په قرآن کریم او احادیثو کښې ښکاره دلائل موجود دي. له دې برسیره چیرته چه هم د امامتِ کبریٰ شرائط بیان شوي دي نو هلته په لازمي توګه ورسره د نارینتوب شرط ذکر شوی دی.

## د تور او سپين رنګ لرونكي بيرغ ثبوت

**سوال:** د جميعت علماء اسلام جماعتي بيرغ كوم چه له تور او سپين رنګ څخه جوړ شوى دى
10 علماء ئې د علم نبوي سره شبيه يعنې يو شان بولي- يعنې وايي چه د رسول اللهﷺ د بيرغ
رنګ هم همد ارنګه وو- د تاريخ يا غزواتو په رڼا كښې دا خبره تر كومه ځايه پورې صحيح ده؟
بينوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** رسول اللهﷺ په مختلفو جنګونو كښې مختلف رنګ لرونكي بيرغونه استعمال كړي دي- خاص د يوه رنګ بيرغ مستقل استعمال له ده مباركﷺ څخه ثابت نه دي- البته له ځينو روايتونو څخه دا څرګنديږي چه رسول اللهﷺ "نمره" بيرغ استعمال كړى دى چه رنګ ئې سپين او تور وو- ځكه چه "نمره" له سپين او تور رنګ څخه جوړ شوى وي-

لما قال ابن منظومؒ: و النمرة شملة فيها خطوط بيض و سود. (لسان العرب ج١٤، ص٢٩٠)

و عن يونس بن عبيد مولى محمد بن القاسمؒ: قال بعثنى محمد بن القاسم الى البراء بن عازب اسئله عن راية رسول اللهﷺ فقال كانت سودا مربّعة من نمرة. (ترمذى ج١، ص٢٩٧، ابواب الجهاد، باب فى الرايات)

و عن يونس بن عبيد مولى محمد بن القاسمؒ: قال بعثنى محمد بن القاسم الى البراء بن عازب اسئله عن راية رسول اللهﷺ فقال كانت سودا مربّعة من نمرة. (سنن ابو داؤد ج١، ص٣٤٩، كتاب الجهاد، باب فى الرايات و الالوية)

## له جنګ څخه پرته د بيرغ د استعمالولو حكم

**سوال:** نن صبا خلك په كورونو او بازارونو كښې بيرغونه لګوي- آيا په خير القرون كښې د داسې ډول بيرغونو استعمال وو او كه نه؟ او شرعاً د داسې ډول بيرغونو د استعمالولو حكم څه دى؟ بينوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** نبي كريمﷺ او صحابۀ كرامو رضوان الله عليهم اجمعين به د جنګ په ميدانونو كښې بيرغونه استعمالول ليكن له جنګ څخه پرته له صحابۀ كرامو څخه د بيرغونو استعمال نه قولاً او نه فعلاً ثابت دي- نن صبا چه خلك په كورونو، دوكانونو او بازارونو كښې بيرغونه لګوي كه چېرته له التزام پرته وي نو په اباحت باندې به محموليږي ځكه چه په شيانو كښې اصل شى اباحت دى-

لما قال العلامة ابن نجيم المصرى رحمه الله: الاصل فى الاشياء الاباحة. (الاشباه و النظائر مع شرحه للحموى ج١، ص٢٢٣)

و نقل الشيخ احمد بن محمد الحمويؒ عن قاسم بن قطلوبغا ان المختار ان الاصل الاباحة عند جمهور اصحابنا. (غمز عيون البصائر ج١، ص٢٢٣، قاعدة الاصل فى الاشياء الاباحة) و مثله فى البحر الرائق ج٦، ص١٢٤، باب المرابحة و التولية.

البته كه چېرته په كوم ځاى كښې د ديندارو خلكو د ډير والي د ښكارولو لپاره بيرغونه استعمال شي نو په دې كښې څه حرج نشته-





## د بې دينه خلكو د مشابهت د غوره كولو حكم

**سوال:** يو سړى پخپله نه كمونست دى او نه مغربي جمهوريت خوښوي ليكن پخپل كور او دوكان باندې د كمونست، سوشلزم يا مغربي جمهوريت خوښوونكو ډلو بيرغونه لګوي او د كومې ديني يا اسلامي ډلې بيرغ نه لګوي نو شرعا د دې سړي دا ډول عمل څنګه دى؟ بينوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** شريعت مطهره د غير مسلمو خلكو د شعار له خپلولو څخه منع فرمايلې ده- د دې لپاره د نوموړى سړى بايد د داسې كار و نه كړت چه له مخې ئې د غير مسلمو قومونو سره مشابهت راځي يا كومې بې ديني ته پرې قوت وركول كيږي-

لما ورد فى الحديث: عن ابن عمر رضى الله عنه قال قال رسول اللهﷺ من تشبّه بقوم فهو منهم. (سنن ابى داؤد ج٢، ص٢٠٣، كتاب اللباس)

عن النبىﷺ قال ليس منا من تشبّه بغيرنا لا تشبّهوا با ليهود و لا با لنصارىٰ. (ترمذى ج٢، ص٩٩، ابواب استئذان)

## د مرتد قتل كول د چا ذمه واري ده؟

**سوال:** كه چېرته په كومې داسې علاقې كښې چه هلته حكومت نه وي كوم مسلمان مرتد شي نو له هغه سره به څه معامله كيږي؟ او كه چېرته ئې قتل ضروري وي نو قتل ئې د چا ذمه واري ده؟ بينوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د مرتد په باره كښې فقهاء كرامو ليكلي دي چه د وخت حاكم كه چېرته مناسبه وګڼي نو هغه ته دې درې ورځې مهلت وركړي تر څو چه د اسلام د دين په اړه كه چېرته د هغه په ذهن كښې كوم شبهات پيدا شوي وي هغه ختم شي او دوباره اسلام قبول كړي او سيده لارې ته را واوړي ليكن كه چېرته تر دريو ورځو پورې د ټولو كوششونو څخه وروسته هم مسئله هم هغسې پاتې شي نو بيا دې حاكم د هغه د قتل حكم وركړي ليكن په عوامو كښې هيڅوك هم دا اختيار نه لري- دا د حكومت ذمه واري ده تر دې پورې چه كه چېرته څوك پخپل سر كوم مرتد قتل كړي نو له هغه څخه به ئې پوښتنه كيږي-

لما قال العلامة ابن نجيم المصرىؒ: تحت قول كنز الدقائق قوله و كره قتله قبله اى قبل عرض الاسلام لان اسلامه مرجو. قال فى الهداية و معنى الكراهة هنا ترك المستحب يعنى فهى كراهة تنزيهة و هو مبنى على القول باستحباب العرض و اما من قال بوجوبه فهى كراهة تحريم كما فى فتح القدير اطلقه فشمل قتل الامام و غيره و لكن ان قتلهٗ غيره او قطع عضواً منه بغير اذن الامام ادّبه الامام. (البحر الرائق ج٥، ص١٢٨، كتاب الجهاد)

لما فى الهندية: فان قتله قاتل قبل عرض الاسلام عليه او قطع عضواً منه كره ذٰلك كراهة تنزيهة فلا ضمان عليه لٰكنه اذا فعل بغير اذن الامام ادب على ما صنع. (الفتاوى الهندية ج٢، ص٣٥٤، كتاب السير) و مثله فى رد المحتار ج٣، ص٣١٣، كتاب السير.

## په حدودو او قصاص کښې د وخت د حاکم د اختیار دائره

**سوال:** په کوم سړي باندې د قصاص یا حدود تر ثبوت وروسته د وخت حاکم د شریعت له مخې د کوم ډول ترمیم حق لري او که نه؟ په د اسې حال کښې چه په عامه توګه د قصاص په موقع باندې د ملک بادشاه د مروجه قانون له مخې د رحم د غوښتنې په صورت کښې د معافي اعلان کوي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** حدود او قصاص د اسې سزا ګانې دي چه الله تعالی پخپله ټاکلې دي۔ په عوامو کښې کوم یو فرد یا ډلې ته په د غو سزا ګانو کښې د لاس وهنې حق نه لري۔ همدا رنګه د ملک بادشاه هم د ا حق نه لري چه په د غو سزا ګانو کښې کوم ډول ترمیم یا رد او بدل وکړي۔

لما قال العلامة علاؤ الدين الكاسانى رحمه الله: و اما صفات الحدود فنقول و با لله التوفيق لا خلاف فى حد الزنا و الشرب و السكر و السرقة انهٗ لا يحتمل العفو و الصلح و الابراء بعد ما ثبت با لحجة لانهٗ حق لله تعالى خالصاً لا حق للعبد فيه فلا يملك اسقاطه. (البدائع الصنائع ج۷، ص۲۵۵، كتاب الحدود)

و قال العلامة عبد القادر عودةؒ: و الحد هو العقوبة المقررة حقاً لله تعالى...... يعنون بذلك انها لا تقبل الاسقاط من الافراد و لا من الجماعة......... و لانها عقوبات لازمة فلا يستطيع القاضى ان ينقص منها او يزيد فيها كما انه لا يستطيع ان يتبدّل بها غيرها. (التشريع الجنائى الاسلامى ج۱، ص۶۳۵، الفصل الاول، العقوبات المقررة لجرائم الحدود)

البته په قصاص کښې د مقتول وارثانو ته شریعت د ا اختیار ورکړی دی چه له قاتل څخه قصاص واخلي یا دیت ترې واخلي او یائې پرته له کومې معاوضې معاف کړي۔ له دوی پرته کوم بل څوک یا د وخت حاکم شرعاً د ا حق نه لري چه د مقتول د وارثانو له خوښې پرته قاتل معاف کړي۔

لما قال العلامة علاؤ الدين الكاسانى رحمه الله: و اما بيان ما يسقط القصاص بعد وجوبه فا لسقط لهٗ انواع...... العفو...... و اما الشرائط فمنها ان يكون العفو من صاحب الحق لانهٗ اسقاط الحق و اسقاط الحق و لا حق محال فلا يصح العفو من الاجنبى لعدم الحق. (بدائع الصنائع ج۷، ص۶۱، كتاب الحدود)

و قال عبد القادر عودةؒ: تجيز الشريعة للمجنى عليه او ولى دمه ان يعفو عن عقوبتى القصاص و الدية. (التشريع الجنائى الاسلامى ج۱، ص۷۷۵، الباب السادس سقوط العقوبة) و مثله فى الهداية الآخرين ص۵۵۶، كتاب الجنايات.

## د اصلاحي کمیټې د اختیار دائره

**سوال:** په علاقايي سطحې باندې د معاشرې د اصلاح او د جرائمو د مخنیوي لپاره که چېرته د علاقې په مخورو باندې مشتمله کومه د اسې کمیټه جوړه شي چه د حکومت له خوا څخه مکمله واک ورکړ شوي وي نو آیا د اسې کمیټې د حدودو او تعزیراتو د مقدماتو فیصلې کولې شي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د شرعي نقطهٔ نظر له مخې د حدودو او تعزیراتو د قیام حق یوائې حکومت یا د هغه له خوا څخه غوره شوی قاضي لري۔ له دوی پرته شریعت په رعیت کښې هیڅ یو سړي یا اداري ته د ا اجازه نه ورکوي۔ د دې لپاره د حدود او قصاص د مقدماتو فیصلې



د د اسې کمیټې د اختیار له د ائرې څخه د باندې ده۔

لما قال العلامة علاؤ الدين الكاسانى رحمه الله: و اما شرائط جواز اقامتها فمنها ما يعم الحدود كلها و منها ما يخص البعض دون البعض اما الذى يعم الحدود كلها فهو الامامة و هو ان يكون المقيم للحد هو الامام او من ولاه الامام و هذا عندنا. (بدائع الصنائع ج۷، ص۵۷، كتاب الحدود)

و قال الامام سيد سابق رحمه الله: و التعزير يتولاه الحاكم لان له الولاية العامة على المسلمين. (فقه السنة ج۲، ص۵۰۰، كتاب الحدود)

و قال ابن الهمامؒ: بخلاف الحدود فانها لم تثبت توليتها الا للولاة و بخلاف التعزير الذى يجب حقاً للعبد با لقذف و نحوه فانه لتوقفه على الدعوى لا يقيمه الا الحاكم الا ان يحكما فيه. (فتح القدير ج۵، ص۱۱۳، فصل فى التعزير) و مثله فى رد المحتار ج۳، ص۱۹۸، باب التعزير.

## په جُمعې او عیدینو کښې د سلطان د شرط څرنګوالی

**سوال:** د ښځو د اقتدار په دور کښې د جُمعې او اخترونو په وجوب باندې کوم اثر لوېږي او که نه؟ څکه چه فقهاء کرامو د ا د وجوب لپاره د سلطان یا د هغه د نائب شرط لګولی دی په د اسې حال کښې چه د ښځو په اقتدار کښې د ا شرط مفقود وي۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د جُمعې او اخترونو د لمانځه د صحت لپاره د سلطان شرط والی مقصود بالذات نه دی بلکه په د اسې مواقعو کښې د دې اشتراط مقصد د مسلمانانو د خپل منځي معاملاتو څارنه ده۔ په عمومي ډول په د اسې حالاتو کښې د خلکو د ډیر والي له وجې خپل منځي اختلافاتو د پیدا کیدو خطر وي۔ د دې لپاره شریعت په د اسې مواقعو باندې د سلطان یا د هغه له خوا ټاکل شوي سړي ته اعتبار ورکړی دی تر څو چه څاته د خبرې کولو موقع په لاس ور نه شي۔ همدا وجه ده چه که چېرته د مسلمانانو لپاره د خپل منځي خوښې په صورت کښې څوک خطیب وټاکل شي نو بیا د سلطان یا د هغه د نائب د نه موجودوالي په صورت کښې د جُمعې او عیدینو لمونځونه جائز دي۔

لما فى الهندية: و لو تعذر الاستيذان من الامام فا جتمع الناس على رجلٍ يصلّى بهم الجمعة جاز. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۱۴۶، باب الجمعة)

و قال العلامة ابن نجيم المصرى رحمه الله: و السلطان هو الوالى الذى لاولى فوقه و انما كان شرطاً للصحة لانها تقام بجمعٍ عظيم و قد تقع المنازعة فى التقديم و التقدم و قد تقع فى غيره فلا بد منه تتميماً لامره.......... و لو لم يكن ثمه قاض و لا خليفة الميت فاجتمع العامة على تقديم رجلٍ جاز للضرورة. (البحر الرائق ج۲، ص۱۴۳، كتاب الجنائز)

لما فى الهندية: بلاد عليها ولاة كفار يجوز للمسلمين اقامة الجمعة و يصير القاضى قاضياً بتراضى المسلمين و يجب عليهم ان يلتمسوا والياً مسلماً. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۱۴۶، باب الجمعة)

## د حکومت د غیر شرعي اقداماتو د ردولو حکم

**سوال:** ډیر ځله د اقتدار خاوندان د اسې فیصلې کوي چه له قرآن او حدیث سره ټکر وي. په د اسې صورت کښې له رعیت څخه کوم سړی به تر کومه ځایه پورې د خپلې ذمه وارۍ احساس باید وکړي؟

**الجواب:** د خلفاء راشدینو د خلافت په دور کښې چه کله کوم کار د اسلام په خلاف کیده نو په رعیت کښې هر یو سړي او فرد په باقاعده توګه د ا حق درلود چه د خپل وس مطابق ئې د هغه غلط کار مخنیوی کړی وای. که چېرته پخپله له خلیفه څخه هم د بې خبرۍ په حالت کښې د شریعت خلاف کوم کار کیده نو په رعیت کښې به یوه نه یوه سړي خامخا هغه ور په ګوته کاوه او د خلفاوو له خوا څخه به د هغه سړي حوصله افزايي کیدله.

حضرت ابو بکر صدیق رضی الله عنه په یوې تاریخي خطبې کښې د رعیت عامو وګړوته د هر حق په ورکولو سره وفرمایل: اما بعد! ایها الناس فانی قد ولیت علیکم و لست بخیرکم فان احسنت فاعینونی و ان اسأت فقومونی...... اطیعونی ما اطعت الله و رسوله فاذا عصیت الله و رسوله فلا طاعة لی علیکم. (البداية و النهاية ج۶، ص۳۰۵/۳۰۶، مناقب ابو بکرؓ)

حضرت عمر فاروق رضی الله عنه یو ځل د ښځو د حق مهر په باره کښې وفرمایل چه په راتلونکي کښې به د ښځو حق مهر له څلور سوه درهمو څخه زیات نه وي. په دې باندې یوې ښځې وویل چه الله تعالی خو د ا فرمایي چه "وَ اٰتَيْتُمْ اِحْدٰهُنَّ قِنْطَارًا" (ورکړي وي تاسو یوې ته د دوی ډیر مال) د دې ښځې په دې ویناسره حضرت عمر رضی الله عنه له خپلې خبرې څخه رجوع وکړه او د دې ښځې حوصله افزايي ئې وکړه.

قال عمرؓ لا تغالوا فی مهور النساء فقالت امرأة لیس ذلك یا عمرؓ ان الله یقول "وَ اٰتَيْتُمْ اِحْدٰهُنَّ قِنْطَارًا" من ذهب...... فقال عمرؓ ان امرأة خاصمت عمرؓ مخصمتة. (تفسير ابن كثير ج۱، ص۴۶۷، سورة النساء)

البته که چېرته په کوم ځای کښې د حقې خبرې په کولو سره د سړي ځان خطر وي یا د ښکنځا او بدو ردو خطر وي او د صبر کولو طاقت هم په ځان کښې نه ویني نو بیا د د اسې سړي لپاره چُپ یعنی غلې اوسېدل بهتر دي.

لما فی الهندیة: و لو علم باکبر رأیه انه لو امرهم بذلك قذفوه و شتموه فترکه افضل و کذلك لو علم انهم یضربونه و لا یصبر علی ذلك و یقع بینهم عداوة و یهیج منه القتال فترکه افضل. (الفتاوی الهندیة ج۵، ص۳۵۳)

قال عمرؓ احبّ الناس الیّ من رفع الیّ عیوبی. (کنز العمال ج۹، ص۲۵۵۷۳)

## د جمهوري حکومت په خلاف د غیږ پورته کولو حکم

**سوال:** نن صبا په پاکستان کښې زیاتره مغربي ډوله جمهوري نظام نافذ دی. که چېرته له عوامو څخه کومه ډله یا څو کسان د جمهوري نظام د ځینو خامیو په خلاف جلسې او جلوسونه وباسي



او د اقتدار د خاوندانو په خلاف سره ټول شي نو آیا د ا خلك د حکومت باغیان بلل کیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په مغربي ډوله جمهوري نظام کښې د حکومت په خلاف آواز پورته کول د جمهوریت تقاضا ده بلکه جمهوري حکومت د خپل ځان خلاف مخالفتونه د خپلې بقاء ذریعه ګڼي. د دې لپاره په دې نظام کښې جلسې، جلوسونه یا په یوې بلې مناسبې طریقې سره د حکومت په خلاف د آواز پورته کول د جمهوري نظام برخه ده. د اسې کول نه بغاوت دی او نه مخالفین باغیان بلل کیږي.

لما قال العلامة علاؤ الدين الكاسانيؒ: فالبغاة هم الخوارج و هم قوم من رأيهم ان كل ذنب كفر كبيرة كانت او صغيرة يخرجون على امام اهل العدل و يستحلون القتال و الدماء و الاموال بهٰذا التاويل و لهم منعة و قوة. (بدائع الصنائع ج۷، ص۱۴۰، كتاب السير)

و قال العلامة الحصكفيؒ: البغي لغة الطلب و منه ذٰلك ما كنا نبغي و عرفاً طلب ما لا يحل من جور و ظلم فتح و شرعاً هم الخارجون على الامام الحق بغير حق فلو بحق فليسوا ببغاة. (الدر المختار على هامش رد المحتار ج۳، ص۳۳۸، كتاب السير) و مثله فی احكام السلطانية للماورديؒ ص۵۸، الباب الخامس فی الولاية حروب المصالح.

## د غیر اسلامي نظام په خلاف د تحریك چلولو حکم

**سوال:** په موجوده دور کښې د دُنیا په ګڼو ملکونو کښې د ژوند انه غیر اسلامي نظامونه لکه سوشلزم، کمیونزم او د اسې نور قوانین چلیږي. او ځینې مسلمان بادشاهان هم له د اسې ډول قوانینو څخه متاثر شوي دي. که چېرته له مسلمانانو څخه څه کسان یا کومه ډله د دې ډول قوانینو په خلاف کوم تحریك وچلوي او خلکو ته د اسې نظام بدي او غلطۍ ور په ګوته کړي نو شرعاً د اسې ډول تحریك چلولو حکم څه دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب:** سوشلزم، کمیونزم او مغربي جمهوریت دژوند انه د ا ټول نظامونه د اسلام له اصولو سره ټکر دي. د د اسې کوم یوه نظام په خلاف آوا ز پورته کول، کوشش کول یا کوم تحریك چلول د ثواب موجب دي. ځکه چه د ژوند انه د ا ټول نظامونه په منکراتو کښې داخل دي. په ځانګړې توګه چه کله د ژوند انه په دغو نظامونو کښې دیني ویاړونه له متاثر کیدو سره نه پاتې کیږي. په هغه وخت کښې په مسلمانانو باندې لازم دي چه د دغو منکراتو مخنیوی وکړي. او که چېرته د منکراتو د له منځه وړلو لپاره کومه ډله جوړه شي یا کوم خاص تحریك وچلول شي نو د ا به یو ښه کار او د فخر وړ عمل وي.

لقوله تعالی: وَ لۡتَكُنۡ مِّنۡكُمۡ اُمَّةٌ يَّدۡعُوۡنَ اِلَى الۡخَيۡرِ وَ يَاۡمُرُوۡنَ بِالۡمَعۡرُوۡفِ وَ يَنۡهَوۡنَ عَنِ الۡمُنۡكَرِ وَ اُولٰٓئِكَ هُمُ الۡمُفۡلِحُوۡنَ☆ (سورة آل عمران، آيت ۱۰۴)

و قال عليه الصلوة و السلام: من رأى منكم منكراً فليغيّره بيده فان لم يستطع فبلسانه فان لم يستطع فبقلبه و ذلك اضعف الايمان. (صحيح مسلم ج۱، ص۵۱، كتاب الايمان)

و فی الهندیة: یقال الامر با لمعروف با لید علی الامراء و با للسان علی العلماء و با لقلب لعوام الناس. (الفتاوی الهندیة ج۵، ص۳۵۳، کتاب الکراهیة) و مثله فی جامع الترمذی ج۲، ص۴۰، باب الفتن.

و عن جریرؓ قال سمعت النبیﷺ یقول ما من رجل یکون فی قوم یعمل فیهم با لمعاصی یقدرون علی ان یغیروا علیه فلا یغیروا الا اصابهم الله بعقاب من قبل ان یموتوا. (ابو داؤد ج۲، ص۲۴۰، کتاب الملاهم)

## د ار ته د خیژولو د سزا شرعي حکم

**سوال:** د پاکستان په قانون کښې قاتل چه د پانسۍ یا د ار ته د خیژولو کومه سزا ورکول کیږي د شریعت له مخې دا په قصاص کښې شمارل کیږي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** شریعت چه د قصاص اخیستلو کوم شرائط مقرر کړي دي د موجوده قانون مطابق د ار ته د خیژولو په سزا کښې هغه مفقود دي۔ د دې لپاره د پانسۍ سزا ته شرعا تعزیر ویل کیږي او قصاص ویل ورته صحیح نه دي۔ په قصاص کښې په بُنیادي توګه درې شرطونه دي۔

﴿۱﴾ له قاتل څخه قصاص اخیستل په حقیقت کښې د مقتول د وارثانو کار دی۔ که وارثان وغواړي نو قصاص دې واخلي او که وغواړي نو دیت دې ترې واخلي او که وغواړي نو معاف دې کړي۔

﴿۲﴾ د قصاص د اخیستلو په وخت کښې د وارثانو حاضریدل ضروري دي۔

﴿۳﴾ د احنافو په نزد یو شرط دا هم دی چه قصاص به په توره اخیستل کیږي۔ په داسې حال کښې چه نن صبا د ار ته د خیژولو په صورت کښې دا درې واړه شرطونه نشته۔

لما قال العلامة علاؤ الدین الکاسانیؒ: فولایة استیفاء القصاص تثبت باسباب منها الوراثة و جملة الکلام فیه ان الوارث لا یخلوا....... فان کان الکل کباراً فلکل واحد منهم ولایة استیفاء القصاص حتیٰ لو قتله احدهم صار القصاص متوفی....... الا ان حضور الکل شرط جواز الاستیفاء و لیس للبعض ولایة الاستیفاء مع غیبة البعض لان فیه احتمال استیفاء ما لیس بحق له لاحتمال العفو من الغائب و فی فصل آخر. فا لقصاص لا یستوفی الا با لسیف عندنا. (بدائع الصنائع ج۷، ص۲۴۳/۲۴۵، کتاب الجنایات)

و قال العلامة ابن عابدین رحمه الله: "و للکبار القور" ای اذا قتل رجل له ولی کبیر و صغیر کان للکبیر ان یقتل قاتله....... لو کان الکل کباراً لیس للبعض ان یقتص دون البعض و لا ان یوکل باستیفائه لان فی غیبة المؤکل احتمال العفو فا لقصاص لیحقه من یستحق ماله. (رد المحتار ج۵، ص۳۸۳، کتاب الجنایات) و مثله فی الفتاوی الهندیة ج۶، ص۷، کتاب الجنایات، الباب الثالث.

هو! د قاتل د ار ته خیژول که قصاص هم نه وي نو بیا هم د دې اجراء او نافذول ناجائز نه دي بلکه قاتل ته د دار د خیژولو سزا ورکول یو ښه او مستحسن کار دی۔



## په سرکاري ادارو کښې افسرانو ته سلیوټ یعنې د سلامي کولو شرعي حیثیت

**سوال:** سرکاري افسرانو ته د لاندې طبقې خلك سلیوټ (سلامي) کوي۔ همدارنګه په مکتبونو او ځینو نورو سرکاري ادارو کښې د بیرغ د پورته کولو په وخت کښې خلك دریږي او بیرغ ته سلام کوي۔ آیا دا ډول سلام په شرعي سلام کښې داخل دی او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په شریعت مطهره کښې د سُنت سلام لپاره د سلام الفاظ په ژبې سره ادا کول ضروري دي۔ هو! که چیرته یو څوك له بل سړي څخه دومره لرې وي چه د یوه او بل آواز ئې نه شوای اوریدلی نو په ژبې سره د سلام د الفاظو د ادا کولو تر څنګ په لاس باندې اشاره کول هم جائز دي۔

لما فی الهندیة: و فی النوازل رجل جالس مع قوم سلم علیهم رجل فقال السلام علیك فرده بعض القوم ینوب ذٰلك عن الذی سلم علیه المسلم و یسقط عنه الجواب یرید به اذا اشار الیهم و لم یسم لان قصده التسلیم علی الکل و یجوز ان یشار الی الجماعة بخطاب الواحد هٰذا اذا لم یسلم ذٰلك الرجل فاما اذا سماه فقال السلام علیك یا زید فاجابه غیر زید لا یسقط الفرض عن زید و ان لم یسم و اشار الیٰ زید یسقط لان قصده التسلیم علی الکل. (الفتاوی الهندیة ج۵، ص۳۲۵، کتاب الکراهیة، الباب السابع فی السلام)

په سرکاري ادارو کښې چه د سلام کومه طریقه رائجه ده په هغې کښې اصل شی د لاس او پښو اشاره ده که سلام اچوونکي او وراچوونکي له یوه او بل څخه لرې وي او که نژدې په هر حال کښې سلام د لاس او پښې په اشاره ادا کیږي، په ژبې سره د سلام الفاظ ادا کول یوائځې ضمني وي۔ شریعت مطهره یوائځې د لاس او داسې نورو اندامونو په اشارې سره سلام اچول مکروه او له یهودو او نصاراوو سره مشابهت بللی دی۔

کما فی الحدیث النبویﷺ: عن النبیﷺ قال لیس مِنّا تشبّه بغیرنا لا تشبهوا با لیهود و لا با لنصاریٰ فان تسلیم الیهود الاشارة با لاصابع و تسلیم النصاریٰ الاشارة با لکف. (الجامع الترمذی ج۲، ص۹۹، ابواب الاستیذان و الادب)

روی الامام ابو جعفر احمد بن محمد الطحاویؒ: عن ابراهیم النخعی قال ترفع الایدی فی سبع مواطن فی افتتاح الصلوٰة و فی التکبیر للقنوت فی الوتر و فی العیدین و عند استلام الحجر و علی الصفاء و المروة و بجمع عرفات و عند المقامین عند الجمرتین. قال ابو یوسفؒ فاما فی افتتاح الصلوٰة و فی العیدین و فی الوتر و عند استلام الحجر فیجعل ظهر کفّیه الی وجهه و اما فی الثلاث الاُخر فیستقبل بباطن کفیه. (شرح معانی الآثار ج۱، ص۴۱۷، باب رفع الیدین)

پاتې شوه دا خبره چه د بیرغ د درولو په وخت کښې خلك دریږي او د لاس په اشارې سره د تعظیم په خاطر بیرغ ته سلام کوي نو دا یوائځې یو رسم او رواج دی په شریعت مطهره کښې د دې هیڅ ثبوت نشته۔ په خیر القرون کښې هم د اسلام مجاهدینو بیرغونه درلودل لیکن له هیچا څخه هم د بیرغ دا ډول تعظیم ثابت نه دی۔ له دې برسیره په شریعت مقدسه کښې په

کومو ځايونو کښې چه د لاس په پورته کولو سره تعظيم کول ثابت دي په هغو کښې د بيرغ هيڅ يادونه نه ده شوې۔

## د شرعي قوانينو د نه جاري والي له وجهې د مجرم (ګنهګار) ذمه واري

**سوال:** په کوم ملك کښې چه د حدود او قصاص غوندې سزاګانې نه اجراء کيږي هلته که چېرته يو څوك د داسې جرم ارتکاب وکړي چه د حد موجب وي او دا سړى خپل ځان د حد لپاره وړاندې کوي هم ليکن د حدودو د نه اجراء له وجهې آيا دا سړى يواځې په توبې باندې اکتفاء کولى شي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د حدودو او قصاص د اجراء ذمه واري په حُکامو باندې دى۔ که چېرته په کوم ملك کښې حکام د حدودو او قصاص عملا اجراء نه کوله نو په داسې ملك کښې د جُرم د مرتکب (ګنهګار) لپاره يواځې په توبې او استغفار باندې اکتفاء کول صحيح دي۔ ځکه چه د مجرم کار له عذاب څخه د ځان ساتلو لپاره توبه کول دي او د حُکامو او قاضيانو کار د جُرم تر ثابت کيدو وروسته د حدودو او قصاص په عملي توګه نافذول دي۔

لما قال العلامة ابن نجيم المصرى رحمه الله: و الحاصل ان الواجب على العاصى فى نفس الامر التوبة فيما بينه و بين الله تعالىٰ و الانابة ثم اذا اتصل با لامام ثبوته وجب اقامة الحد على الامام و لا يمتنع من اقامة بسبب التوبة. (البحر الرائق ج۵، ص۳، كتاب الحدود)

و فى الهندية: و ركنه اقامة الامام او نائبه فى الاقامة....... و الطهرة من الذنب ليست بحكم اصلى لاقامة الحد لانها تحصل با لتوبة لا بقامة الحد و لهٰذا يقام الحد على الكافر و لا طهرة لهٗ كذا فى التبيين. (الفتاوى الهندية ج۲، ص۱۴۳، كتاب الحدود، الباب الاول) و مثله فى رد المحتار ج۳، ص۱۵۴، كتاب الحدود.

## په انګـــــــريزي قانون کښې لونړې د ميراث له حق څخـــــه د محـــــرومولو شرعي حکم

**سوال:** د انګريزي قانون مطابق د پلار په ميراث کښې لونړو ته هيڅ برخه نه ورکول کيږي نو آيا د داسې قانون لاندې لونړې د ميراث له حق څخه محرومول شرعا جائز دي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په اسلامي قانون کښې د پلار په ميراث کښې لور ته په باقاعده توګه خپله برخه ورکول کيږي۔ د دې لپاره د انګريزي قانون لاندې لونړې له خپل حق څخه محرومول شرعاً ناجائز او حرام دي۔ د يوه مسلمان لپاره ضروري ده چه د کوم غير اسلامي قانون د اسرې نيولو په ځاى د مقدس شريعت په مخکښې د تسليم خپل سر تيټ کړي اګر که په ظاهره هغه ته نقصان هم وي۔

قال الله تبارك و تعالىٰ: يُوْصِيْكُمُ اللّٰهُ فِىْٓ اَوْلَادِكُمْ لِلذَّكَرِ مِثْلُ حَظِّ الْاُنْثَيَيْنِ فَاِنْ كُنَّ نِسَآءً فَوْقَ اثْنَتَيْنِ فَلَهُنَّ ثُلُثَا مَا تَرَكَ وَ اِنْ كَانَتْ وَاحِدَةً فَلَهَا النِّصْفُ. (سورة النسآء، آيت ۱۱)

و قال الامام سراج الدين محمد بن عبد الرشيد السجاوندىؒ: و اما لبنات الصُلب فاحوال ثلث، النصف للواحدة و الثلثان



للاثنين فصاعدة و مع الابن لِلذَّكَرِ مِثْلُ حَظِّ الْاُنْثَيَيْنِ و هو يعصبهن. (السراجى ص۸، كتاب الفرائض) و مثله فى شريفية شرح سراجية ص۲۱، الفرائض.

## په کوم شي باندې تر ډير وخت پورې قبضه د مِلکيت لپاره ګټوره نه ثابتيږي

**سوال:** په ملك کښې يو داسې قانون جاري دى چه که چېرته د اجارې په صورت کښې کومه زمکه يا بل شى تر شپيتو کلونو پورې له مستاجر سره پاتې شي نو هغه زمکه يا بل شى د مستاجر مِلك ګڼل کيږي۔ دا قانون د "زاد الميعاد" په نامه ياديږي۔ نو آيا دا قانون شرعاً صحيح قانون دى او که څنګه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له انګريزي دورې څخه جاري شوى د "زاد الميعاد" په نامه دا ظالمانه قانون شرعا هيڅ حيثيت نه لري۔ شريعت مطهره په اجاره کښې د مودې هيڅ تعين نه دى کړى بلکه که چېرته اجير کومه زمکه يا بل شى مستاجر ته د دومره زياتې مودې لپاره په اجاره ورکړي چه د هغو ژوندى پاتې کيدل پکښې محال وي نو بيا هم اجاره صحيح ده او د دومره زياتې مودې په تيريدو سره هم زمکه شرعاً د مستاجر په مِلکيت کښې نه شي راتلى۔

لما قال العلامة سليم رستم بازؒ: (تحت قول مجلّة الاحكام) "للمالك ان يوجر ماله و ملكه لغيره مدة معلومة قصيرة كانت كيوم او طويلة كسنين". او اكثر حتىٰ لو اجرها الىٰ مدة لا يعيش العاقدان الىٰ مثلها عادة جاز و اختاره الخصاف و منعه بعضهم و ظاهر اطلاق المتون ترجيح الاول. (شرح المجلة ص۲۷۱، المادة ۴۸۴، كتاب الاجارات)

لما فى الهندية: يصح العقد على مدة معلومة اى مدة كانت قصرت المدة كا ليوم و نحوهٖ او طالت كا لسنين كذا فى المضمرات و يعتبر ابتداء المدة مما سمى و ان لم يسم شيئاً فهو من الوقت الذى استاجرها. (الفتاوى الهندية ج۴، ص۴۱۵، كتاب الاجارة، الباب الثالث) و مثله فى البزازية على هامش الهندية ج۵، ص۱۸، كتاب الاجارة، تفريعات على الاجارة الطويلة.

## د تعـــــــزير بالمال شرعي حکم

**سوال:** که چېرته په علاقايي سطحې سره د حکومت له خوا څخه جوړې شوي کميټى د جرمونو د مخنيوي لپاره له مجرمانو څخه مالي جرمانې وصول کړي نو د داسې کميټيو دا اقدام شرعا جائز دى او که نه؟ همدارنګه په تعليمي ادارو کښې له هلکانو څخه په غير حاضري باندې جُرمانې اخيستل کيږي۔ نو آيا د داسې جرمانو د اخيستلو شرعي حيثيت څه دى؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د مالي جُرمانې مسئله د فقهاوو تر منځ اختلافي ده۔ د احنافو په اصل مذهب کښې په چا باندې مالي جرمانه لګول صحيح نه دي ځکه چه د هيڅ يوه مسلمان مال د هغه له خوښې پرته اخيستل جائز نه دي۔

لحديث النبى ﷺ: لا يحل مال امرئ مسلم الا بطيب نفس منه. (كنز العمال ج۱، ص۳۹۷/ الفردوس للديلمى ج۵، ص۱۱۰، رقم ۷۶۳۵)

و قال العلامة ابن عابدین رحمه اللّٰه: تحت الدر المختار "لا باخذ مال فی المذهب" و عن ابی یوسفؒ یجوز التعزیر للسلطان باخذ المال و عندهما و باقی الائمة لا یجوز......... و افاد فی البزازیة ان معنی التعزیر باخذ المال علی القول به امساك شیء من ماله عند مدة اذ لا یجوز لاحد من المسلمین اخذ مال احد بغیر سبب شرعی........ و اری ان یاخذها فیمسکها فان ائیس من توبته یصرفها الٰی ما یرٰی. و فی شرح الآثار التعزیر با لمال کان فی ابتداء الاسلام ثم نسخ و الحاصل ان المذهب عدم التعزیر باخذ المال. (رد المحتار ج۳، ص ۱۹۶/۱۹۵، فصل فی تعزیر با لمال، کتاب الحدود)

البته په کوم ځای کښې چه له مالي جُرماني پرته کومه بله چاره نه وي او په مالي جُرماني سره د جرائمو مخنیوی کیده نو په د اسې حالت کښې که چېرته د ضرورت د نظریې لاندې د امام ابو یوسفؒ په قول باندې عمل وشي نو دا به ډېره مناسبه وي۔ لکه څرنګه د تعزیر مسئله په قضاء پورې اړه لري او فقهاوو د دې خبرې تصریح کړې ده چه د قضاء په مسائلو کښې دې د امام ابو یوسفؒ قول ته ترجیح ورکول کیږي۔

لما قال العلامة ابن عابدین رحمه اللّٰه: و کل فرع با لقضاء تعلقا....... قول ابی یوسفؒ فیه ینتقٰی........ الفتوٰی علی قول ابی یوسفؒ فیما یتعلق با لقضاء لزیادة تجربته.

و قال العلامة طاهر بن عبد الرشید البخاری رحمه اللّٰه: و سمعتُ من ثقة ان التعزیر باخذ المال ان رأی القاضی و الوالی جاز و من جملة ذٰلك رجل لا یحضر الجماعة یجوز تعزیرہ باخذ المال. (خلاصة الفتاوٰی ج ٤، ص ٤٤٤، کتاب الحدود، فصل فی التعزیر)

و قال الامام سید سابق رحمه اللّٰه: و یجوز التعزیر باخذ المال و هو مذهب ابی یوسفؒ و بهٖ قال مالكؒ. و ایضاً نقل عن معین الحکام و من قال ان العقوبة المالیة منسوخة فقد غلط علی مذاهب الائمة نقلاً و استدلالاً و لیس یسهل دعوٰی نسخها. (فقه السنة ج۲، ص ٤۹۹، کتاب الحدود، فصل فی التعزیر)

## د خوراکي شیانو د نرخ ټاکـــــلو حکم

**سوال:** د ورځني استعمال یعنې د خوراك او څښاك د شیانو د نرخ ټاکل جائز دي او که نه؟ که چېرته جائز وي نو دا به د چا حق وي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د ورځني استعمال شیانو په قیمتونو کښې کموالی او زیاتوالی په تجارتي شرکتونو کښې د ټیټوالي او جګوالي په حالت پورې اړه لري چه د معاشیاتو ماهرین د دې سبب ملکي حالات ګڼي چه د هغه په نتیجه کښې د زر افراط وي لیکن په حقیقت کښې دا د اللّٰه تعالی له خوا څخه د انسانانو د اعمالو نتیجه وي۔ همدا وجه ده چه په حدیث کښې اضافت د اللّٰه تعالی خوا ته شوی دی۔ د دې لپاره کوم حاکم یا والي ته د ورځني استعمال د خوراك او څښاك د شیانو د قیمتونو د ټاکلو اختیار نه لري۔

عن النبیﷺ: ان اللّٰه هو المسعّر القابض الباسط الرازق وانی لارجو ان القی اللّٰه و لیس احد منکم یطالبنی بمظلمة فی دم و لا مال. (سُنن ابی داؤد ج۲، ص ۱۳۳، باب فی التسعیر)

البته چه په کوم ځای کښې تاجران د عوامو له مجبوریو څخه د غلطې ګټې پورته کولو سره



قیمتي پیدا کوي نو په د اسې صورت کښې د قاضي یا حاکم لپاره د خوراك او څښاك د شیانو د قیمتونو ټاکل او بیا د هغه څارنه کول هم ضروري دي۔

لما قال الامام علی ابن ابی بکر المرغینانی رحمه اللّٰه: و لا ینبغی للسلطان ان یسعّر علی الناس فان کان ارباب الطعام یتحکمون و یتعدون عن القیمة تعدیاً فاحشًا و عجز القاضی عن صیانة حقوق المسلمین الا با لتسعیر فحینئذٍ لا بأس به بمشورة من اهل الرأی و البصیرة. (الهدایة ج۳، ص ٤۷۱/٤۷۲، کتاب الکراهیة، فصل فی البیع)

و قال الامام سید سابق رحمه اللّٰه: الترحیص فیه عند الحاجة الیه علی ان التجار اذا ظلموا و تعدوا تعدیاً فاحشاً یضر با لسوق وجب علی الحاکم ان یتدخل و یحدر السعر صیانة لحقوق الناس و منعاً للاحتکار و دفعاً للظلم الرافع علیهم من جشع التجار. (فقه السنة ج۳، ص ۱۶۰/۱۶۱، کتاب الکراهیة التسعیر) و مثله فی تبیین الحقائق ج٦، ص۲۸، کتاب الکراهیة، فصل فی البیع.

## د حکومت له خوا څخه د لګول شویو ټکسونو (مالیو) شرعي حیثیت

**سوال:** نن صبا په ملك کښې تقریباً هرې خوا ته د ټیکسیشن (مالیې اخیستنې) نظام جاري دی چه د انکم ټیکس، ټریډ ټیکس، کسټم ډیوټي ټیکس، سیلز ټیکس او آبکاري ټیکس په شکلونو کښې په عوامو باندې ټپل شوي دي۔ نو آیا شریعت مطهره حکومت ته له زکات او صدقاتو څخه پرته په رعایاوو باندې د نورو ټیکسونو د لګولو اجازه شته او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په شریعت مطهره کښې په ښکاره توګه دا څرګندیږي چه په مسلمانانو باندې له زکات څخه پرته د نور مال د لګولو ذمه واری هم راګرځي۔ د الله تبارك و تعالی له دې ارشاد څخه ښکاریږي چه د اغنیاوو په مالونو کښې د فقیرانو او مسکینانو برخه شته۔

قوله تعالی: وَفِیْٓ اَمْوَالِهِمْ حَقٌّ لِّلسَّآئِلِ وَالْمَحْرُوْمِ. (سورة الذّٰریٰت، آیت ۱۹)

امام ابو بکر جصاص رحمه الله د دې آیت په تفسیر کښې فرمایي چه په مال کښې له زکات څخه پرته نور حقونه هم شته او هغه په دې خبرې باندې د اُمت اجماع را نقل کړې ده او فرمایي:

فقال ابن عمر و الحسن و الشعبي و مجاهد هو حق سوی الزکوٰة واجب فی المال........ قال ابو بکر هذه الاخبار کلها مستعملة و فی المال حق سوی الزکوٰة باتفاق المسلمین. (احکام القرآن للجصاص ج۳، ص ۵۰۵/۵۰۶، سورة الذّٰریٰت)

له دې برسیره د وخت په حکومت باندې لازم دي چه خپل دفاعي نظام مستحکم او ټینګ وساتي۔ همدارنګه د عامه خیر ښیګنې په کارونو کښې لکه شفا خانې، مسافر خانې او سړکونو او د اسې نورو لپاره ځانګړي شوي فنډ وټاکي، د فقیرانو، مسکینانو او یتیمانو خاصه پاملرنه به کوي۔ که چېرته بیت المال خالي وي او نو د دفاعي نظام د اخراجاتو لپاره د وخت حکومت په غنیانو باندې په محدودې اندازې کښې څه نا څه ټیکس لګولی شي لیکن دا ټیکس به دومره زیات نه لګول کیږي چه د ظلم اندازې ته ورسیږي۔

امام غزالي رحمه الله فرمایي: اما اذا دخلت الایدی من الاموال و لم یکن من مال المصالح ما یفی بخراجات العسکر و لو تفرق العسکر و اشتغلوا با لکسب لخیف دخول الکفار بلاد الاسلام او خیف ثوران الفتنة من اهل العرامة فی بلاد الاسلام فیجوز للامام ان یوظف علی الاغنیاء مقدار کفایة الجند. (المستصفی للامام غزالیؒ ج ۱، ص ۳۰۴)

له دې څخه څرګندیږي چه د وخت حاکم د ضرورت له مخې په مالدارو خلکو باندې ټیکس لګولی شي۔ البته له دې څخه دا خبره نه ثابتیږي چه د موجوده زمانې د ټیکس ټول نظام صحیح دی۔ ځکه چه نن صبا د ټیکس کوم نظام جاري دی په هغه کښې ځینې ټیکسونه غیر شرعي دي او همدارنګه په عامه توګه د ټیکسونو د فیصدي شرح دومره زیاته ده چه د عام انسان د برداشت له قوت څخه ډېر لوړ دی۔ شریعت مقدسه د ټیکسونو شرح د زکات د شرحې له مقدار څخه زیات نه دی لوړ کړی۔

امیر المؤمنین حضرت عمر فاروق رضی الله عنه حضرت انس رضی الله عنه د ټیکس (مالیې) د راټولولو لپاره یو ځای ولیږه نو هغه ته ئې دا حکم وکړ چه له مسلمانانو څخه



څلویښتمه او له ذمیانو څخه شلمه او له حربیانو څخه لسمه برخه مالیه واخلي۔

قال الامام ابو یوسف رحمه الله: فان عمر بن الخطابؓ وضع العشور فلا بأس باخذها اذا لم یعتد فیها علی الناس و یؤخذ باکثر مما یجب علیهم....... قال و حدثنا ابو حنیفةؒ عن القاسم عن انس بن سیرین عن انس بن مالكؓ قال بعثنی عمر بن الخطاب رضی الله عنه علی العشور و کتب لی عهداً ان اخذ من المسلمین بما اختلفوا فیه لتجاراتهم ربع العشر و من اهل الذمة نصف العشر و من اهل الحرب العشر. (کتاب الخراج ص ۱۳۴، فصل فی العشور)

قال الامام ابن حزم الظاهریؒ: قال ابو محمدؒ و فرض علی الاغنیاء من اهل کل بلد ان یقوموا بفقرائهم و یجبرهم السلطان علی ذلك ان لم تقم الزکوٰة بهم و لا فیء سائر اموال المسلمین بهم فیقام لهم بما یاکلون من القوت الذی لا بد منه و من اللباس للشتاء و الصیف بمثل ذلك....... برهان ذلك قوله تعالی "وَاٰتِ ذَا الْقُرْبٰی حَقَّهٗ وَالْمِسْکِیْنَ. (المحلّی ج۲، ص ۴۵۲/۴۵۳، رقم ۷۲۵، کتاب الزکوٰة، قسم الصدقات)

نن صبا د هیواد په ګوټ ګوټ کښې د چونګی ټیکس وصول کیږي چه د ضلع ټیکس په نامه سره یادیږي۔ په شریعت مطهره کښې د دې ډول ټیکس هیڅ جواز نشته بلکه په ښکاره توګه ئې عدم جواز راغلی دی۔

قاضي ابو یعلیٰ رحمه الله د دې ډول ټیکس په باره کښې فرمایي چه د یوه ملك په دننه کښې چه له یوې علاقې څخه بلې علاقې ته د کوم شیانو په وړلو کښې چه کوم ټیکس اخیستل کیږي شریعت هغه حلال نه دی بللی بلکه د اسې ډول ټیکس حرام دی او د عادلانه سیاست سره بالکل ټکر دی او اکثره دا ټیکسونه د ظالمانو په ښارونو کښې وي۔

قال العلامة قاضی ابی یعلیٰؒ: فاما اعشار المنتقلة فی دار السلام من بلد الی بلد فمحرمة لا یبیحها شرعٌ و لا یسوغها اجتهاد و لا هی من سیاسیات العدل و قلما تکون الا فی بلاد الجائرة و لذلك قال رسول اللهﷺ لا یدخل الجنة صاحب مکس و فی لفظ آخر ان صاحب المکس فی النار یعنی العاشر و فی لفظ آخر اذا لقیتم عاشراً فا قتلوه. (الاحکام السلطانیة ص۲۴۶، فاما اعشار الاموال)

البته له یوه ملك څخه بل ملك ته د مالونو او شیانو په وړلو او راوړلو کښې چه کوم کسټم ټیکس لګول کیږي د هغه د جواز ګنجائش شته لیکن په ننني زمانې کښې ځینې ملکونه دا کسټم له اندازې څخه زیات اخلي۔ د دې لپاره د کسټم په ټیکس کښې باید له اعتدال څخه کار واخیستل شي او دا ډول ټیکس د ظلم تر اندازې پورې لوړ نه شي۔

لما قال القاضی ابو یعلیٰؒ: ان کان البلد ثغراً یتاخم دار الحرب و کانت اموالهم اذا دخلت دار الاسلام معشورة عن صلح استقر معهم اثبت فی الدیوان عقد صلحهم و قدر الماخوذ منهم من عشر او خمس او زیادة علیه او نقصان منه و ان کان یختلف باختلاف الامتعة و الاموال فصلت فیه و کان الدیوان موضوعاً لاخراج رسومه و الاستیفاء ما یرفع الیه من مقادیر الامتعة المحمولة الیه. (الاحکام السلطانیة ص۲۴۸، تقدیر العطاء، الفصل السادس)

قال الامام قاضی ابو یوسفؒ: اما العشور فرایت ان تولیها قوماً من اهل الصلاح و الدین و تأمرهم ان لا یتعدو علی الناس فیما یعاملونهم به فلا یظلموهم و لا یأخذوا منهم اکثر مما یجب علیهم. (کتاب الخراج ص۱۳۲، فصل فی العشور)

## په اسلامي مملکت کښې د کفارو د عبادت طـــــــريقه

**سوال:** آيا په اسلامي مملکت کښې غير مسلم خلك د ا حق لري چه د خپل مذهب په ښکاره توګه تبليغ وکړي يا کومه نوې عبادتخانه جوړه کړي يا د خپل مذهب مطابق تول رسومات ادا کړي؟

**الجواب:** په يوه اسلامي مملکت کښې په مسلمان حاکم باندې لازم دي چه د غير مسلم اقليت د ځان او مال حفاظت وکړي ليکن شريعت غير مسلمو ته د ا اختيار نه دی ورکړی چه په بازارونو، حجرو او نورو عامه ځايونو کښې د خپل مذهب خپرونه وکړي- د غير مسلمو عبادت به د خپلو کورونو، زړو عبادت ځايونو (مندرونو، ګرجاوو او چرچونو) پورې محدود وي- همدارنګه غير مسلم د ځان لپاره نوې عبادت ګاه نه شي جوړولی او نه کومه نوې هديره يا د خپلو مړو د سوځولو لپاره نوی ځای جوړولی شي-

لما قال العلامة علاؤ الدين الحصكفى رحمه اللّٰه: و لا يجوز ان يحدث بيعة و لا كنيسة و لا صومعة و لا بيت نار و لا مقبرة و لا صنماً حاوى فى دار السلام و لو قرية فى المختار. (الدر المختار على هامش رد المحتار ج۳، ص۲۹۶، كتاب السير)

و قال الامام قاضى ابو يعلٰى رحمه اللّٰه: و يلزم الذمى ترك ما فيه ضرر على المسلمين و احادهم فى مال او نفس و هى ثمانية اشياء. (۱)الاجتماع على قتال المسلمين. (۲)و ان لا يزنى بمسلمةٍ. (۳)و لا يصيبها باسم نكاح. (۴)و لا يفتن مسلماً عن دينه. (۵)و لا يقطع عليه الطريق. (۶)و لا يودى للمشركين عيناً اَعنى جاسوساً. (۷)و لا يعاونوا على المسلمين بدلالة اعنى لا يكاتب المشركين باخبار المسلمين. (۸)و لا يقتل مسلماً و لا مسلمة. و كذٰلك يلزم ترك ما فيه غضاضة و نقص على الاسلام و هى ثلاثة ذكر اللّٰه تعالٰى و كتابه و دينه و رسوله بما لا ينبغى. (الاحكام السلطانية ص۱۵۸، فصل فى وضع الخراج و الجزية)

البته په کومو ځايونو کښې چه د غير مسلمو کومه عبادت ګاه يا قبرستان او د اسې نور د هغوډ ډير والي يا سر شميرنې د زياتوالي له وجهې ناکافي وي نو د دې ضرورت لاندې هغوی نوې عبادت ګاه يا قبرستان او د اسې نور يو ائې په هغو ځايونو کښې جوړولی شي چه هلته د جُمعې او اخترونو لمونځونه نه ادا کيږي-

لما قال العلامة علاؤ الدين الكاسانى رحمه اللّٰه: و لا يمكنون من اظهار صليبهم فى عيدهم لانهٗ اظهار شعائر الكفر فلا يمكنون من ذٰلك فى امصار المسلمين و لو فعلوا ذٰلك فى كنائسهم لا يتعرض لهم و كذا لو ضربوا الناقوس فى جوف كنائسهم القديمة لم يتعرض كذٰلك لان اظهار التسعار لم يتحقق فان ضربوا بهٖ خارجاً منها لم يمكنوا منه لما فيه من اظهار الشعائر........ و انما الكنائس و البيع القديمة فلا يتعرض لها و لا يهدم شىء فيها و اما احداث كنيسة اخرٰى فيمنعون عنه فيما صار مصراً من امصار المسلمين. (بدائع الصنائع ج۷، ص۱۱۳/۱۱۴، كتاب السير)

و فى الهندية: و ليس للنصرانى ان يضرب فى منزله با لناقوس فى مصر المسلمين و لا ان يجمع فيه بهم انما له ان يصلّى فيه و لا ان يخرجوا الصليب او غير ذٰلك من كنائسهم و لو رفعوا اصواتهم بقراٴة الزبور و الانجيل ان كان فيه اظهار الشرك منعوا عن ذٰلك و ان لم يقع بذٰلك اظهار الشرك لا يمنعون و يمنعون عن قراٴة ذٰلك فى اسواق المسلمين...... و لا بأس باخراج الصليب و ضرب الناقوس اذا جاوزوا افنية المصر و فى كل قرية او موضع ليس من امصار المسلمين فانهم لا



يمنعون عن ذٰلك و ان كان فيها عدد من المسلمين يسكنون فيها. (الفتاوى الهندية ج۲، ص۲۵۱، كتاب الجهاد، الباب الثامن فى الجزية)

و قال الامام علاؤ الدين الكاسانى رحمه اللّٰه: لا يمنعون من اظهار شىء مما ذكرنا من بيع الخمر و الخنزير و الصليب و ضرب الناقوس فى قرية او موضع ليس من امصار المسلمين و لو كان فيه عدد كثيرٌ من اهل الاسلام و انما يكره ذٰلك فى امصار المسلمين و هى التى بمقام فيها الجمع و الاعياد و الحدود. (بدائع الصنائع فى ترتيب الشرائع ج۷، ص۱۱۳، كتاب السير) و مثله فى البحر الرائق ج۵، ص۱۱۳، كتاب السير.

## حکومت د زنا بالجبر او زنا بالرضاء د ويش هيڅ اختيار نه لري

**سوال:** په حکمرانانو کښې ځينو کسانو زنا په دوه ډوله ويشلې ده يعنې زنا بالجبر ئې د حد قابله او زنا بالرضاء (زنا په خوښې) ئې جائزه بللې ده او د زاني او مزنيې څخه حد ساقط ګڼي- آيا شرعاً د دغو افرادو د ا اقدام جائز دی او که نه؟ بينوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د اُمت علماوو او فقهاء کرامو د قرآن او حديثو په رڼا کښې چه کومه زنا د حد قابله بللې ده په هغې کښې د زنا بالجبر او زنا بالرضاء هيڅ قيد نه دی لګول شوی- بلکه د فقهاوو له عباراتو څخه خو د ا څرګنديږي چه کومه زنا په خوښې سره وشي نو هغه په طريقه اولٰی سره د حد مستحقه ده-

لکه څرنګه چه په ښځې او سړي باندې د خپلې خپلې شرمګاه حفاظت له حقوق اللّٰه څخه دی د دې لپاره هيڅ يو سړی يا ښځه د ا حق نه لري چه خپله شرمګاه د شريعت له ټاکل شوې طريقې څخه پرته په بلې طريقې کښې استعمال کړي نو ځکه په خوښې سره زنا په دې باندې کوم اثر نه اچوي- همدا وجه چه د دې سزا حد وټاکل شي نو هيڅوك د معاف کولو اختيار نه لري او نه د حد د ساقطولو لپاره په زنا بالجبر او زنا بالرضاء کښې ويش کولی شي- د زنا د حد د موجب چه کوم تعريف شوی دی هغه دواړو ته راجع کيږي-

لما قال العلامة علاؤ الدين الكاسانى رحمه اللّٰه: اما الزنا فهو اسلم للوطء الحرام فى قُبل المرأة الحية فى حالة الاختيار فى دار العدل ممن التزم احكام الاسلام العارى عن حقيقة الملك و عن شبهته و عن حق الملك و عن حقيقة النكاح و شبهته و عن شبهة الاشتباه فى موضع الاشتباه فى الملك و النكاح جميعاً. (بدائع الصنائع ج۷، ص۳۳، كتاب الحدود)

البته په کوم ځای کښې چه په زاني او مزنيې باندې دومره زور وشي چه د انکار په صورت کښې د ځان د له منځه تلو خطر وي نو د داسې جبر او اکراه په صورت کښې د زاني مکره يا زانيې مکرهې څخه حد ساقطيدلی شي-

لما قال العلامة المرغينانىؒ: قال و من اكرهه السلطان حتٰى زنى فلا حد عليه...... و ان الكرهه غير السلطان حد عند ابى حنيفةؒ و قالا لا يحد لان الاكراه عندهما قد يتحقق من غير السلطان. (الهداية ج۲، ص۴۹۹، كتاب الحدود، باب حد الزنا)

و قال الامام على ابن ابى بكر المرغينانىؒ: الوطى الموجب للحد هو الزنا و انهٗ فى عرف الشرع و اللسان وطى الرجل المرأة فى القُبُل فى غير الملك و شبهته الملك لانهٗ فعل محظور و الحرمة على الاطلاق عند التعدى عن الملك و شبهة يؤيد

ذٰلك قوله علیه السلام ادرأوا الحدود با لشبهات. (الهداية ج۲، ص۴۹۹، کتاب الحدود، باب حد الزنا) و مثله فی فتح القدیر ج۵، ص۳۰، کتاب الحدود، باب حد الزنا.

## د غربت له وجهې د ښځې او خاوند تر منځ د عدالتي فیصلې حکم

**سوال:** د حنفي فقهې په ټولو کتابونو کښې لیکلي دي چه د میړه د غربت او ناداري له وجهې قاضي یا حاکم د خاوند او ښځې تر منځ نکاح نه شي فسخ کولی. بالکه خاوند به مجبوروي چه له چا څخه قرض واخلي او د خپلې ښځې نفقه ادا کړي. نن صبا لکه څرنګه چه ډیرې ښځې د خاوندانو د غربت او ناداري له وجې په ډول ډول ګناهونو کښې مبتلا کیږي. لهذا موجوده حالاتو ته په کتو سره نن صبا باید کومه طریقه غوره کړی شي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په دې مسئلې کښې د هندوستان لوی لوی علماء کرامو د حالاتو او ضرورت له مخې د ائمه ثلاثه وو په مذهب باندې عمل کول جائز بللي دي. اوس مونږ باید دا وګورو چه په نوموړې مسئله کښې د ائمه ثلاثه وو مسلك او طریقه څه ده؟ د ائمهٔ ثلاثه وو د کتابونو له مطالعې څخه د دې مسئلې حل په دې ډول تر سترګو کیږي چه که چېرته د کومې ښځې خاوند دومره غریب او ناداره وي چه خپلې ښځې ته په عامه توګه معمولي غوندې خوراك او جامې نه شي ورکولی نو ښځه دا اختیار لري چه له خاوند سره په همدې مفلسی او غریبی کښې پاتې شي او یا ترې جلا شي(۱). لکه څرنګه چه امام شافعي رحمه الله فرمايي:

فلما کان من حقها علیه ان یعولها و من حقه ان یستمتع منها و یکون لکل علی کل ما للزوج علی المرأة و للمرأة علی الزوج احتمل ان لا یکون اللرجل ان یمسك المرأة یستمتع بها و یمنعها غیره تستغنی به و یمنعها ان تضطرب فراقه فهی فرقة باطلاق لانها لیست شیئاً اوقعه الزوج و لا جعل الٰی احد ایقاعه........ ان عمر بن الخطاب رضی الله عنه کتب الٰی امراء الاجناد فی رجال غابوا عن نسائهم یأمرهم ان یأخذوهم ان ینفقوا او یطلقوا فان طلقوا بعثو بنفقة ما حبسوا. (کتاب الامام للشافعیؒ ج۵، ص۹۱، باب الرجل لا یجد ما ینفق علی امرأته)

و قال الامام ابو الحسن المرداوی الحنبلی رحمه الله: قولهٗ (و ان اعسر الزوج بنفقتها او ببعضها او با لکسوة) و کذا ببعضها خیرت بین فسخ النکاح و المقام و تکون النفقة دینا فی ذمته یعنی نفقه الفقیر و محله اذا لم تمنع نفسها الصحیح من المذهب ان لها الفسخ بذٰلك مطلقاً و علیه جماهیر الاصحاب و نقله الجماعة عن الامام احمد رحمه الله قال الزرکشي رحمه الله هٰذا المشهور و المختار للاصحاب. (الانصاف ج۹، ص۳۸۳، کتاب النفقات) و مثله فی مختصر المزنی ص۲۳۲، باب النفقة.

و قال الامام احمد بن محمد بن احمد الدردیر المالکیؒ: فان اثبت الزوج عسره عند الحاکم تلوّم له ان امهل با لاجتهاد من

---

(۱) قال الامام البیهقیؒ: عن ابی الزناد قال سألت سعید بن المسیب عن الرجل لا یجد ما ینفق علی امرأته قال یفرق بینهما قال ابو الزناد قلت سنة قال سعید سنة قال الشافعیؒ و الذی یشبه قول سعید سنة ان تکون سنة من رسول اللهﷺ (السنن الکبرٰی ج۷، ص۴۶۹، کتاب النفقات، باب الرجل لا یجد نفقه امرأته)



الحاکم بحسب ما یراه من حال الزوج لعلّه ان یّحصل النفقة فی ذٰلك الزمن و الا یثبت عسره عند الحاکم امر الزوج ای امره الحاکم بها ای با لنفقة او باطلاق بلا تلوّم بان یقول لهٗ اما ان تنفق و اما ان تطلقها فان طلق او انفق فا لامر ظاهرٌ و الا طلق علیه بان یقول الحاکم فسکت نکاحه او طلقتك منه او یأمرها بذٰلك ثم یحکم به. (الشرح الصغیر ج۲، ص۷۴۵/۷۴۶، باب وجوب النفقة علی الغیر)

فان امتنع الزوج عن الانفاق فا لزوجة با لخیار ان شاء ت بقیت علی نکاحها و ان شاء ت طلبت التفریق. (موسوعة فقه عمر بن الخطابؓ ص۶۴۱، نفقة)

البته د جلا والي په صورت کښې به خاوند او ښځه شرعي عدالت ته رجوع کوي او قاضي یا د وخت حاکم د ښځې او د هغې د خاوند تر منځ جلا والی راولي. قاضي یا د مسلمانانو له جوړ شوي عدالت پرته د ښځې او خاوند تر منځ جلا والی نه شي راتلی.

لما قال الامام علاؤ الدین ابو الحسن علی بن سلیمان المرداوی الحنبلیؒ: و لا یجوز الفسخ فی ذٰلك الا بحکم حاکم. (الانصاف ج۹، ص۳۹۱، کتاب النفقات)

## د پاسپورټ او ویزې شرعي حیثیت

**سوال:** نن صبا د بین المللي قانون مطابق چه کله کوم ملك ته کوم غیر ملکي سړی داخلیږي نو هغه به خامخا د ویزې او پاسپورټ تر څنګ اجازه غواړي او په هغه ملك کښې به داخلیږي او که نه وي نو مجرم به ګڼل کیږي. نو آیا د دې اجازې شرعي حیثیت څه دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب:** په نننی زماني کښې دُنیا د جُغرافیایي اعتبار له مخې ویشل شوې ده، د هر ملك لپاره ځانته حدود ټاکل شوي دي. اوس که چېرته هر سړی پرته له اجازې څخه کوم ملك ته داخلیږي نو په دې سره د ملك داخلي معاملات له متاثر کیدو پرته نه شي پاتې کیدلی. د یوه ملك اوسیدونکی په بل ملك کښې ګډوډي پیدا کوي او په دې ډول سره د فتنې او فساد یوه نه بندیدونکې دروازه خلاصیږي.

د دې لپاره په ملکي قوانینو کښې که چېرته د کوم غیر ملکي د داخلې لپاره څه ټاکلي شرطونه ولګول شي نو څه پروا نه لري. دا ډول هره پابندي له شرعي اصولو سره ټکر نه دی. همدا وجه ده چه یوه اسلامي ملك ته د کوم غیر مسلم داخلیدل د هغه ملك د انتظامیې په اجازې پورې اړه لري ځکه چه په دې سره یعنې د کوم غیر مسلم اسلامي ملك ته پرته له اجازې له داخلیدلو سره هلته د فتنې او فساد خطر دی.

په شریعت مطهره کښې د ویزې مثال د مستأمن بل ملك ته د داخلیدو لپاره تر یوې ټاکلې مودې پورې د امن د غوښتلو دی. لکه څرنګه چه په ویزې کښې تر یوې ټاکلې مودې پورې په کوم بل ملك کښې اوسیدل دي همدارنګه مستأمن هم تر یوې ټاکلې مودې پورې په بل ملك کښې اوسیږي.

کما قال شیخ الاسلام برهان الدین المرغینانی رحمه الله: و اذا دخل المسلم دار الحرب تاجراً فلا یحلّ له ان یتعرض

بشيء من اموالهم و لا من دمائهم لانهٗ ضمن ان لا يتعرض لهم با لاستيمان فا لتعرض بعد ذٰلك يكون غدراً و الغدر حرام......... قال و اذا دخل الحربى الينا مستأمنا لم يكن ان يقيم فى دارنا سنة و يقول له الامام ان اقمت تمام السنة وضعت عليك الجزية و الاصل ان الحربى لا يمكن من اقامة دائمة فى دارنا الا با لاسترقاق او الجزية لانهٗ يصير عيناً لهم و عوناً علينا فليتحق المضرّة با لمسلمين و يمكن من الاقامة اليسيرة لان فى منعها قطع السير و الجلب و سد باب التجاره ففصلنا بينهما سنة. (الهداية ج۲، ص ۵۵۱، کتاب السير، فصل فى استئمان الكفار)

و قال العلامة ابن عابدينؒ فى شرح هٰذه العبارة: "قوله لانه يصير عيناً لهم". قال الرملى هٰذه العلّة تنادى بحرمة تمكينه سنة بلا شرط وضع الجزية. (المنحة الخالق على هامش البحر الرائق ج۵، ص ۱۰۱، کتاب السير، فصل فى تاخير استئمان الكافر) و مثله فى البحر الرائق ج۵، ص ۱۰۰ الى ۱۰۲، کتاب السير، فصل فى تاخير استئمان الكافر.

## د سي آئي ډي (جاسوسي) شرعي حيثيت

**سوال:** نن صبا د دُنيا د اکثرو ملکونو د حکمرانانو دا رواج دی چه خپل ځان د حکومت د مخالفينو د خوځښتونو څخه د باخبره ساتلو لپاره يوه اداره جوړوي چه په عرف کښې ورته سي آئي ډي ويل کيږي۔ د داسې محکمو يا ادارو جوړول د شرعي نقطۀ نظر له مخې صحيح دي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** يو ملك د انتظام له مخې په ښې طريقې سره د چلولو لپاره حکومتونه مختلفې ادارې جوړوي۔ همدارنګه که چېرته حکومت داسې ادارې جوړې کړي چه د غير ملکي جاسوسانو يا په ملك کښې د ننه د داسې خلکو پټ خوځښتونه ښکاره کړي کوم چه د حکومت او ملك لپاره نقصاني وي نو دا يو ښه او نيك کار دی۔ د حکومت له خوا جوړې شوې داسې ادارې د ملك د استحکام او مضبوطوالي لپاره د ملا د تير غوندې حيثيت لري۔

قال على بن ابى بكر المرغينانيؒ: و اذا استخلف الوالى رجُلا ليعلمنه بكل داعرٍ دخل البلد فهٰذا على حال ولايته خاصة لان المقصود منه دفع شره او شر غيره يزجره فلا يفيد فائدته بعد زوال سلطنته. (الهداية ج۲، ص۵۰۶، کتاب السير)

امير المؤمنين سيدنا حضرت عمر فاروق رضى اللّٰه عنه د خلافت په دور کښې چه ده ته د ملك د داخلي حالاتو او واقعاتو، د عمّالو کارونه او د باغيانو د وتلو په څومره چټکۍ سره خبريده ښايي چه په نورو ملکونو کښې به ډير کم داسې کسان وو۔ حضرت عمر رضى اللّٰه عنه په هرې علاقې کښې د دې ډول پټو حالاتو څخه د خبريدو لپاره خط ليکونکي ټاکلي وو۔ په اسلامي ملك کښې به چه چېرته هم کوم پټ کار تر سره کيده نو حضرت عمر رضى اللّٰه ته په چټکۍ سره د هغه خبر رسيده۔

لما قال الامام طبرى رحمه اللّٰه: كان عمرؓ لا يخفى عليه شيء فى عمله كتب اليه من العراق بخروج من خرج و من الشام بجائزة من اجيز فيها. (تاريخ الامم و الملوك للطبرى ج۴، ص۶۷، ذكر خبر عزل خالد بن وليدؓ)

همدارنګه نعمان بن عدي رضى اللّٰه عنه د يلسان د علاقې والي وو۔ هغه خپلې ښځې ته په خط کښې څه نابښائسته اشعار وليکل چه په ځينو اشعارو باندې ئې حضرت عمر رضى اللّٰه



عنه خبر شو۔ د اشعارو په اوريدو سره ئې فوراً نعمان بن عدي رضى اللّٰه عنه ته خط وليکه او له والي توب څخه ئې معزول کړ۔

لما قال الامام دولابى رحمه اللّٰه: و كان النعمان اول وارث فى الاسلام و كان ابوه اوّل موروث فى قول و استعمله عمر بن الخطابؓ على ميسان و لم يستعمل من قومه غيره و اراد امرأته على الخروج معه الى ميسان فابت فكتب اليها ابيات شعر و هى.

فمن مبلغ الحسناء ان حليلها — بميسان يسقى فى رجاج و حنتم

لعل امير المؤمنين يسوءه — تنادمنا با لجوسق المتهدم

فبلغ ذٰلك عمرؓ فكتب اليه. اما بعد فقد بلغنى قولك.

لعل امير المؤمنين يسوءه — تنادمنا با لجوسق المتهدم

و ايم اللّٰه لقد سئانى ثم عزله. (اسد الغابة فى ذكر نعمان بن عدى ج۵، ص۶۷، م۵)

و قال الامام علامة دولابى رحمه اللّٰه: و حذيفة صاحب رسول اللّٰه ﷺ فى المنافقين لم يعلمهم احد الا حذيفة اعلمه بهم رسول اللّٰه ﷺ و سأله عمرؓ افى عمالى احد من المنافقين قال نعم واحد قال من قال لا اذكره قال حذيفة معزله كانما دل عليه و كان عمرؓ اذا مات ميت يسئل عن حذيفة كان حضر الصلٰوة عليه صلّٰى عليه عمرؓ و ان لم يحضر حذيفة الصلٰوة عليه لم يحضر عمرؓ. (اسد الغابة ذكر حذيفة بن اليمان ج۱، ص۳۹۱)

## په مُخبري (جاسوسي) کوونکي باندې د ضمان حکم

**سوال:** که چېرته يو څوك د حکومت له خوا څخه د سي آئي ډي (جاسوسي) په محکمې کښې نوکر نه وي بلکه د ځان له خوا څخه د نورو خلکو د حال او قاچاق د مالونو په باره کښې حکومت ته معلومات او شکايتونه وړاندې کول نو که چېرته د داسې سړي د مُخبري (جاسوسي) د کولو له وجهې خلکو ته کوم تاوان ورسيږي نو آيا ضمان پرې اوړي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کوم سړی چه د حکومت له خوا د پټو معلوماتو په راټولولو باندې په باقاعده توګه مامور نه وي او د خلکو د مالونو او د داسې نورو حکومت ته خبر ورکوي نو شرعاً مجرم بلل کيږي او کوم مال چه د هغه د شکايت يا خبر رسونې له وجې حکومت ضبط کړي نو د هغه ضمان او تاوان په نوموړي سړي باندې دی۔

لما قال العلامة سيد محمد امين بن عمر بن عبد العزيزؒ: اقول حاصله انه اذا شكاه بغير حق يضمن ما اتلفه الوالى او اعوانه من عضوٍ او من مالٍ دون النفس........ افتٰى به المتاخرون على خلاف القياس زجراً عن السعاية. (فتاوٰى تنقيح الحامدية ج۲، ص۲۷۸، کتاب الجنايات)

البته که چېرته يو چا له ويرې يائې ځان ته د ضرر رسيدو له وجهې د چا شکايت وکړ نو بيا په شکايت کوونکي باندې ضمان نشته۔

لما قال الامام حافظ الدين محمد بن شهاب البزازؒ: السعى الى السلطان علٰى ثلاثة ان كان بحق بان كان يوذيه و لا يمكنه الدفع الا با لرفع او فاسقاً لا يتمتع الا با لامر با لمعروف لا يضمن الساعى. (فتاوٰى بزازية على هامش الهندية ج۶، ص۴۱۳، کتاب الاستحسان، الباب السادس فى السعاية)

قال العلامة احمد بن محمد الحموی المصریؒ: (تحت قول الاشباه و النظائر) "الافتاء بتضمین الساعی و هو قول المتاخرین لغلبة السعایة". قیده قاری الهدایة بما اذا کان عادة ذٰلك الظالم ان من رفع الیه و یقول عنده ان یأخذ منه مالاً مصادراً یضمن الساعی فی هٰذه الصورة ما اخذه للظالم هٰذا هو المفتی به افتی به المتاخرون من علمائنا. (الاشباه و النظائر مع شرحه للحموی ج۱، ص۴۶۷، القاعدة التاسعة عشرة) و مثله فی رد المحتار ج۳، ص۳۱۵، کتاب القضاء.

## پـــه قبایلو کښې د یوې ډلې له مسلمانانو ســـره خپل منځې جنګ ته د جهاد ویلو حکم

**سوال:** د پاکستان په قبائلو کښې یوه داسې ډله پیدا شوې ده چه له پاکستانیانو سره جنګ ته جهاد وایي او په جنګ کښې خپلو مړه کیدونکو ملګرو ته شهید ان او ژوندي پاتې کیدونکو ته غازیان وایي، او له پاکستانیانو څخه لاس ته راوړل شوی مال غنیمت بولي او امیر ئې له دې مال څخه پنځمه برخه اخلي۔ شرعاً د دې ډلې دا عمل څنګه دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د مسلمانانو په ملك کښې د اوسیدو تر څنګ د مسلمانانو د مال او ځان حلال بلل او له هغو سره جنګ ته جهاد ویل د باغیانو او لار شکوونکو کار دی۔ فقهاء کرامو چه د باغیانو او لار شکوونکو کوم تعریف بیان کړی دی هغه په داسې یوې ډلې باندې تکې په تکې صادقیږي۔

لما فی الهندیة: اهل البغی کل فرقة لهم منعة یتغلبون و یجتمعون و یقاتلون اهل العدل بتأویل و یقولون الحق معنا و یدعون الولایة. (الفتاوی الهندیة ج۲، ص۲۸۳، کتاب السیر، الباب العاشر فی البغاة)

د مقدس شریعت له مخې د کوم مسلمان ناحق قتل کول او د هغه له خوښې پرته د هغه مال اخیستل دواړه حرام او ناجائز دي۔

لقوله علیه السلام: لا یحل دم امرئ مسلم یشهد ان لا اله الا اللّٰه و انی رسول اللّٰه الا باحدٰی ثلث و النفس با لنفس و الثیب الزانی و المفارق لدنیه التارك الجماعة. (صحیح البخاری، دیات، ج۲، ص۱۰۱۶، صحیح مسلم، قسمامه، ج۲، ص۵۹، سنن النسائی ج۲، ص۱۶۰)

و ایضاً قال علیه السلام: لا یحل مال امرئٍ مسلم الا بطیب نفس منه. (کنز العمال ج۱، ص۳۹۷ / فردوس للدیلمی ج۵، ص۱۱۰، رقم۷۶۳۵)

و قال الامام فخر الدین الرازیؒ: (فی تفسیر هٰذه الآیة) اِنَّمَا جَزٰٓؤُا الَّذِیْنَ یُحَارِبُوْنَ اللّٰهَ وَ رَسُوْلَهٗ وَ یَسْعَوْنَ فِی الْاَرْضِ فَسَادًا". المحاربون المذکورون فی هٰذه الآیة هم القوم الذین یجتمعون و لهم منعة ممن ارادهم بسبب انهم یحمی بعضهم بعضاً و یقصدون المسلمین فی ارواحهم و دمائهم. (التفسیر الکبیر ج۱۱، ص۲۱۴/۲۱۵، سورة المائدة) و مثله فی احکام السلطانیة لابی یعلی ص۵۴، اما قتال اهل البغی.



## د شـــریعت بل تاریخچه

**سوال:** جنرل ضیاء الحق مرحوم د حکومت په دور کښې د شریعت بل شور او زور په ټول ملك کښې خپور شوی وو۔ د دې بل شروع، تاریخچه او په آخر کښې د سنا په مجلس کښې د منظورۍ تر څنګ د هغه د معطل والي د ښکار کیدو کومې وجهې دي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب:** شریعت د هغو اسلامي مادو مجموعه ده چه علماء کرامو شپه ورځ محنتونه پرې کړې دي۔ علماوو د خپلو ذمه واریو په احساسولو سره په حکومتي ایوانونو کښې بل وړاندې کړ لیکن د بد قسمتۍ له مخې د تش په نامه جمهوري ادارو کښې د قبول وړ و نه ګرځید او ۱۳ مئی سنه ۱۹۹۰ء کښې له سنا څخه په متفقه توګه د کامیابیدو تر څنګ تر اوسه پورې دا بل د آئین برخه و نه ګرځید۔ په دې بل کښې چه څه دي له هغو څخه دا اندازه لګیږي چه که چېرته دا بل له ټولو قانوني مرحلو څخه په کامیابي سره تیریدلی نو د ملك ټول نظام به سر تر پایه تبدیل شوی وو۔ په معاشي، اقتصادي او عدالتي امورو کښې به له دې څخه انقلاب جوړیده لیکن په حکومتي ایوانونو باندې ولاړ بې دینې طبقې د علماوو آواز تر پښو لاندې او د بې کاره شیانو په توکرۍ کښې ئې واچاوه۔ همدا وجه ده چه حالات هم هغسې پاتې دي۔

د شریعت بل انځور داوو:

**اوله ماده:** (الف) دا قانون د شریعت د نفاذ په نامه سره به نومول کیږي۔

(ب) دا قانون د اسلامي جمهوریه پاکستان په ټولو علاقو او اوسیدونکو باندې نافذ وي۔ البته د غیر مسلمو شخصي او ذاتي معاملات به ترې مستثنیٰ وي۔

**دوهمه ماده:** د شریعت قانوني تعریف۔

(الف) له شریعت څخه مراد د دین هغه ځانګړې طریقه ده چه اللّٰه تعالیٰ د خاتم النبیین حضرت محمد ﷺ په واسطه سره د خپلو بندګانو لپاره مقرره کړې ده۔

(ب) د شرعي قوانینو اصل ماخذ قرانکریم او د رسول اللّٰه ﷺ سُنت دی۔

(ج) اجماع اُمت چه قرآن او حدیث حُجت ګڼلی دی د دې لپاره چه کوم قانون د اُمت په اجماع سره ثابت او ماخوذ وي نو هغه هم د شریعت قانون دی۔

(د) کوم احکام چه د اُمت معتمدو او مستندو مجتهدینو د قرآن، سنت او اجماع د تاکل شوي قواعدو او ضوابطو مطابق مستنبط کړي او مدوّن کړي دي هغه هم پخپله د شریعت قوانین دي۔ ځکه چه قیاس او اجتهاد (په دې شرط چه د قرآن، سُنتو او اجماع خلاف نه وي) قرآن او سنت حجت بللي دي۔

**دریمه ماده:** د شریعت لوړوالی۔

مقننه کوم داسې قانون یا قرارداد نه شي منظورولی کوم چه د شریعت د احکامو خلاف وي۔ که چېرته داسې کوم قانون یا قرارداد منظور کړی شي نو هغه به هیڅ قانوني حیثیت نه لري او

هغه به وفاقي شرعي عدالت ته وړاندې کیږي او تر وړاندې کیدو فوراً وروسته د عدالت تر آخري فیصلې پورې به په هغه باندې عمل کول ځنډیږي۔

**څلورمه ماده:** د ملک په ټولو عدالتونو کښې هر ډول مقدمې د مالي مقدمو په ګډون چه د شریعت مطابق نه وي فیصله شوي هغه به هیڅ قانوني حیثیت نه لري۔

**پنځمه ماده:** د وفاقي شرعي عدالت د سماعت او فیصلې د اختیار دائره به پرته له کومې استثناء څخه په هر ډول مقدماتو باندې به حاوي وي۔ او عبوري دستوري حکم ۱۹۸۵ء د دستوري ترمیمونو په ذریعې سره به لګول شوي خنډونه فوراً لرې کیږي۔

**شپږمه ماده:** د انتظامیې په هر یو فرد د بادشاه او وزیر اعظم په ګډون د شرعي عدالت فیصله د هیواد د ټولو اوسیدونکو غوندې په یو شان نافذ کیږي او د هیواد هیڅ یو اوسیدونکی د اسلام د عدل د قانون مطابق له عدالتي احتساب څخه به لرې نه وي۔

**اتمه ماده:** د اسلامي ډلو تسلیم شوي شخصي معاملات به د هغو د خپلو خپلو فقهي مسلکونو مطابق حل کیږي۔

**نهمه ماده:** د هیواد غیر مسلمو اوسیدونکو ته د خپلو بچیانو لپاره به مذهبي تعلیم او د خپلو هم مذهبو په مخ کښې به ئې مذهبي تبلیغ آزاد وي۔ او د هغو خپل منځي معاملاتو د خپل مذهبي قانون مطابق به د فیصله کولو حق لري۔

**لسمه ماده:** په ټولو عدالتونو کښې به د ضرورت مطابق د دین تجربه کاره، جید او مستند علماء کرام د جج په حیثیت او د عدالت د معاونین به ټاکل کیږي۔

**یوولسمه ماده:** د شرعي علومو او اسلامي قانون تعلیم او د قاضیانو تربیې داسې مؤثر انتظام به کیږي چه په راتلونکي کښې د شرعي علومو په ځانګړې توګه د اسلامي قانون ماهر قاضیان تیار شي۔

**دولسمه ماده:** د قرآن او سنت به هغه تعبیر معتبر وي کوم چه صحابهٴ کرامؓ او مستندو مجتهدینو د اصول تفسیر د ټولو عامو او د علم حدیث د مسلّمه (منل شویو) قواعدو او ضوابطو مطابق وي۔

**دیارلسمه ماده:** د انتظامیې، عدلیې او مقننه په هر فرد باندې به د شریعت د فرائضو پابندي او د شریعت له محرماتو څخه پرهیز کول لازم وي۔

**څوارلسمه ماده:** د ابلاغ او تبلیغ ټول ذرائع به د شریعت د خلاف پروګرامونو، فواحشو او منکراتو څخه پاکیږي۔

**پنځلسمه ماده:** په حرامو طریقو او د شریعت خلاف کاروبارونو په ذریعه سره به په دولت ګټلو باندې پابندي وي۔

**شپاړسمه ماده:** شریعت چه کوم بنیادي حقوق د هیواد اوسیدونکو ته ورکړي دي د هغو په خلاف



به هیڅ حکم نه ورکول کیږي۔ که چېرته داسې حکم ورکړل شي نو هیڅ قانوني حیثیت به نه لري او عدالت ته به وړاندې کیږي۔ (د شریعت بل معرکه ص۷۶/۷۵)

## د اسلام او مغـــــــربي جمهوریت تقابلي جائزه

**سوال:** د دُنیا په اکثرو ملکونو کښې جمهوري نظامونه جاري او په عمل کښې راوستل شوي دي۔ آیا په اسلام کښې د داسې جمهوریت د پاتې کیدو لپاره کوم ځای شته او که اسلام او جمهوریت دواړه جلا جلا نظامونه دي؟

**الجواب:** اسلام د ژوندانه یو داسې نظام دی چه د خپلو ځانګړتیاوو له وجهې د مستقل تشخص خاوند دی۔ اسلام له جمهوریت یا سوشلزم سره تړل د اسلام د ژوندانه له نظام څخه د بې خبرۍ دلیل دی۔ دا خو هر سړی پیژني چه په مغربي طرز جمهوریت کښې د طاقت سرچینه عوام وي، عوام چه څه ډول وغواړي د ملک په قانون باندې اثر اچولی شي، د ملک هر یو رائج الوقت قانون د محض اکثریت په بناء سره له منځه وړلی شي، او که چېرته وغواړي نو د بې دینۍ، فحاشۍ او د انسانیت خلاف قانون په شپه شپه کښې کامیاب کړي او په ملک باندې ئې نافذولی هم شي۔ په داسې نظام کښې د طاقت سرچینه یوائځې او یوائځې عوام وي۔ په داسې حال کښې چه د عوامو نمائنده وزیر اعظم د ملک په قسمت باندې د لوبې کولو لپاره د لا محدود اختیاراتو خاوند وي۔ په داسې فرسوده او بې کاره نظام کښې یوائځې افراد ګڼل کیږي۔ د باطني معانیو، علم او پوهې هیڅ قدر نه وي، د معاشرې د فخر وړ شخصیت رأیه د ادنی فرد له رأیې سره برابره وي۔ همدا وجه ده چه د داسې جمهوریت په ذریعې سره جوړ شوي حکومتونه په ظاهره خپل ځانونه د عوامو ترجمانان بولي لیکن د عوامو حقوق تر ټولو زیات د دوی په ذریعې سره تر پښو لاندې کیږي۔ لکه څرنګه چه د پاکستاني معاشرې په حوالې سره دا خبره له چا څخه هم پټه نه ده چه په همدې جمهوري نظام کښې قوم د تباهۍ، بربادۍ او هلاکت کوم کوم مواقع نه دي لیدلي۔

په داسې حال کښې چه د دې برعکس په اسلام کښې د طاقت سرچینه د الله تعالی ذات وي او خلیفه یا بادشاه یوائځې د الٰهي احکامو د جاري کولو لپاره د نیابت ذمه واري پر مخ بیایي۔

قوله تعالی: ﴿۱﴾ اِنِ الحُکمُ اِلاَّ لِلّٰہِ. (سورة الانعام، آیت ۵۷، سورة یوسف، آیت ۴۰/۶۷)

﴿۲﴾ اِنّي جَاعِلٌ فِی الاَرضِ خَلِیفَةً. (سورة البقرة، آیت ۳۰)

﴿۳﴾ اَلاَ لَهُ الخَلقُ وَالاَمرُ. (سورة الاعراف، آیت ۵۴)

له دې برسیره په جمهوري نظام کښې د انتخاب طریقه هم د اسلام د انتخاب له طریقې څخه مختلفه وي چه په هغې کښې شورٰی دا اختیار نه لري چه د الله تعالی د ټاکل شوي قانون په خلاف کومه فیصله وکړي۔ د شورٰی ټولې هڅې د دین د احکامو لاندې وي، همدا وجه ده چه تر څو پورې خلیفه د الله تعالی د قانون تابع وي نو د هغه خلاف ورزي ناجائز بلکه بغاوت ګڼل کیږي۔

قال الامام قاضی ابو یعلیٰ: و هم الذین یخرجون علی الامام و یخالفون الجماعة و ینفردون بمذهب ابتدعوه. (الاحکام السلطانیة ص ٥٤، اما قتال اهل البغی)

په هر حال اسلام د ژوند انه یو مستقل نظام دی چه له مغربي جمهوریت څخه جلا حیثیت لري. دا بیله خبره ده چه جمهوریت په ځینو امورو کښې له اسلام څخه لاربښوونه اخیستې ده. د ووړ اچولو د مروجه نظام په مقابله کښې په اسلام کښې د شورایي او استخلاف نظام موجود دی.

قوله تعالیٰ: وَشَاوِرْهُمْ فِی الْاَمْرِ فَاِذَا عَزَمْتَ فَتَوَکَّلْ عَلَی اللّٰهِ. (سورة آل عمران، آیت ۱۵۹)

د اسلامي سیاست یو لوړ پوړی امام ابو الحسن علي بن محمد بن حبیب البغدادي الماورديؒ د اسلامي خلافت د انعقاد او د خلیفه د ټاکلو تفصیلي انځور د اسې ایستلی دی.

فصل: و الامامة تنعقد من وجهین احدهما باختیار اهل العقد و الحل. و الثانی بعده الامام من قبل! فاما انعقادها باختیار اهل الحل و العقد فقد اختلف العلماء فی عدد من تنعقد به الامامة منهم علی مذاهبِ شتیٰ فقال طائفة لا تنعقد الا بجمهور اهل الحل و العقد من کل بلد لیکون الرضاء به عاماً و التسلیم لامامته اجماعاً و هو مذهب مدفوع ببیعة ابی بکر رضی اللّٰه عنه علی الخلافة باختیار من حضرها و لم ینتظر ببیعة قدوم غائب عنها. و قالت طائفة اخریٰ اقل من تنعقد به منهم الامامة فمنه یجتمعون علی عقدها او بعقدها احدهم برضاء الاربعة استدلالاً بامرین احدهما ان بیعة ابی بکر رضی اللّٰه عنه انعقدت بخمسة اجتمعوا علیها ثم تابعهم الناس فیها و هم عمر بن الخطاب و ابو عبیدة ابن الجراح و اسید بن حُضَیر و بشر بن سعد و سالم مولیٰ ابی حذیفة رضی اللّٰه عنهم. و الثانی ان عمر رضی اللّٰه عنه جعل الشوریٰ فی ستة........ و قالت طائفة اخریٰ تنعقد بواحد لان العباس قال لعلی رضوان اللّٰه علیهما امدد یدك ابایعك فیقول الناس عمّ رسول اللّٰه ﷺ بایع ابن عمه فلا یختلف علیك اثنان. و لانه حکم و حکم واحدٍ نافذ. (الاحکام السلطانیة للماوردی ص۷/۶، الباب الاول فی عقد الامامة) و مثله فی الجامع لاحکام القرآن للقرطبیؒ ج۱، ص۱۸٦/۱۸٥، سورة البقرة.

## د سوشلزم او اسلام له یوه او بل سره موازنه

**سوال:** سوشلزم (اشتراکیت) څه شی دی او آیا په اسلام او سوشلزم کښې څه فرق شته او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب:** سوشلزم یا اشتراکیت یو کافرانه نظام دی او تاریخ ئې د اتلسمې پیړۍ په آخر کښې شروع شو. له ټولو څخه مخکښې هیګل نومې یوه سړي دا نظریه د یوې علمي نظریې په شکل کښې وړاندې کړه او په اقتصادي امورو کښې ئې د کامیابۍ بنیاد وګڼله او وروسته دې نظام ته د اقتصادي ژوندانه ورکوونکی بلکه د معاشرتي اصول ګرځوونکی او په تمدني پروګرام کښې ئې اچوونکی شخص "کارل مارکس" دی. او دا نظریه نن صبا د "کمیونزم" په شکل کښې په روس باندې جاري دی.

د دې نظریې په باره کښې د بر صغیر د اقتصادیاتو مشهور مسلمان ماهر حضرت مولانا حفظ الرحمٰن سیوهاروي رحمه اللّٰه فرمایي:

"کارل مارکس او نورو اشتراکي لاربښوونکو چه په کومې فلسفې باندې د "مارکسزم" بنیاد



ایښی دی په هغه کښې له اللّٰه تعالیٰ څخه انکار او د الٰهیاتو نه منل په اول صف کښې ځای لري----- لهذا د هغه د لاديني فلسفې سره اسلام هیڅ تړاو او تعلق نه شي درلودلی".

له دې وروسته مولانا سیوهاروي رحمه اللّٰه د اسلام او سوشلزم د اقتصادي نظام د فرق په بیانولو سره فرمایي چه د اسلام د اقتصادي نظام اصول دا دي:

﴿۱﴾ په دولت او د دولت په ذرائعو کښې د انفرادي ملکیت په منلو سره د هغه حدود قائموي.

﴿۲﴾ د معیشت د حق د مساواتو د اعتراف تر څنګ د معیشت په لحاظ سره د مدارجو اختلاف تسلیموي او احتکار منع کوي.

په داسې حال کښې چه اشتراکي اقتصادي نظام په لاديني امورو باندې ولاړ دی.

﴿۱﴾ له دولت او د دولت له ذرائعو څخه انفرادي ملکیت لرې کوي.

﴿۲﴾ د معیشت په لحاظ سره د درجاتو د اختلاف انکار کوي او په معاشي لحاظ سره هم په سوسائټي کښې مساوات تسلیموي. (د اسلام اقتصادي نظام ص۲٤٤/۲٤۳)

## د اسلام او سوشلزم تقابلي جائزه

**سوال:** د سوشلزم په باره کښې ځینې خلك دا دعوه کوي چه په دې کښې د انساني ضرورتونو تکفل دی او پرته له معاوضې څخه خلکو ته حقوق ورکول کیږي. اوس د پوښتنې ځای دا دی چه آیا په اسلام کښې د سوشلزم په مقابله کښې د انساني ضرورتونو ته پاملرنه شوې ده او که نه؟ آیا په اسلام کښې د محنت څه حوصله افزایي شوې ده او که یوائې په خیرات او صدقاتو باندې بروسه شوې ده؟

**الجواب:** اسلام د ژوند انه یوه مکمله ضابطه ده، په دې کښې د انسان د ضروریاتو په اکمله طریقه سره حل موجود دی. په سوشلزم کښې خو یوائې څو کسانو ته مفته ډوډۍ، جامه او ځای ورکول کیږي، له پاتې نورو ټولو خلکو څخه مزدوري اخلي او بدله یا معاوضه کمه ورکول کیږي ځکه چه ټول رعیت یوائې د حکومت لپاره کار کوي، هیڅ شی هم د کوم سړي ذاتي ملکیت نه وي. د دې بالمقابل په اسلام کښې ضعیفانو، فقیرانو او مسکینانو ته زکاتونه، صدقې او عامو رعایاوو ته هم له بیت المال څخه په باقاعده توګه تنخواه ورکول کیږي.

د خلفاء راشدینو د خلافت په دور کښې چه کله نظر واچول شي نو څرګندیږي چه حضرت عمر فاروق رضی اللّٰه عنه د خپل خلافت په زمانه کښې له حکومتي کسانو څخه پرته عامو مسلمانانو لپاره هم له بیت المال څخه وظیفې مقررې کړې وې.

لما قال الامام حافظ ابن تیمیة رحمه اللّٰه: کما فعل عمر بن الخطاب رضی اللّٰه عنه لما کثر المال اعطا منهم عامة المسلمین فکان لجمیع اصناف المسلمین فرض فی دیوان عمر بن الخطاب غنیّهم و فقیرهم........ و مع هٰذا فا لجواب تقدیم الفقراء علی الاغنیاء الذین لا منفعة فیهم فلا یعطی غنیّ شیئاً حتیٰ یفضل من الفقراء. (مجموعة الفتاویٰ ج۲۸، ص٥٦۷، السیاسة الشرعیة)

البته د دې هیڅکله دا مطلب نه دی چه سړی به محنت، مزدوري او د روزګار کسب پرېږدي او یوائې حکومتي وظائف د خپلې بقاء ذریعه وګرځوي او آن تر دې پورې چه د سوال د لاس غزولو وار راشي- کوم سړی چه د بدن او اندامونو په اعتبار سره تندرست او طاقتور وي او د محنت او مزدورۍ د طاقت درلودلو تر څنګ د خیراتونو او صدقاتو لپاره لاس غزوي نو شریعت د اسې سړي ته هیڅکله هم د سوال کولو اجازه نه ورکوي-

امام ابو الحسن علی بن محمد بن حبیب الماوردي رحمه الله د محتسب د ذمه واریو د یادونې تر څنګ فرمایي:

و ان رأی رجلا ان یتعرض لمسئلة الناس فی طلب الصدقة و علم انهٗ غنیٌّ اما بمال او عملٍ انکرهٗ علیه و ادّبه فیه و کان المحتسب بانکاره اخص من عامل الصدقة فعل عمرؓ مثل ذٰلك بقوم من اهل الصدقة. (الاحکام السلطانیة للماوردیؒ ص۲٤۸، الباب العشرون فی احکام الحسبة)

قرآنکریم او د نبوي سُنتو لاربنوونې قدم په قدم انسان ته د حلالې روزۍ د ګټلو او د معیشت د کسب ترغیب ورکوي د مثال په توګه:

فَاِذَا قُضِیَتِ الصَّلٰوةُ فَانْتَشِرُوْا فِی الْاَرْضِ وَابْتَغُوْا مِنْ فَضْلِ اللّٰهِ. (سورة الجمعة، آیت ۱۰)

و قال علیه الصّلٰوة و السلام: طلب الحلال فریضة بعد الفریضة. (کنز العمال ج٤، ص٤، رقم ۹۲۰۳، الفصل الاول فی فضائل الکسب الحلال)

د سیدنا حضرت عمر فاروق رضی الله عنه د تاکل شویو تنخواه ګانو تفصیل امام ابو الحسن الماوردي رحمه الله د اسې بیان کړی دی:

فلما وضع الدیوان فضل با لسابقة ففرض لکل من شهد بدراً من المهاجرین الاولین خمسة آلاف درهم فی کل سنة منهم علی بن ابی طالب و عثمان بن عفّان و طلحة بن عبید اللّٰه و الزبیر بن العوام و عبد الرحمٰن بن عوف رضی الله عنهم. و فرض لنفسه معهم خمسة آلاف درهم و الحق به العباس بن عبد المطلب و الحسن و الحسین رضوان الله علیهم لمکانهم من رسول اللّٰه ﷺ و قیل بل فضل العباس و فرض له سبعة آلاف درهم و فرض کل من شهد بدراً من الانصار اربعة آلاف درهم و لم یفضل علی اهل بدرٍ احدا الا ازواج رسول اللّٰه ﷺ فانه فرض لکل واحدةٍ مّنهن عشرة آلاف درهم..... الخ. (الاحکام السلطانیة للماوردی ص ۲۰۱/۲۰۲، الباب الثامن عشر فی وضع الدیوان الخ)

## د بایکاټ (پریکړون) او هـــــــړتال شرعي حیثیت

**سوال:** نن صبا خلك له حکومت څخه د خپلو غوښتنو د پوره کولو لپاره بایکاټ او هرتالونو طریقه خپلوي- آیا په شریعت مقدسه کښې د دې ډول هرتالونو ګنجائش شته او که نه؟ بینوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په ننني زمانې کښې احتجاجونو او هرتالونو مختلف شکلونه اختیار کړي دي- ځینې هرتالونه د اسې وي چه په هغو کښې لوټ مار، د ډبرو وارونه، ګډوډي او د روانو موټرو سوځونه او سرکاري ځایونو ته د تاوان رسولو غوندې غلط او ناروا افعال پکښې تر



سره کیږي کوم چه له هیڅ یوه مهذب قوم سره نه ښایي-

ښکاره خبره دا ده چه دا ډول هرتالونه او جلسې جلوسونه شرعاً ناجائز دي- همدارنګه په ځینو تعلیمي ادارو کښې طلباء د دغو ادارو د نظم او نسق په باره کښې هرتالونه کوي او سبقونو ته نه حاضریږي-

د دې ډول هرتالونو په باره کښې حکیم الامت حضرت مولانا اشرف علي تهانوي د نه جواز فتوٰی ورکړې ده چه "د مدرسې د طالبانو هرتالونه د منتظمینو په خلاف د شرعي قواعدو له مخې ناجائز دي- لومړی دا چه د هرتال مقصد په منتظمینو باندې زور اچول او هغوی د خپلو غوښتنو منلو ته مجبورول دي- او طالبان په هیڅ حالت کښې د دې ډول زور اچولو حق نه لري- ځکه چه طلبه محکوم دي او منتظمین حاکمان دي او په محکوم باندې د حاکم اطاعت تر هغه وخته پورې لازم وي تر څو پورې چه هغو ته د شرعې خلاف کوم حکم ور نه کړي- نو د طالبانو په منتظمینو باندې حکومت کول د موضوع او شریعت بدلول دي- چه له دې وجهې هرتال نه شي جائز کیدلی"- (امداد الفتاوٰی ج٦، ص۲۰۳، کتاب العقائد و الکلام)

البته که چېرته غوښتنې جائزې وي او هرتالونه، جلسې او جلوسونه د امن په فضا کښې وي، او د غیر شرعي امورو ارتکاب پکښې نه وي نو په د اسې حالت کښې د هرتال په کولو او د جلسې او جلوسونو په ایستلو کښې کومه بدي نشته- بلکه د شرعي او جائزو غوښتنو د منلو لپاره د اسې اقدام کول یو نیك عمل دی لکه څرنګه چه یوسف علیه السلام په د اسې وخت کښې د احتجاج په توګه له جیل څخه د وتلو انکار کړی وو-

لقوله تعالی: وَ قَالَ الْمَلِكُ ائْتُوْنِیْ بِهٖ فَلَمَّا جَآءَهُ الرَّسُوْلُ قَالَ ارْجِعْ اِلٰی رَبِّكَ فَسْئَلْهُ مَا بَالُ النِّسْوَةِ الّٰتِیْ قَطَّعْنَ اَیْدِیَهُنَّ اِنَّ رَبِّیْ بِکَیْدِهِنَّ عَلِیْمٌ☆ (سورة یوسف، آیت ۵۰)

و قال الامام القرطبیؒ فی تفسیر هٰذه الآیة "فَلَمَّا جَآءَهُ الرَّسُوْلُ" ای بامره با لخروج قال ارجع الی ربك فاسئله ما بال النسوة ای حال النسوة الّتی قطعن ایدیهن فابی ان یخرج الا ان تصح برأته عند الملك مما قذف به و انه جلس بلا جرم. (الجامع لاحکام القرآن ج۹، ص۱۳۵، سورة یوسف)

و قال الامام ابن جریر الطبریؒ: یقول فلما جاءه الرسول الملك یدعوه الی الملك. "قَالَ ارْجِعْ اِلٰی رَبِّكَ" یقول قال یوسف ارجع الی سیّدك "فَاسْئَلْهُ مَا بَالُ النِّسْوَةِ الّٰتِیْ قَطَّعْنَ اَیْدِیَهُنَّ" و اَبٰی ان یخرج مع الرسول و اجابة الملك حتٰی یعرف صحة امره عندهم مما کانوا قذفوه به من شان النساء فقال الرسول سئل الملك ما شان النسوة الّتی قطعن ایدیهن و المرأة التی سخبت بسبها. (جامع البیان للطبری ج۷، ص۲۳٤، سورة یوسف)

و قال الامام جلال الدینؒ فی تفسیره: اخرج ابن المنذر عن ابن عباس رضی الله عنهما فی قوله مَا بَالُ النِّسْوَةِ الّٰتِیْ قَطَّعْنَ اَیْدِیَهُنَّ قال اراد یوسف علیه السلام العذر قبل ان یخرج من السجن. (الدر المنثور فی التفسیر الماثور ج٤، ص۵٤۸، سورة یوسف)

## د لوږې د هرتال شرعي حیثیت

**سوال:** د خپلو حقوقو د لاس ته راوړلو او غوښتنو د منلو لپاره د لوږې د هرتال طریقه غوره کول شرعاً جائز دي او که نه؟

**الجواب:** لکه څرنګه چه نن صبا په اکثرو ملکونو کښې جمهوري حکومتونه دي او د لوږې د هرتال په ذریعه حکومتونه د عوامو غوښتنې مني۔ د دې لپاره د جائزو غوښتنو او حقوقو د لاس ته راوړلو لپاره باید د لوږې هرتال د امن په فضا کښې تر سره شي۔ چه د اسې نه وي چه د دې هرتال له وجهې ځانونه له خطر سره مخامخ کړي۔ د د اسې هرتال په کولو کښې شرعاً کوم قباحت نشته۔ البته که چېرته د لوږې هرتال د اسې ترسره شي چه له وجهې ئې د ځان د ضائع کیدو خطر وي یا د لوږې هرتال دومره اوږد شي چه د لوږې له وجهې څوک مړ شي نو د اسې هرتال نه یوازې دا چه ناجائز او ممنوع دی بلکه د خودکُشي په حکم کښې راځي۔

لما فی الهندیة: فان ترك الاكل و الشرب حتٰی هلك فقد عصٰی....... و لا تجوز الریاضة بتقلیل الاكل حتٰی یضعف عن اداء الفرائض فاما تجویع النفس علی وجه لا یعجز عن اداء العبادات فهو مباح و فیه ریاضة النفس. (الفتاوی الهندیة ج۵، ص۳۳۶، كتاب الكراهیة، الباب الحادی عشر فی الكراهیة فی الاكل)

و قال العلامة ابن عابدین رحمه الله: فان ترك الاكل و الشرب حتٰی هلك فقد عصٰی لان فیه القاء النفس الی التهلكة و انه منهی عنه فی حكم التنزیل. (رد المحتار ج۵، ص۲۳۸، كتاب الحظر و الاباحة)

و قال الله تعالٰی: وَ لَا تُلْقُوْا بِاَیْدِیْكُمْ اِلَی التَّهْلُكَةِ. (سورة البقرة آیت ۱۹۵)

## د ښځو د جلوس ایستلو حکم

**سوال:** په جمهوري حکومت کښې د خپلو حقوقو لپاره د جلوس ایستل د جمهوري عمل یوه برخه ده۔ نو آیا د سړیو غوندې ښځې هم د خپلو حقوقو د لاس ته راوړو لپاره جلوس ایستلی شي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د معاشرې بقاء د سړیو او ښځو له یوه او بل سره په ګډون پورې موقوفه ده۔ په دې کښې د سړیو غوندې ښځې هم حقوق لري۔ اللّٰه تعالی فرمایي:

﴿۱﴾ لِلرِّجَالِ نَصِیْبٌ مِّمَّا اكْتَسَبُوْا وَ لِلنِّسَآءِ نَصِیْبٌ مِّمَّا اكْتَسَبْنَ. (سورة النساء، آیت ۳۲)

﴿۲﴾ وَلَهُنَّ مِثْلُ الَّذِیْ عَلَیْهِنَّ بِالْمَعْرُوْفِ وَ لِلرِّجَالِ عَلَیْهِنَّ دَرَجَةٌ.(سورة البقرة، آیت ۲۳۸)

د خپلو حقوقو د لاس ته راوړو لپاره جنګ یا ئې په غوښتنې باندې شرعاً کوم ممانعت نشته۔ لکه څرنګه چه سړي د خپلو حقوقو غوښتنه کولی شي همدارنګه ښځو ته هم د خپلو حقوقو د مطالبې لپاره کوم خنډ نشته۔ البته ښځې ته د خپلو حقوقو د ژوندي کولو لپاره د خپل شخصیت د تقدس تر پښو لاندې کول له بد دیانتۍ او خیانت سره برابره ده۔ د ښځو د جلوس له ایستلو څخه اګر که د خپلو حقوقو غوښتنه مقصود وي لیکن د موجوده حالاتو په رڼا کښې دا



خبره له چا څخه پټه نه ده چه په دې کښې د ښځو د خپلو حقوقو د مطالبې لپاره نارې وهل یا د نفرت د ښکارولو لپاره خپل د اسې اند امونه ښکاره کول یوه لازمي خبره ده د کومو چه پرته له شرعي عذر څخه خلاصول په شریعت کښې حرام دي چه د ښځې لپاره هیڅ جواز نه لري۔ د دې لپاره د ښځو په جلسې او جلوسونو یا نورو احتجاجي طریقو کښې د نوموړي کارونو ارتکاب ناجائز او حرام دی۔

عن النبیﷺ: قال مثل الرافلة فی الزینة فی غیر اهلها كمثل ظلمة یوم القیٰمة لان نور لها. (جامع الترمذی ج۱، ص۱۳۹، ابواب الرضاع، باب ما جاء فی كراهیة خروج النساء فی الزینة)

هو! که چېرته د ښځو د د اسې جلوسونو په ایستلو سره د کومې بې حیایي او خلافِ شرع کار ارتکاب نه وي بلکه له د اسې جلوسونو څخه د کوم دیني یا دنیوي حقوقو لاس ته راوړل مقصود وي نو بیائې د جواز ګنجائش شته۔

لما فی الحدیث: عن ایاس بن عبد الله بن ابی ذباب قال قال رسول اللهﷺ لا تضربوا اماء الله فجاء عمرؓ الی رسول اللهﷺ فقال زئرن النساء علی ازواجهن فرخص فی ضربهن فاطاف باٰل رسول اللهﷺ نساء كثیر یشكون ازواجهن فقال النبیﷺ لقد طاف باٰل محمدﷺ نساء كثیر یشكون ازواجهن لیس اولٰئك بخیاركم. (سنن ابی داؤد ج۱، ص۲۹۲، كتاب النكاح)

## د عائلي قوانینو شرعي حیثیت

**سوال:** فیلډ مارشل ایوب خان د خپل حکومت په دوران کښې چه کوم عائلي قوانین نافذ کړي وو د هغو شرعي حیثیت څه دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** ایوب خان چه د کومو عائلي قوانینو فیصله جاري کړې وه د هغو ځینې مادې د قرآن او حدیثو سره تکر دي لکه:

﴿۱﴾ **څلورمه ماده:** د توجه وړ ده چه د هغه له مخې که چېرته د یوه سړي له څو زامنو او لونړو څخه یو زوی یا ئې یوه لور د هغه په ژوند کښې مړه شي او په اولاد کښې ئې لور یا زوی پاتې وي نو د دې نیکه یا انا د وفات په وخت کښې د شرعي قاعدې له مخې د صلبي زامنو یا لونړو په موجودوالي کښې لمسي ته په وراثت کښې برخه نه ورکول کیږي۔ په د اسې حال کښې چه د غه قانون هغو ته د برخې د ورکولو لپاره مړ شوی زوی یا لور ژوندی فرض کوي برخه ئې د هغه اولاد ته ورکول کیږي۔ په د اسې حال کښې چه په صحیح البخاري کښې دي چه "و لا یرث ولد الابن مع الابن" یعنې د زوی په موجودوالي کښې لمسی میراث نه شي وړلی۔ (صحیح البخاري ج۲، ص۹۹۷، کتاب الفرائض)

﴿۲﴾ **شپږمه ماده:** په دې ماده کښې له یوې څخه په زیاتو بیبیانو باندې پوره ممانعت لګیدلی دی۔ د دې مادې له مخې هیڅ یو سړی هم د ثالثي کونسل د لیکل شوي اجازې پرته دوهم واده نه شي کولی او نه د نوموړي منظوري پرته کوم واده د دې فیصلې لاندې ثبت کیدلی شي۔ په

د اسې حال کښې چه د دې په مقابله کښې د قرآنکریم فیصله ډیره واضحه او روښانه ده۔

قوله تعالٰی: فَانْكِحُوْا مَا طَابَ لَكُمْ مِّنَ النِّسَاءِ مَثْنٰى وَثُلٰثَ وَرُبٰعَ. (النساء، آیت۳)

په دې مبارك آیت کښې الله تبارك و تعالٰی هر سړي ته په یوه وخت کښې د څلورو ودونو د کولو اجازه ورکړې ده۔

﴿۳﴾ **اوومه ماده:** په دې ماده کښې د طلاق او عدت په اړه څو قوانین بیان شوي دي۔ د دې مادې د لومړنۍ شق لاندې هیڅ طلاق تر هغه وخته پورې به مؤثر نه وي تر څو پورې چه د یونین کونسل چیرمین ته د ورکړ شوي لیکنې له تاریخ څخه نوي (۹۰) ورځې نه وي تیرې شوي که یو طلاق وي او که له یوه څخه زیات، که مطلقه غیر مدخول بها وي او که مدخول بها وي۔ په د اسې حال کښې چه د الله د کتاب فیصله دا ده چه کله یوې غیر مدخول بها ته طلاق ورکړ شي نو فوراً د میړه له نکاح څخه ووځي او د عدت له تیرولو پرته له بل سړي سره نکاح کولی شي۔

قوله تعالٰی: يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِذَا نَكَحْتُمُ الْمُؤْمِنٰتِ ثُمَّ طَلَّقْتُمُوْهُنَّ مِنْ قَبْلِ اَنْ تَمَسُّوْهُنَّ فَمَا لَكُمْ عَلَيْهِنَّ مِنْ عِدَّةٍ تَعْتَدُّوْنَهَا فَمَتِّعُوْهُنَّ وَسَرِّحُوْهُنَّ سَرَاحًا جَمِيْلًا. (الاحزاب، آیت۴۹)

او چه کله مدخول بها ښځې ته طلاق ورکړل شي نو په دې صورت کښې هم د طلاق خپل اثر فوراً ښکاره کیږي او ښځې ته مطلقه ویل کیږي۔ یوازې دومره فرق دی چه له کوم بل سړي سره تر نکاح کولو مخکښې به عدت پوره کوي۔

قوله تعالٰی: وَالْمُطَلَّقٰتُ يَتَرَبَّصْنَ بِاَنْفُسِهِنَّ ثَلٰثَةَ قُرُوْٓءٍ. (الٰی) وَبُعُوْلَتُهُنَّ اَحَقُّ بِرَدِّهِنَّ فِيْ ذٰلِكَ اِنْ اَرَادُوْٓا اِصْلَاحًا. (سورة البقرة، آیت۲۲۸)

﴿۴﴾ **دولسمه ماده:** د دې مادې منشاء دا ده چه د کومې نجلۍ نکاح له شپاړس کلنۍ څخه او د هلك نکاح له اتلس کلنۍ څخه مخکښې به جرم وي۔ په د اسې حال کښې چه پخپله سرور کائنات ﷺ چه کله له سیده عائشه رضی الله عنها سره نکاح وکړه نو حضرت عائشه رضی الله عنها یوازې د شپږو کلونو په عمر کښې وه او د ودیدو په وخت کښې د نهو کلونو په عمر کښې وه۔

لما فی الحدیث: عن عائشةؓ قالت تزوجنی النبی ﷺ و انا بنت ست سنین و بنٰی بی و انا بنت تسع. (صحیح مسلم ج۱، ص۴۵۶)

عن عروة تزوج النبی ﷺ عائشةؓ و هی ابنة ست و بنٰی بها و هی ابنة تسع و مکثت عنده تسعاً. صحیح البخاری ج۲، ص۷۷۵، باب من بنی بامرأة و هی بنت تسع سنین، کتاب النکاح)

همدا وجه ده چه علماء کرامو په هغه وخت کښې د دې قانون په خلاف خپل غږ پورته کړ او خپلې ذمه وارۍ ئې پوره کړې اګر که له هغه وخت څخه واخله تر ننه پورې جوړیدونکی هر حکومت په هم هغو قوانینو باندې عمل کوونکي دي۔



## د حضرت حسنؓ خلافت په خلافتِ راشده کښې داخل دی

**سوال:** د حضرت حسن ابن علي رضی الله عنهما د خلافت دور په خلافت راشده کښې راځي او که نه؟ او که داخل نه وي نو د حق چاریار د نارې لګولو مطلب به څه وي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب:** د نبي کریم ﷺ مبارك ارشاد دی چه خلافت به تر ما وروسته تر دیرشو کلونو پورې پاتې شي، بیا به له هغه وروسته بادشاهت او امارت وي۔ فقهاء کرامو او متکلمینو علماوو د څلورو خلفاوو (ابو بکر صدیق، عمر فاروق، عثمان غني او علي حیدر رضی الله عنهم) د خلافت زمانه نهه ویشت کاله او شپږ میاشتې بللې ده۔ د حضرت علي رضی الله عنه له شهادت څخه وروسته مسلمانانو د حضرت حسن رضی الله عنه په لاس بیعت وکړ۔ له شپږو میاشتو وروسته د حضور ﷺ د وړاندوینې مطابق ئې له حضرت امیر معاویه رضی الله عنه سره صلح وکړه او خلافت ئې هغه ته ور وسپاره۔ په دې بناء باندې د حضرت حسن رضی الله عنه خلافت په خلافت راشده کښې مشهود بها داخل دی۔ د حق چاریار له نارې څخه د اهل سنت و الجماعت مقصد له نورو څخه انکار نه بلکه د دغو څلورو د حقانیت اعلان دی۔

لما قال العلامة ملاً علی القاری رحمه الله: و خلافة النبوة ثلاثون سنة. منها خلافة الصدیقؓ سنتان و ثلاثة اشهر و خلافة عمرؓ عشر سنین و نصف و خلافة عثمانؓ اثنتا عشرة سنة و خلافة علیؓ اربع سنین و تسعة اشهر و خلافة ابنه ستة اشهر و اوّل ملوك المسلمین معاویةؓ و هو افضلهم لکنه انما صار اماماً حقاً لما فوض الیه الحسنؓ بن علیؓ الخلافة فان الحسنؓ بایعه اهل العراق بعد موت ابیه ثم بعد ستة اشهر فوض الامر الٰی معاویةؓ و القصة مشهورة و فی الکتب المبسوطة مسطورة. (شرح الفقه الاکبر ص۶۹/۶۸)

و قال الامام ابو جعفر الطحاوی رحمه الله: قال النبی ﷺ خلافة النبوة ثلاثون سنة ثم یؤتی الله ملکه من یشاء. و کانت خلافة ابو بکرؓ سنتین و ثلاثة اشهر و خلافة عُمرؓ عشر سنین و نصفاً و خلافة عثمانؓ اثنتی عشرة سنة و خلافة علیؓ اربع سنین و تسعة اشهر و خلافة الحسنؓ ستة اشهر و اول ملوك المسلمین معاویةؓ و هو خیر ملوك المسلمین لکنه انما صار اماماً حقا لما فوض الیه الحسنؓ بن علیؓ الخلافة فان الحسنؓ بایعه اهل العراق بعد موت ابیه ثم بعد ستة اشهر فوض الامر الٰی معاویةؓ نظر صدق قول النبی ﷺ ان ابنی هٰذا سید و سیصلح الله به بین فئتین عظیمتین من المسلمین و القصة المشهورة فی موضعها. (شرح العقیدة الطحاویة ص۵۴۵، الخلافة و الامارة) و مثله فی شرح العقائد علی هامش الخیالی ص۱۵۱، الخلافة و الامارة.

## ښځــــه د ملك باد شاه جوړیدل

آیا ښځه د ملك صدر یا بادشاه جوړیدلې شي او که نه؟

**سوال:** آیا په اسلام کښې ښځه د یوه ملك صدر یا بادشاه جوړیدلی شي او که نه؟

**الجواب:** د شرعي دلائلو له مخې ښځې لره بادشاه یا صدر جوړول جائز نه دي چه تفصیل ئې په لاندې ډول دی۔

د اسلامي شریعت یو... نی طالب علم په آسانۍ سره په دې باندې پوهیدلی شي چه شرعاً د یوه شي جواز او نه جواز د اسلام د څلورو مشهورو اصولو او دلائلو څخه ثابتیدلی شي۔ له دغو دلائلو څخه پرته په کوم شي باندې د جواز یا نه جواز حکم لګول او بیائې شرعي حکم ګڼل سر تر پایه جهالت او ناپوهي ده۔ نو څکه ضروري ده چه د ښځې بادشاهي د دغو اصولو په رڼا کښې وکتل شي تر څو چه د ښځې د بادشاهي اصلي څیره او د هغه شرعي حیثیت معلوم شي۔ په دې سلسله کښې یو تفصیلي مضمون ستاسو په خدمت کښې وړاندې کیږي۔ هیله ده چه په دې سره صحیح صورت حال درته واضح شي۔

﴿۱﴾ په قرآنکریم کښې د الله تعالی ارشاد دی چه: اَلرِّجَالُ قَوّٰامُوْنَ عَلَی النِّسَآءِ بِمَا فَضَّلَ اللّٰهُ بَعْضَهُمْ عَلٰی بَعْضٍ. (سورة النساء، آیت ۳٤)د الله تعالی د دې ارشاد لاندې د اوومې هجري پیړۍ مشهور، مقبول او معتمد مفسر علامه ابن کثیرؒ پخپل مایهٔ ناز تفسیر کښې لیکي:

یقول تعالی: "اَلرِّجَالُ قَوّٰامُوْنَ عَلَی النِّسَآءِ" ای الرجل قیم علی المرأة ای هو رئیسها و کبیرها و الحاکم علیها و مؤدبها اذا اعوجت (بما فضل الله بعضهم علی بعض) ای لان الرجل افضل من النساء و الرجل خیر من المرأة و لهٰذا کانت النبوّة مختصة با لرجال و کذٰلك الملك الاعظم لقولهﷺ "لن یفلح قوم ولو امرهم امرأة". (رواه البخاری من حدیث عبد الرحمٰن بن ابی بکرة عن ابیه. (تفسیر ابن کثیر ج۱، ص۴۹۱، سورة النساء)

"الله تعالی ارشــــــاد فرمایي چه نارینه د ښځې حاکم، رئیس او سردار دی، د هغې صحیح او په ښه توګه ساتونکی دی۔ د دې لپاره چه سړی له ښځو څخه افضل دي۔ همدا وجه ده چه نبوت یوائې په سړو کښې راغلی دی او همدارنګه په شرعي توګه خلیفه هم سړی جوړیدلی شي۔ نبي کــــــریمﷺ فرمایي چه هغه خلك هیڅکله نجات نه شي پیدا کولی چه ښځه خپل والي مقرره کړي"۔ (بخاري)

﴿۲﴾ (الف) حدثنا عثمان بن الهیثم قال حدثنا عوف عن الحسن عن ابی بکرةؓ قال لقد نفعنی الله بکلمة سمعتها من رسول اللهﷺ ایام الجمل بعد ما کدت ان الحق باصحاب الجمل فاقاتل معهم قال لما بلغ رسول اللهﷺ ان اهل فارس قد ملکوا علیهم بنت کسرٰی قال لن یفلح قوم ولوا امرهم امرأة. (صحیح البخاری ج۲، ص۱۰۵۲/۶۳۷، کتاب النبیؐ الی کسرٰی و قیصر)

"مونږ ته عثمان بن هیثم وویل چه مونږ ته عوف او هغه له امام حسن بصريؒ څخه او هغه له ابي بکرةؓ څخه او هغه وویل چه الله تعالی د جمل د جنګ په ورځ ما ته په دې خبرې باندې ګټه ورسوله کومه چه ما له حضرت رسول کریمﷺ څخه اوریدلې وه او که نه نو نژدې وو چه ما هم



د جُمل له خاوندانو سره یعني د حضرت عائشةؓ په لښکر کښې شریك شوی وای او (له مسلمانانو سره) مې جنګ کړی وای۔ ابو بکرةؓ وویل چه هغه خبره دا وه چه کله نبي کریمﷺ ته دا خبره ورسیده چه ایرانیانو د کسرٰی لور (بوران بنت شیرویه) په تخت باندې کښینوله نو ونې فرمایل چه هغه قوم هیڅکله نجات نه پیدا کوي کوم چه (د ملك) د امورو حاکم او والي ښځه تاکلې وي"۔

د بخاري شریف په حاشیه کښې د ابوبکرةؓ په حدیث باندې د قسطلاني په حوالې سره لیکل شوي دي چه د جمهورو مذهب دا دی چه د ښځې بادشاهي جائزه نه ده۔

او همدارنګه محدث شهیر فقیه نبیل ملا علي قاري رحمه الله پخپل د زمانې په مشهور تالیف "مرقات شرح مشکات" کښې د دې حدیث په شرح کښې لیکي:

فی شرح السنة: لا تصلح المرأة ان تکون اماماً و لا قاضیاً لانهما محتاجان الی الخروج للقیام بامور المسلمین و المرأة عورة لا تصلح لذٰلك. و لان المرأة ناقصة و القضاء من کمال الولایات فلا یصلح لها الا الکامل من الرجال. (مرقاة المفاتیح ج۷، ص۳۱۵، کتاب الامارة و القضاء)

په شرح السُنة کښې دي چه د ښځې بادشاهي او ریاست له دوو وجهو څخه جائز نه دی۔

﴿۱﴾ بادشاهي د مسلمانانو د کارونو د پوره کولو لپاره د آزادنه تګ او راتګ او منډې تړې تقاضا کوي او ښځې ته په کور کښې د قرار اوسیدنې او حجاب حکم ورکړ شوی دی۔

﴿۲﴾ ښځه د عقل له مخې ناقصه ده او ریاست عامه د پوره ولایت د درلودو له وجهې پوره عقل غواړي۔

علامه ابن کثیر او ملا علي قاري رحمهما الله غوندې محدثینو او مفسرینو دې حدیث لره عام ګڼلی دی او د ښځې د بادشاهي په عدم جواز باندې ئې استدلال فرمایلی دی۔ له دې وجهې دا حدیث د کسرٰی له لور سره مخصوص ګڼل یوائې له تشې دعوې پرته بل څه شی نه دی۔ پخپله راوي د رسول اللهﷺ صحابي حضرت ابو بکرةؓ د کلام له اسلوب څخه دا څرګندیږي چه ده هم دې حدیث لره عام ګڼلی دی۔ (کما لا یخفٰی علی المتامل)

﴿ب﴾ ما رایت من ناقصات عقل و دین اغلب لذی لب منکن قالت یا رسول اللهﷺ ما نقصان العقل و الدین قال اما نقصان عقلها فشهادة امرأتین تعدل شهادة رجل فهٰذا نقصان العقل و تمکث اللیالی لا تصلی و تفطر فی رمضان فهٰذا نقصان الدین. رواه مسلم. (تفسیر ابن کثیر ج۱، ص۳۳۵، سورة البقرة)

"ما نه دي لیدلې چه سره د عقل او دین د کمی د نارینه وو عقل وهونکي له تاسو څخه زیات وي۔ هغې بیا پوښتنه وکړه چه یا رسول اللهﷺ په مونږ د دین او عقل کمی څنګه دی؟ و ئې فرمایل چه د عقل کموالی خو له دې څخه ظاهر دی چه د دوو ښځو ګواهي د یوه سړي له ګواهي سره برابره ده۔ او د دین کمی مو دا دی چه د حیض په ورځو کښې نه لمونځ وي او نه روژه"۔ (تفسیر ابن کثیر ج۱، ص۳۳۵، سورالبقرة)

له دې حدیث څخه په څرګنده توګه معلومیږي چه ښځه ناقص العقله ده او ریاست عامه له پوره ولایت څخه عبارت دی۔ لهذا د ریاست عامه لپاره د پوره عقل ضرورت دی او پوره عقل د حدیث له مخې په ښځې کښې نشته۔ نو د دې لپاره د ښځې بادشاهي، امارت او ریاست عامه جائزه نه ده۔

﴿۳﴾ د شرح عقائد په مشهوره شرحه نبراس کښې دي چه:

قد اجمع الامة على عدم نصبها حتى فى الامامة الصغرىٰ. (النبراس شرح شرح العقائد ص ۳۲۱، نصب الامام، يشترط ان يكون الامام من اهل الولايت)

"د محمدي امت على صاحبها الصلوٰة و السلام په دې مسئلې باندې اجماع منعقده شوې ده چه د ښځې ریاست عامه (امامت کبرىٰ) او ریاست خاصه (امامت صغرىٰ) دواړه جائز نه دي"۔

لاندې د مشهورو محدثینو، فقهاوو او متکلمینو ارشادات هم ملاحظه کړې تر څو دا مسئله نوره هم روښانه شي۔

﴿۱﴾ علامه علاؤ الدين الحصكفي رحمه الله فرمايي:

و يشترط كونه مسلماً حراً ذكراً عاقلاً بالغاً قادراً. (الدر المختار على هامش رد المحتار ج ۱، ص ۴۰۵، باب الامامة)

"یعني د ریاست عامه لپاره نرتوب شرط دی له دې وجهې د ښځې بادشاهي جائزه نه ده"۔

﴿۲﴾ علامه ابن عابدين د ښځې د بادشاهي په تعليل کښې ليکي:

لان النساء امرن بالقرار فى البيوت فكان مبنى حالهن على الستر و اليه اشار النبى ﷺ حيث قال كيف يفلح قوم تملكهم امراة. (رد المحتار ج ۱، ص ۴۰۵، باب الامامة)

"ځکه چه ښځو ته په کورونو کښې د قرار پاتې کیدو امر شوی دی له دې وجهې په هغوی باندې په پردې او ستر کښې اوسیدل لازم دي او حضور ﷺ د ښځې د بادشاهي د نه جواز خوا ته د اشارې په کولو سره وفرمایل چه هغه قوم هیڅکله فلاح او کامیابي نه شي ترلاسه کولی چه د اختیار واګې ئې د ښځې په لاس کښې وي"۔

﴿۳﴾ علامه تفتازاني رحمه الله په شرح مقاصد كښې ليكي: يشترط فى الامام ان يكون مكلفا حراً ذكرا الى قوله و النساء ناقصات عقل و دين ممنوعات عن الخروج الى مشاهد الحكم و معارك الحرب. (شرح المقاصد ج ۲، ص ۲۷۷)

د ښځې بادشاهي له دوو وجهو څخه جائزه نه ده (۱) ښځه د دين او عقل له لحاظه ناقصه ده۔ (۲) هغې ته په پرده کښې د اوسیدو حکم دی۔

﴿۴﴾ علامه سيد محمود آلوسي البغدادي رحمه الله پخپل مشهور تفسير روح المعاني کښې د "إِنِّي وَجَدتُّ امْرَأَةً تَمْلِكُهُمْ الآية" لاندې ليکي:

و ليس فى الآية ما يدل على جواز ان تكون المراة ملكة و لا حجة فى عمل قوم كفرة على مثل هذا المطلب. و فى صحيح البخارى من حديث ابن عباس رضى الله عنهما ان النبى ﷺ لما بلغه ان اهل فارس قد ملكوا عليهم بنتِ كسرىٰ قال لن يفلح قوم ولوا امرهم امراة. (روح المعانى ص ۱۸۹، ج ۱۰، الجزء ۱۹، الكلام على نكاح الانس و الجن)



"یعني د ښځې بادشاهي جائزه نه ده ځکه چه په صحیح البخاري کښې راغلي دي چه نبي کریم ﷺ ته چه کله دا خبره ورسیده چه فارسیانو د کسرىٰ لور د خپل ملك بادشاه کړه نو نبي کریم ﷺ وفرمایل چه هغه قوم هیڅکله کامیابي نه شي تر لاسه کولی کوم قوم چه ښځې لره د خپل واك مالکه جوړه کړله"

﴿۵﴾ حضرت العلامه مولانا آزاد د "اَلرِّجَالُ قَوّٰمُوْنَ" په تفسير کښې ليکي:

"الله تعالى په دنیا کښې هرې ډلې ته په بلې ډلې باندې په ځینو ځانګړو خبرو کښې زیاتوالی ورکړی دی او همدارنګه سړیو ته ئې هم په ښځو باندې زیاتوالی ور بښلی دی۔ سړی د ښځې د معیشت د ضروریاتو ذریعه ده نو د دې لپاره د امارت مقام په قدرتي توګه د ده په برخه شوی دی۔ (ترجمان القرآن ج ۱، ص ۳۱۱، سورت النساء)

﴿۶﴾ مفتي اعظم پاکستان حضرت مولانا مفتي محمد شفيع صاحبؒ پخپل معروف او مقبول تفسیر معارف القرآن کښې ليکي:

"آیا د یوې ښځې لپاره امیر جوړیدل جائز دي؟"

په صحیح البخاري کښې د حضرت ابن عباس رضی الله عنه روایت دی چه رسول الله ته کله دا خبره ورسیده چه اهل فارس د کسرىٰ لور لره د خپل ملك بادشاه وټاکله نو ده مبارك ﷺ وفرمایل چه "لن يُفلح قوم ولوا امرهم امراة" "یعني هغه قوم هیڅکله کامیابي نه شي تر لاسه کولی چا چه ښځې لره د خپل اقتدار مالکه جوړه کړه"۔ د دې لپاره د امت علماء په دې خبرې باندې متفق دي چه یوې ښځې ته امامت، خلافت او سلطنت نه شي سپارل کیدلی بلکه د لمانځه د امامت غوندې امامت صغرىٰ هم یواځې د سړیو سره ښایي۔

پاتې شوه د بلقیس خبره چه د سبا ملکه وه۔ نو له دې څخه هیڅ شرعي حکم نه شي لاس ته راتللی تر څو چه دا ثابته نه شي چه حضرت سليمان عليه السلام له هغې سره پخپله نکاح کړې وه او بیائې په سلطنت او حکومت باندې برحاله پرینبوده۔ او دا خبره په هیڅ ځای کښې هم د صحیحو روایتونو له مخې نه ده ثابته شوې چه له مخې ئې په شرعي احکامو کښې اعتماد پرې وکړی شي۔ (معارف القرآن ج ۶، ص ۵۷۳، سورت النمل)

﴿۷﴾ مشهور محدث حضرت مولانا عبد الحق د هلوي صاحبؒ په اشعة اللمعات شرح مشکوٰة کښې د "لن يفلح قوم" حديث په شرح کښې فرمايي: "ازين معلوم مى شود كه زن قابل ولايت و امارت نيست". (اشعة اللمعات ج ۳، ص ۳۰۹، كتاب الامارة و القضاء)

له دې حدیث څخه څرګنده شوه چه د ښځې ریاست عامه او امارت جائز نه دي۔

﴿۸﴾ علامه نواب محمد قطب الدين خان د هلوي په مظاهر الحق شرح مشكات کښې تر دې عنوان لاندې چه "هغه قوم فلاح نه شي تر لاسه کولی کوم چه ښځه خپل امیر وټاکي" د "لن يَفلح قوم" له نقل کولو نه وروسته لیکي:

له دي حدیث څخه څرګنده شوه چه د ولایت او حکمراني اهل یوائحې سړي دي او ښځې د حکمراني او امارت اهل نه دي"۔ (مظاهر حق ج۳، ص۶۷۲، کتاب الامارت و القضاء)

﴿۹﴾ حضرت علامه قاضي محمد ثناء الله پاني پتي پخپل مشهور تفسیر تفسیر مظهري کښې د الله تعالی د دي مبارك ارشاد چه "بِمَا فَضَّلَ اللّٰهُ بَعْضَهُمْ عَلٰى بَعْضٍ" تر عنوان لاندې لیکي:

یعنی الرجال علی النساء فی اصل الخلقة بکمال العقد و حسن التدبیر و بسطة فی العلم و الجسم و مزید القوة فی الاعمال و علو الاستعداد و لذلك خصوا با لنبوة و الامامة و الولایة و القضاء و الشهادة فی الحدود و القصاص و غیرها و وجوب الجهاد و الجمعة و العیدین و الأذان و الخطبة و الجماعة و زیادة السهم فی الارث و مالکیة النکاح و تعدد المنکوحات و الاستبداد با لطلاق و کمال الصوم و الصلوة من غیر فتور و غیر ذلك و هذا امر وهبی. (تفسیر مظهری ج۲، ص۹۸، سورة النساء)

د دې لپاره چه الله تعالی ځینو لره په ځینو یعني سړیو لره په ښځو باندي (تخلیقي) بهتري ور بښلي ده۔ یعني الله تعالی سړیو ته د ښځو په پرتله کمالِ عقل، ښه تدبیر، په علم کښې پراخوالی، په جسم کښې لویوالی، په قوت، استعداد او صلاحیت کښې زیاتوالی په طبعي توګه ور بښلی دی۔ له دې وجهې لاندیني ځانګړتیاوې او حکمونه یوائحې د سړیو لپاره دي او ښځې له دغو احکامو او ځانګړتیاوو څخه محرومې دي لکه نبوّت، امامت او حکومت، قضاء، د تعزیري جرمونو ګواهي، د جهاد وجوب، د جُمعې وجوب، د اخترونو وجوب، آذان او خطبه، د جمعې لمونځ، په میراث کښې د برخې زیاتوالی، د نکاح مالِك والی، له څلورو ښځو سره نکاح، د طلاق واك او په هرې زمانې او حالت کښې د روژې د میاشتې پوره روژې نیول او د پوره لمونځونو ادا کول او د اسې نور۔ او دا ټول یوه الٰهي بخښنه ده۔

﴿۱۰﴾ حکیم الامت حضرت مولانا اشرف علي تهانوي رحمه الله د خپل مشهور او مقبول تفسیر بیان القرآن کښې لیکي:

"او زمونږ په شریعت کښې ښځو لره د بادشاه د جوړولو ممانعت دی۔ پس د بلقیس له کیسې څخه په شك او شبهې کښې نه لوېږئ۔ اول خو دا کار د مشرکینو وو او بله دا چه که چېرته په سلیماني شریعت کښې د هغې تاکنه هم شوې وي نو په محمدي ﷺ شریعت کښې ئې چه خلاف راغلی وي نو بیا هغه کوم حجت نه ګرځي"۔ (بیان القرآن ج۲، ص۴۴۷)

﴿۱۱﴾ په تفسیر نسفي کښې الامام الجلیل العلامه ابو البرکات عبد الله بن احمد بن محمود النسفي لیکي:

یعنی انما کانوا مسیطرین علیهن لسبب تفضیل الله بعضهم وهم الرجال علی بعض و هم النساء با لعقل و العزم الی قوله و النبوة و الخلافة و الامامة. (المدارك ج۱، ص۲۲۳، سورة النساء)

"الله تعالی په ځینو خبرو کښې سړیو ته په ښځو باندې فضیلت ورکړی دی لکه عقل، عزم، حزم،



رأیه، د جهاد قوت، کمال، لمونځونه او روژې، نبوت او خلافت او د اسې نور"۔

﴿۱۲﴾ حضرت العلامه مولانا محمد ادریس الکاند هلوي رحمه الله د جامعه اشرفیه پخواني شیخ الحدیث د "لن یفلح قوم" تر حدیث لاندې لیکي:

قوله ولوا امرهم امرأة فی شرح السنة لا تصلح المرأة ان تکون اماما و لا قاضیاً لان الامام و القاضی محتاجان الی الخروج للقیام بامر المسلمین و المرأة عورة لا تصلح لذلك و لان المرأة ناقصة و القضاء من کمال الولایة فلا یصلح لها الا الکامل من الرجال. (التعلیق الصبیح ج۴، ص۲۰۰، کتاب الامارة و القضاء)

"په شرح السنه کښې دي چه د ښځې بادشاهي او ریاست عامه له دوو وجهو څخه جواز نه لري۔

(۱) بادشاهي د مسلمانانو د کارونو د پوره کولو لپاره د آزادې ګرځېدنې او منډې ترړې تقاضا کوي او ښځې ته د پرده کښې د کراړ پاتې کېدو او د پردې امر ورکړ شوی دی۔

(۲) ښځه د عقل له مخې ناقصه یعنې کمزورې ده او ریاست د ولایت د پوره والي له وجهې پوره عقل غواړي۔

علامه ابو عبد الله محمد بن احمد الانصاري القرطبي رحمه الله پخپل مقبول ترین تفسیر الجامع الاحکام القرآن کښې لیکي:

العاشرة روی البخاری من حدیث ابن عباسؓ ان النبی ﷺ لما بلغه ان اهل فارس قد ملکوا بنت کسرٰی قال لن یفلح قوم ولوا امرهم امرأة قال القاضی ابو بکر بن العربیؒ هذا نص فی ان المرأة لا تکون خلیفة و لا خلاف فیه. (تفسیر قرطبی ج۳، ص۱۸۳، سورة النساء)

"امام بخاريؒ صاحب له ابن عباس رضی الله عنه څخه دا حدیث روایت کړی دی چه جناب نبي کریم ﷺ ته چه کله دا خبره ورسیدله چه ایرانیانو د کسرٰی لور د بادشاهۍ په تخت باندې کښېنوله نو ده مبارك ﷺ وفرمایل چه هغه قوم هیڅکله فلاح او کامیابي نه شي تر لاسه کولی چه د خپل ملك واګې د ښځې په لاس کښې ورکړي"۔

قاضي ابو بکر بن العربي رحمه الله فرمایي چه په دې حدیث کښې دا خبره څرګنده شوې ده چه ښځه د خلافت اهل نه ده او په دې کښې د هیچا هم اختلاف نشته۔

الشیخ الامام العلامه بدر الدین ابن محمد محمود بن العینيؒ د بخاري شریف په شرحه "عمدة القاري" کښې د "لن یفلح قوم" په شرح کښې لیکي:

قال الخطابیؒ فی الحدیث ان المرأة لا تلی الامارة و لا القضاء. (عمدة القاری ج۱۸، ص۵۹، کتاب الامارة و القضاء)

"علامه خطابيؒ وفرمایل چه ښځه د خلافت او د قضاء اهل نه ده"

**د شبهاتو دفع:** ﴿۱﴾ ځینو حضراتو ته د لن یفلح الخ د حدیث په اره دا شبهه لوېږي چه په ځینو قومونو کښې ښځې د بادشاهۍ په توګه ټاکلې شوې دي او هلته د نه کامیابۍ په ځای کامیابي لیدل شوې ده۔ نو د دې شبهې ځواب دا دی چه په کومو قومونو کښې چه ښځې بادشاهانې تېرې شوې دي نو هغوی خامخا په څه ناڅه درجه کښې د نه کامیابۍ ښکار شوې دي او تاریخ

پرې ګواه دی۔ او ځینې قومونه خو لا له ډیر عبرتناك (۱) زوال او ناکامي سره مخامخ شوي دي لکه د برطانیې چه په یوې زمانې کښې ئې په سرحد اتو باندې لمر نه ډوبیده او نن هغه عظیمه برطانیه د دنیا په یوه کوچنۍ ګوټ کښې محصوره شوې ده او له عظیمې څخه حقیره او صغیره برطانیه جوړه شوې ده او په ځینو اقوامو کښې چه په ظاهره سره څه ناڅه فلاح یا کامیابي لیدل کیږي هغه په نبوي ﷺ حدیث باندې هیڅ اثر نه کوي ځکه چه پوره کامیابي مشککه ده او مراتب ئې مختلف دي۔ نو په ظاهره سره د یو ځل فلاح په موجودیدو سره د فلاح د مراتبو وجود نه لازمیږي چه د ناکامي د نه متحقق کیدو له وجهې د نبوي حدیث د متاثر کیدو خدشه (اندیښنه) لازمه شي۔ له دې برسیره د حدیث د استقبالي صیغې "لن یفلح" ته په نظر کولو سره عین ممکنه ده چه په راتلونکي کښې دا قومونه په یوه ځانګړې ډول زوال او ناکامۍ کښې مبتلا شي او په تقدیر د نه ګرفتاره کیدو ځواب هغه دی چه مخکښې تیر شو۔ دا حدیث د امت ټول اکابر سلفاء او خلفاوو د عمومي درجې په ورکولو سره د انشاء په معنیٰ را اخیستی دی او له نورو نصوصو پرته له دې حدیث څخه هم د ښځې د امارت د عدم جواز باندې استدلال کړی دی۔

﴿۲﴾ د ځینو بیا دا شك او شبهه ده چه حضرت تهانوي رحمه الله د ښځې ریاست عامه او امارت د جواز فتویٰ ورکړې ده ۔ د دې په اړه عرض دا دی چه دا حضرات یا خو د حضرت تهانوي په مقصد صحیح پوه شوي نه دي او یا له تجاهل عارفانه څخه کار اخلي۔ حضرت تهانوي چه په امداد الفتاویٰ کښې کومه فتویٰ ورکړې ده د هغه له عبارت څخه دا څرګندیږي چه هغه په دوو صورتونو کښې د جواز قائل دی۔

((۱)) ښځه به یوازې صوري بادشاه وي حقیقي به نه وي بلکه حقیقتاً یوازې مشاوره وي او حاکم او حقیقي بادشاه پارلیمان وي او د جواز وجه ئې دا ده چه ښځه د مشورې اهل ده۔ لیکن زمونږ په نزد دا صورت نه شي کیدلی۔ بلکه دلته په پاکستان کښې حقیقي بادشاه صدر اعظم

(۱) او دا اعتراض نه واردیږي چه د ځینو قومونو زوال د ښځې له امارت څخه پرته هم راغلی دی ځکه چه د زوال اسباب مختلف وي لکه څرنګه چه د موت اسباب مختلف دي۔ څوك په تبې باندې مري او څوك له ملیریا، ګزن او داسې نورو بیماریو څخه مري او د دې دا ځواب هم کیدلی شي چه دا جائزه ده دا هم جائزه ده چه ښځې اګر که حکمرانې وي لیکن التزاماً پخپلې انفرادي رائې سره کار نه کوي۔ او دغه دواړه صورتونه د حدیث لاندې نه راځي۔ اول ځکه چه ښځې د مشورې اهل دي او دوهمه دا چه د نه کامیابي علت د عقل کموالی دی۔ او کله کله د سړیو له مشورې څخه د هغه پټی وشي چه په نتیجه کښې علت رفع شو نو معلول یعنې ناکامي هم نفی شو۔ نو د دغو وجوهاتو په بناء سره دا قومونه د نه کامیابي ښکار نه شول۔



وي او د پارلیمان حیثیت یوازې د مشاور وي۔

((۲)) دوهم صورت دا دی چه ښځه حقیقتاً حکمران وي لیکن التزاماً پخپلې انفرادي رائې سره کار نه کوي۔ په دې صورت کښې ئې د جواز راز دا دی چه د نه جواز علت د عقل نقصان دی او کله چه د سړیو په مشورې سره د دې اجبار (پټی) وشي۔ نو علت مرتفع شو۔ نو کله چه علت مرتفع (پورته) شو نو معلول هم یعنې عدم جواز او عدم فلاح هم منفي شو(له منځه لاړ)۔ لیکن زمونږ په نزد دا صورت نه شي موجودیدلی ځکه چه دلته په پاکستان کښې صدر اعظم مستقل بالرأی وي او پارلیمان یوازې د خپلې رأیې تابع جوړوي۔

او کله چه ښځه حقیقتاً حکمرانه او د هیواد بادشاه وي او پخپلې انفرادي رأیې سره کار کوي نو دا صورت حضرت تهانوي صاحبؒ ناجائز او د حدیث په وعید کښې داخل ګڼلی دی۔ لهذا د حضرت تهانوي په فتویٰ سره د ښځه مطلق امارت جواز یقینا د حضرت تهانوي رحمه الله په مقصد باندې د نه پوهیدلو او یا د تجاهل نتیجه ده۔

**خبرداری:** په تیرو شویو مخونو کښې چه کوم دوه صورتونه جائز ګرځول شوي وو په هغو کښې له بې پردګۍ څخه د اجتناب شرط ورسره لګیدلی وو۔ لکه څرنګه چه د علامه ابن عابدین تعلیل په صراحت سره په دې باندې دلالت کوي۔

﴿۳﴾ ځینې خلك په قرآن پاك کښې د ملکه بلقیس له ذکر شوې کیسې څخه استدلال کوي او دا وایي چه د ایمان له راوړلو نه وروسته په یوه دلیل سره هم دا ثابته نه ده چه له مخې ئې د ښځې سلطنت ترې و ایستل شي۔ پس په ظاهره خو د سلطنت له حکایته او د انتزاع (ایستلو) له نه حکایته د ښځې د سلطنت پخپل حال باندې پاتې کیدل معلومیږي او تاریخ هم په صراحت سره د دې تائید کوي او اصولي قاعده هم همدا ده۔ اذا قص الله و رسوله علینا امراً من غیر نکیر علیه فهو حجة لنا لهذا. له قرآن پاك څخه خو دا ثابته شوه چه د ښځې امارت صحیح ده۔

نو د دې شبهې ځواب دا دی چه د ملکه بلقیس د امارت او حکومت صورت له هغو دوو صورتونو څخه یو صورت وو کوم چه حضرت تهانوي صاحبؒ جائز ګرځولي وو۔ او د دې خبرې قرینه د الله تعالی دا ارشاد دی چه "مَا كُنتُ قَاطِعَةً أَمْرًا حَتَّىٰ تَشْهَدُونِ" (بلقیس وویل) چه "زه د یوې خبرې قطعي فیصله هم نه کوم چه ترڅو تاسو له ما سره موجود نه وی"۔

او که چېرته دې قرینې ته نظر و نه کړی او فرض کړی چه له مسلمان کیدو نه وروسته د ملکه بلقیس د حکومت صورت هم دریم صورت وو کوم چه ناجائز ګرځولی شوی دی۔ نو بیا د تیر شوي اصولي قاعدې له مخې ځواب دا دی چه لکه څرنګه چه په دې صورت باندې په مقدس شریعت کښې انکار راغلی دی له دې وجهې حجت نه شي جوړیدلی۔

﴿۴﴾ ځینې صحافي ورونه د "لن یفلح قوم" په حدیث باندې د ضعف دعویٰ کوي کوم چه سراسر دروغ او لوی بهتان دی۔ امام ترمذي پخپل مشهور کتاب سنن ترمذي کښې دا حدیث

صحیح بللی دی۔ لکه څرنګه چه دی لیکي:

حدثنا محمد بن المثنی حدثنا خالد بن الحارث عن حمید الطویل عن الحسن عن ابی بکرةؓ قال عصمنی الله بشیء سمعته من رسول اللهﷺ لما هلك کسریٰ قال من استخلفوا قالوا بنته فقال النبیﷺ لن یفلح قوم ولوا امرهم امرأة فلمّا قدمت عائشةؓ یعن البصرة ذکرت قول رسول اللهﷺ فعصمنی الله به. قال الترمذیؒ هٰذا حدیث صحیح. (جامع الترمذی ج۲، ص۵۲، ابواب الرؤیا)

"حضرت ابوبکرةؓ فرمایي چه الله تعالی د جنګ جمل په ورځ زه د دې خبرې په وجه وساتلم کومه چه ما له نبي کریمﷺ څخه اوریدلې وه او هغه خبره دا وه چه کله کسریٰ هلاك شو نو نبي کریمﷺ پوښتنه وکړه چه ایرانیانو چا لره حکمران جوړ کړ؟ صحابهٔ کرامو رضی الله عنهم عرض وکړ چه د کسریٰ لور ئې خلیفه او حکمرانه کړله۔ په دې باندې نبي کریمﷺ وفرمایل چه هغه قوم هیڅکله کامیابي نه شي میندولی چا چه ښځې لره خپل حکمران او والي جوړ کړ۔ نو چه کله حضرت عائشه رضی الله تعالی عنها بصرې ته راغله نو ما ته د نبي کریمﷺ دا خبره چه "لن یّفلح قوم الخ" را یاده شوه او د دې خبرې له برکت څخه زه الله تعالی وساتلم او د جُمل له ملګریو سره یو ځای نه شوم۔ امام ترمذي صاحب فرمایي چه دا حدیث صحیح دی۔

ځینې خلك د جنګ جُمل له واقعې څخه نیمګړی استدلال کوي او د دې استدلال ځواب دا دی چه په دې موقع باندې ام المؤمنین سیده حضرت عائشه رضی الله تعالی عنها د خلافت او امامت کومه دعویٰ نه وه کړې او نه ئې د خلافت او امامت مطالبه کړې وه بلکه هغې او ملګرو ئې د حضرت عثمان رضی الله تعالی عنه د قصاص د اخیستلو لپاره کوښښونه کول۔

"وګوری دا حضرات حضرت قعقاع رضی الله عنه ته څه ځواب ورکوي"۔

"که چېرته د حضرت علي رضی الله عنه دا فکر وي کوم چه تاسو بیان کړ او هغه د عثمان رضی الله عنه له قاتلینو څخه د قصاص د اخیستلو اراده لري نو بیا د جنګ او مخالفت هیڅ خبره پاتې نه ده۔ مونږ تر اوسه پورې دا ګنل چه هغوی د عثمان رضی الله عنه د قاتلینو سره همدردي او ملګرتیا لري۔ (تاریخ اسلام ج۱، ص۳۹۶)

د صحیح بخاري شریف حاشیه هم مطالعه کړی:

قوله ایام الجمل متعلق بقوله نفعنی الله و ایام الجمل وقعه وقعت با لبصرة بین علی وعائشه رضی الله عنهما سنة ست و ثلثین و کانت عائشةؓ یومئذ علی الجمل فسمیت به اصحاب الجمل یعنی عسکره. قاله الکرمانی و لم تکن عائشةؓ و لا غیرها طالبین الامارة و الخلافة بل طلبوا دم عثمانؓ من قتلته و کان علیؓ الی قوله کذا فی الفتح. (صحیح البخاری ج۲، ص۶۳۷، کتاب النبیﷺ الی کسریٰ و قیصر)

"جنګ جمل په ۳۶ هجري کښې د سیدنا حضرت علي رضی الله تعالی عنه او ام المؤمني سیده عائشه رضی الله تعالی عنها تر منځ واقع شو۔ په دې ورځ ام المؤمنین رضی الله عنها په جمل (اوښ) باندې سوره وه له دې وجهې د لښکر نوم اصحاب الجمل شو۔ او ام المؤمنین



سیده حضرت عائشه رضی الله عنها او د هغې ملګري د امارت او خلافت غوښتونکي نه وو۔ دغو حضراتو یوائې او یوائې د حضرت عثمان رضی الله تعالی عنه د قصاص د اخیستلو لپاره کوششونه کول"۔

لهذا له دې واقعې څخه د ښځې د امارت په جواز باندې استدلال صحیح نه دی ځکه چه په دې واقعې کښې د امارت او خلافت هیڅ خبره هم نه وه۔ البته د دې واقعې د سرپرستۍ د کولو له وجهې د امامت او خلافت صورت خامخا منځ ته راغلی وو کوم چه جائز نه دی۔ لیکن حقیقت د خلافت او امارت په کُلي توګه موجود نه وو۔ ځکه چه په دې موقع کښې نه پخپله ام المؤمنین د امامت دعوه کوله او نه ئې ملګرو هغې لره امامه او یا خلیفه وګرځوله۔ بلکه دغو حضراتو په مشترکه توګه د حضرت عثمان رضی الله عنه د قصاص د اخیستلو لپاره کوششونه کول۔ البته تحریك او سرپرستي د ام المؤمنین وو۔ لکه څرنګه چه په یو کور کښې د مور په تحریك او سرپرستۍ کښې څوك کار وکړي۔ نو له دې وجهې له دې واقعې څخه د ښځې د امامت او خلافت جواز وړاندې کول صحیح نه دي۔

لیکن چونکه دا صورت د امامت راغلی وو د دې لپاره د "لن یّفلح قوم الخ" د حدیث راوي حضرت ابو بکره رضی الله عنه غوندې نورو صحابهٔ کرامو رضی الله عنهم د دې حدیث له مخې د انتهایي تقویٰ او الٰهي ویرې له وجهې د ام المؤمنین په لښکر کښې شامل نه شول۔ او پخپله ام المؤمنین حضرت عائشه رضی الله تعالی عنها د دې حدیث په صُوري مخالفت او د هغه فساد له مخې چه په دې واقعې یعنې جُمل کښې واقع شو ډیره غمګینه، پریشانه او خفه وه او اکثره به ئې دا فرمایله:

"کاش چه زه له دې واقعې څخه شل کاله مخکښې له دنیا څخه تللې وای"۔

﴿۶﴾ ځینې خلك دا بې بنیاده الزام لګوي چه د مارشل محمد ایوب خان مرحوم په مقابلې کښې د جمیعت علماء اسلام اکابرو د فاطمه جناح حمایت کړی وو۔ نو که چېرته د ښځې امارت جائز نه وای نو شیخ الاسلام حضرت مولانا محمد عبد الله درخواستي، حضرت مولانا مفتي محمود، محدث کبیر حضرت مولانا عبد الحق او حضرت مولانا غلام غوث هزاروي غوندې علماوو د فاطمه جناح تائید نه وای کړي۔

نو د دې شبهې یوائې دا ځواب دی چه "سُبْحٰنَكَ هٰذَا بُهْتَانٌ عَظِیْمٌ" په معترضینو باندې لازم دي چه د فریب او مکر څخه کار وانخلي او د ماضي قریب تاریخ دې وګوري او د ایوبي دور سرکاري او حکومتي کارنامې مطالعه کړي نو بیا به ورته څرګنده شي چه د جمیعت علماء اسلام اکابرو د فاطمه جناح مخالفت کاوه او که حمایت! حقیقت دا دی چه په دې موقع باندې د جمیعت علماء اسلام اکابرو د ایوب خان او فاطمه جناح دواړو مخالفت وکړ او حضرت مولانا عبید الله انور لاهوري ئې د صدارتي کاندید لپاره نومولی وو۔ او د جمیعت علماء اسلام اکابرو د فاطمه جناح

ځکه مخالفت کړي وو چه د ښځې امامت شرعا جائز نه دی۔

خبره داری: شریعت مطهره ښځې د ریاست عامه له ذمه وارۍ ځخه مستثنیٰ کړې دي۔ او دا په دوی باندې عین شفقت او مهرباني ده ځکه چه د ښځې په نازکو اوږو باندې د ریاست عامه او یا امارت درووند بار اچول نه د عقل او نه د حکمت تقاضا ده۔

## د امامت کبریٰ (خلافت) د مستحق حکم

**سوال:** په اسلامي مملکت یا هیواد کښې یو سړی متقي، پرهیزګاره او دیني عالم دی لیکن په انتظامي امورو کښې تجربه نه لري په د اسې حال کښې چه په مقابل کښې ئې یو بل دیني عالم دی چه متقي او پرهیزګاره خو نه دی لیکن د ملك په انتظامي امورو کښې ډیره ښه تجربه لري نو شرعا به په دغو دواړو کښې کوم یو ډیر د امامت او خلافت مستحق وي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د علم کلام په کتابونو کښې راغلي چه د امام (خلیفه) معصوم والی شرط نه دی او همدارنګه د ده پخپلو همزولو او همزماني ملګرو کښې له ټولو نه افضل والی هم شرط نه دی۔ لهذا د اسې سړی چه ماهر وي او د ملك او هیواد په انتظامي امورو باندې تجربه ولري اګر که هغه عالم یا متقي هم نه وي خلیفه او امام جوړول ئې صحیح دي۔ لیکن بیا هم که چېرته یوه سړي له شرعي حدودو ځخه تجاوز کاوه نو د د اسې سړي امامت او خلافت بیا جائز نه دی۔

لما قال العلامة التفتازانی رحمه الله: و لا یشترط فی الامام ان یکون و لا ان یکون افضل من اهل زمانه لان المساوی فی الفضیلة بل المفضول الاقل علماً و عملاً ای کان اعرف بمصالح الامامة و مفاسدها و اقدر علی القیام بمواجبها خصوصاً اذا کان المفضول ادفع للشرّ و ابعد عن آثارة الفتنة. (شرح العقائد ص ١٥٦، الخلافة و الامارة)

قال العلامة سلیم رستم باز رحمه الله: یجوز تقلید الفاسق و تنفذ قضایاه اذا لم یجاوز فیها حد الشرع. (شرح المجلة ص ١١٦٤، المادة، ١٧٩٤، فصل فی القضایا) و مثله فی رد المحتار ج ١، ص ٤٠٥، باب الامامة.

## د پاکستان په آئین کښې د رسول الله ﷺ د ګستاخۍ په باره کښې د ترمیم حکم

**سوال:** جناب مفتي صاحب! په پاکستاني آئین او قانون کښې د رسول الله ﷺ په شان کښې د ګستاخي او بې ادبي کوونکي لپاره د مرګ سزا تاکل شوې ده۔ کوم چه په اوس حالت کښې ئې د اقتدار خاوندان کموالی پکښې راولي او یا ئې بالکل له منځه وړي نو آیا شرعا د اقتدار خاوندان د دې سزا له منځه وړلو یا کمولو حق لري او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د رسول الله ﷺ په شان اقدس کښې د نازیبا (نابنائسته) الفاظو استعمالول یو د اسې جرم دی چه د معاف کولو وړ نه دی نو د دې لپاره د امت د علماوو متفقه فیصله ده چه د رسول الله ﷺ ګستاخ مرتد او واجب القتل دی۔ په شامي فتاویٰ کښې دي چه



"اجمع المسلمون ان شاتمه کافر (ج٣، ص٣١٧، باب المرتد) یعنې د نبي کریم ﷺ سپکاوی او هغه ته ښکنځل کفر دی۔

او په الدر المختار کښې دي چه "صح فی آخر الشفاء بان حکمه کا لمرتد" یعنې د رسول الله ﷺ د ګستاخ حکم د مرتد دی او په د اسې سړي باندې د مرتد حکم جاري کیږي۔ (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج٢، ص٣١٨، کتاب السیاسه)

قال العلامة ابن عابدینؒ: قال ابو بکر بن المنذر اجمع عوام اهل العلم علی ان من سبّ النبی ﷺ یقتل و ممن قال ذلك مالك بن انسؒ و اللیث و احمد و اسحاق و مذهب الشافعی و هو مقتضی قول ابی بکر رضی الله عنه و لا تقبل توبته عند هؤلاء و بمثله قال ابو حنیفة و اصحابه و الثوری و اهل الکوفة و الاوزاعی فی المسلم لکنهم قالوا هی ردة و روی مثله الولید بن مسلم عن مالك و روی الطبرانی مثله عن ابی حنیفة و اصحابه فیمن ینقصه ﷺ او بریء منه او کذبه آه. و حاصل انه نقل الاجماع علی کفر ساب ثم نقل عن مالك و من ذکر بعده انه لا تقبل توبته فعلم ان المراد من نقل الاجماع علی قتله قبل التوبة ثم قال و بمثله قال ابو حنیفةؒ و اصحابه الخ قال انه یقتل یعین قبل التوبة لا مطلقاً الخ. (رد المحتار ج٣، ص٣١٨، باب المرتد)

د ترجمې حاصل دا دی چه د رسول الله ﷺ ګستاخ یعنې سپکاوی کوونکی بالاجماع کافر، مرتد او واجب القتل دی۔ اختلاف یوائې په دې خبرې باندې دی چه د رسول الله ﷺ ګستاخ په توبې سره له قتل ځخه بچ کیږي او که نه؟ همدارنګه په رد المحتار کښې دي چه "اجمع المسلمون ان شتمه کافر و حکمه القتل و من شك فی عذابه و کفره کفر" یعنې د رسول الله ﷺ ګستاخ کافر دی او کوم سړی چه د هغه په کفر کښې شك کوي هغه هم کافر دی۔

او په فتاویٰ عالمګیري کښې دي چه د نبي علیه السلام اهانت (سپکوالی) بالاجماع کفر او ارتداد دی۔ (عالمګیري ج٢، ص٢٦٣، باب المرتد)

د دغو حوالو او مذکوره عباراتو ځخه څرګنده شوه چه د رسول الله ﷺ اهانت کوونکی بالاجماع کافر او مرتد دی او د د اسې سړي په کفر باندې شك کوونکی هم کافر او له اسلام ځخه وتلی دی۔ او د مرتد سزا قتل دی۔ لهذا د رسول الله ﷺ د اهانت کوونکي سزا هم قتل دی۔ په حدیث شریف کښې راغلي چه:

من بدل دینه فاقتلوه. (الدر المختار ج٣، ص٣١٣، باب المرتد. (بدائع الصنائع ج٧، ص١٣٤) همدارنګه اصحابه العرب لما ارتدت بعد وفات النبی ﷺ اجمعت الصحابةؓ علی قتلهم. (ج٧، ص١٣٤)

او په رسائل د ابن عابدین ج١، ص١٣٨ کښې دي چه: اعلم ان المرتد یقتل بالاجماع کما مر یعین په دې باندې د مسلمه امت اجماع دی چه د مرتد سزا یوائې او یوائې قتل دی او بس۔

راقم الحروف وایي چه له دې ځخه مخکښې دا خبره هم تیره شوه چه د امت په دې باندې هم اجماع دی چه د رسول الله ﷺ ګستاخ کافر او مرتد دی۔

همدارنګه په العقود الدریة فی تنقیح الفتاویٰ الحامدیة کښې دي: فمن سبّ النبی ﷺ او احد من الانبیاء صلوات

الله علیهم و سلامه فانه یکفر و یجب قتله شاتم النبیﷺ او نبی من الانبیاء علیهم الصلٰوة و السلام کافر او مرتد دی او دواړه واجب القتل دي- (ج۱، ص۱۰٤، باب المرتد)

و قال ابن نجیمؒ: کل من ابغض رسول اللهﷺ بقلبه کان مرتدا فا لساب بطریق الاولٰی ثم یقتل حدا عندنا فلا تقبل توبته فی اسقاطه القتل الخ. (البحر الرائق ج۵، ص۱۲۵/۱۲٦، باب المرتد)

یعنې کوم سړی چه د اسلام له پیغمبر سره بغض ولري او یا بد رد ورپسې ووایي نو هغه کافر، مرتد او واجب القتل دی- او په کفایت المفتي کښې دي چه جناب رسالت مآب روحي فداهﷺ او یا د ام المؤمنین سیده عائشه صدیقه رضی الله تعالی عنها په لوړ شان کښې ګستاخي کوونکی یا له ګستاخي کوونکي څخه نه خفه کیدونکی سړی کافر دی- او فقهاء رحمهم الله په دې باندې متفق دي چه د نبي کریمﷺ په شان اقدس کښې ګستاخي کوونکی کافر دی- (ج۱، ص۷۱، باب المرتد)

او په فتاوٰی محمودیه کښې دي چه څوك د رسول اللهﷺ په شان اقدس کښې نعوذ بالله، استغفر الله (بښکنځل) وکړي نو هغه مرتد او د اسلام له دائرې څخه وتلی دی- او په چټکۍ سره توبه، نوی اسلام او نوې نکاح لازمه ده- او که چېرته توبه و نه باسي نو بیا واجب القتل دی (ج۱۲، ص۱٦۲)

او په امداد الفتاوٰی کښې دي چه "اهانت وگستاخی کردن جناب انبیاء کفر است" (ج۵، ص۳٦۱، باب العقائد)

او په فتاوٰی دار العلوم دیوبند ج۱۲، ص۳۵۹، باب المرتد کښې دي چه "سب د نبي کفر دی"-

او په اشباه و النظائر کښې دي چه: لا تصح ردة السکران الا الردة بسب النبیﷺ فانه یقتل و لا یعفی عنه. کذا فی البزازیة کل کافر تاب فتوبته مقبولة فی الدنیا و الآخرة الا جماعة الکافر بسبّ النبیﷺ و سائر الانبیاء یعین.

یعنې سب د نبي کفر دی اګر که په حالت د سکر او نشې کښې وي او د ساب النبي توبه نه قلبیږي- (ج۱، ص۲۸۹)

او په فتاوٰی البزازیه علی هامش الهندیه کښې دي چه "استخفاف (سپکوالی) د نبي کفر دی" (ج٦، ص۳۳۸)

او په فتاوٰی قاضیخان علی هامش الهندیه کښې دي چه: اذا عاب الرجل النبی علیه السلام فی شیء کان کافرا. الی قوله و تکر فی الاصل ان شتم النبیﷺ کفر. (ج۳، ص۵۷۳)

"یعنې استخفاف او اهانت د نبيﷺ او سب او شتم د نبي کریمﷺ کفر او ارتداد دی"-

## په سیاسي جلسو کښې د نعـــــرې لګولو حکم

**سوال:** جناب مفتي صاحب! نن صبا په سیاسي جلسې او جلوسونو کښې نعرې لګول کیږي لکه مسلم لیګ زنده باد، پیپلز پارټي زنده باد، پښتونستان زنده باد، ژوندي دې وي جمیعت اسلامي، ژوندي دې وي افغانستان او د اسې نورې نعرې په کثرت سره لګول کیږي- نو آیا په شریعت کښې د اسې نعرې لګول څنګه دي؟ بینوا توجروا-



**الجواب باسم ملهم الصواب:** هره هغه نعره چه له وجهې ئې د شرعې خلاف د کوم کار تاکید کیده نو له د اسې نعرې څخه ځان ساتل په کار دي- او کومو نعرو کښې چه دا ډول خرابی نه وي نو په هغو کښې شرعا څه قباحت نشته- بیا هم چه کومې نعرې چه د تعصب او قوم پرستی ترغیب پکښې وي له هغو څخه اجتناب ضروري دی-

لما قال العلامه المفتي کفایت الله الدهلوي رحمه الله: قومي نعره هندوستان زنده باد، افغانستان زنده باد او د اسې نور جائزه ده- (کفایت المفتي ج۹، ص۲۹۱، کتاب السیاسیات، فصل چهارم، قومي ترانه او قومي نعره)

## د مسلمان تعـــــریف (پیژندنه)

د پاکستان د هیواد په ملي شوری (قومي اسمبلي) کښې کله چه د عبوري قانون او آئین د جوړولو لپاره کار کیده نو په ایوان کښې دننه او د باندې علماء کرام او د دیني ګوندونو رهبران له حکومت څخه زوروره مطالبه وکړه چه د پاکستان په آئین کښې کوم شی چه د هیواد د صدر لپاره لازمي وي هغه به دا وي چه صدر به مسلمان وي- نو هلته ئې وغوښتل چه د مسلمان تعریف هم لازمي او ضروري دی- لیکن حکمران طبقه د علماء کرامو دا جائزه مطالبه مسترد. کړه چه په هغې باندې مرزایي، پرویزي او نور بې دینه عناصر ډیر خوشحاله شول او حضرت مولانا سمیع الحق دامت برکاتهم هم په دې موضوع باندې قلم اوچت کړ او د "پاکستان په آئین کښې د مسلمان پیژندنه / د مسلمان او کافر تشخص ولې ضروري دی" تر نامه لاندې ئې یو مضمون شائع کړ- د مضمون اهمیت او جامعیت ته په نظر کولو سره په فتاوٰی حقانیه کښې هم شامل کړی شو-

(مرتب)

په ملي شوری (قومي اسمبلي) کښې په عبوري آئین کښې د بحث په وخت کښې د مختلف مکاتب فکر علماء متفق شول او په کلکه سره ئې مطالبه وکړه چه په آئین کښې چېرته چه د ملك د صدارت او نورو اهمو عهدو لپاره دې مسلمان والی لازم وګڼل شي هلته دې د مسلمان تعریف هم وشي ځکه چه د یوه شي ماهیت او حقیقت د هغه په جامع او مانع تعریف سره څرګندیدلی شي- مسلمان قوم یو مستقل تشخص لري چه هغوی له نورو قومونو او ملتونو څخه جلا کوي- د دغې انفرادي او امتیازي تشخص له وجهې د دوو قومي نظریو په بنیاد باندې پاکستان جوړ شوی دی- او نن هم هر یو اسلامي مملکت او مسلمان قوم خپل وجود یوائې په دې صورت کښې خوندي ساتلی شي چه هغوی په څرګنده او غیر ممبهم مفهوم په ذریعې سره د اسلام ډوله ملحدینو او کافرانو څخه د خپل ملت حفاظت وکړی شي- د بر صغیر (پاکستان او هندوستان) مختلف الاقوام حیثیت او بیا په دې موجوده حالاتو کښې د پاکستان نزاکتونه دې مطالبې لره یوه جائزه او معقوله مطالبه ګڼي- لیکن د اقتدار خاوندانو چه په کوم

زور او شور سره د دې مطالبې مستردول غوښتل پرته له مرزائيت نوازي او الحاد پروري څخه بله کومه مناسبه وجه زما په ذهن کښې نه لري۔ بالآخره هغه خبره وشوه چه د "غله په ږيره کښې خلی وي" مرزائيانو او تر څه حده پورې د حدیثو منکرینو پرویزیانو د حکومت په غوره کړل شوي موقف باندې د خوښۍ او خوشحالۍ اظهار وکړ۔ نن که د دې خلکو په پریس باندې نظر وکړی نو ډير نه اندازه لګول کيږي۔

ليکن په دې مطالبې باندې چه څومره مرزائيان خفه کيږي يا پرويزيان او د خدای او رسول څخه منکر کمونستان څومره پرې پريشانه کيږي همدومره د دې مطالبې مقبوليت او ژوروالی نور هم زياتيږي چه له وجهې ئې د اقتدار خاوندانو د محترم د اطلاعاتو د وزير په قيادت کښې د علماوو خپل منځي اختلاف ته منډې کړې۔ ليکن د علماوو وړاندې کړی شوی متفقه تعريف د آئين د کميټي لپاره د الاره هم بنده کړه۔ (۱)

(۱) د قومي اسمبلي په اولې ناستې کښې مولانا کوثر نيازي د علماوو د اختلاف بهانه وکړه چه علماء کرام په دې کښې سره مختلف دي او وئې غوښتل چه د مسلم تعريف دې و نه شي ليکن علماء کرامو پخپل متفق موقف سره ذوی ته د دې مقابلې ځواب ورکړ او په دې اجلاس کښې شيخ الحديث حضرت مولانا عبد الحق صاحب د ملي شورٰی (قومي اسمبلي) د علماوو د ټولو اراکينو په تائيد او تصويب سره د مسلمانانو متفقه تعريف وړاندې کړ چه وروسته بيا د آئين يوه برخه وګرځيده چه د قاديانيانو په وړاندې د دوی لومړنی دستوري او قانوني فتح وه۔ "س" حيرانتيا خو د مرزايي په ډلې باندې دی چه د اسې مطالبات په مسلمانانو کښې تفرقه انګيزي ګڼي۔ په د اسې حال کښې چه د دې ډلې باني مرزا غلام احمد قادياني چه د اسلام د ختم نبوت د يو والي په کلا کښې د سوري او تفرقې د اچولو مسلسل کوششونه وکړل او په مسلمانانو کښې ئې د اختلاف او انتشار او د نفاق د تخم د شيندلو لپاره ئې يو مستقل مذهب له ځانه جوړ کړ۔ د اسلام او کفر تر منځ د امتياز د ليکې په رنګولو باندې د ا خلک ژاړي او نعرې وهي۔ او حال دا چه د دوی پير او مرشد متبني کذاب قادياني خپل نه منونکي قطعي کافران، مرتدين، جهنمي او د اسلام له دائرې څخه وتلي بولي اګر که چا ئې نوم هم نه وو اوريدلی سره له دې ئې هم هغوی د "أُولٰئِكَ هُمُ الكٰفِرُونَ حقاً" مصداق وګرځول کوم چه د خپلې زمانې نه منونکی ټول عالم اسلام سره معاشرتي او ازدواجي تعلقات قائمول حرام وګرځول۔

او کوم خلک چه په دې د انکار په جرم کښې ئې د پاکستان باني هم د جنازې او د دعا مستحق نه بلل۔ کومې ډلې چه پخپلې دائرې کښې ئې د خپلو پيروانو لپاره مستقل دين، مذهب او انفرادي او امتيازي خصوصياتو او تشخصاتو غوښتونکي شول۔ (مطالعه کړی د مرزا قادياني او د هغه د خلفاوو او د اسې نورو کتابونه لکه رسائل الفضل، آئينۀ صداقت، کلمه الفصل، مرزايي وينا ګانې او د اسې نور)



د ظلم له پاسه ظلم خو د مرزائيانو په لاهوري ډلې باندې دی چه نن په دې واويلا کښې د قاديانيانو تر څنګ ولاړ دي۔ که څه هم هغوی يو ائځې د کلمې ويل د اسلام شهادت نامه او سند بولي نو هغوی په کوم بنياد باندې قاديانيان کافر بولي۔ او قادياني ولې دوی د اسلام له دائرې څخه وتلي بولي۔

په دې وخت کښې د مرزائيت فتنه چه په کومې اندازې سره د مسلمانانو او نورو پاکستانيانو لپاره د خطر زنګ جوړ شوی دی۔ د دې مرد ارې ونې د لاسه په راتلونکي کښې چه کوم خطرونه پاکستان ته په مخکښې دي مونږ په هغو باندې ډير څه ويلی شو ځکه چه مونږ ته د کور د ننه ډير اسرار او رموز معلوميږي۔ که څه هم ته خدای پاک په دې بې وسه ا بې طاقته ملک باندې د رحمت او کرم خاص نظر و نه کړي نو په سازشونو کښې د راتلو خطره په يقين باندې بدليدلی شي۔ د دفاعي نقطۀ نظر له مخې مونږ ورځ په ورځ د هغو خلکو ماتحت کيږو کوم چه د عقيدې له مخې جهاد حرام بولي۔ او د دې ملک اوسيدونکي کافر ګڼي۔ په اقتصادياتو کښې د هغوی د عمل د دخل په نتيجه کښې ملک دوه ټکړې شو۔ د ايم ايم احمد له وجهې د دواړو صوبو ترمنځ د نفرت خليج زيات شو او په معاشي لحاظ سره ملک له بد حالی سره مخامخ شو۔

د سياسي عياريو دا حالت يوې خوا ته د استعماري او سامراجي اغراضو په خاطر د سوال کاسه راواخيسته او يورپ ته په دروېزې باندې مجبور کړی شو۔ په ملک باندې د ميليار دونو روپو دروند بار واچولی شو۔ او په پټه نه پټه مذاکرات روان دي۔ ليکن نه په اخبارونو کښې د دې خبرې په باره کښې کومه خبره شائع کيږي او نه مرزايي هغه خبرې د مصلحت له مخې ښکارولو ته پريږدي۔ او حال دا چه چين د آزادي او حريت دعويدار دی او "ربوه" د سامراجي او صهيوني سازشونو اډه ده۔ باخبره خلک په دې د دې ضدو خلکو په يو ځای کيدو باندې حيران دي۔ آيا دا ټول شيان د زمکې لاندې دي؟ د سازشونو غمازي نه ده؟ حکومت به له دغو ټولو څخه خبر وي ليکن خبرداري پريږده پخپل منځ کښې د عهد او پيمان غوندې سلوک سره کوي چه ورځ په ورځ زياتيږي۔ د ده ارکان مرزائيت له کفر څخه د ژغورلو لپاره په ملي شورٰی (اسمبلي) کښې سخت کوشش کوي او دلته مرزائيان په کومو کوم طريقو سره د دې احسان بدله ورکوي؟۔ په اخبارونو کښې راغلي دي چه د لائل پور په انتخاب کښې د پيپل پارټۍ د افضل راندا وا په حق کښې د "بوګس ووټ" يعنې غلط ووټ د اچولو لپاره له ربوه څخه ډيرې ښځې راغلې وې۔ (يکم جون ۱۹۷۲، جنګ) د غو ښځو د يوې ښځې په مقابله کښې د پي پي پي د نمائنده سره ولې دلچسپي درلوده؟ د ا ټولې خبرې د قوم لپاره د فکر وړ دي۔ او د امت مسلمه د شجرۀ طوبٰی لپاره دا مکر او فريب ورځ په ورځ د هلاکت خطر ترې جوړيږي۔ په د اسې حالاتو کښې که څه هم ته د اسلام او کفر تر منځ د حد فاصل د اوردولو لپاره په آئين کښې د "مسلم" د ځرګند حيثيت په ښکارولو باندې زور واچول شي نو آئيني کميټي او ټول ايوان ته د مخالفت

په ځای د دې ملك د مفاد په خاطر ئې باید هر کلی وکړي۔ د مرزائیت او اسلام ځان ځانته تشخص د نن ورځې مسئله نه ده زمونږ نقاد او بصیر مفکر علامه محمد اقبالؒ په هغه وخت کښې هم دا خطرونه محسوس کړي وو او په څرګنده توګه ئې د اسلام په تعریف باندې زور ورکړی وو۔ او حال دا چه هلاکت آفریني ئې دې اند ازې ته نه وو رسیدلی۔ علامه اقبال لیکلي دي چه "اسلام په لزومي توګه یوه دیني ډله ده چه حدود ئې تاکلي دي۔ یعنې د خدای په یو والي باندې ایمان، په نبیانو باندې ایمان او د رسول اللهﷺ په ختم نبوت باندې ایمان۔ په اصل کښې دا آخري یقین یواځې هغه حقیقت دی چه د مسلمان او نه مسلمان تر منځ امتیاز دی او د دې خبرې تر منځ جدا والی دی چه کوم سړی یا کومه ډله په اسلامي ملت کښې شامله ده او که نه۔ (حرف اقبال ص۱۳٦)

له دې مکر، تلبیس او فریب څخه او ملت لره له اضطرابي کیفیت او نفاق او شقاق له خطرونو څخه د ایستلو علاج هم علامه اقبال ښوولی دی او فرمایي چه "زما په وړاندې د قادیانیانو لپاره دوه لارې دي یا دې د ورونو تقلید وکړي او یا دې په ختم نبوت کښې تاویلات پرېږدي او دا اصول د پوره مفهوم سره قبول کړي۔ د هغو جدید تاویلات په دې غرض باندې دي چه محض په اسلام کښې ئې شمار وشي تر څو څه سیاسي فائدې لاس ته راوړي"۔ (حرف اقبال ص۱۳۷)

دا مفادات او فائدې له دې سره تړلي دي چه مرزائیت د اسلام لپاره د زمکې لومه جوړه شي او د اسلام لپاره د لستوني مار جوړ شي۔ بیا به هغوی ځان ته ځانګړی تشخص او انفرادي امتیاز قبولولی شي۔ د دې په ځواب ورکولو کښې علامه اقبال څومره د حقیقت له مخې ثبوت ورکړی دی چه:

"مونږ باید د قادیانیانو حکمت عملي او د اسلامي دنیا په اړه د هغوی رویه او چلن هېر نه کړو۔ د دې تحریك باني اسلامي ملت لره له خرابو شویو شیدو سره مثال ورکړی دی او خپل تحریك ئې له تازه شیدو سره برابر کړی دی او خپل مقلدین ئې له اسلامي ملت سره د ګډ او یو ځای اوسیدو څخه منع او د اجتناب حکم ئې ورکړی دی۔ برسیره پر دې د هغوی له بنیادي اصولو څخه د خپل جماعت نوی نوم د مسلمانانو د لمانځه د قیام سره قطع تعلق او په نکاح او د اسې نورو معاملاتو کښې له مسلمانانو سره پرېکړون او له تولو څخه ئې لوی اعلان دا وو چه ټوله اسلامي دنیا او مسلمانان کافر دي۔ دا ټول امور د قادیانیانو له مسلمانانو څخه په جلا والي باندې دلالت کوي۔ بلکه واقعیت دا دی چه هغوی له مسلمانانو څخه دومره لرې دي چه دغومره له هندوانو او سیکانو څخه لرې نه دي۔ ځکه چه د سیکانو او هندوانو سره ودونه کوي لیکن د هندوانو په مندرونو کښې عبادتونه نه کوي۔ (حرف اقبال ص۱۳۷)

د دې لرې والي او پرېکړون تر څنګ مرزایان له مونږ څخه د حسن ظن امید لري۔ هغوی مونږ کافر بولي لیکن دلته د اسلام د تعریف مطالبه هم تفرقه انګیزي او شر پسندي ئې بولي۔ د



دغو دوه مخیزو مفاداتو په بنا آخر له ملت مسلمه څخه هغوی په کوم بنیاد توقع لري؟ آیا په دې وجه چه هغوی د مسلمانانو د دین او دنیا عزت او آبرو، متاع اولین او آخرین، روح کائنات، سرور عالمین، خاتم النبیینﷺ په ختم نبوت او په خلعت د ختم المرسلین باندې چاپه واچوله. او د ملت مسلمه ایماني غیرت ئې مجروح کړ۔ آیا د یوه ملت د یو والي د کلا د له منځه وړلو او ړنګولو د جرأت په دومره لوی زړه سره صله او بدل ورکول کیدلی شي کوم چه مرزائیت ئې له مونږ څخه غواړي؟ او آیا د اسلام په کلا کښې د پرله پسې سوریو له جوړولو څخه وروسته هم مرزائیت د مسلمانانو د کوم حکومت د دومره کرم او مهربانۍ مستحق جوړېدلی شي؟ که سړی ووایي نو ډېر څه ویلی شي لیکن د ځینو دوستانو او ملګرو د زړه د خفګان په لحاظ کولو سره د نن ورځې دا مجلس یواځې د اقبالؒ په الفاظو باندې له ختمولو سره په بلې موقع کښې ئې بیا را پورته کول غواړو۔

"زما په خیال کښې له قادیاني حکومت څخه د جلا والي په مطالبې کښې لومړیتوب نه کوو۔ اسلامي ملت د دې مطالبې پوره حق لري چه قادیانیان جدا کړي۔ او که چېرته حکومت دا مطالبه و نه مني نو مسلمانانو ته دا شك لوېږي چه حکومت د دې نوي مذهب په جلا والي کښې ځنډ کوي۔ ځکه چه هغوی د دې وړ نه دي چه د څلورمې ډلې په حیث سره د مسلمانانو د تش په نامه اکثریت ته ضربه ورسوي۔ حکومت په ۱۹۱۹ء کښې د سیکانو له خوا څخه د جلا والي د مطالبې انتظار و نه کړ نو هغه اوس له قادیانیانو څخه د دې غوښتنې انتظار ولې کوي؟ (حرف اقبال ص۱۳۸) جون ۷۲ء

# کـــــتاب الكراهية و الاباحة

## باب الاكل و الشـــــرب

## (د خوړلو او څښلو آداب او احکام)

### د خوراك له خوړلو څخه مخکښې به د چا لاسونه مخکښې پريمينځل کيږي

**سوال:** کشران او مشران يو ځای ډوډۍ خوري نو آيا د خوراك له شروع کولو څخه مخکښې د لاس په پريمنځلو کښې به د چا لاسونه مخکښې پريمنځل کيږي؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د خوراك له خوړلو نه مخکښې د لاسونو پرې منځلو يوه مسنونه طريقه ده۔ لکه څرنګه چه په نبوي حديث کښې په کوچنيانو او کشرانو باندې د شفقت او له هغو سره د محبت د کولو حکم راغلی دی او برسيره پر دې کوچنيان اکثره خوراك ته ډير حريص او مشتاق وي نو د دې لپاره له خوراك نه مخکښې به کوچنيانو ته د لاسونو د پرې مينځلو موقع ورکول کيږي او له هغو نه وروسته به مشرانو ته موقع ورکول کيږي۔ او د خوراك له خوړلو نه وروسته د مشرانو او بزرګانو عزت او اکرام ته په نظر کولو سره به اول دوی ته موقع ورکول کيږي۔

لما قال العلامة ابن نجيم المصریؒ: و فی واقعات الناطفی الادب فی غسل الایدی قبل الطعام ان يبدأ با لشبّان ثم با لشيوخ. (البحرُ الرائق ج۸، ص۱۸۳، کتاب الکراهية)

لما فی الهندية: و آداب غسل الايدی قبل الطعام ان يبدأ با لشبّان ثم با لشيوخ و بعد الطعام علی العکس. (الفتاوی الهندية ج۵، ص۳۳۷، الباب الحادی عشر فی الکراهية فی الاکل) و مثله فی الخانية علی هامش الهندية ج۳، ص۴۰۵، کتاب الحضر و الاباحة.

### د خوراك له خوړلو نه مخکښې د لاسونو مينځـــــل

**سوال:** د ځينو خلکو دا عادت وي چه د ډوډۍ له خوړلو نه مخکښې د لاسونو د مينځلو په ځای يوائې د ګوتو په مينځلو باندې اکتفا يعنې بس والی کوي نو آيا يوائې د ګوتو په مينځلو باندې سنت ادا کيږي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د نبي کريم ﷺ مبارك عادت دا وو چه د ډوډۍ له خوړلو نه مخکښې او وروسته به ئې خپل لاسونه مبارك پريمينځل۔ اوس که چيرته څوك د ډوډۍ له خوړلو نه مخکښې د لاسونو د مينځلو په ځای يوائې ګوتې مينځي نو له شك پرته پاکوالی خو پرې راځي ليکن سنت پرې نه ادا کيږي۔ د سنتو د ادا کولو لپاره د ټول لاس پريمينځل ضروري دي په داسې حال کښې چه د ګوتو پرې مينځل د لاسونو د مينځلو په ځای نه دريږي۔



لما فی الهندية: قال نجم الائمة البخاری و غيره غسل اليد الواحدة او اصابع اليدين لا يکفی للسنة غسل اليدين قبل الطعام لانه المذکور غسل اليدين و ذٰلك الرسغ. (الفتاوی الهندية ج۵، ص۳۳۷، الباب الحادی عشر فی الکراهية فی الاکل)

قال العلامة ابن نجيمؒ: و يستحب غسل اليدين قبل الطعام فان فيه برکة و فی البرهانية و السنة ان يغسل الايدی قبل الطعام و بعده. (البحر الرائق ج۸، ص۱۸۳، کتاب الکراهية فصل فی الاکل و الشرب)

### په دسترخوان کښې د ډوډۍ کيښودل او د سالن يعنې ترکاري انتظار کول

**سوال:** که چيرته په دسترخوان کښې ډوډۍ حاضره وي ليکن سالن يا ترکاري لا تر اوسه نه وي راوړل شوی نو خلك به د ډوډۍ په خوړلو شروع کوي او که به د سالن انتظار به کوي؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** ډوډۍ د الله تعالی په نعمتونو کښې يو لوی نعمت دی کوم چه اکرام ئې ضروري دی۔ فقهاء کرامو دا تصريح کړې ده چه د ډوډۍ د حاضريدو په صورت کښې دې خلك د ترکاري يا سالن په انتظار نه کښيني بلکه د ډوډۍ د اکرام له وجهې دې د ډوډۍ په خوړلو شروع وکړي او کله چه سالن او داسې نور حاضر کړی شي نو بيا دې هغه هم ورسره استعمال کړي۔

لما قال العلامة ابن نجيمؒ: و ينبغی ان لا ينتظر الادام اذا حضر الخبز و ياخذ فی الاکل قبل ان يأتی الادام. (البحر الرائق ج۸، ص۱۸۳، کتاب الکراهية)

لما قال فی الهندية: و من اکرام الخبز ان لا ينتظر الادام اذا حضر. کذا فی الاختيار فی شرح المختار. (الفتاوی الهندية ج۵، ص۲۳۷، الباب الحادی عشر فی الکراهية فی الاکل) و مثله فی البزازية علی هامش الهندية ج۶، ص۳۶۵، کتاب الکراهية.

### په ولاړې باندې خوراك او څښاك مکروه دی

**سوال:** نن صبا په خلکو کښې په ولاړې باندې د خوراك او څښاك د کولو رواج عام شوی دی خصوصاً په ودونو او نورو مجلسونو کښې خلك په ولاړې باندې خوراك کوي۔ نو آيا په ولاړې باندې خوراك او څښاك شرعاً جائز دی او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** زمونږ په ننني معاشرې کښې لکه څرنګه چه مسلمانان د مغربي قومونو له عاداتو څخه ډير متاثر شوي دي۔ په ولاړې باندې خوراك د مغربي قومونو طريقه ده کومه چه د سنتو او ادبو خلاف ده۔ بيا هم فقهاء کرامو په ولاړې باندې خوراك د تنزيهي مکروه په درجه کښې ذکر کړی دی۔

لما ورد فی الحديث عن قتادة عن انسؓ عن النبیﷺ انهٗ نهٰی ان يشرب قائماً فقلنا الاکل فقال ذاك اشر و اخبث. (الصحيح المسلم ج۲، ص۱۷۳، باب فی الشرب قائماً)

قال الامام محی الدين يحیٰ بن شرف النووی رحمه الله: ليس فی هٰذه الاحاديث اشکال و لا فيها بحمد الله ضعف بل کلها صحيحة و الصواب ان النهی محمول علی التنزيهة. (شرح المسلم للامام النووی ج۲، ص۱۷۳، باب فی الشرب قائماً) و مثله فی کبيری ص۳۶، آداب الوضوء.

## د خوراك په وخت كښې د نه خبرې كولو حكم

**سوال:** د خوراك د خوړلو په وخت كښې خبرې كول بهتر دي او كه چُپ والی بهتر دی؟ او آيا ډوډۍ له ميلمنو سره خوړل بهتر دي او كه له ميلمنو پرته؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د خوراك په وخت كښې خاموشي يا چُپتيا فقهاء كرامو مكروه بللې ده ځكه چه دا د مجوسيانو (آتش پرستو) عادت دی۔ نو د دې لپاره دې خلك له ښو او ديني خبرو په كولو سره خوراك وكړي۔ د كوربه لپاره د ميلمه اكرام او عزت ضروري ده لهذا كه چېرته ميلمه له ځان سره د كوربه په ګډ خوراك باندې خوشحاله كيده نو ډوډۍ دې ورسره وخوري او كه نه نو بيا په ذاتي توګه سره د ميلمه خدمت د ابراهيم عليه السلام سنت دی۔

لما فی الهندية: يكره السكوت حالة الاكل لانه تشبه با لمجوس....... و لا يسكت على الطعام و لكن يتكلم با لمعروف و حكايات الصالحين. (الفتاوى الهندية ج۵، ص۳۴۵، الباب الثانی عشر فی الهدايا و الضيافات)

لما فی الهندية: و ينبغی ان يخدم الضيف بنفسه اقتداء بابراهيم على نبيّنا و عليه السلام. (الفتاوى الهندية ج۵، ص۳۴۵، الباب الثانی عشر فی الهدايا و الضيافات، كتاب الكراهية)

## د تكيې لګولو په صورت كښې د خوراك او څښاك حكم

**سوال:** د ځينو خلكو دا عادت دی چه كله خوراك او څښاك كوي نو تكيه لګوي۔ نو آيا د تكيې د لګولو په حالت كښې خوراك او څښاك جائز دی او كه نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د خوراك او څښاك په وخت كښې كه چېرته د مسنونې طريقې لحاظ وكړی شي نو ضرورت هم پرې پوره كيږي او ثواب هم وركول كيږي۔ د تكيې لګولو په حالت كښې په خوراك او څښاك باندې فقهاء كرامو دا تصريح كړې ده چه كه چېرته د تكبر خطر نه وي نو د تكيې لګولو په حالت كښې خوراك او څښاك څه پروا نه لري۔ بيا هم له دې وجهې چه د تكيې لګولو په حالت كښې خوراك او څښاك د ادب خلاف دی نو بايد چه ځانونه ترې وساتی۔

لما فی الهندية: لا بأس با لاكل متكئاً اذا لم يكن با لتكبر و فی الظهرية هو المختار. (الفتاوى الهندية ج۵، ص۳۳۷، الباب العاشر فی الكراهية فی الاكل)

قال العلامة ابن عابدينؒ: لا بأس با لاكل متكئاً او مكشوف الرأس و هو المختار. (رد المحتار ج۶، ص۳۴۰، كتاب الكراهية، فصل فی البيع) و مثله فی الخانية على هامش الهندية ج۲، ص۴۰۵، كتاب الحظر و الاباحة.

## په دريو ګوتو باندې د خوراك كولو حكم

**سوال:** ځيني خلك د خوراك د خوړلو په وخت كښې د لاس پنځه واړه ګوتې استعمالوي۔ نو آيا د خوراك په خوړلو كښې د پنځو واړو ګوتو استعمالول جائز دي او كه نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د نبي كريمﷺ مبارك عادت دا وو چه خوراك به ئې په دريو ګوتو باندې كاوه۔ لهذا په دريو ګوتو باندې خوراك كول سنت دي۔ البته فقهاء كرامو دا تصريح كړې



ده چه كه چېرته په دريو ګوتو باندې په خوراك كولو كښې څه تكليف وي او يا خوراك ډېر نرم او پوست وي نو بيا له دريو ګوتو څخه په زياتو ګوتو باندې خوراك هم جائز دی۔

لما ورد فی الحديث: عن كعب بن مالك عن ابيه قال كان رسول اللهﷺ يأكل بثلاث اصابع. (الصحيح المسلم ج۲، ص۱۷۵، باب لعق الاصابع و القصعة الخ)

قال الامام النووی رحمه الله: و استحباب الاكل بثلاث اصابع و لا يضم اليه الرابعة و الخامسة الا لعذر بان يكون مرقاً و غيره فلا يمكن بثلاث و غير ذٰلك من الإعذار. (شرح صحيح المسلم للامام النووی ج۲، ص۱۷۵، باب لعق الاصابع و القصعة)

## له يو څخه د زياتو ګلاسونو اوبو د څښلو مسنونه طريقه

**سوال:** جناب مفتي صاحب! د ګرمۍ په موسم كښې د تندې د زيات شدت له وجهې انسان په يوه وخت كښې څو ګيلاسه اوبه څښي۔ نو آيا په دې صورت كښې به هر ګيلاس په دريو ساه ګانو باندې څښل صحيح دي او كه له هر ګيلاس څخه وروسته يو وارې ساه اخيستل كافي دي تر څو چه سنت پرې ادا شي؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** مسنونه طريقه دا ده چه اوبه په درې ساه باندې وڅښل شي۔ په صورت مسئوله كښې چونكه هر ګيلاس د اوبه مستقل څښل دي نو د دې لپاره هر ګيلاس په درې ساه باندې په څښلو سره سنت ادا كيږي۔

لما قال الشيخ اشرف علي تهانويؒ: هر ګيلاس په درې ساه باندې وڅښی ځكه چه ممكنه ده چه د دوهم او دريم ګيلاس تر منځ څه وقفه او جد اوالی راشي او په مجموعه توګه څو ځله اوبو وڅښل شي او ساه اخيستل د بو ځل په اوبو څښلو كښې دي۔ (امداد الفتاوٰی ج۴، ص۱۰۳، كتاب الخطر و الاباحه، د خوراك او څښاك حرام او حلال)

## د سود خور د دعوت قبلولو حكم

**سوال:** يو سړی د موټرو تجارت كوي او د سودي كاروبار تر څنګ كله كله په نورو ناجائزو ذرائعو باندې هم مال لاس ته راوړي۔ نو آيا د اسې سړي په دعوت كښې شريكيدل جائز دي او كه نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** كه چېرته دا خبره څرګنده او يقيني وي چه د دې سړي ټول مال حرام او په ناجائزو ذريعو سره ګټل شوي وي نو دعوت ته ئې تلل نه دي په كار۔ او كه چېرته يقيني نه وي او يا دا معلومه وي چه د دې سړي څه نا څه مال په حرامو ګټل شوی دی ليكن د مال اكثره برخه حلاله ده۔ نو بيا دعوت ته ئې تلل او په ډوډۍ كښې ئې شركت او ګډون څه پروا نه لري ځكه چه په موجوده زمانې كښې د اكثرو خلكو په مال كښې څه نا څه حرام ګډ وي۔

قال العلامة قاضی خانؒ: و ان كان غالب المهدی من الحلال لا بأس بان يقبل الهدية و يأكل ما لم يتبين انه حرام لان اموال الناس لا يخلوا عن قليل حرام فيعتبر الغالب. (الفتاوى الخانية على هامش الهندية ج۳، ص۴۰۰، كتاب الحظر و الاباحة)

لما فی الهندیة: و لا یجوز قبول هدیة امراء الجور لان الغالب فی مالهم الحرمة الا اذا علم ان اکثر ماله حلال بان کان صاحب زرع او تجارة فلا بأس به لان اموال الناس لا تخلوا عن قلیل حرام فیعتبر الغالب و کذا کل طعامهم. (الفتاوی الهندیة ج۵، ص۳۴۲، الباب الثانی عشر فی الهدایا و الضیافات، کتاب الکراهیة) و مثله فی البزازیة علی هامش الهندیة ج۶، ص۳۶۰، الباب الرابع فی الهدایا و المیراث.

## په کوم دعوت کښې چه ساز او سروز او د لهو او لعب اهتمام شوی وي په هغه کښې د ګډون حکم

**سوال:** ځینې خلك په ودونو کښې د ولیمه په دعوت کښې د ساز او سروز او لهو او لعب پوره اهتمام کوي او خپل دوستان او ملګري ئې بللي وي نو آیا د ولیمې په داسې دعوت کښې ګډون شرعا جائز دی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د دعوت قبلول علماء کرامو ضروري بللی دی لیکن نن صبا د بې دیني او فحاشي دور دی له دې وجهې که چېرته دا خبره یقیني وي چه هلته به لهو او لعب او ساز او سروز به وي نو داسې دعوت ته ورتلل په کار نه دي۔ البته که چېرته هغه ځای ته په رسید و سره دا خبره معلومه شي۔ نو بیا که چېرته ډوډۍ وخوري او بیرته لاړ نه شي نو څه پروا نه لري لیکن دا خبره یاده لری چه دا حکم د عوامو لپاره دی او تر کومه ځایه پورې چه د خواصو پورې اړه لري نو د هغوی په بیرته تګ کښې مصلحت دا دی چه په دعوت کوونکي باندې د هغه خفګان ځرګند شي او له خپل بد عمل څخه منع شي۔

لما قال العلامة ابن نجیمؒ: اذا کان هناك لعب و غنا قبل ان یحضر فلا یحضر لانه لا یلزمه الاجابة اذا کان هناك منکر. (البحر الرائق ج۸، ص۱۸۸، کتاب الکراهیة

لما فی الهندیة: هٰذا کله بعد الحضور اما اذا علم قبل الحضور فلا یحضر لانه لا یلزمه حق الدعوة. (الفتاوی الهندیة ج۵، ص۳۴۳، الباب الثانی عشر فی الهدایا و الضیافات) و مثله فی البزازیة علی هامش الهندیة ج۶، ص۳۶۴، کتاب الکراهیة.

## د چونې د خوړلو حکم

**سوال:** په پان، نسوار او داسې نورو کښې خلك چونه ګډوي۔ آیا د چونې د خوړلو حکم څه دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د ضرورت په اند ازې سره په پان او نسوار کښې چونه ګډول او خوړل پروا نه لري۔

لما قال العلامة محمد عبد الحی الکهنویؒ: یباح اکل النورة مع الورق الماکول فی دیار الهند لانه قلیل نافع فان الغرض المطلوب من الورق المذکور لا یحصل بدونها. (نصاب الاحتساب بحواله مجموعة الفتاویٰ ج۲، ص۳۰۷

قال العلامة عبد الحی الکهنویؒ: نعم و فی نصاب الاحتساب یباح اکل النورة مع الورق الماکول فی دیار الهند لانهٗ قلیل نافع فان الغرض المطلوب من الورق المذکور لا یحصل بدونها و هو الحرمة. (نفع المفتی و السائل ص۹۳، کتاب الکراهیة)



## د افیون د خوړلو حکم

**سوال:** افیون له هغو شیانو څخه دی چه خلك نشه کوي نو آیا خوړل ئې او په دواګانو کښې استعمالول ئې شرعا جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** افیون له هغو شیانو څخه دی چه مسکر دي۔ پرته له سخت شرعي ضرورت څخه ئې خوړل جائز نه دي او خوړل ئې حرام دي۔ بیا هم که چېرته مباحو او حلالو شیانو او ادویاتو د تداوي لپاره ګټمن نه وي او پرته د افیون له ګډولو څخه ئې اثر نه کاوه او یو مسلمان طبیب چاته د دوایي په توګه د خوړلو امر وکړي نو بیا پروا نه لري۔

لما قال الشیخ محمد کامل بن مصطفیٰ الطرابلسیؒ: اتفق مشائخنا و مشائخ الشافعیؒ علی تحریم الحشیش و افتوا باحراقه و امر بتادیب بائعه و التشدید علی اکله فهو زندیق مبتدع. (الفتاوی الکاملیة ص۲۰۷

و فی الهندیة: یجوز للتعلیل شرب الدم و البول و اکل اذا اخبره طبیب مسلم ان شفائه فیه و لم یجد من المباح ما یقوم مقامه. (الفتاوی الهندیة ج۵، ص۳۵۵، الباب الثامن عشر فی التداوی المعالجات

قال العلامة ابن عابدینؒ: (تحت قوله و النتن الذی حدث) و هو صریحٌ فی حرمة البنج و الافیون لا للدواء. (رد المحتار ج۶، ص۴۵۷، کتاب الاشربة) و مثله فی نصاب الاحتساب بحوالۂ مجموعة الفتاویٰ ج۲، ص۲۸۹، کتاب الکراهیة.

## د پیاز او د داسې نورو بوی ناکو شیانو خوړل او جومات ته تلل

**سوال:** پیاز، اوږه او د اسې نور حلال بویناك شیان خوړل او جومات ته تلل جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د پیاز، اوږې او د اسې نورو شیانو خوراك اګر که پخپله په ذات کښې حلال شیان دي لیکن په جوماتونو او د اسې نورو مجالسو کښې ئې استعمالول او خوړل ئې چه د خدای مخلوقاتو ته ترې تکلیف رسیده جائز نه دي۔

لما قال الشیخ فضل الله الشهیر بشبیر احمد العثمانیؒ: (تحت قوله ﷺ من اکل من هٰذه الشجرة یعنی الثوم فلا یأتین المساجد) لیس فی هٰذا تقیید النهی با لمساجد فیعتدل بعمومه علی الحاق المجامع با لمساجد کمصلی العید و الجنازة و مکان الولیمة و جمهور الامة علی اباحة کلها. (فتح الملهم ج۲، ص۱۵۰/۱۵۱، باب نهی من اکل ثوماً

رواه الامام مسلم بن الحجاج القشیریؒ: عن ابی سعید الخدریؓ قال لم نعد ان فتحت خیبر فوقعنا اصحاب رسول الله ﷺ فی تلك البقلة الثوم و الناس جیاعٌ فاکلنا منها اکلاً شدیداً ثم رحنا الی المسجد فوجد رسول الله ﷺ الریح من اکل من هٰذه الشجرة الخبیثة شیاءً فلا یقربنا فی المسجد فقال الناس حرمت فبلغ ذلك النبی ﷺ فقال ایها الناس انهٗ لیس بی تحریمه ما احل الله لی و لکنها شجرة اکره ریحها. (الصحیح المسلم ج۱، ص۲۰۹، باب نهی من اکل ثوماً الخ)

و مثله فی شرح مسلم للنوویؒ ج۱، ص۲۰۹، باب نهی من اکل ثوماً.

## د بنګو د استعمـــــــــال حکم

**سوال:** د بنګو استعمال د نشې او دوايي په توګه جائز دی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** بنګ یو مسکر شی دی د دې لپاره استعمال ئې شرعا منع دی۔ بیا هم د سخت ضرورت په وخت کښې د یوه مسلمان طبیب په مشورې سره د ضرورت په اندازې سره ئې استعمالول پروا نه لري خو په دې شرط چه په حلالو شیانو کښې ئې د علاج لپاره څه شی موجود نه وي۔

لما قال شیخ الاسلام ابو بکر علی بن محمد الحدار الیمنیؒ: و لا یجوز اکل البنج و الحشیشه و الافیون و ذٰلك کلهٗ حرام. (الجوهرة النیرة ج۲، ص ۲۷۰، کتاب الاشربة)

قال [illegible]ة ابن عابدینؒ: و هو صریحٌ فی حرمة البنج و الافیون لا للدواء. (رد المحتار ج۶، ص۴۵۷، کتاب الاشربة) و مثله فی حلاصة الفتاوٰی ج۴، ص۲۰۵، کتاب الاشربة.

## پرتـــــــه له اجازې څخه د چا له مال څخه د ګټې اخیستلو حکم

**سوال:** د چا له مال څخه د هغه له اجازې پرته ګټه اخیستل جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د مسلمان مال او ځان د شریعت له مخې معصوم دي او د له اجازې پرته ئې مال اخیستل او یا له مال څخه ئې ګټه اخیستل جائز نه دي۔

لما رواه الامام علی بن عمر الدار قطنیؒ: عن عمرو بن یثربی قال شهدت رسول اللهﷺ فی حجة الوداع بمنٰی فسمعته یقول لا یحل لامرءٍ من مال اخیه شیءٌ الاّ ما طابت بهٖ نفسه. (سنن دار قطنی ج۳، ص۲۵، کتاب البیوع، رقم حدیث۸۹)

لما ذکره الشیخ ولی الدین ابو عبد الله محمد بن عبد الله الخطیبؒ: و عن ابی حرة الرقاشی عن عمه قال قال رسول اللهﷺ الا لا تظلموا الا لا یحل مال امرء الا بطیب نفس منه. (مشکٰوة المصابیح ج۱، ص۲۵۵، باب الغصب و العاریة، الفصل الاول) و مثله فی نصب الرایة ج۴، ص۱۶۹، کتاب الغصب.

## له کـــــــافر سره د خوراك حکم

**سوال:** آیا له کافر سره په یوه لوښي کښې خوراك او څښاك جائز دی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له کافر سره په یوه لوښي کښې د خوراك او څښاك عادت جوړول صحیح نه دي او کله کله وي نو پروا نه لري۔

لما قال العلامة طاهر بن عبد الرشید البخاریؒ: و الاکل و الشرب فی اوانی المشرکین مکروه و لا بأس بطعام المجوس الاّ ذبیحتهم و فی الاکل معهم و عن الحاکم عبد الرحمٰن لو ابتلی به المسلم مرة او مرتین لا بأس بهٖ و اما الدوام علیه فمکروه. (خلاصة الفتاوٰی ج۴، ص۳۴۶، کتاب الکراهیة)

و فی الهندیة: الاکل مع المجوس و مع غیره من اهل الشرك انه هل یحل ام لا عن الحاکم عبد الرحمٰن الکاتب انه ان ابتلی به المسلم مرّة او مرّتین فلا بأس بهٖ و امر الدوام علیه فیکره. (الفتاوی الهندیة ج۵، ص۳۴۷، الباب الرابع عشر فی اهل الذمة..... الخ)



## د خلافِ شریعت په دعوت کښې د ګډون حکم

**سوال:** نن صبا په ودونو او د خښیو په داسې نورو مراسمو کښې د الله تعالی او نبي کریمﷺ احکامات او طریقې تر پښو لاندې کیږي چه له هغو څخه د غیر محرم ښځې او سړي بې پردګي او ګډون، سازونه او سروزونه او د هندوانو او عیسویانو مختلفې طریقې د یادونې وړ دي۔ نو که چېرته یو څوك خلك له داسې خلافِ شرعې کارونو څخه منع کړي نو هغوی وايي چه د خوښۍ او خوشحالۍ موقع دی او له دغو پرته د خوشحالۍ اظهار نه شي کیدلی په داسې حال کښې چه ځینې اهل علم او دیندار حضرات هم په دې ډول دعوتونو کښې لیدل کیږي چه له مخې ئې خلك دا عبث او خلافِ شرع کارونه جائز بولي او وايي چه که چېرته ناجائز وای نو فلاني عالم او دیندار سړي به ولې ګډون پکښې کاوه۔ نو اوس پوښتنه دا ده چه په دې ډول مراسمو کښې ګډون خصوصاً د علماوو لپاره او په داسې مجلسونو کښې خوراك او داسې نور جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په دې ډول مراسمو کښې ګډون جائز نه دی او په کومو ځایونو کښې چه د شرعي احکامو خلاف ورزي او مختلف ډول بد عملونه ترسره کیږي هلته خوراك او څښاك هم ناجائز دی۔ او همدارنګه په داسې مراسمو کښې د عالم او دیندار سړي په ګډون سره یو د شرعې خلاف کار نه شي روا کیدلی۔

قال العلامة علاؤ الدین الحصکفی رحمه اللّٰه: دعی الٰی ولیمة و ثمه لعب او غنا قعد و اکل لو للمنکر فی المنزل فلو علی المائدة لا ینبغی ان یقعد بل یخرج معرضاً الٰی قولهٖ فان قدر علی المنع فعل و الا صبر ان لم یکن ممن یقتدٰی به فان کان مقتدی و لم یقدر علی المنع خرج و لم یقعد لان فیه شین الدین الخ. (الدر المختار ج۵، ص۲۴۵، کتاب الحظر و الاباحة)

و فی الهندیة: و من دعٰی الٰی ولیمة فوجد ثمه لعبا او غناء...... و لو کان ذٰلك علی المائدة لا ینبغی ان یقعد و ان لم یکن مقتدٰی بهٖ و هذا کله بعد الحضور و اما اذا علم قبل الحضور فلا یحضر الخ. (الفتاوی الهندیة ج۵، ص۳۴۳، کتاب الکراهیة، الباب الثانی عشر فی الهدایا و الضیافات)

# باب التـــــــداوي

## (د علاج او معالجې احکام او مسائل)

## د انساني اعضاوو د پیوند کــــــاري (سره لګولو) حکم

**سوال:** په نننۍ زمانې کښې د انسانو اعضاوو (غړو) د پیوند کاري کار روان دی۔ ځینې خلك وصیت کوي چه له مرګ نه وروسته زما ځینې اندامونه لکه سترګې، پښتورګې او د اسې نور وباسی او هغو خلکو ته ئې ولګوی چه ډیر ضرورت ورته لري۔ نو آیا په شریعت مقدسه کښې د انساني اعضاوو پیوند کاري جائزده او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** خپل اعضا د علاج په توګه استعمالول، په بل انسان کښې ئې د لګولو وصیت کول او د اعضاوو پیوند کاري شرعا حرامه ده۔ اګر که دا وبا او مرض نن صبا اوج ته ختلی دی چه اجتناب او ځان ساتنه ترې ضروري ده۔ بیا هم متاخرینو فقهاوو د سخت ضرورت او اضطراري حالاتو کښې جائز ګرځولی دی۔

لما قال الامام محمد بن احمد السرخسیؒ: لا یجوز الانتفاع بهٖ بحال ما و الآدمی محترم بعد موتهٖ علی ما کان علیه فی حیاتهٖ کلما یحرم التداوی بشیٔ من الآدمی الحیّ اکراماً لهٗ کذٰلك لا یجوز التداوی بعظم المیت. (شرح کتاب السیر الکبیر ج۱، ص۱۲۸، باب دواء الحاجة)

قال العلامة علاؤ الدین ابو بکر بن مسعود الکاسانیؒ: و لو سقط سنه یکره ان یأخذ من المیت فیشدها مکان الاولٰی با لاجماع. (بدائع الصنائع فی ترتیب الشرائع ج۵، ص۱۳۲، کتاب الاستحسان) و مثله فی الهندیة ج۵، ص۳۵٤، الباب الثامن عشر فی التداوی و المعالجات الخ.

## د انګــــــریزي ادویاتو د استعمالولو حکم

**سوال:** په نننۍ زمانې کښې په اکثرو مرضونو کښې انګریزي دواګانې استعمالیږي کومې چه الکحل هم پکښې ګډ وي۔ نو د شرعي نقطه نظر له مخې د دغو دواګانو استعمال څه حکم لري؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د انګریزي دواګانو د استعمال په باره کښې د علماء کرامو فتوٰی داده چه که چېرته په هغو کښې شراب او یا د نورو حرامو شیانو استعمال یقیني او په غالب ګمان سره ثابت وي نو پرته له سخت ضرورت څخه ئې استعمالول صحیح نه دي۔ او د نورو انګریزي ادویاتو استعمال مرخص دی۔

لما قال العلامة فخر الدین عثمان بن علی الزیلعیؒ: و کره شرب دردی الخمر و الامتشاط بهٖ لان فیه اجزاء الخمر فکان حراماً نجساً و الانتفاع بمثلهٖ حرامٌ. (تبیین الحقائق ج٦، ص٤٩، کتاب الاشربة)

قال العلامة علاؤ الدین الحصکفیؒ: (و کره شرب دردی الخمر) ای (و الامتشاط) با لدردی لان فیه اجزاء الخمر و



قلیله ککثیره کما مر. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج٦، ص٤٥٧، کتاب الاشربة) و مثله فی البحر الرائق ج۸، ص۲۱۹، کتاب الاشربة.

## د پوسټ مــــــارټم (مُثله) حکــــــم

**سوال:** په نننۍ زمانې کښې که چېرته څوك قتل شي او یا په کومې حادثې کښې مړ شي نو په شفاخانې کښې مُثله (پوسټ مارټم) کیږي یعنې ځینې اندامونه ئې پرې کیږي۔ نو آیا په مقدس شریعت کښې د دې ډول عمل حکم څه دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** لکه څرنګه چه انساني احترام په ژوند کښې مسلم دی همدارنګه له مرګ نه وروسته هم انسان قابل احترام دی۔ لکه څرنګه چه ژوندي انسان ته تکلیف رسول د جرم او ګناه موجب دی همدارنګه مړ انسان ته هم ایذاء او تکلیف ورکول د جرم او ګناه موجب دی۔ نو د دې لپاره فقهاء کرامو له مرګ نه وروسته د انسان اندامونه پرې کول د شرعې خلاف عمل بللی دی او مُثله کول ئې یو قبیح او ناروا عمل بللی دی۔

لما قال الباجیؒ: یرید ان لهٗ من الحرمة فی حال موته مثل ما له منها حال حیاته و ان کسر عظامه حال موته یحرم کما یحرم کسرها حال حیاته. (موطاء امام مالك حاشیة ۳، ص۲۲۰، ما جاء فی الاختفاد و هو النبش)

رواه الامام ابو داؤد سلیمان بن اشعث السجستانیؒ: عن عائشةؓ ان رسول اللّٰہ ﷺ قال کسر عظم المیت ککسره حیاً. (سنن ابی داؤد ج۲، ص۱۰۱، باب الحفار یجد العظم هل ینتکب ذٰلك المکان) و مثله فی سنن ابن ماجة مع حاشیة ج۱، ص۱۱٦، باب ما جاء فیمن مات مریضاً.

## د خـــــانداني منصوبه بندي او د حمل د منع کوونکي ادویاتو حکم

**سوال:** د نن صبا په دور کښې خانداني منصوبه بندي په کثرت سره خپریږي۔ په شرعي لحاظ سره د خانداني منصوبه بندي او مانع حمل ادویاتو حکم څه دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د خانداني منصوبه بندي اهداف ته په نظر کولو سره دا حقیقت له هیچا څخه پټ نه دی پاتې شوی چه دا اکثرې منصوبه بندۍ د رزق د تنګي او ویرې له وجهې ترسره کیږي کوم چه د حقیقي خالق جل جلالُه د صفت خاصه یعنې رزاقیت له بغاوت سره برابره ده۔ نو د دې لپاره د خانداني منصوبه بندي بنیادي نظریه د رزق د تنګي او د کمي له ویرې څخه په دې منصوبه بندي باندې عمل کول حرام دي۔ بیا هم د شرعي عذر له مخې د مانع حمل ادویاتو او د حمل د مانع نور ذرائع احتیارول مرخص دي۔

لما قال العلامة عالم بن العلاء الانصاری رحمه اللّٰه: شرب الدواء لاجل اسقاط الحمل قبل ان یصیر صورة یجوز عند الضرورة و الکف عن هٰذا خیر اولی. (الفتاوی التاتارخانیة ج۳، ص۲۱٦، کتاب النکاح، الفصل السادس و العشرون)

لما قال العلامة ابن عابدینؒ: تحت قوله (و یکره ان تسقی لاسقاط الحمل و جاز لعذر) کل مرضعة اذا ظهر بها الحمل و انقطع لبنها و لیس لابی الصبی ما یستأجر به الظئر و یخاف هلاك الولد قالوا یباح لها ان تعالج فی استنزال الدم ما

دام الحمل مضغة او علقة و لم يخلق لهٗ عضو و قدروا تلك المدة بمائة و عشرين يوماً. (رد المحتار ج٦، ص٤٢٩، كتاب الحظر و الاباحة، فصل فى البيع) و مثله فى الطحطاوى على الدر المختار ج٤، ص٢١٤، كتاب الحظر و الاباحة، فصل فى البيع.

## د انجکشن (ستنې) په ذریعې سره د ښځو څناورو د حامله کولو (بلاربې کولو) حکم

**سوال:** د نسل د زیاتوالي لپاره غوا، میښې او د اسې نورو ته ستنې لګول کیږي. نو آیا شرعاً د نسل د زیاتوالي دا طریقه جائزه ده او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** لکه څرنګه چه په څناورو کښې د نسب لحاظ ساتل د شریعت له مخې ضروري خبره نه ده ځکه چه مور په څناورو کښې اصل دی او بچی ئې په حلت او حرمت کښې د مور تابع دی. نو په دې وجه څناورو ته د زیاتوالي په خاطر د ستنو لګول کوم قبیح عمل نه دی۔

لما قال الامام السيّد احمد بن محمد الحموى المصرىؒ: و المولود بين الاهلى و الوحشى يتبع الاُم لان الاصل فى التبعية الاُم حتٰى ان نزى الذئب على الشّاة يضحٰى با لولد. (غمز عيون البصائر شرح الاشباه و النظائر ج١، ص٣٣٧)

لما قال الامام ابو بكر احمد على الرازى الجصاص رحمه اللّٰه: و لو ولدت حمارة وحشيه من حمار اهلى اكل ولدها فكان الولد تابعاً لاُمه دون ابيه. (احكام القرآن للجصاص ج٥، ص٣، سورة النحل)

## مریض ته د وینې د ورکولو حکم

**سوال:** د ضرورت په وخت کښې د مریض د ژوند د ژغورلو لپاره له انساني وینې څخه د انتفاع (فائده اخیستنې) شرعي حکم څه دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د سخت ضرورت په وخت او یا حادثې او یا د سختې مریضۍ په وخت کښې د مریض د ژوند د ژغورلو لپاره له انساني وینې څخه استفاده کول جائز دي۔

لما قال العلامة شيخ محمد كامل بن مصطفى الطرابلسى الحنفىؒ: قال فى التهذيب يجوز لعليل شرب البول و الدم و الميتة للتداوى اذا اخبره طبيب مسلم ان شفائه فيه و لم يجد من المباح ما يقوم مقامه. (الفتاوى الكاملية ص٢٦٧، كتاب الكراهية)

لما فى الهندية: يجوز لعليل شرب البول و الدم و اكل الميتة للتداوى اذا خبره طبيب مسلم ان شفائه فيه و لم يجد من المباح ما يقوم مقامه. (الفتاوى الهندية ج٥، ص٣٥٥، الباب الثامن عشر فى التداوى و المعالجات) و مثله البحر الرائق ج٨، ص٢٠٥، كتاب الكراهية، فصل فى البيع.

## د تعویذ شرعي حکم

**سوال:** د ضرر د دفع کولو لپاره او د منفعت د جلبولو لپاره قرآني آیتونه او مأثوره دعاګانې د تعویذ په توګه له ځان سره د ساتلو شرعي حکم څه دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د غیر شرعي الفاظو څخه پرته په قرآني آیتونو او مأثوره دعاګانو باندې په جوړ شوی تعویذ کښې کومه بدي نشته بلکه دا یوه مسنونه طریقه ده او د تعویذ له



ځان سره ساتل، پورې کول او په غاړه کول ئې تړول جائز دي۔

لما قال الامام اللغوى ابو الفتح ناصر الدين المطرزىؒ: قال القتيبى و بعضهم يتوهم ان المعاذات هى التمائم و ليس كذلك انما التميمة الخرزة و لا بأس المعاذات اذا كتب فيها القرآن او اسماء اللّٰه تعالىٰ. (المغرب فى ترتيب المعرب ج١، ص١٠٧)

لما اخرج ابو داؤد سليمان بن الاشعث السجستانىؒ فى سُننه: عن عمرو بن شعيب عن ابيه عن جده ان رسول اللّٰه ﷺ كان يعلمهم من الفزع كلمات اعوذ بكلمات اللّٰه التامة من غضبه و شرّ عباده و من همزات الشياطين و ان يحضرون و كان عبد اللّٰه بن عمر يعلمهن من عقل من بنيه و من لم يعقل كتبه فاعلقه عليه. سُنن ابى داؤد ج٢، ص٥٤٣، باب كيف الرقٰى) و مثله فى ردّ المحتار ج٦، ص٣٦٣، كتاب الحظر و الاباحة، فصل فى اللبس.

## د مړې ښځې له نس څخه د بچي د ایستلو حکم

**سوال:** که چېرته یوه حامله ښځه مړه شي او د طبي نقطهٔ نظر له مخې د دې خبرې تصدیق وشي چه په نس کښې ئې بچی لا تر اوسه ژوندی دی. نو آیا د نوموړې ښځې نس څیرل او بچی ئې ترې ایستل شرعاً جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** فقهاء کرامو د ډېرې مجبورۍ له مخې د مړې ښځې نس څیرل او له هغې څخه د بچي ایستل جائز ګرځولي دي لیکن په دې شرط چه بچي په نس کښې حرکت کاوه یعنې دا خبره یقیني وي چه ژوندی دی. چونکه په موجوده دور کښې د سائنسي ترقۍ له وجهې په پورته ذکر شوي صورت کښې د الټرا ساونډ (لابراتوار) په ذریعه دا معلومیدلی شي چه بچی د مور په نس کښې ژوندی دی. له دې وجهې کله چه د لابراتوار په ذریعې سره څرګند شي چه بچی ژوندی دی نو د ښځې نس څیرل او بچی ترې ایستل شرعاً مرخص دي۔

لما قال العلامة الحصكفىؒ: حامل ماتت و ولدها يضطر شق بطنها و يخرج ولدها. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج٢، ص٢٣٨، باب الجنائز، مطلب فى دفن الميت)

قال الشيخ اشرف على التهانوىؒ: له دې څخه څرګنده شوه چه د ښځې ګېډه څیرل او بچی ترې ایستل هغه وخت جائز دی چه کله بچی ژوندی او حرکت کوونکی معلوم شي او که چېرته ژوندی نه وي او هغه هم مړ شوی وي نو د ښځې د ګېډې څیرل جائز نه دي۔ (امداد الفتاوٰی ج٤، ص٢٠٦، کتاب الحظر و الاباحة)

## د خاوند د راغب کولو لپاره تعویذ کول

**سوال:** ښځه خپل خاوند د ځان خوا ته د جلب کولو او راغب کولو لپاره تعویذ کولی شي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د اصلاح بین الزوجین لپاره عملیات او تعویذات کوم بد عمل نه دی خو په دې شرط چه له میړه څخه د غلام جوړول مقصد پکښې نه وي بلکه له اختلاف څخه د بچ کید و مطلب ئې وي. بیا هم په فتاواوو کښې چه د نه جواز کومه فتوٰی موجوده ده هغه په غیر

شرعي تعويذ اتو او تسخيراتو او نورو بد نيتيو باندې محمول دی۔

لما قال العلامة ابو الفتح ناصر الدين المطرزیؒ: بعضهم يتوهم ان المعاذات هى التمائم و ليس كذٰلك انما التميمة الخرزة و لا بأس با لمعاذات اذا كتب فيها القرآن او اسماء اللّٰه تعالىٰ........ و اما ما كان من القرآن و شیء من الدعوات فلا بأس. (المغرب فى ترتيب المعرب ج۱، ص۱۰۷/۱۰۸)

لما قال العلامة ابن عابدين رحمه اللّٰه: و بعضهم يتوهم ان المعاذات هى التمائم و ليس كذٰلك انما التميمة الخرزة و لا بأس با لمعاذات اذا كتب فيها القرآن او اسماء اللّٰه تعالىٰ. (رد المحتار ج۶، ص۳۶۳، كتاب الحظر و الاباحة، فصل فى اللبس) و مثله فى نيل الاوطار ج۵، ص۳۰۷، باب ما جاء فى الاجرة على الضرب.

## په تعويذونو کښې د يا بدوح ليکل

**سوال:** اکثره عاملين په تعويذ اتو کښې يا بدوح ليکي۔ په دې باره کښې مې له ځينو علماوو څخه اوريدلي دي چه د يا بدوح ليکل صحيح نه دي۔ آيا په رښتيا هم د يا بدوح ليکل جائز نه دي او که څنګه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** بدوح په عبراني ژبې کښې د اللّٰه تعالىٰ نوم دی او په تعويذ اتو کښې د اسماء اللّٰه ليکل جائز دي۔ لهذا په تعويذ اتو کښې د يا بدوح نوم ليکل جائز دي۔

لما قال العلامه مفتي محمد شفيعؒ: ما احقر له خپل استاد محترم حضرت العلامه مولانا محمد انور شاه کشميري صاحبؒ څخه اوريدلي دي چه د "بدوح" لفظ د دال له تشديد پرته په عبراني ژبې کښې د اللّٰه تعالىٰ نوم دی۔ (عزيز الفتاوىٰ المعروف به فتاوىٰ دار العلوم ديوبند ج۱، ص۱۴۹)

لما قال العلامه مفتي محمد شفيعؒ: د "بدوح" لفظ په عمومي توګه د "با" په پيښ او د دال په تشديد سره مشهور دی ليکن دا صحيح نه ده۔ د بدوح صحيح لفظ په د با په زور او د دال په تخفيف سره دی۔ تحقيق دا دی چه دا د عربي ژبې لفظ نه دی بلکه په عبراني ژبې کښې د اللّٰه تعالىٰ يو نوم دی۔ (امداد المفتيين المعروف به فتاوىٰ دار العلوم ديوبند ج۲، ص۲۳۸، کتاب الکراهيه)

## په تعويذ اتو کښې د غير شرعي الفاظو حکم

**سوال:** په تعويذ اتو کښې د غير شرعي الفاظو لکه يا فرعون، يا هامان او د اسې نورو ليکل شرعا جائز دي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په تعويذ اتو کښې له قرآني آيتونو او مأثوره دعاګانو پرته د نورو غير شرعي الفاظو لکه د پيريي، بُت او يا د لويو لويو کافرانو د نومونو ليکل شرعا جائز نه دي۔

لما رواه الامام مسلم بن الحجاج القشيریؒ: عن عوف بن مالك الاشجعى قال لنا نُرقى فى الجاهلية فقلنا يا رسول اللّٰهﷺ كيف ترىٰ فى ذٰلك فقال اعرضوا علىّ رُقاكم لا بأس با لرّقى ما لم يكن فيه شرك. (الصحيح المسلم ج۲،



ص۲۲۴، باب جواز اخذ الاجرة على الرقية)

قال العلامة الحصكفیؒ: التميمة المكروهة ما كان بغير العربية. و قال العلامة ابن عابدينؒ (فى قوله التميمة المكروهة) اقول الذى رأيته فى المجتبى التميمة المكروهة ما كان بغير القرآن. (رد المحتار ج۶، ص۳۶۳، كتاب الحظر و الاباحة، فصل فى اللبس) و مثله فى حاشية الجامع الترمذى للشيخ احمد على السهارنفوریؒ ج۲، ص۲۵، باب ما جاء الأُجرة على التعويذ.

## د مرض علاج سنت دی

**سوال:** مريض لره د خپل مرض علاج شرعا څه حکم لري؟ او که چېرته يو مريض د علاج نه کولو په سبب سره مړ شي نو آيا ګنهګار به وي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** علاج يو سنت عمل او ظاهري سبب دی۔ بيا هم که چېرته يو مريض د خپل علاج د نه کولو په صورت کښې مړ شي نو نه ګنهګاريږي۔

لما قال الامام الفقيه ابو الليث السمرقندیؒ: و لو مرض و لم يعالج حتىٰ مات لم يأثم بخلاف الجائع اذا لم ياكل حتىٰ مات با لجوع يأثم به. (فتاوىٰ نوازل ص۲۰۰، كتاب الكراهية)

قال العلامة ابن البزاز الكردریؒ: امتنع عن الاكل حتىٰ مات جوعاً اثم و ان عن التداوى حتىٰ تلف مرضاً لان عدم الهلاك با لاكل مقطوع و الشفاء با لمعالجة مظنونٌ. (الفتاوى البزازية على هامش الهندية ج۶، ص۳۶۷، نوع فى التداوى، كتاب الكراهية) و مثله فى الاختيار على تعليل المختار ج۴، ص۱۷۴، كتاب الكراهية.

## د شريعت مطهره په رڼا کښې د خانداني منصوبه بندي پرتله

**سوال:** مکرمي جناب شيخ الحديث مولانا عبد الحق صاحب: السلام عليکم! د دنيا په چټکۍ سره زياتې شوې آبادۍ د اقتصادي او عمرانياتو د ماهرينو په نظر کښې يوه خطرناکه مسئله جوړه شوې ده۔ که چېرته په دې مسئلې باندې يواځې په اقتصادي يا عمراني نقطه نظر له مخې بحث وشي نو د د نسل تحديد لا علاجه څرګنديږي۔ بيا هم په يوې مسلمانې معاشرې کښې د يوه تحريك له شروع څخه مخکښې د دې د شرعي حيثيت تعين ضروري ده۔

زه ديوې تحقيقي ادارې پورې اړه لرم او "اسلام او خانداني منصوبه بندي" په موضوع باندې کار کوم۔ زما په نظر کښې کوم سياسي مصلحت نشته او له هر ډول دباو څخه بې نيازه يواځې د دين د جذبې او خدمت لاندې مې دا کار په مخه کړی دی۔ د دې عظيمې ذمه وارۍ څخه د ځان خلاصولو لپاره ماته هر وخت د علماء کرامو لارښوونه په کار دی۔ هيله ده چه تاسو له خپل قيمتي وخت څخه څو لمحې اوباسی او زما د لارښوونې لپاره په لاندينې څو ټکو باندې رڼا واچوی۔

﴿الف﴾ ستاسو په خيال کښې "خانداني منصوبه بندي" د مذهبي نقطۀ نظر له مخې جائزه ده او که نه؟

﴿ب﴾ د رسول الله ﷺ د حدیثو په رڼا کښې عزل څه شرعي حیثیت لري؟

﴿ج﴾ فقهاء کرامو په کومو کومو صورتونو کښې یوه واده شوي ته په عزل باندې د عمل کولو اجازه ورکړې ده؟

﴿د﴾ آیا د تحریك په صورت کښې د ضبط تولید د مختلفو طریقو تول نیوونکې خپرونه د شرعي نقطه نظر له مخې جائزه ده او که نه؟

﴿ر﴾ که چېرته جائزه نه وي نو له دې څخه د کومې خرابۍ د پیدا کیدو احتمال دی؟ همدارنګه د دې خرابۍ په پوهیدنې باندې ستاسو څه وړاندیزونه دي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** ستاسو سوالنامه را ورسیده. د خاندانی منصوبه بندۍ په باره کښې زمونږ رأیه کومه چه په شرعي نصوصو او د فقهاء امت په رأیو باندې مبني ده په لاندې ډوله ده.

د دنیا په چټکۍ سره د زیاتې شوې آبادۍ د خطرناکو نتائجو په بناء د نسل تحدیدول په داسې حال کښې په جبري او حاکمانه توګه وي او یا د تحریك په توګه وَي د مسلمان له شان سره نه ښایي. د یوه موحد او مسلمان قوم لپاره هیڅکله دا نه ښایي چه د غربت د خطرې له وجهې د عربو د مشرکینو غوندې په شرك خفي کښې مبتلا شي. او همدارنګه د خدای پیغمبر ﷺ او خلفاء راشدینو رضی الله عنهم چه عاقبت اندیشي، همدردي او شفقت ئې په ټولو خلکو کښې له شك او شبهې څخه پاك دي. هغوی د عربو غوندې ریګستان او پرته له کوم واښه او اوبه څخه په ملك کښې د د نسل د تحدید حکم او مشوره نه وه ورکړې. په داسې حال کښې چه هلته د قحط خطره خو پریږده بلکه متحقق والی ئې هغو ته محسوسیده او د دې تر څنګ ئې د نسل د تحدید په ځای ئې د نسل د تکثیر (ډیرولو) د مشورې په ورکولو سره وفرمایل چه "تزوجوا الودود الولود فانی مکاثر بکم الامم" نو د یوې مسلمانې معاشرې لپاره دا کله ښایي چه پیغمبر ﷺ او خلفاء راشدینو رضی الله عنهم اتباع پریږدي او په هرې معاملې کښې په ړندو سترګو د مغربیانو تقلید وکړي او تقلید هم د دې درجې چه که چېرته نن ورځ د مغرب له خوا څخه د نسل د ډیرولو اشاره وشي نو په چټکۍ سره د هغې په حق والي او ښه والي باندې اصرار کوي.

الغرض د دې مسئلې حل د اقتصادي او عمراني نقطۀ نظر له مخې د نسل تحدید نه دی کوم چه د الله تعالی په رازقیت باندې د اعتماد او توحید خلاف دی. بلکه د دې علاج دا دی چه الله تعالی په دې زمکې او کائناتو کښې د رزق او معاش چه کومه بې پایه او بې اندازې خزانې پیدا کړې دي او د خدای جل جلالُه د ورکړ شوي عقل او پوهې څخه کار واخیستل شي او د رزق د زیاتولو او له زیات څخه زیات پیداوار د پیدا کولو لپاره هغه ذریعې او طریقې غوره کړی شي، خرابې زمکې آبادې شي او بزګرانو ته د زرعي ترقۍ لپاره په جدیدو طریقو سره لارښوونه وشي او د زمکې غیر ضروري حاصلات لکه تمباکو، افیون او داسې نور کوم چه د



انسان بنیادي ضروریات هیڅ تړاو ور پورې نه لري له منځه یوړل شي.

اوس د تمهیدي بحث نه وروسته په ترتیب سره ستاسو د سوالونو ځوابه په لنډه توګه در وړاندې کیږي.

﴿الف﴾ خاندانی منصوبه بندي د حاکمانه یعنې د حاکم له خوا څخه او جبراً یعنې په زوره او د ټول نیوونکې او اجتماعي تحریك له خوا څخه ناجائزه ده. او پرته له کوم زور او جبر څخه د سخت ضرورت په وجه جائزه ده.

﴿ب﴾ جائزه خو ده لیکن د اولٰی خلاف دی لیکن دا جواز هم په هغه وخت کښې دی چه دا کار په مفاسدو پورې نه وي تړلی او کوم مباحات چه د مفاسدو ذریعه جوړیږي نو د قرآن او حدیثو په رڼا کښې ناجائز دي او همدارنګه چه خوځښتونه او سببونه ئې هم د شریعت له مخې مذموم نه وي.

﴿ج﴾ د ضرورت مندو او معذورو اشخاصو لپاره عزل جائز دی او د اهل مغرب د تقلید له وجهې یا د اقتصادي کمزورۍ له وجهې جائز نه دی لکه په ولاړې باندې متیازې کول. او کوم خلك چه دې ته د تحریك شکل ورکوي د هغوی په نزد د عزل له وجهې د کومې معاشي مسئلې حل کیدل د هغوی د ذهني غلامي یو ثبوت دی.

﴿د﴾ د ضرورت مندو او معذورو لپاره پرته له جبر او اکراه څخه جائز دی په داسې حال کښې چه مفاسد پکښې نه وي. لیکن د مفاسدو احتمال پکښې یقیني دی. او د تحریك په توګه چلول ئې په هر حال کښې ناجائز دی.

﴿ر﴾ د الله تعالی د رازقیت له صفت او تقدیر له صفت څخه غفلت او د زنا ډیر والی ئې اهم مفاسد دي چه تدارك ئې په ژبې باندې اګر که ممکن دی لیکن په عملي توګه ناممکن دی.

﴿س﴾ د عذر لرونکو او ضرورت مندو لپاره نورې طریقې هم په انفرادي توګه جائزې دي. البته کومې طریقې چه مفاسد پکښې وي لکه د نس بندي صورت او یا په مستقله توګه د زوج او یا زوجې د قوت تولید ختمول کوم چه د خلق الله د تغیر له جملې څخه هم دی. د دې ارتکاب ناجائز دی او د دا ډول مفاسد خامخا پکښې شته. له دې وجهې مونږ د دې تحریك د جواز حکم نه شو ورکولی. او کوم خلك چه د کتاب او سنتو نصوص او د فقهاء کرامو رأیې او اقوال په بدلولو او یوې خوا ته کولو سره د خپل مطلب د لاس ته راوړو په خاطر د دې تحریك جواز پیدا کوي د هغو تحقیقاتو لره (کوم چه په اصل کښې تاویل او تحریف بلل کیږي) هیڅ اعتبار نشته.

## د جند بیدستر په دوا ګانو کښې د استعمالولو حکم

**سوال:** جند بې دستر کوم چه یو دریابي ځناور دی د خصیتینو (خُتو) منجمد وچ شوی رطوبت دی او طبي ماهرین ئې په دوا ګانو کښې ډیر استعمالوي. د دې په اړه د شریعت څه حکم دی چه آیا حلال دی او که حرام؟ په داسې حال کښې چه په ځینو وختونو کښې ئې استعمال د متبادلې دوا د نشت والي له وجهې ضروري شي. په امداد الفتاوٰی کښې راغلي چه جند بې

دستر پاك او حلال نه دی بلکه ناپاك دی۔ د شریعت مقدسه په رڼا کښې په دې باره کښې څه تفصیل په کار دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** دریابي ځناور ټول پاك دي که کوچني وي او که لوی۔ مذبوح وي او که غیر مذبوح۔ البته په دوی کښې له ماهي (کب) پرته د نورو ځناورو خوړل د حنفي مذهب مطابق صحیح نه دي لیکن په ادویاتو کښې د ټولو دریابي ځناورو او یا د هغو د کومو اجزاوو خارجي استعمال درست او صحیح دی۔ لیکن د چنګښې وژل له کراهیت څخه خالي نه دی ځکه چه نص پرې راغلی دی۔ او که چېرته مړه چنګښه وي نو په خارجي استعمال کښې ئې کوم حرج نشته۔ دا حکم یوازې د دریابي چنګښو دی۔ او د جند بې دستر داخلي استعمال د هیچا په نزد هم صحیح نه دی۔ د حنفیه وو په نزد د دوو وجهو له مخې جائز نه دی یو دا چه جند دریابي حیوان دی او دوهمه دا چه د جند خصیتین دي کوم چه ممانعت ئې د حدیثو له مخې منصوصي دی او د نورو ائمه وو په نزد یوازې د دوهمې وجهې له مخې او پاکوالي له وجهې ئې باندیني استعمال صحیح دی او په عطرو کښې ئې اچول هم صحیح او جائز دي۔ (اصلي طبي جوهر ص۱۰٤، از حکیم الامت)

و فی الهندیة: (و اما حکمها) فطهارة المذبوح و حل اکله من الماکول و طهارة غیر الماکول للانتفاع لا بجهة الاکل. (الفتاوی الهندیة ج٥، ص٢٠٦، کتاب الذبائح، الباب الاول)

و فی الهندیة: الحیوان فی الاصل نوعان نوع یعیش فی البحر و نوع یعیش فی البر اما الذی یعیش فی البحر فجمیع ما فی البحر عن الحیوان یحرم اکله الا السّمك خاصة فانهٗ یحل اکله الخ. (الفتاوی الهندیة ج٥، ص٢٨٥، کتاب الذبائح، الباب الثانی فی بیان ما یؤکل لحمه من الحیوان و ما لا یؤکل)



# بـــاب اللباس

## (د لباس او اغوستن احکـــــام او مسئلې)

### د ســـــرو یا سپینو زرو ګړۍ په لاس کـــــول

**سوال:** د سروزو یا سپینو زرو او یا د اوسپنې او سلورو څخه جوړې شوې ګړۍ (ساعت) په لاس کول شرعا جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** ګړۍ یا ساعت که له خالصو سروزرو یا سپینو زرو څخه جوړه شوې وي نو د سړیو لپاره ئې استعمال جائز نه دی لیکن که چېرته د ننه د سرو او سپینو زرو وي او د باندې اوسپنه وي نو د نرو او ښځې دواړو لپاره ئې استعمالول پروا نه لري ځکه چه د اوسپنې استعمال یوازې په ګوتې کښې ممنوع دی۔

لما قال العلامة الحصکفیؒ: (و لا یتحلی) للرجل (بذهب و فضّة) مطلقاً....... و لا یتختم الا با لفضّة لحصول الاستغناء بها فیحرم (بغیرها کحجر) و ذهب و حدید و صفر) و رصاص وغیرها لما مر فاذا ثبت کراهة لبسها للتختم. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج٦، ص٣٥٩، کتاب الحظر و الاباحة، فصل فی اللبس)

قال العلامة ابو البرکات النسفیؒ: و لا یتحلی للرجل با لذهب و الفضة الا با لخاتم...... و حرم التختم با لحجر و الحدید و الصفر و الذهب. (کنز الدقائق ص٤٢٢، کتاب الکراهیة، فصل فی اللبس) و مثله فی الجوهرة النیرة ج٢، ص٣٨٣، کتاب الحظر و الاباحة.

### د ښځو لپاره د سپینو جامو د اغوستلو حکم

**سوال:** د ښځو لپاره له رنګینو جامو څخه پرته د سپینو جامو اغوستل جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په اسلامي شریعت کښې د ښځو لپاره د کوم خاص رنګ کالي په اغوستلو کښې کومه پابندي نشته۔ بیا هم د هغو لپاره د داسې لباس اغوستلو څخه ځان ساتنه ضروري ده چه له مخې ئې له سړیو سره مشابهت پیدا کیږي۔

لما قال العلامة الحصکفیؒ: و کره لبس المعصفر و المزعفر و الاحمر و الاصفر للرجال مفاده انه لا یکره للنساء (و لا بأس بسائر الالوان الخ. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج٦، ص٣٥٨، کتاب الحظر و الاباحة، فصل فی اللبس)

قال العلامة السید احمد الطحطاویؒ: (قوله و المزعفرو الاحمر و الاصفر) یعنی ان المزعفر بقسمیه مکروه و اما الاصفر من غیر الزعفران فلا کراهة فیه و لا بأس بسائر الالوان من الابیض و الارزق و الاشقر الخ. (طحطاوی حاشیة الدر المختار ج٤، ص١٨٠، کتاب الکراهیة، فصل فی اللباس)

## د ښځو لپاره د نريو جــــامو د اغوستلو حکم

**سوال:** په ننني زماني کښې اکثره ښځې دومره نري لباس اغوندي چه ټول اندامونه ئې ترې معلوميږي او په ځيتو وختونو کښې خو د کوم غير محرم نظر ئې هم په نوموړو جامو باندې لګيږي۔ د شريعت له مخې د ښځو لپاره د داسې لباس د اغوستلو حکم څه دی؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** اسلام ښځو ته د پردې حکم ورکړی دی او د داسې جامو له اغوستلو څخه ئې منع کړې دي چه د بې حيايي موجب او سبب وي۔ د دې لپاره ښځو ته د داسې لباس اغوستل چه د وجود او بدن پټ اندامونه ئې ترې معلوميږي حرام او ناجائز دي۔

قال العلامة ابن عابدينؒ: اقول مفاده ان رؤية الثوب بحيث يصف حجم العضو ممنوعة و لو كثيفاً لا ترى البشرة منه. (رد المحتار ج٦، ص٣٦٦، كتاب الحظر و الاباحة، فصل فى النظر و اللمس)

رواه الامام محمد بن اسمٰعيل البخارىؒ: عن امِّ سلمةؓ قالت استيقظ النبىﷺ فقال........ فرُب كاسية فى الدنيا عارية فى الآخرة. (الصحيح البخارى ج١، ص١٧، باب العلم و العظمة با لليل) و مثله فى تبيين الحقائق ج٦، ص١٧، كتاب الكراهية، فصل فى اللبس.

## د ســـــړيو لپاره د خالصې تيلې د استعمالولو حکم

**سوال:** خالصه تيله کومه چه له سرو او يا سپينو زرو څخه جوړه شوې وي د سړيو لپاره ئې استعمالول جائز دي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** خالصه تيله چه له سرو يا سپينو زرو څخه جوړه شوې وي او له سرو او سپينو زرو څخه د جوړ شوي شيانو استعمال د سړيو لپاره جائز نه دی۔ بيا هم دا مروجه تيله کومه چه له سرو او سپينو څخه نه وي جوړه شوې د سړيو لپاره ئې استعمال څه پروا نه لري۔

لما قال العلامة ابن عابدينؒ: يكره ان يلبس الذكور قلنسوة من الحرير و الذهب و الفضة و الكرباس. (رد المحتار ج٦، ص٣٥٤، كتاب الحظر و الاباحة، فصل فى اللبس)

لما فى الهندية: يكره ان يلبس الذكور قلنسوة من الحرير و الذهب و الفضة و الكرباس. (الفتاوى الهندية ج٥، ص٣٣٢، الباب التاسع فى اللبس الخ) و مثله فى الفتاوى السراجية ص٧٥، كتاب الكراهية.

## د غاښ د جوړولو لپاره د سرو او سپينو زرو د استعمال حکم

**سوال:** د مات شوي غاښ د جوړولو لپاره ځينې خلک سره يا سپين زر استعمالوي آيا د سړيو لپاره پخپلو غاښونو کښې د سرو يا سپينو زرو استعمالول جائز دي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د مات شوي غاښ د جوړولو لپاره د سروز زرو استعمال جائز نه دی ځکه چه سره زر د سړيو لپاره حرام دي بيا هم يوازې د سپينو زرو د خول په لګولو کښې څه قباحت نشته۔

لما قال الامام المجتهد محمد بن حسن الشيبانىؒ: و لا تشد الاسنان با لذهب و تشد با لفضة. (الجامع الصغير ص٣١٩، كتاب الكراهية)



قال العلامة طاهر بن عبد الرشيد البخارىؒ: و يشد الاسنان با لفضة و لا يشدها با لذهب. (خلاصة الفتاوىٰ ج٤، ص٣٧٠، كتاب الكراهية، الفصل السابع فى اللبس) و مثله فى الفتاوى الكاملية ص٢٦١، كتاب الكراهية.

## د اوسپنې د ګوتيې د استعمالولو حکم

**سوال:** سړو او ښځو ته د اوسپنې ګوتيې په ګوتې کول جائز دي او که نه؟ او همدارنګه د سرو او سپينو زرو ګوتې استعمالول شرعا څه حکم لري؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د اوسپنې ګوتيې په ګوته کول د سړي او ښځې دواړو لپاره مکروه دي او د سرو زرو ګوتيې يوازې د سړو لپاره حرامې دي او د سپينو زرو ګوتې د مازون په اندازه ورته جائزه ده او د ښځو لپاره په مطلقه توګه جائز دي۔ بيا هم د محتاج اليه څخه پرته د سړيو لپاره د ګوتې په ګوته کول ښه کار نه دی۔

لما قال العلامة عبد الله بن محمود الموصلىؒ: و يجوز للنساء التحلى با لذهب و الفضة و لا يجوز للرجال الا الخاتم...... من الفضة (و قال فى شرح كتابه) ثم التختم سنة لمن يحتاج اليه كا لسلطان و القاضى و من فى معناهما و من لا حاجة لهٗ اليه فتركه افضل..... و يكره التختم با لحديد و الصفر للرجال و النساء لانهٗ حلية اهل النار و قد نهى عنه. (الاختيار لتعليل المختار ج٤، ص١٥٩، كتاب الكراهية، فصل فى اللباس)

لما قال الامام ابو البركات ابو عبد الله بن احمد النسفىؒ: و لا يتحلى الرجل با لذهب و الفضة الا با لخاتم و المنطقة حلية السيف من الفضة و الا لغير السلطان و القاضى ترك التختم با لحجر و الحديد و الصفر. (كنز الدقائق ص٤٢٣، ص٤٢٤، كتاب الكراهية) و مثله فى الفتاوى الهندية ج٥، ص٣٣٥، الباب العاشر فى استعمال الذهب و الفضة.

## د ښځو لپــــــاره د پازيب د پښو کولو حکم

**سوال:** جناب مفتي صاحب! نن صبا د لويو لويو کورونو په ښځو کښې د پازيب د پښو کولو رواج دی او چه کله ئې پښو کوي او په لار کښې روانه وي نو د شرنګ شرنګ آواز ترې پورته کيږي چه له وجهې ئې فساد پيشه هلکان د دوی په دې آواز پسې روانيږي کوم چه د فساد ذريعه جوړيږي۔ نو آيا شرعا د ښځو لپاره د داسې پازيب پښو کول جائز دي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** اسلام ښځې ته د پردې او حجاب حکم ورکړی دی او له هر هغه عمل څخه ئې منع کړې دي چه د بې حيايي باعث او سبب جوړيږي۔ لکه څرنګه چه ښځو ته د پازيب په اغوستلو کښې يو ډول بې حيايي ده چه کله کله ډيرې فتنې او فسادونه ترې پورته کيږي او بله دا چه پازيب له شرعي حجاب سره ټکر دی نو د دې لپاره ئې استعمال د هرې کورنۍ د ښځو لپاره حرام دی۔

لما قال الله تعالى: وَ لَا يَضْرِبْنَ بِاَرْجُلِهِنَّ لِيُعْلَمَ مَا يُخْفِيْنَ مِنْ زِيْنَتِهِنَّ. (سورة النور، آيت ٣١)

و عن بنانة مولاة عبد الرحمٰن بن حبان الانصارىؒ كانت عند عائشةؓ اذ دَخَلَتْ عَليها بجارية و عليها جلاجل يصوتن فقالت لا تدخلنها على الا ان تقطعن جلاجلها سمعت رسول اللهﷺ يقول لا تدخل الملائكة بيتاً فيه جرس. رواه

ابو داؤد. (مشکٰوة ج٢، ص ٣٧٩، کتاب اللباس، باب النعال) و مثله فی امداد الفتاوٰی ج٤، ص ١٣٧، کتاب الحظر و الاباحة.

## د بدن په یو غړي باندې هم خال او یا د نامه لیکل جائز نه دي

**سوال:** په تندي او یا د بدن په کوم غړي کښې د خالونو لګول او یا د نامه د لیکلو په شریعت کښې څه حکم دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په تندي او یا د بدن په کومې عضوې کښې د خالونو لګول د خدای په تخلیق کښې د تغیر او تبدیل له وجې سره برابر دي کوم چه یو ناروا عمل دی۔ د دې لپاره د بدن په کومې عضوې باندې د خالونو لګول او یا د نامه لیکل حرام دي۔ لیکن که چېرته یو ځل نوم لیکل شوی وي نو د هغه د لرې کولو لپاره د بدن د پوستکي لتول هم ضروري خبره نه ده او په اوده اسه او لمانځه باندې کوم اثر نه کوي۔

لما رواه الامام محمد بن اسمٰعیل البخاریؒ: عن عون بن ابی حجیفة عن ابیه ان النبیﷺ نهی عن ثمن الدم و ثمن الکلب و کسب البغی و لعن اکل الربٰو و مؤکله و الواشمة و المستوشمة و المصوّر. (الصحیح البخاری ج٢، ص ٨٨١، باب من لعن المصور)

رواه الامام ابو الحسین مسلم بن الحجاج القشیریؒ: عن ابن عمرؓ ان رسول اللهﷺ لعن الواصلة و المستوصلة و الواشمة و المستوشمة. (الصحیح المسلم ج٢، ص ٢٠٤، باب تحریم فعل الواصلة الخ) و مثله فی سنن النسائی ج٢، ص ٢٨٠، وصل الشعر با لخرق.

## وینبتـــــانو ته د تور خضاب (رنګ) د ورکولو حکم

**سوال:** سپینو وینبتانو تور خضاب لګول شرعا جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** سپینو وینبتانو خصوصا ږیرې ته د تور رنګ (خضاب) د ورکولو په اړه د فقهاء کرامو له عامو روایتونو څخه د ممانعت طرف غالب معلومیږي۔ په د اسې حال کښې چه د صوفیاوو په نزد حرام دی۔ نو د دې لپاره اجتناب ترې ضروري دی۔ بیا هم په دښمن باندې د رعب د اچولو په خاطر د مجاهدینو لپاره رخصت پکښې موجود دی۔

لما قال العلامة علی بن سلطان محمد القاریؒ: ذهب اکثر العلماء الی کراهة الخضاب با لسواد و جنح النووی الی انها کراهة تحریم و ان من العلماء من رخص فیه فی الجهاد و لم یرخص فی غیره. (مرقاة المفاتیح ج٨، ص ٣٠٤)

قال العلامة ابن عابدینؒ: (قوله و یکره با لسواد) ای لغیر الحرب، قال فی الذخیرة اما الخضاب بسواد للغزو لیکون اهیب فی عین العدو فهو محمود با لاتفاق. (رد المحتار ج٦، ص ٤٢٢، کتاب الحظر و الاباحة، فصل فی البیع) و مثله فی الفتاوٰی الهندیة ج٥، ص ٣٥٩، الباب التاسع عشر فی الختان و الخصاء.

## د کوچنیانو په غوږونو کښې د ډیـــــرو اچولو حکم

**سوال:** په ځینو ځایونو کښې دا رواج دی چه د کوچنیانو یعني هلکانو په غوږونو کښې د سرو زرو ډیډۍ اچوي نو آیا شرعا د اسې کول جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔



**الجواب باسم ملهم الصواب:** نبي کریمﷺ د سړیو لپاره سره زر او د وریښمو استعمال ممنوع او حرام ګرځولی دی۔ البته د ښځو لپاره ئې استعمال جائز دی۔ نو د دې لپاره د سرو زرو ډیډۍ د بالغ او نابالغ دواړو لپاره ممنوع او حرامې دي۔ او د نابالغ په غوږونو کښې د ډیډۍ د اچولو ګناه په ولي الدینو یا په سرپرست باندې ده۔

لما ورد فی الحدیث: عن ابی موسی الاشعریؓ: ان النبیﷺ قال احل الذهب و الحریر للاناث من امتی احرم علی ذکورها. (رواه مشکٰوة عن الترمذی ج٢، ص ٣٧٥، کتاب اللباس، الفصل الثانی)

قال العلامة علاؤ الدین ابی بکر بن مسعود الکاسانی رحمه الله: و منها الذهب لان النبیﷺ جمع بین الذهب و الحریر فی التحریم علی الذکور. (بدائع الصنائع ج٥، ص ١٣٢، کتاب الاستحسان)

لما قال العلامة التمرتاشیؒ: و کره الباس الصبیّ ذهبا او حریراً فان ما حرم لبسه و شربه حرم الباسه و اشرابه. (تنویر الابصار علی صدر رد المحتار ج٦، ص ٣٦٢، کتاب الکراهیة)

## د پګـــــړۍ د شملې اندازه

**سوال:** په شریعت مطهره کښې د پګړۍ د شملې اندازه څومره ده او په کومې خوا کښې ئې پرېښودل په کار دي۔ یعني مخکښې خوا ته او که شاته؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د پګړۍ تړل نبوي سنت دي۔ نبي کریمﷺ د عمامه مبارکې شمله به اکثره شاته د دوو اوږو تر منځ پرېښودله او د شملې د اندازې په باره کښې د فقهاء کرامو رأیې مختلفې دي۔ د ځینو په نزد یوه لویشت او د ځینو په نزد د ملا تر نیمایي پورې او د ځینو په نزد د ناستې تر ځایه پورې ده۔

کما فی الهندیة: ندب لبس السواد و ارسال ذنب العمامة بین الکتفین الی وسط الظهر کذا فی الکنز و اختلفوا فی مقدار ما ینبغی ذنب العمامة منهم من قدر شبراً و منهم من قال الی وسط الظهر و منهم من قال الی موضع الجلوس. (الفتاوٰی الهندیة ج٥، ص ٣٣٠، الباب التاسع فی اللبس)

لما قال العلامة ابن البزاز الکردریؒ: و یستحب ارسال ذنب العمامة بین کتفیه الی وسط الظهر و قیل الی موضع الجلوس و قیل مقدار شبر. (البزازیة علی هامش الهندیة ج٦، ص ٣٦٨، کتاب الکراهیة، الباب السابع فی اللبس) و مثله فی رد المحتار ج٦، ص ٣٥٥، کتاب الکراهیة، فصل فی اللبس.

## د مسلمانانو لپاره د نیکټایي اچول جائز نه دي

**سوال:** ځینې غرب وهلي مسلمانان په تعلیمي ادارو او حکومتي دفترونو یا په عامې معاشرې کښې نیکټایي اچوي۔ آیا د مسلمانانو لپاره د نیکټایي تړل یا اچول شرعا جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د نیکټایي استعمال قطعا د مسلمان له شان سره نه ښایي۔ علماء کرام فرمایي چه نیکټایي د صلیب نښانه ده او صلیب د نصاراوو مذهبي شِعار دی۔ له دې وجهې د

مسلمانانو لپاره د نیکټایي اچول له کفارو سره د مشابهت مترادف دی۔ په د اسې حال کښې چه الله تعالی او نبي کریم ﷺ د مسلمان قوم لپاره د کافرانو سره مشابهت منع کړی دی۔ او د نبي کریم ﷺ مبارک ارشاد دی چه د قیامت په ورځ انسان له هغه قوم سره پورته کیږي چه په دنیا کښې ئې له کوم قوم سره مشابهت غوره کړی وي۔ د دې لپاره د نیکټایي اچول د مسلمان لپاره جائز نه دی۔

لما قال الله تبارك و تعالى: وَلَا تَرْكَنُوْا اِلَى الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا فَتَمَسَّكُمُ النَّارُ. (سورة هود، آيت ۱۱۳)

لما ورد فی الحدیث: عن ابن عمرؓ قال قال النبی ﷺ من تشبّه بقوم فهوَ منهم. (ابو داؤد ج۲، ص۲۰۳، کتاب اللباس)

و ایضاً: عن عائشه ان رسول الله ﷺ کان لا یترک فی بیته شیأً فیه تصلیب الاقصبة. (ابو داؤد ج۲، ص۲۱۶، باب فی الصلیب فی الثوب)

## غابنونو ته د سپينو زرو د پوښ ورکولو حکم

**سوال:** ځیني خلك خپلو غابنونو ته د مضبوط والي او ښکلولي لپاره د سرو یا سپينو زرو پوښ د اسې ورکوي چه د بیا لپاره ئې نه شي لرې کولی۔ نو آیا په غابنونو کښې د سپينو زرو د ا ډول استعمال جائز دی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په اسلام کښې د سړیو لپاره د سرو زرو استعمال که په هر شکل کښې وي جائز نه دی لیکن په شریعت کښې د سړیو لپاره د سپينو زرو استعمال جائز ګرځول شوی دی۔ لهذا د غابنونو د مضبوط والي لپاره د سپينو زرو استعمال شرعاً څه پروا نه لري۔

لما قال العلامة ابی بکر الکاسانیؒ: اما شد السن المتحرک بالذهب لا یجوز...... و لو شدها بالفضة یجوز بالاجماع. (بدائع الصنائع ج۵، ص۱۳۲، کتاب الاستحسان)

قال العلامة ابن نجیمؒ: و لا یشد الاسنان بالذهب و لو جدع انفه لا یتخذ انفاً من الذهب و یتخذها من الفضة. (البحر الرائق ج۳، ص۱۸۶، کتاب الکراهیة) و مثله فی الفتاوی الهندیة ج۵، ص۳۳۰، الباب التاسع فی اللبس..... الخ.

## ږیرې ته د نکریزو د ورکولو حکم

**سوال:** ځیني خلك سپینې ږیرې ته نکریزې ورکوي۔ آیا ږیرې ته نکریزې ورکول شرعاً جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** سر او یا ږیرې ته زیړ خضاب یا نکریزې ورکول شرعاً مرخص دي بلکه فقهاوو ښه هم بللي دی۔

لما فی الهندیة: و عن الامام ان الخضاب حسن لکن فی الحناء و الکتم و الوسمة و اراد به اللحیة و شعر الرأس. (الفتاوی الهندیة ج۵، ص۳۵۹، الباب التاسع عشر فی الختان و الخصاء)

قال العلامة قاضی خانؒ: و الخضاب با لحناء و الوسمة حسن. (فتاوی قاضی خان علی هامش الهندیة ج۳، ص۴۱۲، کتاب الکراهیة)



و مثله ورد فی الحدیث: عن عبد الله بن موهب قال دخلت علی ام سلمةؓ فاخرجت الینا شعراً من شعر النبی ﷺ مخضوباً. (الصحیح البخاری ج۲، ص۸۷۵، باب ما یذکر فی الشیب)

## د پرتاګه اوربه خولې له ښنګرې څخه لاندې د پرېښودلو حکم

**سوال:** ځیني خلك د پرتاګه اوربه خولې له ښنګرې څخه لاندې د پرېښودو عادتي دي البته د لمانځه په وخت کښې ئې پورته کوي۔ نو آیا د اوربه خولې پورته کول یوائې تر لمانځه پورې اړه لري او که هر وخت د ښنګرې ښکارول ضروري دي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** تکبر چونکه د باري تعالی خاصه ده له دې وجهې د بندګانو لپاره متکبرانه ناسته ولاړه او لباس استعمالول مناسب نه دي۔ کمیس، پرتوګ، څادر او د اسې نورو له ښنګرې څخه په ښکته زړوندول په عامه توګه د تکبر او غرور نښه وي د دې لپاره نبي کریم ﷺ ترې منع فرمایلې ده۔ کمیس، پرتوګ او د اسې نور لکه څرنګه چه په لمانځه کښې ئې لاندې زړوندول حرام او ممنوع دي همد ارنګه له لمانځه څخه د باندې هم حرام او ممنوع دي۔

لما ورد فی الحدیث: عن ابی هریرة رضی الله عنه قال رسول الله ﷺ ما اسفل من الکعبین من الازار فی النار. (مشکوٰة المصابیح ج۲، ص۳۹۵، کتاب اللباس)

لما فی الهندیة: ینبغی ان یکون الازار فوق الکعبین الی نصف الساق و هٰذا فی حق الرجال و اما النساء فیرخین ازوارهن اسفل من کعب یستتر ظهر قدمهن. (الفتاوی الهندیة ج۵، ص۳۳۳، الباب التاسع فی اللبس) و مثله فی الصحیح البخاری ج۲، ص۸۶۱، کتاب اللباس، باب من جر ازاره من غیر خیلاء.

## د ورېښمیني لنګۍ د استعمالولو حکم

**سوال:** په ځینو ځایونو کښې خلك ورېښمیني لنګۍ استعمالوي۔ نو آیا د سړیو لپاره د ورېښمیني لنګۍ استعمالول جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** لکه څرنګه چه نبي کریم ﷺ ورېښم او سره زر په سړیو باندې حرام ګرځولي دي له دې وجهې د ورېښمو استعمال که د جامو په شکل کښې وي یا د لنګیو په شکل کښې په حراموالي کښې یو برابر دي۔

لما ورد فی الحدیث: عن ابی موسی الاشعریؓ: ان النبی ﷺ قال احل الذهب و الحریر للاناث من امتی و حرّم علی ذکورها. (مشکوٰة المصابیح ج۲، ص۳۷۵، کتاب اللباس، الفصل الثانی)

قال ابن نجیم المصریؒ: حرم للرجل لا للمرأة لبس الحریر الا قدر اربع اصابع. (البحر الرائق ج۸، ص۱۸۹، کتاب الکراهیة، فصل فی اللبس) و مثله فی تنویر الابصار علی صدر رد المحتار ج۶، ص۳۵۱، کتاب الکراهیة، فصل فی اللبس.

## د سرو زرو او سپينو زرو د لوښو د استعمال حکم

**سوال:** نن صبا ځیني خلك د خوراك او څښاك لپاره د اسې لوښي استعمالوي چه له سرو یا سپينو زرو څخه جوړ شوي وي۔ نو آیا د شریعت له مخې د یوه مسلمان لپاره د سرو یا سپينو زرو د

لوښي استعمال جائز دی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د نبي کریمﷺ د تعلیماتو په رڼا کښې د مسلمان لپاره د سادګۍ او بې تکلفي خبرې راغلي دي۔ د زرو په لوښو کښې خوراك او څښاك د تکلف او تکبر ښکارول مقصود وي نو د دې لپاره نبي کریمﷺ د دې ډول لوښو له استعمال څخه منع فرمایلې ده او د اسې لوښو استعمال شرعا جائز نه دی۔

عن حذیفةؓ قال نهانا النبیﷺ ان تشرب فی آنیة الذهب و الفضة و ان ناکل فیها و عن لبس الحریر و الدیباج و ان نجلس علیه. (الصحیح البخاری ج۲، ص۸۶۸، کتاب اللباس، باب مس الحریر من غیر لبس)

قال العلامة ابن نجیمؒ: و کره الاکل و الشرب و الادهان و التسطیب فی اناء ذهب و فضة للرجال و للنساء. (البحر الرائق ج۸، ص۱۸۵، کتاب الکراهیة) و مثله فی بدائع الصنائع ج۵، ص ۱۳۰، کتاب الاستحسان.

## د ښځو لپاره د اوسپنې د ګوتې استعمال جـــــائز نه دی

**سوال:** ځینې ښځې د سرو او سپینو زرو څخه پرته د اوسپې او نورو شیانو ګینه لکه ګوتې او د اسې نور شیان استعمالوي۔ آیا د ښځو لپاره د اوسپنې ګوتې او د اسې نورو استعمال جائز دی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په اسلام کښې د ښځو لپاره د سرو او سپینو زرو ګوتې او ګینې اګر که جائزې دي لیکن له دې څخه پرته د اوسپنې، پیتل، سلور او د اسې نورو شیانو ګوتې او نورې ګینې جائزې نه دي۔

قال العلامة التمرتاشیؒ: و لا یتختم بغیرها کحجر و ذهبٍ و حدیدٍ و صفر و رصاص و زجاج و غیرها لما مر. (تنویر الابصار علی صدر رد المحتار ج۶، ص ۳۶۰، کتاب الکراهیة، فصل فی اللبس)

قال فی الهندیة: و التختم با لحدید و الصفر و النحاس مکروه للرجال و النساء فافهم. (الفتاوی الهندیة ج۵، ص۳۳۵، الباب العاشر فی استعمال الذهب و الفضة) و مثله فی البحر الرائق ج۸، ص ۱۹۱، کتاب الکراهیة، فصل فی اللبس.

## په جـــــامو کښې د سرو زرو د تنیو د استعمالولو حکم

**سوال:** په جامو کښې له عامو تنیو څخه پرته د سرو زرو تنیو لګول هم جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په اسلام کښې د سرو زرو او وریښمو استعمال د سړیو لپاره ناجائز او ممنوع دي۔ نبي کریمﷺ د خپل امت په سړیو باندې د دغو دواړو شیانو استعمالول حرام ګرځولي دي۔ لیکن فقهاء کرامو تصریح کړې ده چه سړی که چېرته د وریښمو یا سرو زرو تنۍ پخپلو جامو کښې استعمال کړي نو اګر که اسراف به وي لیکن حرام نه دي۔

لما قال العلامة الحصکفیؒ: و فی التاتارخانیة عن السیر الکبیر لا بأس بازراء الدیباج و الذهب. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۵، ص ۲۵۰، کتاب الحظر و الاباحة، فصل فی اللبس)

قال العلامة برهان الدین المرغینانیؒ: و لا بأس بمسمار الذهب یجعل فی حجر الفص ای فی ثقبه لانهٗ تابع کا لعلم فی الثوب فلا یعد لابساله. (الهدایة ج۴، ص۴۵۷، کتاب الکراهیة، فصل فی اللبس)



## د ســـــړیو لپاره د سرو زرو ګوتیې د استعمالولو حکم

**سوال:** په ځینو ځایونو کښې سړي هم د سرو زرو ګوتیې استعمالوي خصوصاً د واده په وخت کښې د خسر د کور له خوا څخه د تحفې په توګه د سرو زرو ګوتې ورکول کیږي نو آیا د سړیو لپاره د د اسې ګوتې استعمالول جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** نبي کریمﷺ سره زر او وریښم د خپل امت په سړیو باندې حرام کړي دي۔ سره زر که د ګوتې په شکل کښې وي او یا د نورو ګینو په شکل کښې د سړیو لپاره حرام دي۔ له دې وجهې په اسلام کښې د سړیو لپاره د سرو زرو د استعمالولو هیڅ ګنجائش نشته۔

لما قال فی الهندیة: التختم با لذهب حرام فی الصحیح کذا فی الوجیز لکردری. (الفتاوی الهندیة ج۵، ص۳۳۵، الباب العاشر فی استعمال الذهب و الفضة)

قال العلامة ابن نجیمؒ: التختم با لذهب حرام. (البحر الرائق ج۸، ص ۱۹۰، کتاب الکراهیة، فصل فی اللبس) و مثله فی البزازیة علی هامش الهندیة ج۶، ص۳۶۸، کتاب الکراهیة، فصل السابع فی اللبس.

## د سپینو زرو د ګوتو له ضـــــرورت پرته استعمال مناسب نه دي

**سوال:** ځینې علماء کرام فرمایي چه د سپینو زرو د ګوتو د استعمال اجازه یوائې د قاضي او حاکم لپاره ده او د هر یو لپاره د ا اجازه نشته۔ آیا په رښتیا هم د سپینو زرو ګوتې یوائې د حاکم او قاضي لپاره روا دي او که هر څوك ئې استعمالولی شي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** حاکم او قاضي ته چونکه د ا ضرورت وي چه د خلکو په اسنادو باندې مهرونه لګوي او په مخکښې زمانو کښې د ا مهر به په ګوتې وه۔ نو د دې لپاره هغو د ا ډول ګوتې استعمالولې، لیکن فقهاوو فرمایلي دي چه له قاضي او حاکم څخه پرته ئې نور خلك هم استعمالولی شي لیکن بهتره د ا ده چه پرته له ضرورت څخه دې نه استعمالوي او د استعمال په صورت کښې دې باید د ښائست او تکبر له نیت څخه پرهیز وکړي۔

قال العلامة ابن عابدینؒ: و ان تختم با لفضة قالوا ان قصد به یکره و ان قصد به الختم و نحوه لا یکره. (رد المحتار ج۶، ص۳۵۹، کتاب الکراهیة، فصل فی اللبس)

لما فی الهندیة: یجوز التختم با لفضة اذا کان علی هیئة الرجال اما اذا کان علی هیئة النساء یکره....... و یکره للرجل بما سوی الفضة. (الفتاوی الهندیة ج۵، ص۳۳۵، الباب العاشر فی استعمال الذهب و الفضة) و مثله فی البزازیة علی هامش الهندیة ج۶، ص۳۶۸، کتاب الکراهیة الباب السابع فی اللبس.

## د ستیل (نِکـــــل) او اوسپنې د ګینو د استعمال حکم

**سوال:** نن صبا ځینې خلك د سرو او سپینو زرو څخه علاوه د ستیل، اوسپنې، جص او د اسې نورو شیانو ګینې استعمالوي۔ نو آیا د دې ډول زیوراتو استعمال شرعاً جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په شریعت مطهره کښې د ښځو لپاره د سرو او سپینو زرو هر ډول او ګېنې جائزې دي په د اسې حال کښې چه د سړیو لپاره یو ائحې د سپینو زرو استعمال جائز شوي دي۔ او د سرو او سپینو زرو څخه پرته د نورو اوسپنیزو زیوراتو استعمال مکروه دی۔ له دې وجهې باید د اسې زیورات یا ګېنې استعمال نه کړای شي۔

قال فی الہندیة: و التختم با لحدید و الصفر و النحاس مکروہ للرجال و النساء فافهم. (الفتاوی الهندیة ج۵، ص۳۳۵، الباب العاشر فی استعمال الذهب و الفضة)

قال العلامة التمرتاشیؒ: و لا یتختم بغیرها کحجر و ذهبٍ و حدیدٍ و صفر و رصاص و زجاج و غیرها لما مر. (تنویر الابصار علی صدر رد المحتار ج٦، ص۳٦۰، کتاب الکراهیة، فصل فی اللبس) و مثله فی البحر الرائق ج۸، ص۱۹۱، کتاب الکراهیة، فصل فی اللبس.

## ښځو ته د سـړیو غونډې د ویښتانو جوړولو حکم

**سوال:** نن صبا ښځې د سړیو غونډې ویښتان جوړوي او بیائې یو ډول فیشن بولي۔ نو آیا د ښځو لپاره د دې ډول ویښتانو جوړول شرعا جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** اسلام ښځې سړیو سره او سړي ئې له ښځو سره له مشابهت څخه منع کړي دي او چه څوک ئې کوي هغوی ئې د لعنت مستحق ګرځولي دي نو ځکه ښځو ته د اسې هیئت جوړول چه له سړیو سره ئې مشابهت کیږي ناجائز او حرام دي۔ او همد ارنګه ښځو ته د اسې ویښتان جوړول هم حرام او موجب د لعنت دي چه له مخې ئې له سړیو سره مشابه کیږي۔

لما ورد فی الحدیث: عن ابن عباس رضی اللّٰه عنه قال قال النبیﷺ لعن اللّٰه المتشبهین من الرجال با لنساء و المتشبهات من النساء با لرجال. (مشکٰوة المصابیح ص۳۸۰، کتاب النکاح، باب الرجل)

و فی صحیح البخاری: عن ابن عباس رضی اللّٰه عنه قال لعن النبیﷺ المتشبهین من الرجال با لنساء و المتشبهات من النساء با لرجال. (صحیح البخاری ج۲، ص۸۷٤، کتاب اللباس، باب المتشبهین با لنساء و المتشبهات با لرجال) و مثله فی سنن ابی داؤد ج۲، ص۲۱۰، کتاب اللباس، باب فی لباس النساء.

## د لویو لویو نوکانو د پرېښودلو حکم

**سوال:** نن صبا د لویو لویو نوکانو د پرېښودلو رواج دی خصوصا ښځې د ډول او سینګار په توګه خپل نوکان اوږدوي۔ نو آیا د اسې کول جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** شریعت مقدسه د نوکانو او د اسې نورو پرې کول د فطرت (طبیعت) په امورو کښې ګڼلی دی او د پرې کولو لپاره ئې وخت او اندازه هم مقرره کړې ده۔ یعنې په هفتې کښې یو ځل د نوکانو پرې کول مستحب دي او تر پنځلسو ورځو پورې ئې پرېښودل جائز لیکن له دې څخه زیات پرېښودل ئې مکروه دي چه له مخې ئې انسان په ګناه کښې مبتلا کیږي۔ نو د دې لپاره د ښځو او سړیو لپاره د فیشن (ډول او سینګار) په توګه د نوکانو اوږدول مکروه دي۔



قال العلامة التمرتاشی رحمه اللّٰه: (و یستحب قلم اظافیره یوم الجمعة و کونه بعد الصلٰوة افضل الا اذا اخره الیه تاخیراً فاحشاً فیکره لان من کان ظفره طویلاً کان رزقه ضیقاً الخ.(تنویر الابصار مع شرحه الدر المختار ج۵، ص۲۸۷، کتاب الحظر و الاباحة، فصل فی النظر و المس)

و فی الهندیة: الافضل ان یقلم اظفاره و یخفی شاربه و یحلق عانته و ینظف بدنه با لاغتسال فی کل اُسبوع مرة فان لم یفعل ففی کل خمسة عشر یوماً و لا یعذر فی ترکه وراء الاربعین فا لاُسبوع هو الافضل الخ. (الفتاوی الهندیة ج۵، ص۳۵۷، کتاب الکراهیة، الباب التاسع عشر فی الختان و الخصاء الخ) و مثله فی فتاوٰی قاضی خان علی هامش الهندیة ج۳، ص٤۱۱، کتاب الحظر و الاباحة، فصل فی الختان.

## د غیـــر ضروري ویښتانو د پاکولو لپـــاره د ویښتانو د صفا کوونکي پوډر د استعمـــال حکم

**سوال:** آیا د سړیو لپاره د غیر ضروري ویښتانو د پاکولو لپاره پترې ضروري ده او که د ویښتانو د صفا کولو پوډر هم استعمالولی شي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د سړیو لپاره د غیر ضروري ویښتانو له منځه وړل په پترې یا چړې باندې ضروري ده او همدا مسنونه طریقه هم ده۔ د کیمیکل پوډرو استعمالول اګر که جائز دي لیکن له کراهیت څخه خالي نه دي۔ بیا هم د ښځو لپاره ئې د استعمالولو اجازه شته۔

قال العلامة عبد الحی الکهنویؒ: هل یجوز قطع شعر العانة با لمقراض؟ الاستبشار هو خلاف السنة. قال الملا علی القاریؒ فی المرقاة: قال ابن الملك لو ازال شعرها بغیر الحلق لا یکون علی وجه السنة و فیه ان ازالته قد یکون با لنورة و قد ثبت انهٗ علیه الصلٰوة و السلام استعمل النورة علی ما ذکره السیوطیؒ فی رسالته نعم لو ازالها با لمقراضة لا یکون آتیا للسنة علی وجه الکمال. و اللّٰه اعلم. (نفع المفتی و السائل ص۱۳۰/۱۳۱، کتاب الحظر و الاباحة، ما یتعلق با لنوم و القیام...... الخ)

الافضل ان یقلم اظفاره و یخفی شاربه و یحلق عانته........ و بعد اسطر قال و یبتدئ فی حلق العانة من تحت السرة و لو عالج با لنورة فی العانة یجوز. (الفتاوی الهندیة ج۵، ص۳۵۷/۳۵۸، کتاب الکراهیة، الباب التاسع عشر فی الختان و الخصاء الخ) و مثله فی الدر المختار و رد المحتار ج۵، ص۲۸۸، کتاب الحظر و الاباحة، فصل فی البیع.

## د مصنوعي وروځو د جوړولو حکـــم

**سوال:** نن صبا ځینې ښځې د ښائست لپاره په مصنوعي توګه وریځې (آبرو) جوړوي چه له مخې ئې له خپلو وریځو څخه واړه ویښتان بلکه ځینې لوی لوی ویښتان هم باسي نو آیا د ښځو لپاره د اسې کول جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** رسول اللّٰهﷺ په د اسې ښځو باندې لعنت ویلی دی چه له خپلو ویښتانو سره نور ویښتان لګوي چونکه د زیب او زینت لپاره د وریځو په جوړولو کښې دا کارونه خامخا ترسره کیږي نو د دې لپاره ښځو ته د د اسې کولو اجازه نشته۔

لما ورد فی الحدیث: عن ابن عمرؓ قال لعن النبیﷺ الواصلة و المستوصلة و الواشمة و المستوشمة. (الصحیح البخاری ج۲، ص۸۷۹، کتاب اللباس)

قال العلامة الحصکفیؒ: و وصل الشعر بشعر حرام سواء کان شعرها او شعر غیرها لقوله ﷺ لعن الله الواصلة و المستوصلة و الواشمة و المستوشمة و الواشرة و المستوشرة و النامصة و المتنمصة الخ. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۵، ص۳۵۸، کتاب الکراهیة، الباب التاسع عشر فی الختان و الخصاء و قلم الاظفار الخ.

## د ښځو په مخ باندې د شنه شویو ویښتـــــــانو حکم

**سوال:** که چېرته د یوې ښځې په مخ باندې د سړیو غوندې تور ویښتان را شنه شي نو آیا خپل مخ ترې صفا کولی شي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته د یوې ښځې په مخ کښې غیر معتاد (بې عادته) ویښتان را شنه شي چه له مخې ئې د ښځې حسن او جمال (ښائست) خرابیده نو فقهاء کرامو دا اجازه ورکړې ده چه له خپل مخ څخه غیر معتاد تور ویښتان صفا کړي۔

قال العلامة ابن عابدینؒ: تحت قوله (النامصة التی تنتف الشعر من الوجه) و لعله محمول علی ما اذا فعلته للتزیّن للاجانب و الا فلو کان فی وجهها شعر ینفر زوجها بسببه ففی تحریم ازالته بعد لان الزینة للنساء مطلوبة للتحسین الا ان یحمل علی ما لا ضرورة الیه لما فی نتفه با لتماص من الایذاء و فی تبیین المحارم ازالة الشعر من الوجه حرام الا اذا نبت للمرأة لحیة او شوارب فلا تحرم ازالته بل تستحب الخ. (رد المحتار ج۵، ص۲٦٤، کتاب الحظر و الاباحة، فصل فی النظر و المس)

قال العلامة عبد الحی الکهنویؒ: الاستفسار: لو نبتت للمرأة لحیة ما ذا تفعل؟ الاستبشار یستحب نتفها و حلقها الخ. (نفع المفتی و السائل ص۱۰٦، کتاب الحظر و الاباحة، ما یتعلق با لنساء من الحیض و النفاس)

## د وسمې د استعمالولو حکم

**سوال:** جناب مفتي صاحب! زه د باجوړ د ملیشې د ملکنډ ایجنسۍ د تعلیماتو په شعبه کښې دنده تر سره کوم۔ په یوولسم جون ۱۹٦۵ء کښې د جُمعې د لمانځه په تقریر کښې یوه دیني عالم د وسمې خضاب د شرعي ممانعت په باره کښې هم خبرې وکړې۔ وروسته یوه سـړي له هغه څخه د قطعي دلیل او د کتاب د حوالې په باره کښې ترې پوښتنه وکړه۔ مونږ تر یوه حده پورې د جـــلالین شریف له حاشیې څخه څه نا څه ورته ثابته کړه (پاره ۵، رکوع ۱۸) لیکن د قطعي ځواب لپاره ستاسو خوا ته رجوع کوو۔ هیله ده چه تاسو په دې باره کښې مونږ له شرعي حکم څخه خبر کړی؟

(۲) په انګریزي طرز باندې سر جوړولو، د ږیرې لنډولو او خریلو په باره کښې د شریعت مطهره څه حکم دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** (۱) د محققینو علماء کرامو له تحقیقاتو څخه څرګندیږي چه پرته له



تور رنګ څخه سور، زیړ یا د کوم بل رنګ خضاب لګول مستحب دي۔ او خضاب نه لګول او ږیره پخپل حال سپینه پرېښودل هم جائز دي لیکن تور خضاب لګول ممنوع، ناجائز او ګناه لري۔ په فتاوٰی قاضي خان کښې دي چه "الخضاب با لحنٰی حسن انتهٰی" او په صحیح المسلم کښې له نبي کریمﷺ څخه روایت دی چه "غیروا هٰذا الشیب و اجتنبوا السواد" یعنې سپین والي ته تغیر ورکړی او له تور والي څخه پرهیز وکړی)۔ او په سنن ابي داؤد کښې له نبي کریمﷺ څخه روایت دی چه: یکون فی آخر الزمان قوم یخضبون با لسواد کحواصل الحمام لا یجدون رائحة الجنة.

"یعنې په آخرې زمانې کښې به د اسې خلك وي چه تور خضاب به لګوي لکه د کوترې د سینې د رنګ غوندې، د اسې خلك به د جنت بوی هم و نه وینې"

او په معجم طبراني کښې دي چه له نبي کریمﷺ څخه روایت دی چه "من خضب با لسواد سود الله وجهه یوم القیامة انتهی"

"یعنې کوم سړی چه ږیرې ته تور خضاب ورکوي نو د قیامت په ورځ به الله تعالی په تور مخ را پورته کوي"

او شیخ محدث د هلوي لمعات شرح مشکات کښې لیکي:

او په موطاء د امام محمدؒ کښې راغلي دي چه: لا نرٰی با لخضاب با لوسمة و الحناء و الصفرة باساً و ان ترکه ابیض فلا بأس بذٰلك کل ذٰلك حسن انتهٰی.

(۲) د ږیرې د اندازې په باره کښې د ځینو قوي او مشهورو روایاتو څخه دا څرګندیږي چه ږیره پخپل حالت پرېږدی۔ په حدیث شریف کښې راغلي دي چه: عن ابن عمرؓ ان رسول اللهﷺ قال اعفوا اللحٰی و احفوا الشوارب. (ترمذی ج۲، ص۱۰۰) (یعنې ږیرې اوږدوی او بریتونه کموی)

له دې برسیره د ابن عمر رضی الله عنه په نورو روایتونو کښې راغلي دي چه: عن ابن عمرؓ ان رسول اللهﷺ امر با حفاء الشوارب و اعفاء اللحٰی.

او امام ترمذي دواړو روایتونو ته حسن او صحیح او راویانو ته ئې ثقه ویلي دي۔ ټول حدیثونه د ږیرې په باره کښې مطلق راغلي دي او مطلق ئې د اعفا (زیاتولو) حکم ورکړی دی۔ چه له دې څخه د ږیرې د اوږدولو مسنون والی او مامور بهٖ والی څرګندیږي۔ د دې تر څنګ امام ترمذي یو بل روایت هم نقل کړی دی۔ ان النبیﷺ یأخذ من لحیته من عرضها و طولها. (الحدیث) چه له دې روایت څخه څرګندیږي چه نبي کریمﷺ ږیره له اوږدوالي او سور څخه پرې کوله۔

دې روایت لره امام ترمذي غریب بللی دی۔ او په سند باندې ئې جرح هم کړې ده۔ له دې پرته پخپله ابن عمر او ابو هریره رضی الله عنهما په باره کښې هم منقول دي چه دوی دواړو له ږیرې څخه زیاتی برخه پرې کوله۔ (ابو داؤد، نسایي، ابن ابي شیبه)

په هر حال د غو ټولو روایتونو چه نظر وشي نو څرګندیږي چه که چېرته څوك د ږیرې وهل هم وغواړي نو له یوه موټي څخه زیاتې شوې برخه وهلی شي۔ او له یوه موټي څخه د

ږیرې کمول د علماوو په اتفاق سره حرام دي۔ او که یو څوک د حضرت ابن عمر رضی الله عنه په پورتني روایتونو باندې عمل کول خوښ کړي نو له یوه موټي څخه خپله ږیره زیاتوله هم شي۔ دا دواړه صورتونه د سنتو خلاف نه دي۔

شیخ عبد الحق محدث دهلویؒ په لمعات شرح د مشکوٰة کښې له یوه موټي څخه زیاتو شویو ویښتانو د پرې کولو په باره کښې فرمایي چه که چېرته یو سړی خپله ږیره له یوه موټي څخه زیاته شوې برخه پرې کړي نو جائزه ده ځکه چه له ابن عمر رضی الله عنه څخه دا ثابته ده۔

امام شعبي او امام ابن سیرین هم دا خوښول چه له یوه موټي څخه د زیاتې ږیرې پرې کولو جواز ترې معلومیږي لیکن بلې خوا ته ځینو سلفو د ږیرې اوږدول خوښول لکه حضرت حسن بصريؒ حضرت عثمانؓ، حضرت قتادهؓ او د اسې نورو صحابه کرامو په باره کښې هم دا خبره راغلې ده۔ آن تر دې پورې چه امام غزالي رحمه الله پخپله د نبي کریم ﷺ په باره کښې دا تصریح کړې ده چه "و کان یعفی لحیته و یاخذ شاربه" یعنې حضور ﷺ به خپله ږیره مبارکه اوږدوله او بریتونه مبارك به ئې پرې کول۔ (احیاء العلوم ج۲، ص۳۸۳)

شیخ ابو بکر مالکي د ترمذي په شرح کښې فرمایي: ان ترك لحیته فلا حرج علیه. (شرح ابی بکر مالکیؒ ج۱۰، ص۲۱۹)

ملا علي قاري کوم چه د احنافو یو لوړ پوړی امام دی د ابن الملك په یوه روایت کښې د ږیرې اوږدول بهتر او غوره بللی دی۔ قال ابن الملك اما الاخذ من اطراف اللحیة من طولها و عرضها لتناسب محسن لکن المختار ان لا یاخذ منها شیئاً. (نفع قوت المغتذی حاشیة ترمذی ج۲، ص۱۰۰)

همدا ډول د شاه محمد اسحاق محدث دهلوي په باره کښې هم په نوموړې حاشیې کښې راغلي دي چه: قال عندی اخذ اللحیة ما فوق القبضة جائز لکن الاولی ترکها.

لنډه دا چه د دغو روایتونو او قولونو څخه د ږیرې اوږدول افضل، بهتر او مسنون معلومیږي او له کومو روایتونو څخه ئې چه له یوه موټي څخه د زیاتې ږیرې پرې کول څرګندیږي هغه هم پخپل ځای کښې صحیح دي۔ په روایتونو کښې تعارض نشته۔ حضرت الاستاذ شیخ التفسیر مولانا احمد علي لاهوري صاحب قدس الله سره العزیز اعفاء اللحیه په اطلاق باندې حمل کوي او اوږدول ئې افضل او بهتر ګڼي او له یوه موټي څخه زیاته شوې ږیره به ئې نه پرې کوله۔ د څو صحابهٔ کرامو، تابعینو او مشائخو نمونې د هغه په وړاندې موجودې وې چه له وجهې ئې ځینو علماء کرامو د یوه موټي په اندازې ږیرې ته له مسنون ویلو سره بهتره هم ګڼلې ده لیکن هغوی هم تر یوه موټي زیات اوږدولو ته ناجائز نه دي ویلي۔

(۳) د جناب نبي کریم ﷺ د دې مبارك ارشاد چه "من تشبه بقوم فهو منهم" له مخې د انګریزي ویښتانو جوړول ناجائز دي ځکه چه له کفارو سره تشبه پکښې راځي۔ فقط و الله اعلم



## په پي ټي "P.T" (سپورټ) کښې د نیکــــرو د اغوستلو حکم

**سوال:** جناب مفتي صاحب! زه په پي اې ایف (P.A.F) رسالپور کښې نوکر یم چېرته چه ټول نوکران نیکرونه اغوندي او فوجي مشقونه کوي چه له مخې ئې د ټولو ورنونه او د اسې نور د ستر ځایونه ښکاریږي۔ ما افسرانو ته وړاندیز وکړ چه لکه څرنګه چه په نیکر کښې اسلامي پرده نه پاتې کیږي او د اسلام حکم دا دی چه له نامه څخه واخله تر زنګنونو پورې اندامونه باید پټ وساتل شي د دې لپاره ما ته د تمرین په وخت کښې د پتلون د اغوستلو اجازه راکړی۔ په ځواب کښې ئې را ته وویل چه د دې خبرې د اثبات لپاره له قرآن مجید او یا له حدیثو څخه حواله وړاندې کړی۔ نو اوس ستاسو له حضور څخه هیله کوم چه زر تر زره د قرآن او حدیثو په رڼا کښې د دې مسئلې وضاحت وکړی۔ او که چېرته ئې مناسب بولی نو له یوه څخه د زیاتو حدیثونو حواله هم راکړی۔ او څرګنده دې وي چه مونږ نیکر پخپله خوښې باندې نه اغوندو بلکه د لوبو او نورو فوجي تمریناتو لپاره د نیکر اغوستل د حکومت له خوا څخه لازمي دي۔ هیله ده چه په دې اهمې مسئلې کښې مې خامخا لارښوونه وکړی۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د مسلمان لپاره د عورت پټول په هر حالت کښې فرض دي۔ او پرته له کوم شرعي عذر څخه ئې مخالفت د اسلامي قانون له مخې سخته ګناه ده۔ د قرآن او حدیث نصوص په دې خبرې باندې ګواه دي د دغو نصوصو له جملې څخه د الله تعالی یو مبارك ارشاد دی چه فرمایي: خُذُوْا زِيْنَتَكُمْ (الآیة) ای ما یواری عورتکم.

او د حضور ﷺ مبارك ارشاد دی چه: عن عبد الرحمٰن ابی سعید الخدریؓ عن ابیه ان رسول الله ﷺ قال لا ینظر الرجل الی عورة الرجل و لا المرأة الی عورة المرأة و لا یفضی الرجل الی الرجل فی ثوب واحدٍ و لا تفضی المرأة الی المرأة فی الثوب الواحد. (مسلم ج۱، ص۱۵٤)

د مسلم شریف د عورت د پټولو په باب کښې چه د رسول الله ﷺ څومره احادیث راغلي دي د هغو په شرح کښې علامه نووي رحمه الله لیکي چه په دې باب کښې د رسول الله ﷺ چه څومره حدیثونه دي له هغو څخه دا حکم ثابتیږي چه: ففیه تحریم نظر الرجل الی عورة الرجل و المرأة الی عورة المرأة و هٰذا لا خلاف فیه و کذٰلك نظر الرجل الی عورة المرأة و المرأة الی عورة الرجل حرام بالاجماع.

سړیو ته د سړیو عورت ته کتل او ښځو ته د ښځو عورت ته کتل حرام دي او په دې کښې کوم اختلاف نشته او همدارنګه سړیو ته د ښځو عورت ته کتل او ښځو ته د سړیو عورت ته کتل هم په اجماع سره حرام دي۔

اوس د سړي د عورت اندازه څومره ده یعنې د سړي د بدن څومره برخه په عامو حالاتو کښې عورت ده چه پټول ئې پرې فرض دي؟ نو دا هم په احادیثو سره ثابته ده او فقهاء کرامو ئې هم اندازه ټاکلې ده۔ قال علیه السلام: عورة الرجل بین سرته الی رکبته. (الحدیث) (اخرجه الحاکم فی

المستدرك) همد ارنګه امام نوويؒ ليکي: و اما ضبط العورة فعورة الرجل مع الرجل ما بين السرة و الركبة. او په الدر المختار کښې دي چه: و وجوبه عام و لو فى الخلوة على الصحيح الى قوله و هى للرجل ما تحت ركبته.

علامه شامي رحمه الله د دې په شرح کښې ليکي چه د سړي رکبه (زنګون) هم عورت دی لکه څرنګه چه ليکي: فالركبة من العورة لرواية الدار قطنى ما تحت السرة الى الركبة من العورة و لحديث علىؓ قال قال رسول اللهﷺ الركبة من العورة.

د دغو نصوصو او د فقهاء کرامو د عباراتو په رڼا کښې دا څرګنديږي چه سړي ته د عورت پټول فرض دي او په يوه حالت کښې ئې هم ښکارول جائز نه دي۔ فقط و الله اعلم

## د سـړيو لپاره د زيړ رنګ د جامو د اغوستلو حکم

**سوال:** جناب مفتي صاحب! د نن صبا ځوانه طبقه د زيړ رنګ لباس اغوندي۔ د اسلامي نقطه نظر له مخې د دې څه حکم دی؟ په وضاحت سره ئې ځواب راکړی ډيره مهرباني به مو وي؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** ځينې رنګونه داسې دي چه اسلام ئې له استعمال څخه مسلمانان منع کړي دي چه له هغو څخه يو هم زيړ رنګ دی۔ د نبي کريمﷺ په احاديثو کښې د دې رنګ د استعمالولو ممانعت راغلی دی نو د دې لپاره فقهاء کرامو د سړيو لپاره د زير رنګ د کاليو استعمالول مکروه ګرځولي دي۔

لما قال العلامة الحصكفى رحمه الله: و كره لبس المعصفر و المزعفر الاحمر و الاصفر للرجال الخ. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج٦، ص٣٥٨، كتاب الكراهية، باب اللبس)

لما نقل العلامة المفتى عبد القادر الرافعى: عن عبد الله بن عمرو بن العاص قال رأى رسول اللهﷺ علىّ ثوبين معصفرين فقال ان هٰذه من ثياب الكفار فلا تلبسها الخ.

و فى رواية المسلم رأى علىّ ثوبين معصفرين فقال ا امك امرتك لهٰذا قلتُ اغسلها قابل احرقها الخ. (التقريرات للرافعى ج٢، ص٣٠٦، فصل فى اللبس)



# بـــــاب التصاوير

## (د تصويرونو (عکسونو) احکام او مسئلې)

## د ښځو تصويرونو ته کتل او د هغو ساتل حـــــرام دي

**سوال:** نن صبا په بازارونو، دوکانونو او حجرو کښې د ښځو عکسونه لګيدلي وي۔ نو آيا دغو عکسونو ته کتل او له هغو څخه خوند اخيستل جائز دي او که څنګه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کله چه د مطلق روح لرونکو تصاويرو ايستل او ورته کتل او خوند ترې اخيستل حرام دي نو بيا د پرديو ښځو عکسونو ته کتل او خوند ترې اخيستل بعينهٖ همدې ښځې ته له کتلو سره برابره ده کوم چه ناجائز او حرام عمل دی.

لما رواه الامام محمد بن اسماعيل البخارىؒ: عن عبد الله بن مسعودؓ قال قال النبىﷺ لا تباشر المرأة المرأة فتنعتها لزوجها كانه ينظر اليها. (الصحيح البخارى ج٢، ص٧٨٨، باب لا تباشر المرأة المرأة)

لما رواه الامام ابو داؤد سليمان بن اشعث السجستانىؒ: عن ابن مسعودؓ قال قال رسول اللهﷺ لا تباشر المرأة المرأة لتنعتها لزوجها كانما ينظر اليها. (سُنن ابى داؤد ج١، ص٢٩٢، باب ما يومر بهٖ من غض البصر) و مثله فى مشكٰوة المصابيح ج١، ص٢٦٨، كتاب النكاح، الفصل الاول.

## د يوه جاندار (روح لرونکی) د تصوير حکم

**سوال:** د يوه ژوندي ساري تصوير جوړول شرعا جائز دي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د روح (ساه) لرونکو د تصويرونو اخيستل د خداوندي تخليق د شبيه د جوړولو سره برابر دي کوم چه ګناه کبيره ده۔ د دې لپاره د روح لرونکو شيانو د تصوير جوړول شرعا حرام او ناجائز دي۔

لما رواه الامام محمد بن اسمٰعيل البخارىؒ: عن عائشةؓ زوج النبىﷺ قالت قال رسول اللهﷺ ان اصحاب هٰذه الصور يعذبون يوم القيامة و يقال احيو ما خلقتم و قال ان البيت الذى فيه الصّور لا تدخله الملٰئكة. (الصحيح البخارى ج٢، ص٨٨١، باب من يدخل بيعاً فيه صورة)

لما رواه الامام مسلم بن الحجاج القشيرىؒ: عن نافع ان ابن عمرؓ اخبره ان رسول اللهﷺ قال الذين يصنعون الصّور يعذبون يوم القيامة يقال لهم احيوا ما خلقتم. (الصحيح المسلم ج٢، ص٢٠١، باب تحريم تصوير صورة الحيوان) و مثله فى مشكٰوة المصابيح ج٢، ص٣٨٥، باب التصاوير، الفصل الاول.

## په بټوه (کيسه) کښې د کينښودل شوي عکس سره د لمانځه حکم

**سوال:** له يوه سړي سره خپل عکس دی کوم چه پوره هم نه دی بلکه نيمايي عکس دی او په بټوې کښې ئې بند کړی او اينښی ئې دی۔ آيا په جيب کښې د اينښودل شوي عکس سره ئې

لمونځ کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** نبي کریمﷺ د عکسونو ایستل په هر حال کښې منع کړي دي چېرته چه په دیوالونو کښې د ساه لرونکو شیانو تصویرونه زوړند شوي وي هلته لمونځ مکروه دی۔ لیکن که تصویر کوچنی وي او په بټوه یا د اسې نورو شیانو کښې ئې بند کړی وي او په جیب کښې ئې ایښی وي نو بیا لمانځه ته کوم تاوان نه رسوي۔

لما قال شیخ الاسلام علاؤ الدین الحصکفی رحمه اللّٰه: و لا یکره لو کانت تحت قدمیه او فی یده او فی بدنه لانها مستورة بثیابه او علٰی خاتمه بنقش غیر مستبین. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج ۱، ص ۶۰۷، مکروهات الصلٰوة)

قال ابراهیم الحلبیؒ: اما اذا کانت مقطوعة الرأس یعنی به اذا لم یکن لهٗ رأس او کان فمحاه بخیط او کانت صغیرةً لا تبدو للناظر اذا کان قائماً و هی علی الارض ای لا تتبین تفاصیل اعضائها فلا یکره حینئذٍ. (کبیری ص ۳۵۹، مکروهات الصلٰوة) و مثله فی الهندیة ج ۱، ص ۱۰۶، الفصل الثانی فیما یکره فی الصلٰوة.

## د تبرک لپاره د یوه پیر یا بزرګ سړي د تصویر زوړندولو حکم

**سوال:** یوه سړي پخپل دوکان کښې د برکت او عافیت د لاس ته راوړو لپاره د خپل مرشد عکس لګولی دی۔ آیا د ده د اسې عمل د شریعت له مخې جائز دی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د حضور نبي کریمﷺ د تعلیماتو نه دا څرګندیږي چه د کوم بزرګ د عکس په لګولو کښې هیڅ ډول خیر او برکت نشته بلکه په ګناه کښې د عام سړي له تصویر سره برابر دی۔ په حدیث کښې راغلي دي چه په کوم کور یا دوکان کښې د (عام سړي یا بزرګ) عکس وي هغه کور یا دوکان ته د رحمت ملائکې نه داخلیږي۔ له دې وجهې د پورته ذکر شوي مقصد لپاره د کوم بزرګ د عکس له لګولو څخه پرهیز ضروري دی۔

لما ورد فی الحدیث: عن عائشةؓ قالت دخل علیّ رسول اللّٰهﷺ و انا مستترة بقرام فیه صورة فتلوّن وجهه ثم تناول الستر فهتکه ثم قال ان اشد الناس عذاباً یوم القیامة الذین یشبهون بخلق اللّٰه. (الصحیح المسلم ج ۲، ص ۲۰۰، باب تحریم صورة الحیوان)

لما ورد فی الحدیث: عن ابی هریرةؓ قال استاذن جبریل علی النبیﷺ فقال ادخل فقال کیف ادخل و فی بیتك ستر فیه تصاویر فامّا ان انقطع رؤسها او تجعل بساطاً یوطا فانا معشر الملائکة لا ندخل بیتاً فیه تصاویر. (سُنن النسائی ج ۲، ص ۳۰۱، ذکر اشد الناس عذاباً) و مثله فی فتح الباری ج ۱۰، ص ۳۲۲، باب لا تدخل الملائکة بیتاً فیه صورة.

## د ښائست په نیت په کور کښې د نیمايي عکس لګولو حکم

**سوال:** د ضرورت له وجهې که چېرته نیم عکس جوړ شي او بیا وروسته د کور د زینت او ښائست په نیت په دیوالونو کښې ولګول شي نو آیا شرعا دا عمل جائز دی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** متاخرینو فقهاء کرامو د ضرورت له مخې د نیم عکس د اخیستلو اجازه ورکړې ده لیکن د ضرورت لپاره جوړ شوی عکس او تصویر به د ضرورت په کارونو کښې استعمالیږي۔ او د کورو په دیوالونو کښې ئې د زیب او زینت په غرض لګول جائز نه دي۔

لما ورد فی الحدیث: عن ابی طلحة عن النبیﷺ لا تدخل الملائکة بیتاً فیه کلبٌ و لا صورة. (الصحیح المسلم ج ۲، ص ۲۰۰، باب تحریم التصویر صورة الحیوان)

قال الامام النوویؒ: قال العلماء سبب امتناعهم من بیتٍ فیه صورة کونها معصیة فاحشه و فیها مضاهاة لخلق اللّٰه. (شرح المسلم للامام النووی ج ۲، ص ۲۰۰، باب تحریم تصویر) و مثله فی سُنن النسائی ج ۲، ص ۳۰۱، ذکر اشد الناس عذاباً.



## د ودونو او د اسې نورو تقریباتو د عکسونو اخیستل

**سوال:** ځینې خلك په ودونو او د اسې نورو تقریباتو او جشنونو کښې عکاسي کوي۔ آیا په د اسې مواقعو کښې د عکسونو اخیستل جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د یوه روح لرونکي شي د عکس له ایستلو څخه نبي کریمﷺ منع فرمایلې ده۔ اګر که په ودونو کښې وي یا نورو جشنونو کښې۔ په دې ډول عمل کښې یو خو د نبي کریمﷺ مخالفت دی او بل پرته له ضرورت څخه د مال ضائع کېدل دي چه دا هم یو منع شوی عمل دی۔ او نبي کریمﷺ د قیامت په ورځ د عکاسانو لپاره د سخت ترینې سزا وړاند وینه کړې ده۔

لما ورد فی الحدیث: عن عائشةؓ قالت دخل علیّ رسول اللّٰهﷺ و انا مستترة بقرام فیه صورة فتلون وجهه ثم تناول الستر......... ثم قال ان اشد الناس عذاباً یوم القیامة الذین یشبهون بخلق اللّٰه. (الصحیح المسلم ج ۲، ص ۲۰۰، باب تحریم تصویر الخ)

کما ذکر فی الحدیث: عن عبد اللّٰه بن عمرؓ ان رسول اللّٰهﷺ قال انّ الذین یصنعون هٰذه التصویر یعذبون یوم القیامة یقال لهم احیوا ما خلقتم. (فتح الباری ج ۱۰، ص ۳۱۶، باب نقض الصور) و مثله فی شرح المسلم للنوویؒ ج ۲، ص ۲۰۰، باب تحریم التصویر.

## د کعبې مبارکې په عکسونو کښې د انسانانو د کوچني کوچني عکسونو حکم

**سوال:** په ځینو جوماتونو کښې د کعبې مبارکې عکسونه لګیدلي وي چه د حاجي صاحبانو ډیر واړه واړه عکسونه پکښې ښکاریږي کوم چه له نژدې څخه له کتلو پرته انساني عکسونه نه څرګندیږي۔ آیا د اسې تصویرونو کاغذونه په جوماتونو کښې لګول جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کوم انساني عکسونه چه دومره کوچني کوچني وي چه له ډیر نژدې څخه له کتلو پرته نه معلومیږي او له نژدې څخه د لیدلو مقصد دا دی چه د تصویر اندامونه په واضحه توګه نه څرګندیږي۔ نو د دې ډول د عکسونو حکم د عامو عکسونو غوندې نه دی، چه په باره کښې ئې سخت وعیدونه راغلي دي۔ له دې وجهې دا ډول منظرې په کورونو او

جوماتونو کښې د لګولو په صورت کښې کومه بدي نه لري۔ او نه پرې لمونځ خرابیږي۔

لما قال العلامة الحصکفیؒ: و لا یکره لو کانت تحت قدمیه او فی یده او فی بدنه لانها مستورة بثیابه او علی خاتمه بنقش غیر مستبین. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۶۰۷، مکروهات الصلوٰة)

قال ابراهیم الحلبیؒ: اما اذا کانت مقطوعة الرأس یعنی به اذا لم یکن لهٗ رأس او کان فمحاه بخیط او کانت صغیرةً لا تبدو للناظر اذا کان قائماً و هی علی الارض ای لا تتبین تفاصیل اعضائها فلا یکره حینئذٍ. (کبیری ص۳۵۹، مکروهات الصلوٰة) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۱۰۶، الفصل الثانی فیما یکره فی الصلوٰة.

## د جدیدو آلاتو (ټیلویژون، او وي سي آر) حکم

**سوال:** د نوي آلاتو یعنې ټیلویژون، ټیپ، او وي سي آر او د اسې نورو شیانو د آواز اوریدل او ورته کتل جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** جدید آلات پخپل ذات کښې استعمالول جائز دي لیکن په ټي وي او وي سي آر کښې لکه څرنګه چه د عکسونو د لیدلو برسیره نور فاحش شیان هم لیدل کیږي چه هغو ته کتل د یوه شریف مسلمان لپاره ډیره مشکله خبره ده۔ له دې وجهې د ټي وي او وي سي آر او د اسې نورو له کتلو نه باید هر مسلمان پرهیز وکړي۔

لما قال العلامة ابن عابدینؒ: (قوله کره کل لهو) ای کل لعب و عبث فا لثلاثة بمعنی واحد کما فی شرح التاویلات و الاطلاق شامل لنفس الفعل و استماعه کا لرقص و السخریة و التصفیق و ضرب الاوتار من الطنبور و البربط و الرباب و القانون و المزمار و الصنع و البوق فانها کلها مکروهة لانها زی الکفار و استماع ضرب دف و المزمار وغیره ذٰلک حرامٌ. (رد المحتار ج۶، ص۳۹۵، کتاب الحظر و الاباحة، فصل فی البیع)

رواه الامام محمد بن اسماعیل البخاریؒ: عن عبد اللّٰه بن مسعودؓ قال سمعت النبی ﷺ یقول ان اشد الناس عذاباً عند اللّٰه المصورون. (الصحیح البخاری ج۲، ص۸۸۰، باب عذاب المصوّرین یوم القیامة) و مثله فی البحر الرائق ج۸، ص۲۰۷، کتاب الکراهیة، فصل فی البیع)

## له تصویر لرونکې ګـــــــړۍ سره د لمانځه د ادا کولو حکم

**سوال:** که چیرته د چا په ګړۍ یا ګوتې کښې دومره کوچنی عکس وي چه ډیر په غور سره له کتلو پرته نه څرګندیده نو آیا د دې ډول ګړۍ سره د لمانځه ادا کول جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په اسلام کښې د عکسونو ساتل، ورته کتل او جوړول ئې ټول ممنوع دي ځکه چه نبي کریم ﷺ ترې منع فرمایلې ده۔ لیکن له دې څخه مراد هغه عکسونه دي چه ښکاره وي او له لرې څخه معلومیږي۔ په صورت مسئوله کښې په ګړۍ یا ګوتې کښې عکس په څرګنده توګه نه ښکاریږي له دې وجهې اګر که په د اسې تصویر سره لمونځ نه خرابیږي لیکن دا ډول ګړۍ په لاس کول مناسب نه دي۔

لما قال العلامة علاؤ الدین الحصکفیؒ: و لا یکره لو کانت تحت قدمیه او فی یده او فی بدنه لانها مستورة بثیابه او علی خاتمه بنقش غیر مستبین. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۶۰۷، فصل فی مکروهات الصلوٰة)



قال ابراهیم الحلبیؒ: اما اذا کانت مقطوعة الرأس یعنی به اذا لم یکن لهٗ رأس او کان فمحاه بخیط او کانت صغیرةً لا تبدو للناظر اذا کان قائماً و هی علی الارض ای لا تتبین تفاصیل اعضائها فلا یکره حینئذٍ. (کبیری ص۳۵۹، مکروهات الصلوٰة) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۱۰۶، الفصل الثانی فیما یکره فی الصلوٰة.

## د خوسۍ (د غوا د بچي) له پوستکي څخه د تصویر جوړولو حکم

**سوال:** جناب مفتي صاحب! د غواوو یا میښو په ساتونکو کښې دا رواج دی چه کله د کومې غوا یا میښې بچی مړ شي نو پوستکی ئې ترې وباسي او له پروړې یا بل شي څخه ئې ډکوي چه غوا ئې خپل بچی تصور کړي او په آسانۍ سره شیدې ورکړي۔ نو آیا شرعا دا ډول عمل د تصویر په حکم کښې داخل دی او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په صورت مسئوله کښې د خوسۍ په پوستکي باندې د تصویر تعریف نه صادقیږي او نه د تصویر په حکم کښې راځي۔ بلکه دا د ضرورت له وجهې قدرتي پیدا کړل شوی جسم په یو ډول محفوظې طریقې سره ساتل دي۔ نو د دې لپاره د تصویر په حکم کښې داخل نه دی او د ضرورت په وخت کښې د اسې کول مرخص دي۔

# باب الملاهي

## (د لوبو مسائل او احکام)

### د خوښیو په مراسمو کښې د نڅا، رقص او سندرو ویلو حکم

**سوال:** په ودونو او داسې نورو خوښیو په مراسمو کښې د نڅا، سندرو، سازونو او سرودونو شرعي حکم څه دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که د خوښیو مراسم وي او که عام مراسم په ټولو مواقعو کښې نڅا، سندرې، ډول او داسې نور سازونه او سروزونه شرعا حرام دي۔ بیا هم د ودونو په تقریباتو کښې یواځې د ډول وهل له سرنا څخه پرته مرخص دي۔

لما قال العلامة ابن البزاز الكردري: استماع صوت الملاهي كالضرب بالقضيب و نحوه حرام لقوله عليه السلام استماع الملاهي معصيةٌ و الجلوس عليها فسق و التلذذ بها كفر اى بالنعمة. (الفتاوى البزازية على هامش الهندية ج۶، ص۳۵۹، الباب الثالث فيما يتعلق بالمناهي)

رواه الامام محمد بن اسماعيل البخاري: عن ابن عباس وَ مِنَ النَّاسِ مَنْ يَّشْتَرِىْ لَهْوَ الْحَدِيْثِ (سورة لقمان، آيت ۶) قال الغناء و اشباهه. (ادب المفرد ص۲۰۴، باب الغناء و اللهو) و مثله فى الدر المختار على صدر رد المحتار ج۶، ص۳۴۹، كتاب الحظر و الاباحة.

### د کیرم بورډ د لوبې کولو حکم

**سوال:** نن صبا خلک جمع کیږي او کیرم بورډ په نامه یوه لوبه ډیر په شوق سره کوي۔ آیا د کیرم بورډ لوبه جائزه ده او که څنګه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** هغه کارونه چه په هغو کښې نه د دنیا فائده وي او نه د آخرت بلکه د وخت او دولت ضائع کیدل وي لکه کیرم بورډ او داسې نور۔ په دې کښې نه د صحت ګټه شته او نه د دنیا او نه د آخرت۔ نو په داسې بې معنٰی او بې ضرورته کارونو کښې خپل ګران او قیمتي وخت ضائع کول د هوښیارۍ خبره نه ده۔ او شریعت مقدسه له داسې لهو او لعب (لوبو) څخه منع فرمایلې ده۔

قال العلامة ابن نجيم: و يكره اللعب بالشطرنج و النرد و الاربعة عشر لقولهٖ عليه السلام كل لعب حرام الا ملاعبة الرجل مع زوجته و قوسه و فرسه لانهٗ يصد عن الجمع و الجماعات و سبب الوقوع فى فواحش الكلام. (البحر الرائق ج۸، ص۱۸۹، كتاب الكراهية)

قال العلامة التمرتاشي رحمه الله: و كره كل لهو لقوله عليه السلام كل لهو حرامٌ الا ثلاثة الخ. (تنوير الابصار على صدر رد المحتار ج۶، ص۳۹۵، كتاب الكراهية) و مثله فى البدائع الصنائع ج۵، ص۱۲۸، كتاب الاستحسان.



### د شطرنج د لوبې حکم

**سوال:** ځینې خلک د شطرنج د لوبو عادي وي۔ آیا د شطرنج لوبه د شریعت له مخې جائزه ده او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** چه په کوم کار کښې د دین او یا د دنیا فائده نه وي بلکه قیمتي وخت پکښې ضائع کیده نو نبي کریم ﷺ له داسې کارونو څخه مسلمانان منع کړي دي۔ شطرنج لکه څرنګه چه یوه لوبه ده کومه چه د وخت له ضائع کیدو او خواهش څخه پرته بل هیڅ شی پکښې نشته۔ له دې وجهې له داسې لوبو څخه سړی باید ځان وساتي۔

لما قال العلامة ابن نجيم: و يكره اللعب بالشطرنج و النرد و الاربعة عشر لقوله عليه السلام كل لعب حرام الا ملاعبة الرجل مع زوجته و قوسه و فرسه لانه يصد عن الجمع و الجماعات و سبب لوقوع فى فواحش الكلام. (البحر الرائق ج۸، ص۱۸۹، كتاب الكراهية)

قال العلامة ابن عابدين رحمه الله: و الشطرنج و انما كره لان من اشتغل به ذهب عناؤه الدنيوى و جاءه الغناء الاخروى فهو حرامٌ و كبيرة عندنا. (رد المحتار ج۶، ص۳۹۴، كتاب الحظر و الاباحة، فصل فى البيع) و مثله فى بدائع الصنائع ج۵، ص۱۲۸، كتاب الاستحسان.

### د جوډو کراټې د لوبو حکم

**سوال:** نن صبا په ځینو ځایونو کښې د جوډو کراټو د زده کړې مرکزونه خلاص شوي دي چه په زده کړې سره ئې د سړي بدن قوي او مضبوطیږي۔ په دې لوبې کښې که چېرته یو سړی په دې نیت سره برخه واخلي چه صحت او بدن مې مضبوط او قوي شي تر څو په جهاد کښې برخه واخیستلی شي نو آیا دا لوبه به ورته جائزه وي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په انسان باندې له نورو حقوقو پرته د خپل صحت حق هم شته۔ که چېرته د انسان صحت خراب وي نو د باطلو قوتونو مقابله خو پریږده خپل عبادات هم په ښه طریقه نه شي اداکولی۔ په جوډو او کراټو کښې لکه څرنګه چه د صحت لپاره ګټه پکښې شته له دې وجهې که چېرته د پردې او شرعي حدودو او قیودو په اهتمام سره څوک برخه پکښې واخلي نو ورته جائز دي بلکه د ثواب هیله ئې هم شته ځکه چه د الله تعالی له خوا مسلمانانو ته د باطلو قوتونو او د اسلام د دښمنانو په مقابله کښې د تیارۍ امر دی۔

لما قال الله تبارك و تعالى: وَ اَعِدُّوْا لَهُمْ مَّا اسْتَطَعْتُمْ مِّنْ قُوَّةٍ وَّ مِنْ رِّبَاطِ الْخَيْلِ تُرْهِبُوْنَ بِهٖ عَدُوَّ اللّٰهِ وَ عَدُوَّكُمْ. (سورة الانفال، آيت ۶۰)

لما قال العلامة ابن نجيم: و يكره اللعب بالشطرنج و النرد و الاربعة عشر لقوله عليه السلام كل لعب حرام الا ملاعبة الرجل مع زوجته و قوسه و فرسه لانه يصد عن الجمع و الجماعات و سبب لوقوع فى فواحش الكلام. (البحر الرائق ج۸، ص۱۸۹، كتاب الكراهية) و مثله فى بدائع الصنائع ج۵، ص۱۲۸، كتاب الاستحسان.

## په لوبې کښې د ورنونو د بربنډولو حکم

**سوال:** په ځینو لوبو لکه تمرین، پیریډ، کبډي او د اسې نورو کښې ځینې خلك خپل ورنونه بربنډوي چه نور خلك ئې هم ویني او سترګې ئې پرې لګیږي۔ نو شرعا د ورنونو د بربنډولو حکم څه دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د سړي له نامه څخه تر زنګنونو پورې د بدن برخه عورت دی چه پټول ئې شرعا لازم دي او بربنډول او خلکو ته ښکارول ئې ګناه ده۔ نو د دې لپاره د لوبې په وخت کښې سړی باید د بدن د همدې برخې د پټولو خاصه پاملرنه وکړي۔

لما قال العلامة شيخ الاسلام ابو بكر بن على الحداد اليمنىؒ: قوله ينظر الرجل من الرجل الى جميع البدن الا ما بين سرته الى ركبته) لقوله عليه السلام لعلىؓ لا تنظر الى فخذ حىّ و لا ميّت. (الجوهرة النيرة ج۲، ص۳۸۵، باب الحظر و الاباحة)

قال العلامة على بن سلطان محمد القارىؒ: تحت قول النبى ﷺ لا ينظر الرجل الى عورة الرجل و لا المرأة الى عورة المرأة الخ فيه بيان تحريم النظر الى ما يجوز و عورة الرجل ما بين سرته و ركبته. (مرقات شرح مشكوٰة ج۶، ص۱۹۵، باب النظر الى المخطوبة و بيان العورات) و مثله فى الدر المختار على صدر رد المحتار ج۶، ص۳۶۴ تا ۳۶۶، كتاب الكراهية، فصل فى البيع.

## د ورزش حکـــــم

**سوال:** یوه لوبه د ورزش په نیت سره شرعا څه حکم لري؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په کومې لوبې کښې چه دیني یا دنیوي ګټه وي نو په د اسې لوبې کښې شرعا کومه بدي نشته۔ لیکن که چېرته ئې نیت د جهاد د تیارۍ وي نو موجب د اجر او ثواب دی۔ بیا هم د د اسې لوبې څخه ځان ساتنه ضروري ده چه د عورت بربنډیدل او یا نورو حرامو کارونو ارتکاب پکښې وي۔

لما روى الامام مسلم بن الحجاج القشيرىؒ: عن عائشةؓ قالت رأيت رسول اللهﷺ يسترنى بردائه و انا انظر الى الحبشه و هم يلعبون. (الجامع الصحيح المسلم ج۱، ص۲۹۱، كتاب صلوٰة العيدين)

لما رواه الامام ابو داؤد سليمان بن اشعث السجستانىؒ: عن عائشه انها كانت مع النبىﷺ فى سفر قالت فسابقتُه فسبقتُه على رجلى فلما حملت اللحم سابقتُه فسبقنى فقال هٰذه بتلك السبقة. (سُنن ابى داؤد ج۱، ص۳۴۸، باب فى السبق على الرجل) و مثله فى رد المحتار ج۶، ص۴۰۴، كتاب الحظر و الاباحة، فصل فى البيع.

## د قیتې (تاش) یـــــا پرې د لوبې حکم

**سوال:** جناب مفتي صاحب! نن صبا په کنډوالو او شخصي ځایونو کښې خلك تاش یعنې قیتې کوي چه دوی اکثره ورته ترپ هم وايي۔ اګر که دا لوبه د تفریح (د طبیعت د خوشحال والي) لپاره وي او عموما شرط او د اسې نور هم پکښې نه وي لیکن ډیر ځله په دې کښې د چایو یا



حلوا او د اسې نورو شیانو شرط پکښې لګول کیږي چه دا شیان به د بایلونکي په ذمې باندې وي۔ نو آیا شرعا دا لوبه جائزه ده او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته د ذهني ورزش لپاره د قیتو لوبه کیدله نو بیا څه پروا نه لري البته په ګټلو او بایللو کښې ئې شرط لګول صحیح نه دي۔ په دې صورت کښې بیا دا لوبه د قیمار یا جواري په حکم کښې د اخلیږي کوم چه شرعا حرام دی۔

لما قال العلامه مولانا اشرف علي التهانويؒ: که چېرته ئې په ګټلو او بایللو باندې شرط پرې نه وي لګولی نو جائزه ده۔ (امداد الفتاویٰ ج۴، ص۲۵۲، کتاب الخطر و الاباحه، د غنا، مزامیر او لهو او لعب احکام)

# باب الامر بالمعروف و النهی عن المنکر

## (د امر بالمعـــــروف او نهی عن المنکر احکام او مسئلې)

### د دین تبلیغ فرض کفـــایه ده

**سوال:** آیا امر بالمعروف او نهی عن المنکر فرض عین دی او که فرض کفایه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د خدای مخلوقاتو ته د اوامرو دعوت ورکول او له نواهیو څخه ئې منع کول شرعا فرض کفایه ده۔ چه د ځینو خلکو په ترسره کولو سره د نورو خلکو غاړې پرې خلاصیږي۔ چه څوك وایي چه فرض عین دی د هغو رأیه خطا ده او خپل ځان له رذائلو څخه پاکول فرض عین دی۔

لما قال حجة الاسلام ابو بکر احمد بن علی الرازی الجصاصؒ: قال ابو بکر قد حوت هٰذه الآیة معنیین احدهما وجوب الامر بالمعروف و النهی عن المنکر و الآخر انهٗ فرض علی الکفایة لیس بفرض علی کل احد فی نفسهٖ اذا قال به غیره لقوله تعالٰی (و لْتَکُنْ مِّنْکُمْ اُمَّةٌ) و حقیقته تقتضی البعض دون البعض فدل علی انه فرض علی الکفایة اذا قام به بعضهم سقط عن الباقین. (احکام القرآن ج۲، ص۳۱۵، باب فرض الامر بالمعروف الخ)

قال العلامة شهاب الدین الآلوسیؒ: منشاء الخلاف فی ذٰلك ان العلماء اتفقوا علی ان الامر بالمعروف و النهی عن المنکر من فروض الکفایات. (روح المعانی ج٤، ص۲۱، سورة آل عمران) و مثله فی الاکلیل فی استنباط التنزیل ص٥٦، سورة آل عمران.

### د مستوراتو (ښځو) د تبلیغي جماعتونو حکم

**سوال:** په ننني زمانه کښې د تبلیغي جماعت مشرانو د مستوراتو یعنې ښځو د اصلاح او د دین د تبلیغ لپاره د ښځو جماعتونه اوباسي په د اسې حال کښې چه له ښځو سره خپل محارم او نورو شرعي حدودو او پردې پوره لحاظ پکښې ساتل کیږي۔ آیا د دې شرعي حدودو او قیودو د پابندۍ په صورت کښې د ښځو لپاره د دین د تبلیغ لپاره وتل جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د مروجه تبلیغ مقصد اعلاء کلمه الله او تعلیم او تعلم دی چه لاس ته راوړل ئې د هر مسلمان سړي او ښځې شرعي ذمه واري ده او دواړه د دین د تبلیغ حق لري۔ همدا وجه ده چه ډیرې نیکې ښځې د قرآن او حدیثو د علومو ماهرین تیرې شوي دي او د حضور اکرم ﷺ په مبارك دور کښې د اسلام خویندو په جهاد کښې شریکیدل هم ثابت دي۔ په دې لحاظ سره د ښځو په جهاد کښې د شرکت په بنا سره په تبلیغي جماعت کښې ئې هم شرکت جـــائز معلومیږي۔ بیا هم د پردې، محارمو او د اسې نورو شرعي حدودو لحاظ پکښې ډیر ضروري دی۔

لما رواه الامام محمد بن اسمٰعیل البخاریؒ: عن انس قال لما کان یوم اُحد انهزم الناس عن النبی ﷺ و لقد



رایتُ عائشه بنت ابی بکر و اُم سلیم و انهما مشمرتان اریٰ خدمَ سوقهما تنقزان القرب و قال غیره تنقلان القرب علی متونهما ثم تفرغانه فی افواه القوم ثم ترجعان فتملانها ثم تجیان فتفرغانه فی افواه القوم. (الصحیح البخاری ج۱، ص٤٠٣، باب غزوة النسآء و قتالهن مع الرجال)

لما ورد فی الحدیث: و عن انسؓ قال کان رسول الله ﷺ یغزو بام سلیم و نسوة من الانصار معهٗ اذا غزا فیسقین الماء و یداوین الجرحٰی. (الصحیح المسلم ج۲، ص۱۱٦، باب غزوة النساء مع الرجال) و مثله فی شرح کتاب السیر الکبیر ج۱، ص۱۸٥، باب قتال النساء مع الرجال.

### د سالانه چلې د لګولو حکم

**سوال:** که څېرته یو سړی د خپل اصلاح او علم د تحصیل لپاره په تبلیغ کښې یو کال ولګوي۔ نو آیا د علم د تحصیل او د ځان د اصلاح لپاره د مزدوري او خواري په پرېښودلو سره د چلې لپاره وتل بهتر دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** څلور ویشت ساعته ژوند د اسلامي شریعت مطابق د تیرولو لپاره د ضروري احکامو د علم حاصلول په هر مسلمان نر او ښځې باندې فرض دي۔ او له دې پرته د نورو علومو حاصلول له نفلي عبادت څخه بهتر دي۔ له دې وجهې که څېرته یو سړی له ضروري علومو څخه پرته د نورو علومو د تحصیل او د نفس د اصلاح لپاره د کال د چلې لګول وغواړي او له مخې ئې د هغه د اهل او عیال په خرڅ او خوراك کښې کوم فرق نه راتلو نو د هغه لپاره به په تبلیغ کښې د کال د چلې لپاره وتل بهتر وي۔

لما قال العلامة ابن البزاز الکردریؒ: طلب العلم و الفقه اذا صحت النیة افضل اعمال البر و کذا الاشتغال بزیادة العلم اذا صحت النیة لانه اعم نفعاً لکن بشرط ان لا یدخل النقصان فی فرائضه. (الفتاوی البزازیة علی هامش الهندیة ج٦، ص۳۷۸، کتاب الکراهیة)

قال العلامة ابن عابدینؒ: طلب العلم و الفقه اذا صحت النیة افضل من جمیع اعمال البر و کذا الاشتغال بزیادة العلم اذا صحت النیة لانه اعم نفعاً لکن بشرط ان لا یدخل النقصان فی فرائضه. (رد المحتار ج٦، ص٤٠٧، کتاب الحظر و الاباحة، فصل فی البیع)

### د تبلیغ په مروجه طریقه کښې د نهه پنځوس ملیاردو د ثواب مسئله

**سوال:** تبلیغي جماعت د وخت په لګولو باندې په یوې نیکۍ باندې د نهه پنځوس کروړو (ملیاردو) ثواب بیانوي۔ آیا شرعا د دې خبرې کوم ثبوت شته او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په تبلیغ کښې د وخت په لګولو باندې تر نهه پنځوس کروړو پورې د ثواب مسئله دوو حدیثونو ته د ضرب د ورکولو څخه ثابته ده۔ لیکن دا مطلقا تر في سبیل الله پورې تړلې ده یوازې د تبلیغي جماعت سره ئې خاص کول مناسب نه دي۔

لما رواه الامام ابو داؤد سلیمان بن اشعث السجستانیؒ فی سننه: عن سهل بن معاذ عن ابیه قال قال رسول الله ﷺ

ان الصّلٰوة و الصّیام و الذکر تضاعف علی النفقة فی سبیل اللّٰه عز وجل بسبع مائة ضعف. (سنن ابی داوٗد ج۲، ص۳۳۸)

و رواه ابو عبد اللّٰه محمّد بن یزید بن ماجةؒ فی سننه: عن علیؓ ابن ابی طالب و ابی الدرداءؓ و ابی هریرةؓ و ابی اُمامة الباهلیؓ و عبد اللّٰه بن عمرؓ و جابر بن عبد اللّٰهؓ و عمران بن الحصینؓ کلهم یحدث عن رسول اللّٰهﷺ انهٗ قال من ارسل بنفقة فی سبیل اللّٰه و قام فی بیته فله بکل درهم سبع مائة درهم و من غزی بنفسه فی سبیل اللّٰه و انفق فی وجه ذٰلك فلهٗ بکل درهم سبع مائة الف درهم ثم تلا هٰذه الآیة و اللّٰه یضاعف لمن یشآء. (سنن ابن ماجة ص۱۹۸، باب من جهز غازیاً)

و قد ذکره الشیخ العلامة جلال الدین السیوطی رحمه اللّٰه: عن عمران بن الحصین عن رسول اللّٰهﷺ قال من ارسل بنفقة فی سبیل اللّٰه و اقام فی بیته فله بکل درهم سبعمائة درهم و من غزٰی بنفسهٖ فی سبیل اللّٰه و انفق فی وجهه ذٰلك فله بکل درهم یوم القیامة سبعمائة الف درهم ثم تلا هذه الآیة و اللّٰه یضاعف لمن یشآء.

و عن انسؓ عن النبیﷺ النفقة فی سبیل اللّٰه تضاعف سبعمائة ضعف. (الدُّر المنثور ج۱، ص۳۳۶، سورة آل عمران) و مثله فی تفسیر القرآن لابن کثیرؒ ج۱، ص۳۱۷، سورة آل عمران.

## د تبلیغي جماعت په جبریې فرقې باندې قیاس کول درست نه دي

**سوال:** تبلیغي جماعت د کفریه او جبریه فرقو سره برابرول څنګه دي او چه څوك ئې برابروي د هغو حکم څه دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** تبلیغي جماعت په نن زمانه کښې یو فعال دیني جماعت دی۔ د هغو هر کوشش دا دی چه د خدای مخلوق د خدای لارې ته راوګرځي۔ دې جماعت لره په جبریې او داسې نورو فرقو سره تعبیرول ضلالت او ګمراهي ده او ویونکي ئې د کفر له خطرې سره مخامخ کیږي چه موجب د تعزیر دی۔

لما قال العلامة برهان الدین المرغینانیؒ: اذا قذف مسلماً بغیر الزنا فقال یا فاسق او یا کافر او یا خبیث او یا سارق لانه اذاه و الحق الشین بهٖ و لا مدخل مقیاس فی الحدود فوجب التعزیر. (الهدایة ج۲، ص۱۸۳، کتاب الحدود)

قال العلامة سراج الدین علی بن عثمانؒ: اما اذا قال لآخر یا فاسق او بلید او یا آکل الربٰوا.......... او یا کافر او یا خبیث او یا فاجر یعزر و خیار التعیین الی الامام. (الفتاوی السراجیة ص۶۱، کتاب الحدود) و مثله فی الجوهرة النیرة ج۲، ص۲۵۳، کتاب الحدود، فصل فی التعزیر.

## د تبلیغي چلّې حقیقت

**سوال:** نن صبا د تبلیغ جماعت په تبلیغ کښې د چلّې په لګولو باندې ډیر زور اچوي۔ آیا د تبلیغ لپاره د ورځو تعداد د قرآن او سنتو له مخې ثابت دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د روحاني امراضو د شفاء لپاره ضروري خبره دا ده چه په طبیعت کښې تبدیلي پیدا شي۔ لکه څرنګه چه په تبلیغ کښې یعنې په هغه چا کښې چه څلویښت ورځې ولګوي کافي تبدیلي پکښې راځي۔ نو د دې لپاره تبلیغیانو د چلّې په لګولو باندې ډیر زور اچوي۔ دا کوم واجب، سنت او فرض نه دی بلکه یوائې د روحاني علاج لپاره څله تاکل شوې ده لکه څرنګه چه تر څلویښتو ورځو پورې په تکبیر اولٰی سره د جمعې په لمانځه سره په انسان کښې بدلون راځي همدارنګه په تبلیغ کښې د څلې په لګولو سره هم په انسان کښې ډیر بدلون راځي۔



لما قال رسول اللّٰهﷺ: من صلّٰی للّٰه اربعین یوماً فی جماعة یدرك التکبیرة الاولٰی کتب لهٗ برأتان برأة من النار و برأة من النفاق. (مشکٰوة ج۱، ص۱۰۲، باب ما علی الماموم من المتابعة و حکم المسبوق، الفصل الثانی)

## د تبلیغي جماعت طــــــــــریقه بدعت نه ده

**سوال:** (۱) څه فرمایي علماء دین او مفتیان شرع متین د تبلیغ د موجوده طریقې په باره کښې چه آیا په دې طریقې سره تبلیغ بدعت سیئه ده او که ناجائز؟ زمونږ په علاقه کښې یوه مولوي صاحب د تبلیغ موجوده طریقې ته بدعت سیئه وایي او خلك له دې څخه منع کوي او تبلیغیان له جومات څخه اوباسي۔ د نوموړي مولوي دا عمل او خبرې د شرعې خلاف دي او که له شرعې سره موافق؟ که چېرته خلاف وي نو آیا لمونځ وروپسې جائز دي او که نه؟

(۲) آیا تبلیغي جماعت په اهل سنت و الجماعت کښې نه دی او آیا دا تبلیغي جماعت خلك ضال او مضل دي او دا یوه ګمراه ډله ده؟ زمونږ په علاقې کښې نوموړی عالم تبلیغي جماعت په اهل السنت و الجماعت کښې نه ګڼي او یوه ګمراه ډله ئې بولي او ضال مضل ئې تصور کوي۔ نو آیا د نوموړي عالم دا خبره د شریعت له مخې صحیح ده او که نه؟ او د ده برعکس نور علماء کرام تبلیغیانو احترام کوي او په همدې طریقې سره تبلیغ جائز بولي او تبلیغي جماعت په اهل سنت و الجماعت کښې شماري؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د دین د اشاعت یعنې خپرونې او اعلاء کلمه اللّٰه لپاره سعی او کوشش یو خداوندي امر دی۔ او عملي کول ئې د خلکو ذمه واري ده۔ اللّٰه تعالی په قرآن کریم کښې په څو ځایونو کښې مسلمانانو ته د دې ذمه وارۍ خبرداری ورکړی دی۔

﴿۱﴾ اللّٰه تعالی فرمایي: وَ لْتَکُنْ مِّنْکُمْ اُمَّةٌ یَّدْعُوْنَ اِلَی الْخَیْرِ وَ یَاْمُرُوْنَ بِالْمَعْرُوْفِ وَ یَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنْکَرِ وَ اُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ☆ (الآیة)

﴿۲﴾ په بل ځای کښې اللّٰه تعالی فرمایي: قُلْ هٰذِهٖ سَبِیْلِیْٓ اَدْعُوْٓا اِلَی اللّٰهِ اَنَا وَ مَنِ اتَّبَعَنِیْ. (الآیة)

﴿۳﴾ همدارنګه په یوه بل ځای کښې اللّٰه تعالی وایي: وَ مَنْ اَحْسَنُ قَوْلاً مِّمَّنْ دَعَا اِلَی اللّٰهِ وَ عَمِلَ صٰلِحاً. (الآیة)

له دغو آیتونو څخه علاوه نور آیتونه هم موجود دي چه له هغو څخه د دې امر د ذمه وارۍ اندازه لګیږي له دې وجهې مفسرینو حضراتو دې ته فرض کفایه ویلي دي۔ کما قال العلامة محمود الآلوسیؒ: ان العلماء اتفقوا علی ان الامر بالمعروف و النهی عن المنکر من فروض الکفایات و لم یخالف و ذٰلك الا النزر. (روح المعانی ج۴، ص۲۰)

او علامه ظفر احمد عثماني رحمه اللّٰه وایي: فی هٰذه الآیة و فی التی بعدها و هی قوله تعالٰی (کُنْتُمْ خَیْرَ

أُمَّةٍ أُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ) دلیل علی ان الامر با لمعروف و النهی عن المنکر فرض علی الکفایة. (احکام القرآن ج۲، ص۴۹)

همد ارنګه علامه ابو بکر الجصاص الرازي رحمه الله لیکي: قال ابو بکر قد حوت هٰذه الآیة معنیین احدهما وجوب الامر با لمعروف و النهی عن المنکر و الآخر انه فرض علی الکفایة. (احکام القرآن ج۲، ص۳۱۵)

او دا امر بالمعروف او نهی عن المنکر د ټولو لپاره دی که کفار وي او که مسلمانان. او د اکابرو مفسرینو له عباراتو څخه همدا حکم څرګندیږي. لکه څرنګه چه علامه سید محمود الآلوسي رحمه الله فرمایي:

یدعون الی الخیر: المراد من الدعاء الی الخیر الدعاء الی ما فیه صلاح دینی او دنیوی. (روح المعانی ج۴، ص۲۱)

په یو بل ځای کښې فرمایي:

دعا الی الله ای الی توحیده تعالی و طاعته و الظاهر العموم فی کل داع الیه تعالی. (روح المعانی ج۱۲، ص۱۸۸)

همد ارنګه علامه قاضي ثناء الله پاني پتي فرمایي:

یدعون الی الخیر ای خیر العقائد و الاخلاق و الاعمال التی فیها صلاح الدین و الدنیا. (تفسیر مظهری ج۲، ص۱۱۴)

او د هٰذهٖ سبیلي په تفسیر کښې لیکي:

الدعوة الی التوحید و الاعداد للمعاد. (تفسیر مظهری ج۵، ص۲۰۶)

او همد ارنګه د "دعا اِلی الله" د تفسیر په کولو سره لیکي:

و ما الی الله ای الی عبادة الله و توحیده. (تفسیر مظهری ج۸، ص۲۹۴)

د دغو تر څنګ په تفسیر بیان القرآن، تفسیر عثماني او تفسیر معارف القرآن مولانا محمد ادریس کاندهلوي او د اسې نورو تفسیرونو کښې هم د دې خبرې وضاحت موجود دی چه دعوت الی الله د مسلمانانو او کفارو دواړو لپاره دی. مفتي اعظم پاکستان مفتي محمد شفیع رحمه الله فرمایي:

"بیا د دعوت الی الخیر هم دوه درجې لري. اوله دا چه کفارو ته د خیر یعني د اسلام خوا ته دعوت ورکول دي. د مسلمانانو هر فرد عموماً او دا جماعت خصوصاً د دنیا ټولو قومونو ته د خیر یعنې د اسلام دعوت ورکړی دی. د دعوت الی الخیر دوهمه درجه پخپله مسلمانانو ته د خیر دعوت ورکول دي. چه ټول مسلمانان په عمومي توګه او یوه خاصه ډله په خصوصي توګه د مسلمانانو په منځ کښې تبلیغ وکړي او فریضه الی الخیر سر ته ورسوي". (معارف القرآن ج۲، ص۱۴۰/۱۴۱)

او نه د دوی دا طریقه کومې نوې ایجاد شوې طریقه ده بلکه په سلف صالحینو او د صحابهٔ کرامو په دور کښې د دې طریقې مثالونه موجود دي. لکه څنګه چه حضرت اقدس مولانا مفتي محمد یوسف لدهیانوي شهید رحمه الله لیکلي دي چه تبلیغي جماعت چه په کومې طریقې سره د دعوت الی الله کار کوي دا د سنت نبوي ﷺ او سلفِ صالحینو د طریقې عین مطابق دی. (ستاسو مسائل او د هغو حل ج۹، ص۳۶۳)



د دار العلوم دیوبند مفتي مفتي محمد حسن ګنګوهي له ځواب څخه هم دا استفاده کیږي. لکه څنګه چه له ده څخه د تبلیغ په اړه پوښتنه وشوه نو ده په ځواب کښې وفرمایل:

**الجواب:** حامداً و مصلیاً د دین تبلیغ په هرې زمانې کښې فرض دی. په دې زمانې کښې هم فرض دی لیکن فرض علی الکفایه دی. چېرته چه څومره ضرورت وي په هم هغې اندازې سره ئې اهمیت وي. او په چا کښې چه څومره اهلیت وي د هغه په حق کښې هغومره ذمه واري وي.

د امر بالمعروف او نهی عن المنکر بیان په قرآنکریم کښې په صراحت سره موجود دی. له ټولو نه لوی معروف ایمان او له ټولو نه لوی منکر کفر دی. هر مؤمن د خپل خپل حیثیت مطابق مکلف دی چه د الله تعالی له خوا څخه نازل شوی دین د حضرت رسول مقبول ﷺ د لارښوونې مطابق خلکو ته ورسوي. (فتاوٰی محمودیه ج۱۲، ص۲۴۶)

په دې بناء باندې د علماء دیوبند اکابرینو (لویانو) دا کار د ښه ګڼلو تر څنګ ضروري هم ګڼلی دی. مفتي هند مفتي کفایت الله لیکلي دي چه:

"دا تحریك (تبلیغي جماعت) د اصل حقیقت په اعتبار سره خو د اسلام بنیادي شی دی ځکه چه د الله تعالی پیغام د هغه بندګانو ته رسول او د هغو کورونو ته تلل او ځانونه ور رسول اصل تبلیغ دی". (کفایت المفتي ج۲، ص۹)

حضرت حکیم الامت مولانا اشرف علي تهانوي صاحب په آخر کښې د مولانا محمد الیاس د دې تحریك صفت په دغو الفاظو سره کړی دی چه:

"مولانا الیاس صاحب ناهیلی لره په هیلې بدل کړې ده" (مولانا الیاس او د هغه دیني دعوت ص۱۱۲)

شیخ الاسلام حضرت مولانا حسین احمد مدني رحمه الله پخپل یوه مکتوب کښې لیکلي دي چه زما د محترم بزرګ دغه جماعت تبلیغیه نه یوازې د یوې اهمې او ضروري فریضې ته د وس مطابق انجام ورکوي بلکه دې کار ته سخت احتیاج هم موجود دی چه د هغه حوصله افزایي وشي او د هغه پخپله هم له مسلمانانو سره قوي رابطه پیدا شي او په مسلمانانو کښې د اتحاد او یو والي قوي جذبه پیدا شي او هغوی د مذهبي احساساتو د سرګرمۍ خوا ته حرکت وکړي چه له وجهې ئې په راتلونکي کښې د ډیرې اعلی درجې د نتائجو او ثمراتو قوي امیدونه پیدا کیږي. بنا په دې باندې زه هیله مند یم چه په دې کار کښې په پوره کوشش سره عمل وکړی شي او د هغوی د همت افزایی صورتونه عملي شي. و السلام حسین احمد غفر له ۱۶ صفر ۱۳۶۱ سنه هجري، په تبلیغي جماعت باندې د اعتراضونو ځوابونه)

په یوه بل مکتوب کښې (کوم چه ده په اول ځل په تبلیغي جماعت کښې افغانستان ته تلونکو د خپلو شاګردانو په نامه لیکلی وو) فرمایي:

"غرض دا چه د عریضې حاملین زمونږ د څو ملګرو په عالي خدماتو کښې حاضریږي. د هغوی مقصد کوم سیاسي او ملکي مقصد نه بلکه یوازې د دیني خدماتو او

تبلیغي فرائضو ادا کول دي۔ او د دوی مقصود دا دی چه د افغانستان مسلمانانو ته هغه مقصود ور په زړه کړي چه د دوی نه هیر شوی دی۔ هیله ده چه تاسو حضرات د هغوی امداد او اعانت کښې قصر او کوتاهي و نه کړی۔ او په هغوی باندې اعتماد وکړی او د ممکنو آسانتیاوو او تسهیلاتو له برابرولو څخه ځانونه مه سپموی۔ و السلام ننګ اسلاف حسین احمد غفر له۔ (په تبلیغي جماعت باندې د اعتراضونو ځوابونه ص۴۵)

د دې ترڅنګ شاه عبد القادر رائیپوري رحمه الله، مولانا خلیل احمد سهارنپوري، مفکر اسلام مولانا ابو الحسن علي ندوي، مولانا منظور احمد نعماني، مولانا مفتي محمد شفیع، مولانا محمد زکریا، مولانا سید سلیمان ندوي او مولانا حفظ الرحمٰن سیوهارويؒ او داسې نورو علماوو او مشائخو د دې جماعت د افادیت اعتراف کړی دی او دې ته د علم د خپرونې اهمه ذریعه ویلې ده۔ د هغوی په اجتماعاتو کښې شریك شوي دي او بیانونه ئې پکښې کړي دي او خلکو ته ئې په دې جماعت کښې د شاملیدو تلقینونه کړي دي۔ نو له دې سره سره هم دې ته بدعت سیئه ویل د جهالت او ناپوهۍ دلیل دی۔ بدعت سیئه نوي ایجاد شوي کار ته ویل کیږي بلکه بدعت سیئه هغه کار وي چه په شریعت مقدسه کښې ئې بالکل کوم اصل او بنیاد نه وي۔ د امت اکابرینو د بدعت همدا تعریف کړی دی او دا تعریف د څلورو واړو مذهبونو تعریف دی۔ لکه څرنګه چه علامه ابن حجر د بدعت په تعریف کښې لیکي:

و البدعة اصلها ما احدث على غير مثال سابق و تطلق فى الشرع فى مقابل السنة فتكون مذمومة. (فتح البارى ج٤، ص٤١٩)

او علامه زبیدي حنفي فرمایي:

كل محدثة بدعة انما يريد ما خالف اصول الشريعة و لم يوافق السنة. (تاج العروس ج٥، ص ٢٧١)

علامه ابن رجب حنبليؒ لیکي:

المراد با لبدعة ما احدث مما لا اصل له فى الشريعة يدل عليه و اما ما كان له اصل من الشرع يدل عليه فليس ببدعة شرعاً و ان كان بدعة لغة. (جامع العلوم و الحكم ص١٩٣)

او همدارنګه علامه قرطبيؒ او شیخ محمد علي الصابوني لیکي:

كل بدعة صدرت من مخلوق فلا يخلو ان يكون لها اصل فى الشرع ام لا فان كان لها اصل فهى فى خيز المدح و يعقده قول عمر نعمت البدعة هٰذه و الا فهى فى خيز الذم و الانكار. (تفسير قرطبى ج٢، ص٨٧، / تفسير صابونى ج١، ص٩٢)

له دې تفصیل څخه ثابتیږي چه تبلیغ کول، مسلمانانو ته د دین دعوت ورکول، مسلمانان لمونځ ګذار، حاجي، د روژې او لمونځونو پابند جوړول او په دې لار کښې کوشش کول فرض کفایه او د دین له ضروري خبرو څخه دي۔ د سلفِ صالحینو او صحابهٔ کرامو څخه دا اعمال ثابت دي۔ او خامخا بدعت ورته ویل د عناد، جاهلیت او ناپوهۍ څخه بل څه نه دي۔ دا کار نه بدعت دی او نه د بدعت شبهه پکښې شته او که وای نو اکابرو علماء کرامو دا کار نه کاوه۔ له دې وجهې دا خلك له جوماتونو څخه منع کول، او له جوماتونو څخه ایستل ئې ګناه



ده۔ او مانع عن الخیر په قبیح صفت سره د موصوف کیدو سره برابره ده۔ د دې کارونو مرتکب سړی فاسق او فاجر دی او په اقتداء کښې لمونځ کول له کراهیت څخه خالي نه دی۔

(۲) د تیر شوي تفصیل څخه څرګنده شوه چه دا جماعت په اهل سنت و الجماعت کښې داخل دی او ضال او مضل ورته ویل د ناخبرۍ او جاهلیت دلیل دی۔ دا یوه حقه ډله ده چه د دین د خپرونې په لار کښې مصروفِ عمل دي۔ د هغو احترام وکړی او د هغوی حوصله افزایي د هر یوه مسلمان مذهبي او دیني فریضه ده۔ و الله تعالی اعلم

# باب مسائل المتفرقـــــه

## (د متفرقو مسائلو بیان)

## مور او پـــــلار ته د ښکنځا کوونکي حکم

**سوال:** والدينو ته د ښکنځل کوونکي حکم څه شی دی؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په اسلام کښې چه مسلمانانو ته ښکنځل موجب د فسق دی نو والدينو ته خو په اعلیٰ درجې سره عظيمه گناه ده۔ د دې بد فعل ارتکاب د قرآن کريم د صريح حکم خلاف ورزي ده۔

قال الله تبارك و تعالى: وَ قَضٰى رَبُّكَ اَلاَّ تَعْبُدُوْا اِلاَّ اِيَّاهُ وَ بِالْوَالِدَيْنِ اِحْسَانًا...... وَ لاَ تَقُلْ لَّهُمَا اُفٍّ وَّ لاَ تَنْهَرْهُمَا. (سورة الاسراء آيت ۲۱)

لما رواه الامام ابو عيسى محمد بن عيسى الترمذىؒ: عن عبد الله بن عمر قال قال رسول الله ﷺ من الكبائر ان يشتم الرجل والديه قالوا يا رسول الله ﷺ و هل يشتم الرجل والديه قال نعم يسبُّ ابا الرجل فيسب اباه و يشتم امه فيشتم امه. (الجامع الترمذى ج۲، ص۱۲، باب ما جاء فى عقوق الوالدين) و مثله فى مشكوٰة المصابيح ج۲، ص۴۱۹، باب البر و الصلة، الفصل الاول.

## د ښکنځـــــل کوونکي حکم

**سوال:** يوه مسلمان ته د ښکنځل کوونکي حکم څه دی؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** يوه مسلمان ته بې عزته خبرې کول او ښکنځلې او د اسې نور کول فسق او گناه کبيره ده او ښکنځل کوونکی فاسق او گنهگار دی۔

لما رواه الامام ابو عيسىٰ محمد بن عيسى الترمذىؒ: عن عبد الله قال قال رسول الله ﷺ سباب المسلم فسوق و قتاله كفر. (الجامع الترمذى ج۲، ص۱۹، باب ما جاء فى الشتم)

رواه الامام محمد بن اسمٰعيل البخارىؒ عن عياض بن حماد قال قلتُ يا رسول الله ﷺ الرجل يسبنى قال النبى ﷺ المستبّان شيطانان يتهاتران و يتكاذبان. (ادب المفرد ص۱۱۵، باب سباب المسلم) و مثله فى شرح المسلم للنووى ج۲، ص۳۲۱، باب النهى عن السباب.

## په والدينو کښې د يوه په حکم سره له بل سره د بد چلن حکم

**سوال:** د يوه سړي مور او پلار له کومې وجهې له يوه او بل څخه ناراض دي۔ پلار خپل زوی له دې څخه منع کوي چه له خپلې مور سره ښه چلن وکړي په د اسې حال کښې چه د دوی تر منځ څه مقاطعه هم نه وي۔ نو آيا د زوی لپاره د پلار په حکم له مور سره ښه چلن نه کول شرعا جائز دي او که نه؟ بينوا توجروا۔



**الجواب باسم ملهم الصواب:** شريعت اولاد ته له والدينو سره د يو شان حسن سلوك (ښې رويې) امر کړی دی بلکه د ځينو احاديثو له مخې مور د ډيرې ښيگړې مستحقه ده۔ لهذا د پلار په امر سره د زوی لپاره له مور سره د ښې رويې پريښودل مناسب نه دي ځکه چه الله تعالى د قرآن کريم په مختلفو ځايونو کښې ئې په يوه ځای کښې هم په مور او پلار کښې له يوه سره د ښيگړې په باره کښې تخصيص نه دی فرمايلی۔ له دې وجهې له دواړو سره ښيگړه او د دواړو فرمانبرداري ضروري ده۔

قال الله تبارك و تعالى: وَ قَضٰى رَبُّكَ اَلاَّ تَعْبُدُوْا اِلاَّ اِيَّاهُ وَ بِالْوَالِدَيْنِ اِحْسَانًا. (سورة بنى اسرائيل، آيت ۲۱)

قال الله تبارك و تعالى: فَلاَ تَقُلْ لَّهُمَا اُفٍّ وَّ لاَ تَنْهَرْهُمَا وَ قُلْ لَّهُمَا قَوْلاً كَرِيْمًا. (سورة بنى اسرائيل، آيت ۲۱)

## پرته له شرعي عذر څخه د والدينو په حکم ښځې ته د طلاق ورکولو حکم

**سوال:** د يوه سړي والدين له هغه څخه د ښځې د طلاق غوښتنه کوي او وجه ئې دا ده چه ښځه ئې له هغه څخه د استوگنې لپاره جلا کور غواړي اود ا هم غواړي چه خاوند ئې له خپل مور او پلار څخه جلا شي۔ نو آيا دا سړی دې ښځې د خبرې په منلو سره له والدينو څخه جلا شي او که خپلې ښځې ته د والدينو په امر طلاق ورکړي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** څرگنده دې وي چه په هر چا باندې د والدينو اطاعت او د هغوی خوشحالول او تر حتى الامكانه پورې د والدينو اطاعت او فرمانبرداري ضروري ده۔ ليکن په ځينو وختونو کښې که چېرته والدين سختي کوي او پرته له کوم شرعي عذر څخه خپل زوی په دې باندې مجبوروي چه خپله ښځه طلاقه کړي نو د والدينو د دې خبرې په نه منلو کښې شرعا څه مؤاخذه نشته۔ او تر کومه ځايه پورې چه په نوموړې معاملې کښې د والدينو په غوښتنې باندې ښځې ته د طلاق ورکولو پورې اړه لري نو شريعت ښځې ته استوگنې د جلا ځای او د نفقې د غوښتنې حق ورکړی دی او حق نه ورکول ئې گناه ده۔ له دې وجهې د ښځې حقوقو په نه پوره کولو کښې د والدينو د خبرې منل گناه ده او د خالق په نافرمانۍ کښې د مخلوق د فرمانبردارۍ، هيڅ گنجائش نشته۔ د دې لپاره د نوموړي سړي لپاره د خپلې ښځې د حقوقو پوره کول لازم دي او له خپلو والدينو سره هم بايد له ښې رويې څخه کار واخلي۔

لما فى الهندية: تجب السكنىٰ لها عليه فى بيت خالٍ عن اهله و اهلها الاّ ان تختار ذٰلك. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۵۵۶، الباب السابع عشر فى النفقات، الفصل الثانى فى السكنىٰ)

قال العلامة طاهر بن عبد الرشيد البخارىؒ: تجب السكنىٰ لها عليه فى بيت خالٍ عن اهله و اهلها الا ان تختار ذلك. (خلاصة الفتاوىٰ ج۲، ص۵۳، كتاب النكاح، الفصل الخامس عشر فى الحظر و الاباحة) و مثله فى الخانية على هامش الهندية ج۱، ص۴۲۴، باب النفقة

## د والدینو نافرماني بد ترین جرم دی

**سوال:** یو سړی چه د خپل ضعیف او سپین ږیري والدینو عزت نه کوي بلکه د هغوی نافرماني، توهین او سپکاوی کوي نو د داسې سړي په باره کښې د شریعت څه حکم دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د والدینو نافرماني او د هغوی سپکاوی د شریعت له مخې یو بد ترین جرم دی او د دنیا او آخرت د تباهۍ او بربادۍ سبب دی۔ او د هغوی خوشحالي او تابعداري جنت ته د داخلیدو ذریعه او سبب دی بلکه د دواړو جهانو سردار نبي کریمﷺ جنت د میندو تر پښو لاندې بللی دی۔ او الله تعالی خپله رضا د پلار په رضا پورې تړلې ده۔ نو د والدینو نافرماني یقینا د الله تعالی په نزد ډیر لوی جرم دی او د اسې سړی د سزا لائق دی۔ البته په دنیا کښې ئې سزا د امام په رأیې پورې اړه لري چه هغه څومره او څنګه سزا مناسبه وبولي هغه به بهتره وي۔

قال الله تبارك و تعالٰی: فَلاَ تَقُلْ لَّهُمَا اُفٍّ وَّ لاَ تَنْهَرْهُمَا وَ قُلْ لَّهُمَا قَوْلاً كَرِيْماً. (سورة بنی اسرائیل، آیت ۲۱)

لما ورد فی الحدیث: عن ابی بکرة رضی الله عنه قال قال رسول اللهﷺ كُلّ الذنوب یغفر الله منها ما شاء الا عقوق الوالدین فانهٗ یعجل لصاحبه فی الحیٰوة قبل الممات. (مشکٰوة المصابیح ج۲، ص ۴۲۱، باب البرّ و الصلة) و مثله رواه انس عن النبیﷺ. (مشکٰوة المصابیح ج۲، ص ۴۲۱، باب البرّ و الصلة)

## د دیني علومو د حصول لپاره د والدینو د اجازې حکم

**سوال:** یو سړی د دیني علومو د حاصلولو ډیر شوق لري لیکن اوس په څه نا څه کاروبار کښې هم لګیا دی او له کاروبار پرته ئې هم مالي حالت ښه دی۔ نو آیا دا سړی د مورو او پلار له اجازې پرته د علم د حصول لپاره تللی شي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د نبي کریمﷺ د فرمان مطابق د دیني علومو زده کول د هر مسلمان نر او ښځې ذمه واري ده۔ کم تر کمه دومره علم باید هر څوك حاصل کړي چه د دین له بنیادي ضرورتونو څخه پرې خبر شي او د دې لپاره د والدینو ممانعت کوم شرعي عذر نه دی۔ پرته د مور او پلار له اجازې هم بالغ زوی د علم د حصول لپاره سفر کولی شي او په صورت مذکوره کښې د والدینو د ضعف او نه محتاج والي له وجهې به دا زوی عاق او نافرمان هم نه بلل کیږي۔

لما فی الهندیة: رجل خرج فی طلب العلم بغیر اذن والدیه فلا بأس به و لم یکن هٰذا عقوقاً. (الفتاوٰی الهندیة ج۵، ص۳۶۶، الباب السادس و العشرون فی الرجل یخرج الی السفر...... الخ)

قال العلامة طاهر بن عبد الرشید البخاریؒ: و لو خرج لطلب العلم بلا اذن ابویه لا یصیر عاقاً كما ذکرنا فی الخزانة. (خلاصة الفتاوٰی ج۴، ص۳۲۷، کتاب الکراهیة) و مثله قال العلامة شبیر احمد العثمانیؒ فی فتح الملهم ج۱، ص ۲۵۲، باب الکبائر و اکبرها.



## یو مسلمان په بدو القابو سره یادول

**سوال:** که چېرته یو څوك پرته له کومې شرعي وجهې څخه بل مسلمان د فاجر او فاسق په القابو سره یاد کړي۔ نو د داسې سړي په باره کښې د شریعتِ مطهره څه حکم دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په هر مسلمان باندې د بل مسلمان د عزت او آبرو ساتنه او حفاظت ضروري دی او له داسې بدو القاب او بې فائدو کلمو څخه چه له مخې ئې د مسلمان عزت زخمي کیده هم ځان ساتنه ضروري ده۔ په قرآن کریم کښې الله تعالی مسلمانان له داسې القابو څخه چه د چا عزت پرې له منځه ځي منع فرمایلې ده۔ یوه مسلمان ته فاسق او فاجر ویونکی سړی د تعزیر قابل دی۔ په دې باره کښې فقهاوو فرمایلي دي چه دا سزا د حاکم په رأیې پورې اړه لري چه څومره مناسبه وبولي نو هغومره سزا ورکولی شي۔ البته کومه اندازه ورته ټاکل شوې نه ده۔ او که چېرته په ربښتیا هم هغه فاجر او فاسق وي نو بیا هم ډیر بد کار دی لیکن په داسې صورت کښې په ویونکي باندې د تعزیر حکم نه شي لګیدلی۔

لما قال الله تبارك و تعالٰی: وَ لاَ تَلْمِزُوْا اَنْفُسَكُمْ وَ لاَ تَنَابَزُوْا بِا لاَلْقَابِ بِئْسَ لِاسْمُ الْفُسُوْقُ بَعْدَ الاِيْمَانِ. (سورة الحجرات، آیت ۱۰)

قال العلامة طاهر بن عبد الرشید البخاریؒ: لو قال لاخر یا دیُوث یا فاسق یا فاجر لا یجب الحد لٰکن یعزر هٰذا اذا قال للصّالح اما اذا قال للفاسق یا فاسق حذف یسیر لا یجب شیء و اختیار التعزیر الی رأی الامام من واحد الی تسع و ثلاثین. (خلاصة الفتاوٰی ج۴، ص۴۴۳، کتاب الحدود) و مثله فی بدائع الصنائع ج۷، ص ۶۴، کتاب الحدود.

## د مسلمان د سپکاوي او په هغه باندې د مسخرې د کولو حکم

**سوال:** یو سړی پرته له کومې وجهې څخه په بل مسلمان باندې مسخرې کوي او د هغه په نه موجودوالي کښې هم پرې مسخرې کوي۔ نو د داسې سړي په حق کښې شرعا څه حکم دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د قرآن او حدیثو له مخې د یوه مسلمان لپاره په بل مسلمان باندې که هغه عالم وي او که جاهل، ګنهګار وي او که پرهیزګار استهزاء او مسخره سخته ګناه او شرعا ممنوع دی۔ په سورت حجرات کښې چه کوم اخلاقي تعلیمات بیان شوي دي له هغو څخه یو دا هم دی چه یو مسلمان دې په بل مسلمان باندې توقې، مسخرې او استهزاء نه کوي او نبي کریمﷺ هم د خپلو احادیثو په رڼا کښې یو مسلمان د بل مسلمان ورور بللی دی او په یوه او بل باندې ئې له توقو او مسخرو څخه منع کړې دي۔ چه څوك دا عمل تر سره کوي د هغه به د قیامت په ورځ سخته سزا وي۔

قال الله تبارك و تعالٰی: يٰاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لاَ يَسْخَرْ قَوْمٌ مِّنْ قَوْمٍ عَسٰى اَنْ يَّكُوْنُوْا خَيْراً مِّنْهُمْ وَ لاَ نِسَآءٌ مِّنْ نِّسَاءٍ عَسٰى اَنْ يَّكُنَّ خَيْراً مِّنْهُنَّ. (سورة الحجرات، آیت ۱۰)

لما ورد فی الحدیث: عن ابی هریرةؓ قال قال رسول اللهﷺ لا تحاسدوا و لا تناجشوا و لا تباغضوا و لا تدابروا ولا یبیع بعضکم علی بعضٍ و کونوا عباد الله اخوانا المسلم اخ المسلم لا یظلمه و لا یخذ له و لا یحقره التقوٰی هٰهُنا و یشیر الی صدره ثلاث مرار بحسب امرءٍ من الشرّ ان یحقر اخاه المسلم کلّ المسلم علی المسلم حرام دمه و ماله و عرضه. (الصحیح المسلم ج۲، ص ۳۱۷، باب تحریم ظلم المسلم)

## د استمناء بـــــالید حکم

**سوال:** د استمناء بالید (په لاس سره د جنسي خواهش تسکین حاصلول) د مرتکب سړي په شریعت کښې څه حکم دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د قرآن او سنت د تصریحاتو مطابق پرته له سخت ضرورت څخه استمناء بالید حرام او ناجائز عمل دی۔ او د اسې عمل کوونکی د تعزیر مستحق دی۔ بیا هم که چېرته په کومې فتنې کښې د مبتلاء کیدو خطر وي نو د "اهون البلیتین" له مخې نې د رخصت امکان شته۔

لما قال العلامة الحصکفیؒ: الاستمناء حرام و فیه التعزیر. و قال العلامة ابن عابدینؒ (تحت قوله الاستمناء حرام) ای با لکف اذا کان الاستجلاب الشهوة اما اذا غلبَتهُ الشهوة و لیس لهٗ زوجةٌ و لا امةٌ ففعل ذٰلك لتسکینها فالرجاء انهٗ لا وبال علیه. (رد المحتار ج۴، ص۲۷، کتاب الحدود، فصل فی التعزیر)

قال العلامة السید محمود الآلوسیؒ: و کذا اختلف فی استمناء الرجل بیده و یسمّٰی الخضخضة و جلد عمیرة فجمهور الائمة علی تحریمه و هو عندهم داخل فیما وراء ذٰلك. قال ابن الهمامؒ: یحرم فان غلبته الشهوة ففعل ارادة تسکینها به فا لرجاء الا یعاقب. (روح المعانی ج۱۸، ص۱۰، سورة المؤمنون) و مثله فی تفسیر المظهری ج۶، ص۳۶۸، سورة المؤمنون.

## د چاد لاسونو او پښو د ښکُلولو حکم

**سوال:** د یوه قابل تعظیم سړي د لاس او پښې ښکُلول شرعا جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د قابل تعظیم اشخاصو د لاسونو په ښکُلولو کښې څه حرج نشته خو په دې شرط چه د ښکلولو په وخت کښې د رکوع یا د سجدې حالت منځ ته رانه شي۔

لما قال العلامة الحصکفیؒ: (و لا بأس بتقبیل ید) الرجل (العالم) المتورع علی سبیل التبرك. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۶، ص۳۸۳، کتاب الحظر و الاباحة، فصل فی الاستبراء و غیرها)

لما رواه الامام محمد بن اسمٰعیل البخاریؒ: عن صهیب قال رأیتُ علیاً یقبل ید العباس و رجلیه. (ادب المفرد ص۲۵۴، باب تقبیل الید و الرجل) و مثله فی البحر الرائق ج۸، ص۱۹۸، کتاب الحظر و الاباحة.

## له کفــــــارو سره د مصافحې (سترې مشي) د کولو حکم

**سوال:** نن صبا مسلمان حکمرانان د غیر ملکي دورې په وخت کښې د هغه ځای له کفارو سره مصافحه کوي۔ آیا په اسلام کښې له کفارو سره د مصافحې د کولو اجازه شته او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له کفارو سره د مصافحې کول د عزت او تکریم په نیت سره د ایماني غیرت سره ټکر دی۔ بیا هم که چېرته د مولسات په درجه کښې وي او یا کفارو ته د اسلام خواته د رغبت ورکولو لپاره وي نو بیا څه پروا نه لري۔ البته دا ضروري ده چه د لاس د ورکولو په وخت کښې به "السلام علیکم" نه وایي۔



لما قال العلامه طاهر بن عبد الرشید البخاریؒ: و یکره مصافحة اهل الذمّة. (خلاصة الفتاوٰی ج۴، ص۳۳۴، کتاب الکراهیة، نوع منه فی الاسلام)

قال العلامة الحصکفیؒ: کما کره للمسلم مصافحة الذمّی. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۶، ص۴۱۲، کتاب الحظر و الاباحة، فصل فی البیع) و مثله فی الهندیة ج۵، ص۳۴۸، الباب الرابع عشر فی اهل الذّمّة الخ.

## د مـــــرشد په پښو کښې د لویدلو حکم

**سوال:** ځینې مریدان او واړه هلکان د خپلو پیرانو یا بزرگانو د ملاقات په وخت کښې د هغوی پښو ته لویږي۔ آیا د شریعت له مخې د چا پښو ته لویدل جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له الله تعالی څخه پرته د یوه چا د اسې تعظیم او احترام چه په هغه کښې د رکوع غوندې هیئت منځ ته راځي غیر الله ته د سجدې له کولو سره برابر دی کوم چه شرعا ممنوع او ناجائز دی۔ نو د دې لپاره فقهاء کرامو دا ډول تعظیم مکروه بللی دی۔

لما فی الهندیة: و یکره الانحناء عند التّحیّة و به و رد النهی. (الفتاوی الهندیة ج۵، ص۳۶۹، الباب الثامن و العشرون فی ملاقات الملوك)

قال العلامة عبد الرحمٰن شیخ محمد المدعو بشیخ زادهؒ: و یکره الانحناء لانه یشبه فعل المجوس. (مجمع الانهر شرح ملتقی الابحر ج۲، ص۵۴۲، کتاب الکراهیة، فصل فی البیع)

## د حشرات الارض د سوزولو حکم

**سوال:** د زمکې د حشراتو سوزول شرعا جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د روح لرونکو شیانو په اور کښې سوزول او یا گرمو اوبو پرې اچول یو مکروه عمل دی۔ ځکه چه په اور سره عذاب ورکول د خالق حقیقي خاصه ده۔ د دې لپاره له دې عمل څخه پرهیز ضروري دی۔

لما قال العلامة علی بن سلطان محمد القاریؒ: و اما فی شرعنا فلا یجوز احراق الحیوان با لنّار الا با لاقتصاص و سواء فی منع الاحراق با لنّار القمل و غیره للحدیث المشهور لا یعذب با لنار الا اللّٰه تعالٰی. (مرقات المفاتیح ج۸، ص۱۳۹، باب ما یحل اکله و ما یحرم)

لما فی الهندیة: و احراق القمل و العقرب با لنار مکروه. (الفتاوی الهندیة ج۵، ص۳۶۱، الباب الحادی و العشرون فیما یسع من جراحات الخ)

## په جومات کښې د ورك شوي شي اعلان

**سوال:** په جوماتونو کښې د ورك شوي شیانو اعلان جائز دی او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** جوماتونه د الله تعالی د عبادت لپاره جوړ شوي دي۔ د الٰهي عبادت څخه پرته بل کوم دنیاوي عمل له جومات سره بې ادبي ده۔ او خصوصا د ورك شوي د اعلان په باره کښې خو رسول اللهﷺ ډیر په سختۍ سره منع فرمایلې ده۔ بیا هم که چېرته یو شی په

جومات کښې ورک شوی وي نو د هغه اعلان جائز دی لیکن بیا هم ښه عمل دی۔

لما رواه الامام ابو الحسین مسلم بن الحجاج القشیریؒ: عن شداد بن الهاد انه سمع ابا هریرةؓ یقول قال رسول اللهﷺ من سمع رجلاً ینشد بضالة فی المسجد فلیقل لا ردها الله علیك فان المساجد لم تبن لهذا. (الصحیح المسلم ج۱، ص۲۱۰، باب نشد الضالة فی المسجد)

قال العلامة محمد یوسف البنوریؒ: و اما انشاد الضالة فلهٗ صورتان احدهما و هی القبح و الشنع بان یضل فی خارج المسجد ثم ینشده فی المسجد لاجل اجتماع الناس فیه و الثانیة ان یضل فی المسجد نفسه فینشده فیه و هٰذا یجوز اذا کان من غیر لغط و شغب. (معارف السنن ج۳، ص۳۱۳، باب ما جاء فی کراهیة البیع و الشراء و انشاد الضالة الخ) و مثله فی سنن ابی داؤد ج۱، ص۶۸، باب فی کراهیة انشاد الضالة فی المسجد.

## په جومات کښې د سوال د کولو حکم

**سوال:** په جومات کښې سوال کول او سائل ته څه ورکول جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** جوماتونه د الله تعالی د عبادت لپاره جوړ شوي دي د دې لپاره د الله تعالی له عبادت څخه پرته نور اعمال پکښې جائز او مناسب نه دي۔ بیا هم سائل ته پرته له ایذاء رسولو څخه په څه ورکولو کښې څه حرج نشته۔ البته د جومات د ضروریاتو، جهاد، مدرسې او داسې نورو لپاره چنده جائزه ده۔ له رسول اللهﷺ څخه د نوموړو ضرورتونو لپاره په جومات کښې چنده کول ثابت دي۔

لما قال العلامة علاؤ الدین الحصکفیؒ: و یحرم فیه السوال و قال العلامة ابن عابدینؒ یکره اعطاء سائل المسجد الا اذا لم یتخط رقاب الناس فی المختار. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۶۵۹، مکروهات الصلوٰة)

قال العلامة علی بن سلطان محمد القاریؒ: و یدخل فی هٰذا کل امر لم یبن له المسجد من البیع و الشراء و نحو ذٰلك و کان بعض السلف لا یری ان یتصدق علی السائل المعترض فی المسجد. (مرقاة المفاتیح ج۲، ص۱۹۹، باب المساجد و مواضع الصلوٰة) و مثله فی الاختیار لتعلیل المختار ج۴، ص۱۷۶، کتاب الکراهیة، فصل الکسب.

## په جومـــــــات کښې د ویده کیدلو حکم

**سوال:** جناب مفتي صاحب! په جومات کښې پرته له شرعي عذر څخه خوب کول جائز دي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** جوماتونه د الله تعالی د عبادت او ذکر لپاره جوړ شوي دي۔ د دې لپاره په هغو کښې له عبادت څخه پرته نور کارونه لکه خوب او داسې نور پرته له شرعي عذر څخه فقهاء کرامو مکروه بللي دي۔ بیا هم که چېرته د شرعي عذر له مخې په جومات کښې خوب وشي نو څه بدي پکښې نشته۔ البته د مسافر، معتکف او دیني علومو د طلباوو لپاره په جومات کښې خوب جائز دی۔

لما قال العلامة علاؤ الدین الحصکفیؒ: (یکره) و اکل و نوم الا لمعتکف و غریب. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۶۶۱، مکروهات الصلوٰة)



لمـــــــا ورد فی الحدیث: و عن ابن عمرؓ قال کنا ننام فی المسجد علی عهد رسول اللهﷺ. (ابن ماجة ص۵۴، بـــــــاب تنشید المساجد)

قال الشیخ عبد الغنی المجددی الدهلویؒ: (تحت قولی کنا ننام) و هٰذه رخصةٌ لابن السبیل و المسافر فان ابن عمرؓ ما کان لهٗ حینئذٍ اهل و اما لغیره فیکره الاعتیاد با لنوم فیه. (حاشیة ابن ماجة ۱۵، ص۵۴، باب تنشید المساجد) و مثله فی مرقاة المفاتیح ج۲، ص۱۹۷/۱۹۸، باب المساجد و مواضع الصلوٰة.

## بیا بیا د پرنجي راتللو حکم

**سوال:** یو سړی زکام دی او بیا بیا پرنجي ورځي نو د یوه ځل پرنجي په راتلو سره د هغه ځواب ورکول په اوریدونکي مسلمان باندې ئې حق دی لیکن که بیا بیا وپرنجیږي نو بیا ئې هم په ځواب کښې د "یرحمك الله" ویل ضروري دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په اسلامي شریعت کښې د یوه مسلمان په بل مسلمان باندې څو حقوق لري چه له هغو څخه یو هم د پرنجي په ځواب کښې د "یرحمك الله" ویل هم دي۔ لیکن که یو څوك بار بار پرنجیده نو له درې ځلو څخه په زیات باندې د ځواب په نه ورکولو کښې څه حرج نشته ځکه چه بیا بیا په ځواب ورکولو کښې تکلیف وي۔

لما فی الهندیة: فان عطس اکثر من ثلاث مرات فا لعاطس یحمد الله کل مرةٍ فمن کان بحضرته ان شمته فی کل مرّة فحسن و ان لم یشمت بعد الثلاث تحسن ایضاً. (الفتاوی الهندیة ج۵، ص۳۲۶، الباب السابع فی السلام و تشمیت العاطس)

قال العلامة طاهر بن عبد الرشدی البخاریؒ: و فی العطاس فوق الثلاث ان شمتوه فحسن و ان لم یفعلوا فلا باس به و العاطس یحمد الله. (خلاصة الفتاوٰی ج۴، ص۳۳۴، کتاب الکراهیة، نوع منه فی اسلام) و مثله فی الخانیة علی هامش الهندیة ج۳، ص۴۲۴، کتاب الکراهیة، فصل فی التسبیح و التسلیم الخ.

## له زاني سره د قطع تعلق او د هغه د جنازې د لمانځه د اداکولو حکم

**سوال:** یو سړی په ښکاره توګه یوه پردۍ ښځه د نکاح له تړلو پرته له خپل ځان سره ساتلې ده په داسې حال کښې چه ټوله معاشره د ده په دې قبیح عمل باندې خبر هم دي او د اسلامي حکومت د نشت والي له وجهې د حد جاري کول پرې مشکل دی۔ نو په داسې حالاتو کښې له داسې سړي سره د معاشرتي تعلقاتو په قائمولو سره او یا له هغه سره لین دین او د هغه د جنازې د اداکولو څه حکم دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته په رښتیا سره هم دا سړی همداسې وي په داسې حال کښې چه محصن هم وي نو د شرعي شهادت له ثبوت نه وروسته د رجم قابل دی لیکن دا رجم د قاضي او یا اسلامي حکومت ذمه واري ده۔ عوامو ته د رجم د کولو اجازه نشته او نه له هغه څخه د مالي جرمانې د اخیستلو حق لري۔ البته فقهاء کرامو فرمایلي دي چه په اسلامي ملك

کښې ډير واري له مالي تعزير څخه پرته د چا اصلاح ممکن نه وي او قاضي ئې مناسب وبولي نو مالي تعزير (جرمانه) ورکولی شي۔ ليکن د عوامو لپاره د جرمانې د اخيستلو هيڅکله اجازه نشته۔ عوام الناس دې بايد له د اسې سړي سره خپل تعلق پرې کړي، لين دين، تګ او راتګ دې ورسره بند کړي او همدارنګه د غم او شادي اظهار دې هم ورسره نه کوي تر څو چه له دې وجهې له خپل دې قبيح عمل څخه منع شي۔ او تر کومه ځايه پورې ئې د جنازې د لمانځه تعلق دی نو د اهل سنت علماوو په نزد يو مسلمان د ګناهونو په کولو سره ايمان ترې نه خارجيږي که کبيره وي او که صغيره۔ البته ګنهګار د سزا وړ دی۔ په نوموړي صورت کښې جنازه هم کيږي او د مسلمانانو په قبرستان کښې به هم دفن کيږي۔

لما قال العلامة التمرتاشيؒ: التعزير هو التاديب دون الحد......... لا باخذ مال فی المذهب. (تنوير الابصار على صدر رد المحتار ج ٤، ص ٦١، باب التعزير)

قال العلامة مُلا على القارى رحمه اللّٰه: و لا نكفر مسلماً بذنب من الذنوب و ان كانت كبيرة اذا لم يستحلها. (شرح الفقه الاكبر ص ٧١، الكبيرة لا تخرج المؤمن عن الايمان)

## يو څوك د ظلم او ستم څخه د ساتلو په خاطر د دروغ ويلو حکم

**سوال:** که چېرته په چا باندې د ظلم او ستم د کيدلو خطر وي په د اسې حال کښې د دروغ د ويلو څخه ئې پرته دفع ممکنه نه وي۔ نو آيا هغه لره د ظلم او ستم څخه د منع کولو لپاره په شريعت کښې د دروغ ويلو اجازه شته او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** دروغ يو د اسې عمل دی چه په هر وخت او حالت کښې جائز نه دی ځکه چه اللّٰه تعالى له دروغو څخه خلك سخت منع کړي دي۔ او په نبوي حديث کښې هم د دروغو په باره کښې وعيدونه راغلي دي۔ ليکن که چېرته په کوم انسان باندې د ظلم او ستم خطر وي چه د دروغو له ويلو پرته ئې مخنيوی ممکن نه وي نو په د اسې حالاتو کښې توريه کول مباح دي کوم چه په حقيقت کښې دروغ نه بلل کيږي اګر که په ظاهره دروغ معلوميږي او يا په دين باندې د حملې کولو خطر وي خو په د اسې حال کښې چه د ظاهري دروغو څخه ئې د خلاصون بله لاره نه وي نو په د اسې صورت کښې دروغ ويل مرخص دي۔

لما قال العلامة علاؤ الدين الحصكفى رحمه اللّٰه: الكذب مباح لاحياء حقه و دفع الظلم عن نفسه و المراد التعريض لان عين الكذب حرام. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج٦، ص٤٢٧، كتاب الحظر و الاباحة، فصل فى البيع)

قال العلامة طاهر بن عبد الرشيد البخارىؒ: جوز الكذب فى ثلاثة مواضع فى الصلح بين الناس و فى الحرب و مع امرأته. (خلاصة الفتاوىٰ ج ٤، ص ٣٤٦، الفصل الثالث فيما يتعلق با لمعاصى، كتاب الكراهية) و مثله فى البزازية على هامش الهندية ج٦، ص ٣٩٥، الباب الثالث فيما يتعلق با لمناهى.



## د زلزلې په وخت کښې له کورونو څخه د بهر وتلو حکم

**سوال:** د ځينو خلکو د ا عادت وي چه د زلزلې په وخت کښې له کوټو او کورونو څخه په چټکۍ سره د باندې را ووځي۔ آيا په شريعت مقدسه کښې د زلزلې په وخت کښې له کورونو څخه وتل جائز دي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د زلزلې په وخت کښې لکه څرنګه چه د آباديو او کورونو د ړنګيدو او يا بل کوم نقصان خطر وي او د خپل ځان حفاظت هم ضروري وي۔ نو د دې لپاره په د اسې وخت کښې له کورونو څخه د باندې وتل نه يوازې جائز بلکه بهتر دي۔ ځکه چه د نه وتلو په صورت کښې خپل ځان هلاکت ته له ور اچولو سره برابر دی او اللّٰه تعالى له دې څخه خلك منع کړي دي۔

لما قال اللّٰه تبارك و تعالىٰ: وَ لَا تُلْقُوْا بِاَيْدِيْكُمْ اِلَى التَّهْلُكَةِ وَ اَحْسِنُوْا اِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الْمُحْسِنِيْنَ☆ (البقرة آيت ١٩٥)

لما قال العلامة ابن البزاز الكردرى رحمه اللّٰه: و اذا تزلزلت الارض و هو فى بيته له الفرار الى الصحراء. (الفتاوى البزازية على هامش الهندية ج٦، ص ٣٧١، الباب التاسع فى المتفرقات) و مثله فى الدر المختار على صدر رد المحتار ج٦، ص ٤٦١، كتاب الكراهية.

## سنـــــدرې، سازونه او سروزونه د خپل معاش ذريعه جوړول

**سوال:** د فحاشي او بې ديني په دې دور کښې ځينې خلك ساز او سرود د خپلې ګټې ذريعه ګرځولې ده۔ يعنې د فلمونو، راډيو او د اسې نورو لپاره سندرې ليکي او په بدل کښې ئې له هغو څخه پيسې لاس ته راوړي۔ آيا ساز او سرود د معاش ذريعه ګرځول جائز دي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د ساز او سرود په ذريعې سره ګټه کول او هغه لره د خپل معاش ذريعه جوړول جائز نه دي۔ نبي کريمﷺ له دې څخه خلك منع کړي دي ځکه چه په ساز او سرود باندې په زړه کښې سختي او له دين څخه لرې والی پيدا کيږي۔ له دې وجهې د ساز او سروز په ذريعې سره ګټل شوی مال به حرام وي۔

لما قال العلامة ابن الهمام رحمه اللّٰه: و يكره كسب المغنية و النائحة كذا فى الجوامع الفقه على ان التغنى للهو او جمع المال حرام. (فتح القدير ج٧، ص٤٥٨، كتاب الكراهية)

لما فى الهندية: امرأة نائحة او صاحب طبلٍ او مزمار اكتسب مالاً...... بازاء النياحة....... او بازاء الغناء فكان الأخذ معصية و السبيل فى المعاصى ردّها. (الفتاوى الهندية ج٥، ص٣٤٩، الباب الخامس عشر فى الكسب) و مثله فى مجموعة الفتاوىٰ ج ٢، ص ٢٩٠، كتاب الحظر و الاباحة.

## له اودسه پرته په قرآنکريم باندې د لاس لګولو حکم

**سوال:** يو سړی له حکمي نجاست څخه پاك دی ليکن اودس ئې نشته۔ نو آيا لکه څرنګه چه د لمانځه لپاره اودس کيږي د اسې به په قرآنکريم باندې د لاس لګولو لپاره هم اودس کوي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** قرآنکریم لکه څرنګه چه الٰهي کلام دی له دې وجهې مقام او مرتبه ئې هم لوړه ده او د لاس وروړلو لپاره ئې له ظاهري او باطني ناپاکي څخه پاکوالی ضروري دی. ځکه چه په قرآنکریم کښې الله تعالی فرمایلي دي چه ناپاك سړی قرآنکریم نه شي مس کولی یعنې لاس نه شي وروړلی. نو د دې لپاره بې اودسه انسان دې باید قرآنکریم ته لاس ور نه وړي. البته له غلاف سره ئې مس کول څه پروا نه لري. او له غلاف څخه هغه غلاف مراد نه دی چه له قرآنکریم سره له ځایه لګیدلی وي بلکه هغه غلاف ترې مراد دی چه ورسره ګنډل شوی نه وي.

لما قال الله تبارك و تعالٰی: لَا يَمَسُّهٗٓ اِلَّا الْمُطَهَّرُوْنَ☆ تَنْزِيْلٌ مِّنْ رَّبِّ الْعٰلَمِيْنَ☆ (سورة الواقعة، آیت ۷۹/۸۰)

قال العلامة ابن عابدینؒ: و مسه ای مس المقرآن و لوح او درهم او حائط........ الاّ بغلافه. (رد المحتار ج۱، ص ۲۱٤، باب الحیض) و مثله فی الفوائد العثمانیة ص ۷۱۲، للعلامة شبیر احمد عثمانیؒ.

## په قاري یا د تلاوت په اوریدونکو باندې د سلام اچولو حکم

**سوال:** یو قاري د قرآنکریم تلاوت کوي او نور خلك ورته ناست دي او د قرآنکریم تلاوت اوري. نو آیا په دوی باندې سلام اچول څنګه دي؟ او که څوك ئې پرې واچوي نو په ناستو خلکو باندې ئې ځواب ورکول لازم دي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** نبي کریمﷺ په څو ځایونو باندې د سلام اچولو تاکید کړی دی لیکن ځینې ځایونه داسې دي چه په هغو کښې سلام اچول مکروه دي. له دغو ځایونو څخه یو د تلاوت قرآنکریم مجلس هم دی. د قرآن پاك عظمت ته په پاملرنې سره د تلاوت په وخت کښې سړی باید سلام وانه چوي او فقهاء کرامو تصریح کړې ده چه په داسې محفل باندې په سلام اچولو سره په ناستو کسانو باندې ئې ځواب نه لازمیږي.

لما فی الهندیة: و یکره السلام عند قرأة القرآن جهراً و کذا عند مذاکرة العلم و عند الآذان و الاقامة و الصحیح انهٗ لا یرد فی هٰذه المواضع. (الفتاوی الهندیة ج۵، ص۳۲۵، الباب السابع فی السلام)

قال العلامة علاؤ الدین الحصکفی رحمه الله: و یکره علی عاجزٍ عن الرّد حقیقةً کاکلٍ او شرعاً کمصلٍّ او قارئٍ و لو سلم لا یستحق الجواب و هو الصحیح. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۵، ص٤۱۵، کتاب الحظر و الاباحة و مثله فی فتاوٰی قاضی خان علی هامش الهندیة ج۳، ص٤۲۲، کتاب الکراهیة، فصل فی التسبیح و التسلیم.

## غائب ته د سلام د لیږلو حکم

**سوال:** ډیر وارې د یوه سړي په ذریعه بل غائب سړي ته سلامونه لیږل کیږي. آیا په سړي باندې غائب ته د سلامونو لیږل ضروري دي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** فقهاء کرامؒ تصریح کړې ده چه چا ته سلام لیږل یو مسنون عمل دی. لیکن ځواب ورکول ئې هم ضروري او واجب عمل دی. او که چېرته چا ته د کوم سړي له خوا یوه غائب سړي ته د سلام د رسولو ذمه وارې ور وسپارل شي نو په هغه باندې نوموړي غائب ته



د سلام رسول واجب دي. او چا ته چه سلام ورسول شي نو هغه هم باید چه اول د سلام رسوونکي ته د سلام ځواب ورکړي او بیا دې د سلام لیږونکي ته د سلام ځواب ورکړي. یعنې باید په ځواب کښې وعلیك و علیه السلام ووایي.

لما ورد فی الحدیث: عن اسماعیل عن غالبٍ قال انا لجلوس بباب الحسن اذ جاء رجل فقال حدثنی ابی عن جدی قال بعثنی ابی الی رسول اللهﷺ قال ائته فاقرأه السلام قال فاتیته فقلتُ ان ابی یقرئك السّلام فقال علیك و علی ابیك السلام. (سُنن ابی داؤد ج۲، ص۳٦۳، باب فی الرجل یقول فلان یقرئك السلام)

لما فی الهندیة: و اذا مر رجُلا ان یقرء سلامه علی فلان یجب علیه ذٰل. (الفتاوی الهندیة ج۵، ص۳۲٦، الباب السابع فی السلام الخ) و مثله فی الدر المختار علی صدر رد المحتار ج٦، ص٤۱۵، باب الحظر و الاباحة.

## سرتور سر د لمانځه د اداکولو حکم

**سوال:** ځینې خلك سرتور سر لمونځ کوي او دا ئې عادت جوړ شوی وي. آیا په سرتور سر لمونځ اداکول شرعا جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته یو څوك محض د سستۍ او غفلت له مخې سرتور سر لمونځ وکړي او د خولۍ یا پټکي د په سر کولو پاملرنه نه کوي نو مکروه دی. البته که چېرته د عاجزي او تذلل له وجهې سرتور سر لمونځ کوي نو بیا څه کراهیت پکښې نشته. او که چېرته د پټکي یا خولۍ په سرولو ته د حقارت یا نفرت په نظر ګوري نو بیا د کافر کیدو خطره ده.

لما قال العلامة الحصکفیؒ: و یکره صلاته حاسراً ای کاشفاً رأسه للتکاسل و لا بأس به للتذلل اما الاهانة بها فکفر و لو سقطت قلنسوته فاعادتها افضل. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص٤۷٤، مکروهات الصلٰوة)

قال الشیخ ابراهیم الحلبیؒ: یکره ان یصلّی حاسراً ای حال کونه کاشفاً رأسه تکاسلاً ای لاجل الکسل و بسببه ان استقل تغطیته و لم یرها امراً مهمّا فی الصلٰوة و لا بأس بهٖ اذا فعل بهٖ تذلّلا و خشوعاً. (حلبی کبیر ص۳٤۸، مکروهات الصلٰوة) و مثله فی الخانیة علی هامش الهندیة ج۱، ص۱۳۵، کتاب الصلٰوة، فصل فی مکروهات الصلٰوة.

## د بریتونو د خریلو حکم

**سوال:** آیا د بریتون خریل بهتر دي او که کمول. ځینې خلك ئې د بیاتۍ په ذریعې سره کموي او خریل ئې مناسب نه بولي آیا دا خبره صحیح ده او که څنګه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د بریتونو په باره کښې علماء کرامو د خریلو او لنډولو دواړو په باره کښې خبره کړې ده. په خریلو او لنډولو کښې ئې هیڅ حرج نشته. لیکن د اکثرو علماء کرامو رایه دا ده چه په لنډولو کښې ئې باید دومره مبالغه وشي چه د خریلو غوندې معلوم شي. نو په داسې کولو سره په خریلو او لنډولو دواړو باندې عمل کیږي.

لما قال العلامة لشیخ احمد الطحطاویؒ: و یستحب احفاء الشوارب و نراه افضله من قصها و فی شرح شرعة الاسلام. قال الامام الحفاء قریبٌ من الحلق. (الطحطاوی ص۲۸۷، باب الجمعة)

لما فی الهندیة: و یأخذ من شاربه حتیٰ یصیر مثل الحاجب......... قص الشارب حسن......... و تقصیر ان یأخذ حتیٰ تنقص من الاطار. (الفتاوی الهندیة ج۵، ص۳۵۸، الباب التاسع عشر فی الختان و الخصاء) و مثله فی البحر الرائق ج۸، ص۲۰۵، کتاب الکراهیة، فصل فی البیع.

## د ښځو لپاره د سر د ویښتانو د لنډولو حکم

**سوال:** نن صبا ځینې فیشن پرسته ښځې د سر ویښتان لنډوي نو آیا د ښځو لپاره د خپلو ویښتانو لنډول شرعا جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د ښځو لپاره نبي کریم ﷺ له سړیو سره مشابهت ممنوع ګرځولی دی۔ لکه ځرنګه چه د سر ویښتانو لنډول د سړیو معمول دی له دې وجهې د ښځو لپاره دې طریقې لره خپلول له سړیو سره د مشابهت له وجهې حرام دي۔ البته د بیمارۍ او عذر په صورت کښې د ویښتانو پرې کول یا لنډول ورته جائز دي۔ په حج او عمره کښې هم د ښځو لپاره د ویښتانو د لنډولو اجازه شته۔

قال العلامة ابن نجیم رحمه اللّٰه: و اذا حلقت المرأة شعر رأسها فان کان لوجع اصابها فلا باس به و ان حلقت تشبیها با لرجال فهو مکروه. (البحر الرائق ج۸، ص۲۰۵، کتاب الکراهیة، فصل فی البیع)

لما فی الهندیة: و لو حلقت المرأة رأسها فان فعلت بوجع اصابها لا بأس به و ان فعلت ذٰلک تشبیها با لرجل فهو مکروه. (الفتاوی الهندیة ج۵، ص۳۵۸، الباب التاسع عشر فی الختان و الخصاء) و مثله فی الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۶، ص۴۰۷، کتاب الحظر و الاباحة.

## د مغـــــــربي فیشن مطابق د سر د ویښتانو جوړول

**سوال:** که چېرته یو مسلمان د خپل سر ځینې ویښتان په زیاتې اندازې سره کم کړي او ځینې په کمې اندازې سره او ځینې وخرېي آیا په دې ډول یا د مغربي فیشن مطابق خپل سر جوړول د شریعت له مخې جواز لري او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** نبي کریم ﷺ خو یا خپل سر خریلی وو او یا ئې په درېو طریقو سره (فره، لمه او جمه) خپل سر مبارك جوړ کړی وو۔ له دې وجهې که چېرته ځینې ویښتان په زیاتې اندازې سره لنډ کړي او ځینې په کمې اندازې سره او ځینې پرېږدي او ځینې وخرېي۔ نو دا ډول د ویښتانو جوړول د نبي کریم ﷺ له طریقې څخه لرې او د نورو قومونو سره مشابهت دی۔ د دې لپاره له کفارو سره د مشابهت له وجهې د دې ډول ویښتانو جوړولو څخه اجتناب ضروري دی۔

لما ورد فی الحدیث عن ابن عمرؓ قال قال رسول اللّٰه ﷺ من تشبه بقوم فهو منهم. (ابو داؤد ج۲، ص۲۰۳، کتاب اللباس)

لما فی الهندیة: ان السنة فی شعر الرأس اما الفرق و اما الحلق و ذکر الطحاوی ان الحلق سنة. (الفتاوی الهندیة ج۵، ص۳۵۷، الباب التاسع عشر فی الختان و الخصاء)



## د غیر ضروري ویښتانو د خریلو حکم

**سوال:** د نامه لاندې د ویښتانو د صفایي یا خریلو کومه ښه طریقه ده؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د نر او ښځې لپاره چه په کومې طریقې سره وي له خپل بدن څخه د غیر ضروري ویښتانو لرې کول ضروري دي۔ او د لرې کولو لپاره ئې له آلې یا دوایي څخه کار اخیستل جائز دي۔ البته د ښځو لپاره د ګوتو په واسطه سره د دغو ویښتانو ایستل ښه کار دی۔

لما قال العلامة ملا علی القاریؒ: قالوا الاولی للمرأة النتف لانه انطف و ابعد لنفرة الحلیل من بقایا اثر الحلق و لان شهوة المرأة اضعاف شهوة الرجل. اذ جاء ان لها تسعة و تسعین جزءً منها و للرجل جزءٌ و النتف یضعفها و الحلق یقویها فامر کل منها بما هو انسب به. (مرقات شرح مشکٰوة ج۲، ص۵)

قال العلامة ابن عابدینؒ: (قوله و یستحب حلق عانته) قال فی الهندیة و یبتدی من تحت السرة و لو عالج با لنورة یجوز. کذا فی الغرائب و فی الاشباه و السّنة فی عافة المرأة النتف. (رد المحتار ج۶، ص۴۰۶، کتاب الحظر و الاباحة، فصل فی البیع)

## د نامه لاندې ویښتانو د صفایي اندازه

**سوال:** په شریعت کښې د نامه لاندې د ویښتانو پاکوالی له کوم ځای څخه تر کومه ځایه پورې ضروري ده؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د حدیثو عامو شراحو او فقهاوو په قول سره د شرمګاه یعنې فرج ګیر چاپیره صفا کول ضروري دي۔ تر نامه پورې ئې صفا کول لازم نه دي۔

لما قال الامام محی الدین ابو زکریا یحیٰ بن شرف النوویؒ: المراد با لعانة الشعر الذی فوق ذکر الرجل و حوالیه و کذٰلک الشعر الذی حوالی الفرج المرأة. (شرح صحیح المسلم للنووی ج۱، ص۱۲۸، باب خصال الفطرة)

قال الشیخ القاضی محمد بن علی الشوکانی رحمه اللّٰه: و المراد با لعانة الشعر فوق ذکر الرجل و حوالیه و کذٰلک الشعر الذی حول فرج المرأة. (نیل الاوطار ج۱، ص۱۲۳، باب الختان)

## د نامه لاندې د ویښتانو د پاکوالي مستحب وخت

**سوال:** د نامه لاندې د ویښتانو د صفایي په کوم وخت کښې مستحب دی؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د نامه لاندې د ویښتانو صفایي په هفته کښې یو ځل مستحب دی۔ او له څلویښتو ورځو څخه زیات ځنډ پکښې کول مکروه دي۔

قال العلامة علاؤ الدین الحصکفیؒ: (و یستحب) حلق عانة و تنظیف بدنه با لاغتسال فی کل اسبوع مرة) و الافضل یوم الجمعة و جاز فی کل خمسة عشر و کره ترکه وراء الاربعین. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۴، ص۴۰۶، کتاب الحظر و الاباحة، فصل فی البیع)

و فی الهندیة: و الافضل ان یقلم اظفاره و یحفی شاربه و یحلق عانته و ینظف بدنه با لاغتسال فی کل الاسبوع مرة فان لم یفعل ففی کل خمسة عشر یوماً لا یعذر فی ترکه وراء الاربعین فا لاسبوع هو الافضل و الخمسة عشر

الاوسط والاربعون الابعد و لا عذر فیما وراء الاربعین و یستحق الوعید. (الفتاوی الهندیة ج٥، ص٣٥٧، الباب التاسع عشر فی الختان و الخصاء الخ) و مثله فی مجمع الانهر فی شرح ملتقی الابحر ج٢، ص٥٥٦، کتاب الکراهیة.

## په پیدائښت توګه د مختون (سنت شوي) بچي د ختنې حکم

**سوال:** که چېرته یو بچی مختون (سنت شوی) پیدا شي او حشفه ئې له پوستکي څخه د باندې وي لیکن په مکمله توګه راوتلی نه وي نو آیا دوباره به سنت کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د مختون بچي په باره کښې دې له مشرانو سره مشوره وکړی شي۔ که چېرته سنتې ئې یقیني وي نو دوباره ختنه کول ئې ضروري نه ده۔

لما قال العلامة طاهر بن عبد الرشید البخاریؒ: الصبی اذا کانت حشفته ظاهرة و لا یمکن ان یمد جلد ذکره الاّ بتشدید و ظهور حشفته بحاله لو رأها انسان یراها کانهٗ اختتن لا یتشدد علیه و یترك و لا یتعرض. (خلاصة الفتاوی ج٤، ص٣٤٠، کتاب الکراهیة، جنس آخر)

و فی الهندیة: الصبی اذا لم یختن و لا یمکن ان یمد جلدته لتقطع الا بتشدید و حشفته ظاهرةٌ اذا راٰه الانسان یراه کانه ختن ینظر الیه الثقات و اهل البصر من الحجامین فان قالوا هو علٰی خلاف ما یمکن الاختتان فانهٗ لا یشدد علیه و یترك. (الفتاوی الهندیة ج٥، ص٣٥٧، الباب التاسع عشر فی الختان و الخصاء)

## له بلوغ نه وروسته د ختنې په صورت په شرمګاه باندې د نظر د لویدلو حکم

**سوال:** له بلوغ نه وروسته د ختنې په صورت کښې شرمګاه ته کتل شرعا څه حکم لري؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** ختمن د اسلام له شعائرو څخه ګڼل کیږي چه شرعا په هر مسلمان باندې لازمي ده نو د ضرورت له وجهې د ډاکټر یا حجام لپاره شرمګاه ته کتل مرخص دي۔

لما قال العلامة الکاسانیؒ: فلا بأس ان ینظر الرجل من الرجل الی موضع الختان لیختنه او یداویه بعد الختن. (بدائع الصنائع فی ترتیب الشرائع ج٥، ص١٢٣، کتاب الاستحسان)

قال العلامة ابن البزاز الکردریؒ: یجوز النظر الی فرج الرجل للختن. (الفتاوی البزازیة علی هامش الهندیة ج٦، ص٣٧٢، کتاب الکراهیة، الباب التاسع فی المتفرقات) و مثله فی رد المحتار ج٦، ص٣٧١، کتاب الحظر و الاباحة، فصل فی النظر و المس.

## د مخ د زائدو ویښتانو د لرې کولو حکم

**سوال:** له مخ څخه له ږیرې پرته د زائدو ویښتانو لرې کول شرعا جائز دي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د ږیرې له حدودو څخه پرته د مخ د زائدو ویښتانو په لرې کولو کښې شرعا څه قباحت نشته۔ بیا هم دومره مبالغه پکښې مه کوی چه له مخنث سره مو مشابهت وشي۔

لما قال العلامة ابن عابدینؒ: و لا بأس باخذ الحاجبین و شعر وجهه ما لم یشبه المخنث. (رد المحتار ج٦، ص٤٠٧، کتاب الحظر و الاباحة، فصل فی البیع)



قال العلامة الاستاد محمد الشهیر با لطوری فی تکملة البحر: و لا باس بان یأخذ الحاجبین و شعر وجهه ما لم یشبه المخنث. (البحر الرائق ج٨، ص٢٠٤، کتاب الکراهیة، فصل فی البیع)

## د ږیرې شـــــرعي اندازه

**سوال:** جناب مفتي صاحب! په شریعت مقدسه کښې د ږیرې د پرېښودلو څه حد ټاکل شوی دی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** ږیره د انبیاء علیهم السلام سنت قدیمه ده او د اسلام له شعائرو څخه ګڼل کیږي۔ د فقهاء کرامو د تحقیقاتو په رڼا کښې د ږیرې پرېښودل واجب دي او اندازه ئې یو موټی دی۔ له دې څخه کم پرېښودل ئې د سنتو خلاف دی۔

لما رواه امام ابو یوسف یعقوب بن ابراهیم الانصاریؒ: عن ابن عمرؓ انه کان یقبض علی لحیته فیاخذ منها ما جاوز القبضة. (کتاب الآثار للامام ابو یوسف ص٢٣٤، فی الخضاب و الاخذ من اللحیة، رقم حدیث ١٠٣٩)

قال العلامة علی بن سلطان محمد القاریؒ: و فی الاحیاء قد اختلفوا فیما طال من اللحیة ان قبض الرجل علٰی لحیته و اخذ ما تحت القبضة فلا بأس به و قد فعله ابن عمرؓ من التابعین و استحسنه الشعبی و ابن سرین. (مرقاة المفاتیح ج٨، ص٢٩٨، باب الترجل، الفصل الاول) و مثله فی کتاب الآثار للمحمد ص١٩٨، باب حف الشعر من الوجه.

## د مصافحې نه وروسته د لاسونو د ښکُلولو حکم

**سوال:** جناب مفتي صاحب! ځیني خلك داسې دي چه له چا سره ملاقات کوي نو له مصافحې څخه وروسته خپل لاسونه ښکلوي۔ آیا په شریعت کښې د دې څه ثبوت شته او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له یوه او بل سره د ملاقات په وخت کښې له مصافحې کولو نه وروسته د خپلو لاسونو ښکلول مکروه دي۔ په شریعت مقدسه کښې د دې کوم ثبوت نشته۔

لما قال العلامة الحصکفیؒ: و کذا ما یفعله الجهال تقبیل ید نفسها اذا لقی غیرہ فهو مکروه فلا رخصه فیه. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج٥، ص٢٤٥، کتاب الکراهیة)

## لـــــــه بې دینو ښځو څخه د پردې حکم

**سوال:** جناب مفتي صاحب! ځیني ښځې بد اخلاقې او بدکرداري وي۔ او د شریفانو او دیندارو کورونو ته ئې تګ او راتګ د فتنې او فساد د پیدا کیدو هر وخت خطر وي نو آیا شرعا د دې خبرې اجازه شته چه د دیندارو کورنیو پرده لرونکې ښځې له هغو څخه پرده وکړي او که څنګه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** اسلام د انسان د عفت او عصمت، عزت او آبرو پاملرنه کړې ده۔ او په کومو عواملو سره چه د چا عفت، عظمت او عصمت تر پښنو لاندې کیږي له هغو څخه ئې ممانعت کړی دی۔ لکه د دیندارو او پرده لرونکو خلکو کورونو ته د بدو اخلاقو لرونکو ښځو په تګ او راتګ سره معصوم بچیان په ځانګړې توګه د عفت لرونکو ښځو د متاثر کیدو خطره

وي۔ له دې وجهې له فتنې او فساد څخه د بچ کیدو په خاطر له بې دینه او بد اخلاقو ښځو څخه د عفت لرونکو او دیندارو ښځو پرده ضروري ده۔

لما قال العلامة ابن عابدين رحمه الله: و لا ينبغى للمرأة الصالحة ان تنظر اليها المرأة الفاجرة لانها تصفها عند الرجال فلا تضع جلبابها و لا خمارها. (رد المحتار ج۵، ص۲۳۸، کتاب الحظر و الاباحة، فصل فى البيع)

## د ټیلیویزون بد اثر او د مسلمانانو ذمه واري

**سوال:** مخدومي حضرت شیخ الحدیث صاحب مد ظله! دلته په کلیرنس سټریټ بولټن یوکې کښې په هر کور کښې د زړه د خوشحالولو او د وخت د تیرولو لپاره ټیلیویزونونه لګیدلي دي۔ چه اکثر پروګرامونه ئې داسې دي چه بربنډې یا نیم بربنډې نجونې رقص او سرود پکښې کوي۔ سازونه، سروزونه، غیږې ورکول، ښکلول او داسې نورو فحاشیو خپرونه پکښې کیږي۔ د عیسائیت مشهوري، د عالمي ښائست لرونکو نجونو د غوره کولو زړه راکښونکی مناظر او مختلف فلمونه ترې خپریږي۔ غیر محرم سړی او ښځه او د یوې کورنۍ غړي لکه مور او ځوی، خور او ورور پلار او لور ټول سره یو ځای ناست وي او د دغو فلمونو حیا سوزوونکو مناظرو ته ګوري۔ تعلیم، دنیاوي امورو او تقریبا په ټولو کارونو کښې خنډونه او پید اوار کښې کمی منځ ته راځي۔ د رنګون یوه مفتي صاحب جواز هم ورکړی دی۔ جناب صاحب! مونږ د داسې ټیلیویزون له شرعي حیثیت څخه خبر کړی۔ مونږ به ستاسو ټول کاغذونه فوټو کاپي کوو او په فریم کښې ئې له بندولو سره د انګلینډ په ټولو جوماتونو کښې لګوو۔ تر څو مسلمانان خبر شي او د داسې ټیلیویزون له بدو اثراتو او تباه کاریو څخه ځانونه وساتلی شي۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د ټیلیویزون په باره کښې ستاسو خبرې بالکل صحیح دي۔ تصویر ایستل او تصویر پرستي د اسلام له مخې حرامه ده۔ او بیا دا هم چه په ټیلیویزون کښې د فحاشي او بربنډوالي غلبه هم وي۔ نو نتیجه ئې پرته له بد اخلاقیو خپرولو څخه نور څه شی ده۔ په دې کښې بد اخلاقي، بې لارې، ماده پرستي، خدا فراموشي، بې حیایي او د وخت ضائع کولو پرته بل څه نشته۔ په ځانګړې توګه په یورپي ملکونو کښې د دغو شیانو تباهي نوره هم زیاته ده۔ تصویر کشي د غلطو تاویلاتو له مخې خوك نه شي روا کولی۔ او نه د نر او ښځو لپاره د نامحرمو خو ته کتل اګر که د آئینې یا تصویر په شکل کښې هم وي جائز کیدلی شي۔ الغرض د ټیلیوژون مفاسد او قبائح یقیني دي د دې لپاره ټولو مسلمانانو ته له دې لعنت څخه ځان ساتل ضروري دي۔ خصوصا په اروپا کښې د اوسیدونکو مسلمانانو ته ډیره لویه ذمه واري ور اووښتې ده۔ هغوی باید چه د اسلام عملي نمونه او مبلغ جوړ شي۔ نه داسې چه پخپله په اروپایي تهذیب کښې ورك شي۔ او خپل اسلامي حیثیت له منځه یوسي۔ افسوس چه دا بد اخلاقۍ زمونږ په ملك کښې هم په ډیرې چټکۍ سره روانې دي۔ د کورنۍ په افرادو او د ښځو، زامنو او لوڼو په اخلاق او نفسیاتو باندې چه له ټیلیوژون څخه کوم قبیح او بد اثرات



لوېږي ټول مسلمان قوم ترې غافل دی چه په آخر کښې به ئې نتیجه د عامو خرابیو او پراخو بربادیو په شکل کښې څرګندیږي لیکن په هغه وخت کښې به ئې مخنیوی ډیر مشکل وي۔

## د ټیلیویژون او وي سي آر شرعي حکم

**سوال:** آیا په ټیلیویژون او وي سي آر باندې غیر محرمو ښځو او سړیو ته کتل او د غیر محرمې ښځې نغمې او آواز اوریدل او له ټیپ او داسې نورو آلاتو څخه د سروز اورول جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په ټي وي او وي سي آر باندې غیر محرمو ښځو او سړیو ته په شهوت سره کتل او د غیر محرمې ښځې نغمې او آوازونه اوریدل او له ټیپ څخه د سروز اوریدل ناجائز او حرام دي۔ ځکه چه کوم شیطاني لذت په اصل کښې له کتلو او اوریدلو څخه حاصلیږي نو همدا الذت د هغو له عکس او آواز څخه هم حاصلیږي۔

د دې اجمال تفصیل دا دی چه په تصویر او عکس کښې فرق دی او هغه دا چه کوم شکل چه له اوسپنې، تار، رنګ او پلاستیك او داسې نورو جِرم لرونکو شیانو څخه جوړ شي نو هغه ته تصویر ویل کیږي او هغه په قدرتي توګه بقا او اثبات لري۔ او کوم شکل چه له آئینې او داسې نورو سره د تقابل (مخامخ کولو) په وخت کښې ښکاره کیږي هغه ته عکس ویل کیږي۔ دا عکس یوائې انتقاش وي جرم لرونکی او جسد نه وي او په طبعي توګه بقا او اثبات نه لري۔ بلکه د تقابل (مخامخ والي) له زوال سره زائل کیږي۔ هم۔ البته هغه لره په مصنوعي توګه باقي او برقرار ساتل کیږي۔ او د تصویر غونډې ښکاریږي۔ بلکه په عام عرف کښې دې ته هم تصویر ویل کیږي لکه چه په عام عرف کښې د اصل آواز عکس او د آواز بیرته راګرځیدنه چه په مصنوعي توګه د پاتې ساتلو څخه وروسته هغه ته هم اصل آواز ویل کیږي او د شرعي اصولو په بناء سره په صورت او عکس کښې نور فرق هم شته او هغه دا چه د ژوندي او ساه لرونکو شیانو تصویر شرعا ناجائز دی۔ نبي کریم ﷺ فرمایي:

من صور صورة فى الدنيا كلف يوم القيٰمة ان ينفخ فيها الروح و ليس بنافخٍ. (صحيح البخارى ج۲، ص۸۸۱، باب من لعن المصوّر)

"چا چه د کوم ژوندي شي عکس جوړ کړ د قیامت په ورځ به ئې الله تعالٰی مکلف او مجبوره کوي چه په هغه کښې به روح اچوي او هغه به روح پکښې نه شي اچولی"۔

او آئینې او داسې نورو ته په کتلو سره عکس جوړول ناجائز نه دي۔ ځکه چه نبي کریم ﷺ آئینې ته کتل۔

په فیض القدیر کښې د سنن ابن ماجه، طبراني، اوسط بیهقي په حوالې سره لیکل شوي دي:

كان اذا نظر فى المرآة قال الحمد لله.

"یعنې پیغمبر ﷺ به چه کله په آئینه کښې کتل نو د الله تعالٰی حمد به ئې بیان کړ"۔

څرګنده دې وي چه د عکس غونډې بُت او تصویر نه کتل هم پخپل ذات کښې جائز نه دي- الله تعالی فرمایي:

وَ تَرٰهُمْ يَنْظُرُوْنَ اِلَيْكَ وَ هُمْ لَا يُبْصِرُوْنَ☆ (سورة الاعراف)

"او ته ئې وینې چه ستا خوا ته ګوري په داسې حال کښې چه دوی هیڅ نه ویني"۔

په بخاري شریف کښې له حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها څخه روایت دی چه:

انها اشترت نمرقة فيها تصاوير فلما راها رسول الله ﷺ قام على الباب فلم يدخل. (صحيح بخارى ج۲، ص ۸۸۱، باب من لم يدخل بيتاً فيه صورة)

"یعنې عائشه صدیقه رضی الله عنها یوه تکیه واخیسته چه په هغې کښې تصویرونه وو- پس چه کله رسول الله ﷺ ولیده نو په دروازه کښې ودرید او د ننه ئې تشریف یو نه وړ"۔

نو د دغو دلائلو له مخې عکس، تصویر او بت ته کتل ممنوع نه دي بلکه که چېرته د هغو په کتلو کښې فساد موجود وي لکه د دې لپاره ورته کتل کیږي چه شیطاني تفریح او شیطاني لذت ترې حاصلوي نو ممنوع دی- د بخاري شریف په یوه حدیث کښې راغلي دي چه:

لا تباشر المرأة المرأة فتنعتها لزوجها كانهٗ ينظر اليها. (صحيح البخارى ج۲، ص۷۸۸، باب لا تباشر المرأة المرأة فتنعتها لزوجها)

"هیڅ یوه ښځه به له بلې ښځې سره یو ځای نه پریوځي ځکه چه د بلې ښځې د اندامونو ترجماني خپل خاوند ته کوي نو ګواکه خاوند ئې هغه بله ښځه پخپله ویني"۔

د دې حدیث په رڼا کښې کله چه د خپلې ښځې په بیانولو سره د هغې د خاوند په دماغو کښې د بلې پردۍ ښځې له خیالي تصویر څخه لذت حاصلول شنیع او مکروه جوړ شو نو په سترګو سره د لیدونکي عکس او تصویر څخه د الذت حاصلول په طریقه اولٰی سره شنیع او منکر دی ځکه چه په دې کښې دا مفسده زیاته ده۔

او د پردۍ ښځې د نغمې او آوازونو اوریدل حرام دي ځکه چه په دې سره د غیر محرم ښځې میلان پیدا کیږي نو همدارنګه د هغې د نغمې او ترنم او آوازونو د عکس اوریدل به هم حرام وي ځکه چه دا میلان او مفسده په دې کښې هم موجود دی او له ټیپ او داسې نورو څخه د سرود د عکس د اوریدلو حکم هم همداسې دی۔

نو د دې تفصیل په بناء سره څرګنده شوه چه اګر که په ټي وي او وي سي آر کښې خو اصل شی نه معلومیږي بلکه یواځې عکس ښکاره کیږي چه د نوي صناعت له وجهې قائم او ثابت پاتې وي لیکن دا عکس د اصلي اندامونو او ښائست له کوم خیانت څخه پرته ترجماني کوي او د دې عکس په لیدلو سره د اصل د لیدلو غونډې شیطاني لذت او خواهش پوره کیږي- نو په لازمي توګه په دغو آلاتو باندې د ښځو د عکسونو کتل ناجائز او حرام دي همدارنګه د غیر محرمې ښځې لپاره د سرېو د نغمې او آوازونو اوریدل، سرود او عکس لیدل هم حرام دي۔



## د ږیرې مسنونه اندازه

**سوال:** د ږیرې د مسنونې اندازې او د هغې د اوږدولو په باره کښې د شریعت مطهره څه حکم دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د ږیرې د اندازې په باره کښې له ځینو قوي او مشهورو روایتونو څخه دا څرګندیږي چه ږیره پخپل حالت پرېښودل شي او هیڅ لاس وهنه پکښې و نه شي- عن ابن عمرؓ ان رسول الله ﷺ قال احفوا الشوارب و اعفوا اللحٰی. یعنې برېتونه دې کموی او ږیرې دې اوږدوی۔ (ترمذي شریف ج۲، ص ۱۰۰)

له دې برسیره د ابن عمر په یو بل روایت کښې راغلي چه:

عن ابن عمرؓ ان رسول الله ﷺ امر باحفاء الشوارب و اعفاء اللحٰی.

امام ترمذي دواړه روایتونه صحیح او حسن بللي دي او د دواړو راویان ئې ثقه بللي دي- او احادیث د ږیرې د اندازې په باره کښې مطلق دي او د مطلق اوږدولو حکم ئې ورکړی دی کوم چه ترې د ږیرې د اوږدوالي مسنون والی معلومیږي- د دې په مقابله کښې امام ترمذي یو بل روایت نقل کړی دی:

ان النبی ﷺ كان ياخذ من لحيته من عرضها و طولها. چه له دې روایت څخه څرګندیږي چه نبي کریم ﷺ به خپله ږیره مبارکه له پلن والي او اوږدوالي څخه وهله- چه دا روایت امام ترمذي غریب بللی دی او په سند باندې ئې جرح هم کړې ده- له دې پرته پخپله د حضرت ابن عمر رضی الله تعالی عنهما او د ابو هریره رضی الله تعالی عنه په باره کښې راغلي چه هغو به له موټي څخه زیاته شوې ږیره وهله- (ابو داؤد، نسایي، ابن ابي شیبه)

په هر حال دا ټولو روایتونو او اقوالو ته چه وکتل شي نو دا څرګندیږي چه که چېرته څوك د ږیرې وهل غواړي نو له یوه موټي څخه زیات شوي وېښتان دې ووهي او له دې زیات وهل ئې په اتفاق سره حرام دي- او که چېرته په پورتني د حضرت ابن عمر رضی الله عنه په روایتونو باندې عمل کول غواړي نو له یوه موټي څخه اوږدولی هم شي- دواړه صورتونه د سنتو په خلاف نه دي- شیخ عبد الحق محدث دهلوي په لمعات شرح د مشکوة کښې له یوه موټي څخه د اوږدې ږیرې د پرېښودلو په باره کښې فرمایي چه که چېرته یو سړی خپله ږیره له یوه موټي څخه اوږده کړي نو جائز دی ځکه چه دا ابن عمر رضی الله عنه څخه ثابت دي- امام شعبي او ابن سیرین هم دې قول لره خوښاوه چه جواز ئې نور هم ترې څرګندیږي- بلې خوا ته ځینو صحابهٔ کرامو لکه حضرت قتاده او حضرت عثمان رضی الله عنهما او په سلفو کښې حضرت حسن بصريؒ او داسې نورو د خپلو ږیرو اوږدول خوښول- آن تر دې پورې چه امام غزالي صاحب پخپله د نبي کریم ﷺ په باره کښې هم دا تصریح کړې ده چه: "وَ كان يعفى لحيته و ياخذ شاربه"

"چه حضور ﷺ به خپله ږیره مبارکه اوږدوله او بریتونه مبارك ئې کمول"۔ (احیاء العلوم ج۲، ص۲۸۳)

شیخ ابو بکر مالکي د ترمذي په شرحه کښې فرمایي چه: "ان ترك لحیته فلا حرج علیه" (شرح ابو بکر مالکی ج۱۰، ص۲۱۹)

حضرت ملا علي قاري د ابن الملك په یوه روایت کښې له یوه موټي څخه د ږیرې زیات اوږدول غوره او بهتر بللی دی۔

قال ابن الملك اما الاخذ من اطراف للحیة من طولها و عرضها للتناسب فحسن لکن المختار ان لا یاخذ منها شیئاً (نفع قوت المغتذی حاشیة ترمذی ج۲، ص۱۰۰)

همدا ډول شاه محمد اسحاق المحدث دهلوي په باره کښې په حاشیه کښې راغلي دي چه: قال عندی اخذ اللحیة ما فوق القبضة جائز لکن الاولی احواله ترکها.

لنډه دا چه له دغو روایتونو او اقوالو څخه د ږیرې له یوه موټي څخه زیات اوږدول بهتر او مسنون معلومیږي۔ او په کومو روایتونو کښې چه له یوه موټي څخه د زیاتې ږیرې پرې کول څرګندیږي هغه هم پخپل ځای کښې صحیح دي۔ په روایتونو کښې کوم تعارض نشته۔ زمونږ حضرت الاستاذ شیخ التفسیر مولانا احمد علي صاحب لاهوري قدس الله سره العزیز د ږیرې اوږدول په اطلاق باندې حمل کړی دی او تر موټي زیات اوږدوالی ئې هم افضل او بهتر ګڼل۔ او له یوه موټي څخه د زیاتې ږیرې د نه پرې کولو د څو صحابهٔ کرامو او مشائخو نمونه ئې هم په مخکښې موجوده وه۔ چه له مخې ئې ځینې علماوو د یوه موټي په اندازه ږیره مسنونه او افضله ګڼلې لیکن له یوه موټي څخه زیات اوږدول ئې ناجائز نه بلل۔



## د ښځــــو حقوق

اسلام د ژوند یوه مکمله او اکمله ضابطه ده۔ په اسلام کښې د هر چا د حقوقو پاملرنه شوې ده که هغه نر دي او که ښځې۔ او اسلام په ځانګړې توګه ښځو ته هغه حقوق ورکړي چه مخکښې له اسلام څخه دا حقوق چا نه وو ورکړي لیکن د دې تر څنګ ئې هغو ته د پردې او حجاب حکم ورکړ کوم چه د فطرت موافق دی لیکن په نننی زمانې کښې اروپا لکه څرنګه چه په نورو کارونو کښې هم د فطرت په خلاف کارونه مخته بیایي همدا ډول د ښځو د حقوقو په باره کښې هم ښځو ته د غیر فطري د آزادي او بې حیایي د عام کولو لپاره کوشش کوي۔ په داسې حال کښې چه ځینې تش په نامه مسلمانان هم د اروپا له ذهني غلامي څخه مرغوب شوي دي او له هغو سره په شریکه د دا نظریه عاموي۔ حضرت مولانا سمیع الحق صاحب مد ظله د ښځو د "حقوقو، ازادۍ او بې حیایی" تر عنوان لاندې یو وقیع مضمون ولیکه چه د ماهنامه الحق ښائست جوړ شو او د مضمون ګټمن والي ته په نظر کولو سره په "فتاوٰی حقانیه" کښې هم شامل کړی شو۔

(د مرتب له خوا)

د یورپ غلامي چه کله د عالم اسلام ذهن، فکر، تهذیب او اخلاق لاندې کړل او کوم دیني، علمي او اخلاقي فتنو چه په اسلامي تهذیب او معاشرې باندې حمله وکړه۔

### د ښځې او نر مساوات د مغربي تهذیب یوه اهمه فتنه

په دې کښې له ټولو نه مخکښې د ښځو د آزادۍ تحریك او د سړي او ښځې مساوات یوه اهمه فتنه جوړه شوه۔ د اسلام د ستر او حجاب نظام او د ښځو مقدس او محترم مقام او مرتبه او په دې باندې مبني یو پاك کورنی نظام د کښته پورته کولو لپاره د اروپا مستشرقینو او کافرو مصنفینو او زمونږ هغه خلك چه د اروپا تابع او د هغوی هر قانون حق بولي، تش په نامه مصلحینو او ترقي خوښوونکو دې نظام لره د خندا وړ جوړ کړ۔ او په مسلمانانو کښې له مغرب څخه د مرعوبو ذهنونو لرونکو کله چه په تعداد د ازواجو باندې مسخره کوي او کله د مسلمانو ښځو د قید او بند ماتم شروع کوي او همدارنګه دغو ښځو لره ډیرې مظلومې او د رحم وړ ګرځوي۔ د بر صغیر د غلامۍ له زمانې څخه تر ننه پورې ډول ډول آوازونه پورته کوي۔

**د بې حیایی عروج:** د پاکستان له جوړیدو څخه وروسته د ښځو په بې پردګي او بې حیایي زبردست زیاتوالی راغی۔ ښځې ته د دوی د حیا او عفت د مقام د لرې کولو کوششونه کیږي لیکن د یوه دعوت او تحریك په شکل کښې ئې له دوو کلونو څخه ډیره په چټکۍ سره ترقي کړې ده۔ مخکښې کال ئې د ښځو د عالمي کال په نامه ونوماوه۔ پاکستان هم په دې تحریك کښې له اروپایي قومونو څخه وروسته پاتې نه شو آن تر دې پورې چه د پاکستان د لوړ پوړو

ښځو یو وفد د میکسیکو د ښځو په مراسمو کښې شرکت وکړ چه په هغه کښې ئې ښځو ته د قانوني حق د ورکولو او یوې ښځې ته له څو کسه سړیو سره د نکاح کولو مطالبې هم وکړې شوې. په قومي اسمبلي (ملي شوریٰ) کښې د ښځو د عالمي کال په اړه یو قرارداد وړاندې کړې شو او ټول کال د ښځو د آزادۍ او د ښځو د حقوقو په تائیده کښې تقریرونه کیدل.

**د وزیر اعظم ښځو د بې پردګۍ خوا ته دعوت:** لیکن د دې مسئلې د عروج تکی هغه وو چه کله د پاکستان وزیر اعظم د نبي کریم ﷺ د مقدس سیرت په اړه د کانګریس په آخري مجلس کښې د کراچۍ په استقبالیه کښې د ټولې دنیا د مفکرینو په وړاندې د پردې په باره کښې خپل خیال ښکاره کړ او دا زمونږ په نظر د کانګریس خاتمه نه سوء خاتمه وه. کله چه ده وویل چه مونږ ته د اقتصادي مشکلاتو له وجهې د حجاب او پردې غوندې په فرسوده خیالاتو باندې نظر ثاني په کار دی. بیا جناب وزیر اعظم د بلوچستان په یوه مجلس کښې یو بل عملي اقدام په کولو سره ښځو ته له پردې څخه د وتلو دعوت ورکړ او وئې ویل چه دا مساوات نه دي چه ښځې دې په کورونو کښې په قید او قفس کښې بندیانې وي. په دې سیاسي او اجتماعي میدانونو کښې باید دوی وړاندې شي او دا فرسوده او زاړه روایات دي او دا ئې یواځې رایه او د خیال اظهار نه وو بلکه دا یو مسلم او غیور قوم ته عملي دعوت وو. او د دغو لیکو د لیکلو په وخت کښې په اسلام آباد کښې د ښځو د حیثیت په باره کښې د آرسي ډي په سیمینار کښې د ملك د صدر تر څنګ د دولت د نورو څو مخورو کسانو هم داسې پیغامونه مخته راځي. نو کله چه قوم په خلاص زړه سره په یوې اهمې مسئلې باندې د خپلو عمائدینو داسې خیالات اوري نو همدارنګه د خدای او رسول ﷺ د مسئولیت او ذمه وارۍ ته په نظر کولو سره مونږ هم د څو وړاندیزونو د وړاندې کولو حق لرو. او کله چه د بحث لاندې مسئله د سیاسي نظریاتو پورې اړه نه لري بلکه د ملك د اخلاقي او معاشرتي اصولو او د اسلام د یوه مستقل نظام عصمت او عفت پورې تړلې ده. نو هر دردمند مسلمان ته د قرآن او سنتو په رڼا کښې د خپل خیال د ښکارولو حق ورکول په کار دي. او په خلاص زړه سره د هغه اوریدل په کار دي.

**په اسلام کښې د ښځې حیثیت او حقوق:** په اصولي توګه لومړی باید مونږ وګورو چه آیا په رښتیا هم په اسلام کښې د ښځې حیثیت او حقوق مبهم پریښي دي. او آیا واقعي اسلام ښځې ته جائز مقام نه دی ورکړی او دا چه په دې باره کښې د اسلام د دښمنانو تبلیغات واقعي صحیح دي؟ په دې باندې به مونږ په تاریخ باندې سرسري نظر اچوو. په دې باره کښې د عربو او عجمو قومونو او دینونو د تاریخ یو ادنی طالب علم هم دې نتیجې ته رسیدلی شي چه اسلام د فطرت او رحمت هغه دین دی چه ښځو ته ئې له تحت الثراء څخه اوج ته ورسوله.

**د اسلام له ظهور څخه مخکښې د ښځې مقام:** د اسلام له ظهور څخه مخکښې د ټولې دنیا قومونو او ملتونو او انساني رسمونو او رواجونو کښې ښځې چه په کوم ظلم، ستم او سپکاویو کښې



مبتلا وې هغې زمانې لره قرآن کریم په یوه اعجازي لفظ "جاهلیتِ اولیٰ" باندې تعبیر کړې ده. دا جاهلیت څه شی وو؟ تاریخ ګواه دی چه ښځې به د یوه حقیر شي په توګه ګڼل کیدلې او د څناورو غوندې به اخیستل او خرڅول کیدلې. هغوی د یوه شي مالکانې هم نه وې او نه هغوی پخپلو مالونو او اسبابونو کښې د سړیو له خوښې پرته تصرف کولی شوای. او نه هغوی د چا د وراثت حقدارانې وې او نه هغوی د کوم ډول د وصیت کولو حق درلود. د هغوی د قتل په صورت کښې په دیت او قصاص کښې هغوی له سړیو سره برابرې نه وې. په نکاح کښې د دوی خوښه خو څه کوې چه سړي به کله وغوښت نو دوي به ئې په کار او کسب باندې مجبورولې.

**ښځه او د جاهلو قومونو نظریات:** د ښځې په باره کښې د جاهلو قومونو عجیبې نظریې موجودې وې. د روم غوندې په متمدنو قومونو کښې تر یوې زمانې پورې دا مسئله بالکل داسې پاتې وه چه آیا ښځه انسان هم دی او که د څناورو غوندې کوم بل مخلوق دی. په رومي ادوارو کښې هغوی د یوه نجس څناور په ګرځولو سره فیصله وشوه چه هغوی ته د خبرو اترو حق هم نشته. د خوړونکي سپیو او اوښانو غوندې د هغوی په خوله کښې څیره تړل کیدله. په مغربي قومونو کښې یوه رایه دا هم وه چه ښځه ساه لرونکې هم نه ده. په دې باره کښې د دوی دا اختلاف هم وو چه ښځه د عبادت او بندګۍ اهلیت هم لري او که نه لري؟ په ځینو قومونو کښې د خنزیرانو غوندې د ښځې په ټوله طبقه باندې د مقدسو مذهبي کتابونو په لوستلو باندې قانوني ممانعت وو. او همدارنګه د دوی په عبادت باندې هم پابندې او بندیز وو. څو قبائلو او قومونو بلکه په خود ساخته دینونو کښې پلار ته دا حق ورکړ شوی وو چه هغوی خپلې لوڼې پلورلی شوای. آن تر دې پورې چه په ځینو عربي قبائلو کښې هغوی ته د خپلو لوڼو د ژوندۍ خښولو (ذاتي) حق حاصل وو. او دا کومه بده خبره نه ګڼل کیدله. بلې خوا ته په نومونړي د جاهلیت په دور کښې چه د جاهلیت اولیٰ او تبرج جاهلیت سره اشاره ورته شوې ده. ښځه ئې یواځې د تعیش آله او د استلذاذ ذریعه ګرځول شوې وه. د هغوی حیثیت د سړیو شاملات، یو وقف او یو مشترك قومي ملکیت وو چه هغوی د سړیو د عامه مفاد یو مخلوق او د طبع د خوشحالۍ سامان ګڼل کیدلې. د هغوی د افریضه وه چه د غلامانو غوندې د سړیو په آرام او راحت رسولو کښې هر وخت مصروفې او مشغولې وې. او په نوي نوي طرزونو او نمود او نمائشونو او په نوي نوي طریقو سره د ناز او ادا د په کولو سره سړیو ته د آرام او راحت مسائل فراهم کولې. په ډیرو جاهلانه رسوماتو کښې به ښځه د ډیرو سړیو د خوشحالۍ مشترکه متاع جوړه شوې وه. له خاوند سره سره د هغې عاشق به هم په دې ښځې کښې یو شان شریك ګڼل کیده. او یوه سړي به پرته د عدل، انصاف او تعداد له لحاظ څخه چه څومره غوښتل همدومره ښځې به ئې د ځان د مفاد لپاره له ځان سره ساتلی شوای.

**په ښځې باندې د اسلام د دين ښيګړې:** يوې خوا ته اسلام د دې ضعيف او ناتوان جسم څخه د ظلم او ستم ټولې هتکړې او زولنې ماتې کړې او هغوی ته ئې د انسانيت په مقام کښې له سړيو سره برابر مقام ورکړ۔ الله تعالى فرمايي چه: "يٰاَيُّهَا النَّاس اِنَّا خَلَقنٰكُم مِّن ذَكَرٍ وَّ اُنثٰى" او حضور ﷺ فرمايي چه "ښځه د سړيو جوړه نيمايي ده" بيائې هغه نه يوائې د خدايي خطباتو مکلفه او مخاطبه جوړه کړله بلکه دا هم چه هغوی د عبادت اهل دي او د دين د احکامو په تعميل او امتثال کښې د اجر او ثواب او قدر او منزلت په اعتبار سره له سړيو څخه وړاندې والی او سبقت هم وړلی شي۔ "وَلَيسَ الذَّكَرُ كَالاُنثٰى"

قرآنکريم په عبديت او عباداتو کښې له جلاوالي پرته که چېرته نرانو ته د مسلمين، قانتين، صادقين، صابرين، خاشعين، متصدقين، صائمين، حافظين او ذاکرينو خطابونه کړي دي نو د دې تر څنګ ئې ښځې هم د مسلمات، مؤمنات، قانتات، صادقات، صابرات، خاشعات، متصدقات، صائمات، حافظات او ذاکراتو په لقبونو سره نازولي دي۔ او پرته له کوم امتياز ئې دواړو طبقو ته د مغفرت او اجر عظيم بشارت ورکړی دی۔ او په فوز عظيم جنّت خُلد او رضوان باندې ئې د خوشخبرۍ ورکولو تر څنګ دواړو طبقو ته ويلي دي چه: وَعَدَ اللّٰهُ المُؤمِنِينَ وَ المُؤمِنٰتِ جَنّٰتٍ (الى قوله) ذٰلِكَ الفَوزُ العَظِيم.

**د ديني، دنيوي، انفرادي، اجتماعي او معاشرتي حقوقو تحفظ:** اسلام نه يوائې د دوی د ملکيت حق تسليم کړی دی بلکه پخپل مال او دولت کښې ئې د هر ډول جائز عقد د تصرف، بيع او شراء (اخيستلو او خرڅولو) رعايت او صدقې هبې او د اسې نورو تصرفاتو حق ئې هم ورکړی دی، د وصيت کولو حق ئې ورکړ او د ميراث مستحق ئې وګرځول او وئې فرمايل چه "وَ لِلنِّسَآءِ نَصِيبٌ مِّمَّا تَرَكَ الوَالِدٰنِ وَ الاَقرَبُونَ" (يعنې ښځې د والدينو او نورو خپلوانو په وراثت کښې برخه لري۔ په ديت او قصاص کښې د سړيو سره مساوي او برابرې دي۔ د هغوی قتل کول خو پرېږده د دوی وهل ټکول هم ممنوع دي۔ په اسلام کښې د دوی په پاك لمنۍ او عفت باندې تجاوز کوونکي او تهمت لګوونکي د دنيا او آخرت سزاوار يعنې د سزا لائق ګرځول شوي دي او د عذاب عظيم د وعيد مستحق ګرځول شوي دي۔

اِنَّ الَّذِينَ يَرمُونَ المُحصَنٰتِ الغٰفِلٰتِ المُؤمِنٰتِ لُعِنُوا فِى الدُّنيَا وَ الاٰخِرَةِ وَ لَهُم عَذَابٌ عَظِيمٌ ☆ (الآية)

او که چېرته وغواړي نو د خاوند په غلط بهتان سره له هغه سره لعان هم کولی شي او ترې جلا کيدلی هم شي۔ شريعت مقدسه په پاکې ښځې باندې د بهتان د ويونکي لپاره سخته سزا حد قذف مقرر کړی دی۔ الغرض هغوی د هر ډول خپلو جائزو حقوقو دفاع کولی شي۔ اسلام د هغوی معاشرتي، انفرادي او اجتماعي ژوند ټول ناجائز بندشونه مات کړي دي۔ په نکاح کښې ئې دوی ته د خپلې خوښې او حق اختيار ورکړ شوی دی چه څوك وغواړي هغه خاوند کولی شي او چه څوك و نه غواړي هغه ردولی شي۔ بيا اسلام د نکاح حدود هم ټاکلي



دي چه هغه د مالکيت او مملوکيت رشته نه بلکه د زوجينو پخپل منځ کښې د ربط او تعلق نوم دی۔ په دې عقد سره هغه د سړي غلام نه جوړيږي بلکه دا يو داسې تمدني او معاشرتي ضرورت دی چه سړي او ښځې دواړه ورته محتاج دي۔ او دا دواړه طبقې د فطري غوښتنو تکميل دي۔ البته د فريقينو د پيدائشي او فطري ضرورتونو څخه خاوند ته په هغې باندې يو ډول برتري (لوړوالی) حاصل دی۔ الله تعالى فرمايي: "وَ لِلرِّجَالِ عَلَيهِنَّ دَرَجَةٌ" او "الرِّجَالُ قَوّٰمُونَ عَلَى النِّسَآءِ" چه په دې کښې هم د ښځې ساتنه او ښيګړه ده۔ او د دې ادنىٰ لوړوالي په برخه کښې ئې هم سړي د مهر د ادا کولو پابند ګرځولي دي۔ نه يوائې دا بلکه د هغې د ژوند د ټولو ضرورتونو لکه ډوډۍ او نفقه، لباس او د استوګنې ذمه واري ئې هم د سړيو په غاړه اچولې ده اګر که ښځه پخپله ډيره مالداره او دولت منه هم وي۔ سړی ډول ډول خوارۍ او مشقتونه تيروي او د هغې د اولادونو د ضرورتونو کفالتِ کوي۔ د دې تر څنګ ئې له ښځې سره د هر ډول ښې رويې تلقين هم ورته شوی دی۔ الله تعالى فرمايلي دي چه "وَ عَاشِرُوهُنَّ بِا لمَعرُوفِ" نبي کريم ﷺ فرمايلي دي چه "په تاسو کښې له ټولو څخه بهتر او افضل هغه څوك دی چه د چا رويه او سلوك له خپلې ښځې سره ښه وي۔

چه کله د والدينو د حقوق وصيت ورته شوی دی نو بيائې د مور په باره کښې زيات تاکيد کړی دی او وئې ويل چه جنت د مور تر پښو لاندې دی، وئې فرمايل چه څوك چه د لوڼو ښه کفالت وکړي د دوزخ اور به پرې حرام وي۔ او فرمايلي ئې دي چه کوم سړی چه د دوو لوڼو د بلوغ تر وخته پورې ساتنه وکړي هغه به په جنت کښې ما ته دومره را نژدې وي لکه د يوه لاس دوه ګوتې چه سره نژدې دي۔ او فرمايلي ئې دي چه "مَا اَكرَمَ النسآء الا كريم و لم اهانهن الا لئيم" (د ښځو عزت او تکريم د شريفانو او د هغو اهانت او سپکاوی د بد اخلاقو او رذيلو خلکو کار دی)

همدارنګه د ازواجو په تعدد کښې د جاهليت غير محدود تعداد او د نرانو دا آزادي د څلور ازواجو پورې محدوده کړه او دا هم په دې شرط چه د عدل تقاضاوې پوره کولی شي۔ نو اوس يو سړی له مالي طاقت او استطاعت سره سره له څلورو څخه زياتې ښځې نه شي کولی۔ همدارنګه په طلاق کښې ډير د اسراف او ظلم او زياتي سلسله وه۔ د دې ابتذال او اسراف د بندولو په خاطر اسلام په سړي باندې ډول ډول بنديزونه لګولي دي او الله تعالى فرمايلي دي: "فَاِن كَرِهتُمُوهُنَّ فَعَسٰى اَن تَكرَهُوا شَيئاً وَّ يَجعَلَ اللّٰهُ فِيهِ خَيراً كَثِيراً"

او بيا د رجوع په شکل کښې د دې مبغوض الى الله عمل د تلافي موقع ئې هم سړيو ته ورکړ۔ له اسلام څخه مخکښې د کونډو ښځو حالت انتهايي د رحم وړ وو۔ اسلام نه يوائې کونډو ته د نکاح عقد جائز وګرځاوه بلکه پخپله نبي کريم ﷺ په اولې نکاح کښې عملي نمونه وړاندې کړه او د کونډو مشکل ئې حل کړ۔ ښځو ته اسلام دا حق هم ورکړ چه د نکاح په شکل کښې د خپل منحي معاهدې د مجبورو او نامساعدو حالاتو له وجهې د فريقينو په خوښې سره

فسخ او منسوخ کولی شي- الغرض د دنیا هیڅ یو دستور او رسم او رواج هم د اسي نه دی چه ښځې ته هغه مقام ورکړی وي کوم چه اسلام ورکړی دی-

**د ښځې د عصمت او آبرو احترام:** همد ارنګه د ښځې د هغې بې کسۍ معامله هم ده کوم چه قرآن په جاهلیت اولیٰ سره تعبیر کړی دی چه په هغه کښې له ښځو څخه د کوچنیانو د لوبو د سامان غوندې شی جوړ شوی وو- او په دې وجهې د اصورت حال د کورنۍ او تمدني ژوند د خرابیدو او معاشرې د تباهی سبب جوړیده- اسلام دا حالات د اسې له منځه یوړل چه د سړیو د ظلم او ستم او د هغو د شیطان صفته او انسان شکله درندګانو څخه ئې د هغو د حفاظت هغه طریقې اختیار کړې چه ښځو لره ئې له خپل حیثیت او مقام څخه لرې کوونکې وې- که هغه عملي وجو هات وو او که نظریاتي او یا تصوري- اسلام دې لره د ساتلو وړ یوه قیمتي خزانه یوه نادره او عجیبه ملغره او نازکه آبګینه وګڼله-

نبي کریم ﷺ فرمايي: "إنّ المراۃ عورۃ مستورۃ (فی روایۃ خدرٌ مخدّرۃ) فاذا اخرجت استشرفها الشیطان" (بې له شکه ښځه یو پټ شوی شی دی چه کله د باندې ووځي نو شیطان ورپسې شي تر څو چه څوک په دې خپرې شوې لومې کښې را ونیسي"

سړیو ته هم په هغې باندې له بد نظر څخه د منع کولو په صورت کښې د غض بصر (د سترګو د ټیټولو) حکم ورکړی شو- نبي کریم ﷺ فرمايي چه "زنا العین النظر" (بد نظر د سترګو زناده) نو چه څرنګه نظر وي همد ارنګه ئې اثرات وي-

**د ښځو ازادي د تبرج جاهلیت دوهم نوم دی:** لیکن د نن دا زمانه د ښځو د آزادۍ او حقوقو او مساواتو په نامه دا محترم او مقدس صفت دوباره د جاهلیت اولیٰ خوا ته د ورګرځولو مذموم کوشش او سعی کوي چه د مسلمانانو د ا شرافت مآبه دولت او قیمتي خزانه یو ځل بیا د کور، ګودر او د هلیز څخه ووځي او په بازارونو کښې د عالم تماشا وګرځي- او کور د رونق د جوړیدو په ځای د محفل شمع وي- د آلاتو او صنائعو له حقیر څخه حقیر شي د مشهورتیا ذریعه جوړه شي- هغوی د سیل په ځایونو، پارکونو، هوټلونو، په کلبونو، جلسو او جلوسونو، په عدالتونو، کارخانو، کمپنیو، سینماوو، میلو او د سیاست په ستیجونو کښې رسوا ذلیل او خوار شوې د سړیو د طبعي د خوشحالولو آله وګرځي او دا هغه فاسقانه تبرج او د جاهلیت اولیٰ نمونه او نمائش دی چه د عصمت او حیاء د ا آبګینه په بازار کښې د انې د انې کول غواړي-

**له آزادۍ څخه د غلامۍ خوا ته دعوت:** د ا دعوت او تحریک هغوی ته د لعبه لاعبین د جوړولو دعوت دی- دا دعوت په اصل کښې د ښځو د آزادۍ دعوت نه دی بلکه د هغوی د غلام او کمزورې جوړولو دعوت دی- او د جاهلیت هغه شکل دی کوم چه اسلام زیر او زبر کړی وو- دا حالت له ماضي (مخکښیني) زمانې سره وتلی نو بیا د حضرت عمر رضی الله عنه د ارشاد قدر او قیمت څرګندیدلی شي- د اسلام نوموړی عظیم سیاستدان، مصلح او مفکر فرمايي: "إنما تنقض عُرَی



الاسلام عروۃً اذ نشأ فی الاسلام من لم یعرف الجاهلیۃ" (چه کوم سړی په اسلام کښې له اوسید و سره د جاهلیت له طریقو څخه ناخبر وي- له هغه څخه ددې خطرې ویره وي چه هغه به اسلام د یوې یوې کړی په کولو سره مات کړي)

**د اسلام د عفت او عصمت نظام:** اوس باید چه د ا وګورو چه اسلام ښځې لره څنګه د جاهلیت اولیٰ له ظلمونو څخه و ایستله او د نور په رڼا کښې ئې ودروله- اسلام د ښځو د حقوقو د رعایت او ساتنې، د عفت او عصمت حفاظت او د تهذیب او تربیې د اسې مستقل نظام وړاندې کړ چه اصول او جزئیات، جلي او خفي، ولمي او نظري، عملي او خیالي په ټولو اړخونو باندې د اسې چارپېر دی چه په دې نظام کښې ښځه د فحشاء او فواحشو سیورې هم نه شي پرې غورځیدلی- د فحاشۍ دواعي او اسبابو ته ئې د فواحشو په نظر سره کتلی دی- آن تر دې پورې چه د خیال او تصور لامحدود وسعتونه ئې هم د عصمت او عفت په دوائرو کښې محدود او محصور کړي دي-

په دې نظم کښې حالات او مصالح، علتونه او بواعث او د جبلي او فطري غوښتنو هر ډول رعایت شوی دی چه له دې څخه پرته نه مدني سیاست صحیح کیدلی شي او نه تهذیب الاخلاق ممکن دی- او نه د منزل تدبیر کارګر ثابتیدلی شي- او له دې پرته د یوې پاکې معاشرې تعمیر (آبادي) د اخلاقي اقد ارو حفاظت او د کورني نظام د قیام د استحکام او د تهذیب او تمدن یوه مثالي نمونه قائمول قطعي ناممکن دی- راځئ چه مونږ په دې سلسله کښې په قرآن او سنتو باندې یو سرسري نظر واچوو او وګورو چه د نر او ښځې حکیم خالق، خداوند کریم او د بني نوع انسان رحمت مجسم نبي الرحمت علیه الصلوٰۃ و السلام زمونږ څنګه لارښوونه کړې ده او له دې څخه وروسته یو انصاف خوښوونکی پخپله قضاوت کولی شي چه د خدای او د هغه د رسول ﷺ منشأ څه دی؟

**د پردې احکام:** د الله تعالی ارشاد دی: "وَ قَرْنَ فِیْ بُیُوْتِکُنَّ وَ لَا تَبَرَّجْنَ تَبَرُّجَ الْجَاهِلِیَّۃِ الْاُوْلیٰ" (او په کورونو کښې و اوسی او د مخکښیني جاهلیت ښائست او ښوونه پریږدی)

په تګ او راتګ ئې پابندي ولګوله چه په د اسې لباس کښې به اوسي چه د بدن یا اندام کومه برخه ئې ښکاره نه شي او پټ زینت او ښائست ئې څوک و نه ویني- الله تعالی وفرمایل "وَ لْیَضْرِبْنَ بِخُمُرِهِنَّ عَلٰی جُیُوْبِهِنَّ" (پخپلو سینو او ګریوانونو باندې دې خپل ټیکري واچوي)-

په بل ځای کښې ازواج مطهرات، بنات اطهار او ټولو مسلمانو ښځو ته فرمايي چه: "یُدْنِیْنَ عَلَیْهِنَّ مِنْ جَلَابِیْبِهِنَّ" (هغوی دې اوږده اوږده ټیکري په ځانونو واچوي)

**جلباب:** مفسرینو د جلباب په تفسیر کښې لیکلي دي چه: "هو الرداء فوق الخمار" (جلباب د کوچني ټیکري لپاره لوی ټیکري ته ویل کیږي)-

حضرت عکرمه فرمايي چه "تغطی ثغرۃ نحرها بجلبابها تدنیه علیها" (هغې به خپله تولنه سینه پټوله)، حضرت ابن عباس رضی الله عنه فرمايي: "الذی یستر من فوق الی اسفل" (هغه جامه چه له سر څخه تر پښو پورې پټول کوي)

له دې آیت څخه صحابیاتو رضی الله عنهن دا مفهوم اخیستی وو۔ حضرت عائشه رضی الله عنها فرمایي چه په انصاري ښځو باندې دې خدای رحم وکړي چه هغوی کله د حجاب حکم واوریده نو لوی لوی تیکري ئې واخیستل او ځانونه ئې پرې پټ کړل۔ "شققن مروطهن فاعتجزن منها" نو اوس که چېرته د دیني یا دنیوي ضرورت له وجهې له کور څخه د باندې وتلو دوی ته ضرورت پیښ شي نود ابن حجرؒ په قول چه "فقد کن یحجن و یطفن و هن مستترات الابدان"

د نبي کریم ﷺ له وصال څخه وروسته ازواج مطهراتو حجونه او طوافونه هم کول نو ځانونه به ئې پټ وو۔ په یوه بله موقع کښې د جسم د عام زینت د پټ ساتلو لپاره د زیات تاکید حکم ورکړی شو او وئې فرمایل چه:

"قُل لِّلمؤمِنَاتِ يَغضُضْنَ مِنْ اَبْصَارِهِنَّ وَ يَحْفَظْنَ فُرُوْجَهُنَّ وَ لاَ يُبْدِيْنَ زِيْنَتَهُنَّ اِلاَّ مَا ظَهَرَ مِنْهَا" (الآیة)

(مؤمناتو ښځو ته ووایه چه خپل نظرونه دې لاندې ساتي او د خپلو شرمګاهونو حفاظت دې وکړي، خپل زینت (ډول او سینګار) دې چا ته نه ښکاره کوي لیکن دا چه د مجبورۍ له مخې یا پرته له قصد او ارادې څخه پخپله ښکاره شي نو په دې باندې د هغوی غاړې نه بندیږي)

د دې پردې حجاب تر دې زیات واضح او غیر مبهم حکم په دې الفاظو سره ورکړی شو۔

**د حجاب آیت:** "وَ اِذَا سَاَلْتُمُوْهُنَّ فَاسْئَلُوْهُنَّ مِنْ وَّرَآءِ حِجَابٍ پرته له ضرورت څخه په پرده کښې هم مه را ووځی۔ که چېرته د مجبورۍ له مخې څه ضرورت پیښ شي نو کور ته د ننه وتلو او داخیدلو په ځای د پردې له شا څخه دې سوال او ځواب ورسره وکړی۔ ګواکه خبرې اترې به هم د پردې له شا څخه وي او ضرورت به هم د پردې له شا څخه۔ د لویو لویو معاملاتو او تجارتونو، په ګودامونو او دوکانونو کښې د ماډل ګرل (نوې نجلۍ) په جوړیدلو سره د خرڅیدلو، په میلو او محفلونو کښې د باجې غږولو او د خلکو د جذبولو لپاره نه بلکه د یوه معمولي غونډې شي چه د متاعاً په لفظ سره ورته اشاره شوې ده۔

**د بې پردګۍ د حامیانو مغالطه:** د حجاب د دې آیت مقصد او مفهوم څرګند دی چه د پردیو په مخکښې نه یوازې د ښځې عام جسم بلکه د هغوی مخونه، لاس او پښې هم د حجاب په حکم کښې شاملې دي۔ په ځینو روایتونو کښې د پورتني آیت د "اِلاَّ مَا ظَهَرَ مِنهَا" له استثناء څخه دا مطلب اخیستل شوی دی چه له دې څخه مخ، لاسونه او پښې مستثنٰی شوي دي چه ښځه د دغو اندامونو د پټولو پابنده نه ده۔ د پردې مخالفین د اسې روایتونه پلټي، راباسي او داګني چه مونږ ته د بې پردګۍ سند لاس ته راغی۔ په داسې حال کښې چه دا ناپوهي ده یا په قصد سره د دجل او تلبیس څخه د کار په اخیستلو څخه خلکو ته مغالطه ورکول دي۔ همدا ډول دا خلک هغه ټول روایتونه او نصوص له نظر څخه اچولي دي چه په هغو کښې د مخ، لاسونو او پښو د پټولو صریح حکم ورکړی شوی دی۔

**په ستر او حجاب کښې فرق:** حال دا چه په حقیقت کښې په دواړه ډوله روایتونو کښې کوم تعارض



نشته۔ دواړه پخپلو خپلو دائرو کښې واجب العمل دي۔ یوه دائره د ستر ده او یوه د حجاب۔ یو ستر عورت دی او بل حجاب۔ د عورت ستر (پټول) په نر او ښځې دواړو باندې فرض دی۔ د نر د بدن ستر له نامه څخه تر زنګنونو پورې دی یعنې نر به د خپل بدن دا برخه د هیچا په مخ کښې هم نه بربنډوي او د جسم یا بدن له نورو برخې څخه پرته نور جسم له ستر څخه د باندې ده۔ او د ښځې د بدن د ستر برخه دومره نه ده بلکه له غړۍ څخه واخله بیا سینه، ملا، ورنونه، پښې سره د ښنګري او پوندې پورې د ټولو پټول فرض دي۔ لکه څرنګه چه د سړي د جسم د ستر برخه نه په کور کښې د چا په مخ کښې بربنډولی شي او نه د باندې۔ که ئې پلار، ورور او زوی هم په مخکښې موجود وي بیا به ئې هم نه بربنډوي۔ همدا رنګه ښځه د خپل بدن یاده شوې برخه به خپل کور کښې له محارمو څخه هم پټه ساتي۔ البته مخ، لاسونه او د پښو پټول د پلار، ورور، زوی او د اسې نورو محارمو څخه پټول ضروري نه دي۔ که چېرته د دغو دریو اندامونو څخه پرته په جلا ځای کښې یوازې د لمانځه په دوران کښې ئې د کوم اندام څلورمه برخه بربنډه شي او یا د سړي د ستر د بدن د ستر د برخې څلورمه حصه بربنډه شي نو لمونځ ئې فاسدیږي۔ دا هغه حقیقي ستر دی چه بذاته په ښځه او نر دواړو باندې یو شان لازم دی۔ که فرق دی نو د جسم په حدودو کښې فرق دی۔ او لکه څرنګه چه سړی له خپل همجنس څخه د ستر د برخې د پټولو پابند دی نو همدا رنګه ښځه هم له خپلو همجنسو ښځو څخه له مخ، لاسونو او پښو پرته به نور ټول بدن پټوي۔ آن تر دې پورې چه له ضرورت پرته په تنهایي کښې هم د نر او یا ښځې لپاره د ستر د برخې لوڅول یا بربنډول مکروه دي۔

او بل شی چه هغه ته حجاب وایي یعنې له ټولو پردیو سړو څخه کوم چه یوازې په ښځې باندې لازم دی نه په سړیو باندې له سر څخه واخله بیا تر پښو پورې د مخ د ټولو برخو په شمول د ټول بدن پټول فرض دي۔ د حجاب او ستر د مختلفو دائرو سره ګډول د بې پردګۍ د جواز ورکوونکي په عمومي توګه خلکو ته دوکه او فریب ورکوي۔ که چېرته لاس او پښې ستر نه وای نو د پردې له شا څخه خبرې یعنې "مِن وَّرَآءِ حِجَابٍ" د قید لګولو ضرورت به نه وای او نه د "ادناء جلابیب" یعنې له سر څخه تر پښو پورې د تیکري د اچولو قید ته هم ضرورت وای۔ پس که چېرته په ځینو روایتونو کښې څه مستثنیات دي نو هغه د ستر په اړه دي نه چه د حجاب په اړه چه زمونږ په عرف کښې ورته پرده وایي۔ (۱)

**په خبرو اترو کښې احتیاطي تدبیرونه:** همدا رنګه د استیذان په آیت کښې په سړیو باندې لازم کړی شوي دي چه هیڅ یوه کور ته له اجازې پرته مه داخلیږۍ او که چېرته د پردې تر شا مجبوراً له

(۱) د مضمون په ځینو فقهي او حدیثي برخو کښې د علامه سید رشید رضا مصري او قاري محمد طیب صاحبؒ د موضوع په اړه مضامین تر نظر لاندې نیول شوي دي۔

يوه نامحرم سره د خبرو ضرورت پيدا هم شي نو بيا هم دا لاربنوونه شوې ده چه په خواره او نرم آواز او نرمې لهجې سره به ښځه خبرې نه ورسره کوي. بلکه د خپلې پردې په لحاظ کولو سره به د غصې په انداز بندې بندې خبرې او ساده لهجې باندې خبرې کوي تر څو چه د يوه بد نيته او خبيث طبيعت لرونکي سړي په زړه کښې ميلان پيدا نه شي.

**په خاص حالت کښې د باندې د وتلو اجازه:** دا اويلا او ويره چه په دې ډول سره يوه ښځه د يوه قيدي غوندې په قفس کښې بنده پاتې کيږي چه د هغې لپاره له کور څخه د باندې قدم کيښودل هم جرم وي. حالانکه آيتونه او نصوص او د ممانعت هيڅکله دا مطلب نه دی چه ښځه دې د يوه ديني يا دنيوي ضرورت او مجبورۍ له مخې هم د باندې نه شي وتلی. هغوی پرته له کومې شبهې د ديني او ديناوي ضرورتونو لپاره د باندې وتلی شي. د حج او زيارت لپاره، د عبادتونو لپاره، فاتحه خواني او د مريضانو د پوښتنې لپاره، د والدينو او محارمو خپلوانو د ملاقات لپاره او د علاج او معالجې لپاره د باندې وتلی شي. ليکن د دوی دا وتنه به له څو شرائطو او قيدونو پورې تړلې وي. اسلام دا غواړي چه ښځه پرته له ضرورت څخه د باندې و نه ووځي. او د دې لپاره د ډول ډول وتلو حوصله شکني وشوه چه دا نقل او حرکت ئې له کم څخه کم پاتې شي. او کله چه د ضرورت په بناء سره د وتلو نوبت راشي نو دا به د عرياني (بربنډ والي)، بې پردګي، د ښائست او نمائش تشهير او د جذباتو د راپورته کولو ذريعه نه جوړيږي. او د دې په تګ او راتګ، لباس، جامه او ګفتار کښې د فحاشۍ او بې حيايي هيڅ يوه داعيه او عنصر شامل نه وي.

**له کور څخه د وتلو شرائط او قيدونه:** دا وتل ئې د شرائطو په يوې داېرې کښې بند دی. سړيو ته هم او ښځو ته هم د غض بصر يعنې د سترګو د پټوالي حکم ورکړ شوی دی. که هغوی ته د سفر ضرورت پيښ شي نو که دا سفر د حج وي چه ادا کول ئې فرض دي نو د پلار، زوی، ورور، خاوند او محارمو څخه پرته نه شي تللی. نو کله چه د عبادت د سفر دا حال دی نو آيا د عادت، سياحت او نورو سفرونو لپاره به يواځې تلل څنګه جائز وي؟ نو کوم خلك چه ښځې له قيد څخه خلاصوي او په وطنونو وطنونو، ښارونو ښارونو کښې ورته د يواځې ګرځيدلو او سياحت لاره خلاصوي په هغو باندې د يوه اخبار په مراسلاتي کالم کښې يوې ګمنامې خور ډير په ساده الفاظو کښې داسې مسخره کړې ده چه "د خدای لپاره مونږ د هغو فقيرانو غوندې مه جوړوی چه لوڅ سر، لوڅې پښې او لوڅ جسم د سفر سامان ئې په ملا پورې تړلی وي او د خيرات په غوښتلو سره په سړکونو کښې کښته او پورته ګرځي".

نو دا وتل تبرج جاهليت نه دی نو څه شي دی؟ نوی، نری او تنګ لباس، يا مغربي فيشن کوي او په سړکونو کښې ګرځي راګرځي. نو د دې وتلو اجازه که چېرته اسلام له اسلام څخه غواړی نو اسلام داسې کاسياتو، عارياتو (تش په نامه لباس لرونکي او په حقيقت کښې بربنډه) باندې لعنت ويلی دی او جهنم د عذاب وعيد ئې ور اورولی دی.



له حج څخه پرته د جمعې د لمانځه هم همدا حال دی کوم چه له افضل ترينو عبادتونو څخه ګڼل کيږي. صحابياتو رضى الله عنهن به هيله کوله چه په جمعې کښې شريکې شي، په مسجد نبوي کښې لمونځ او د حضور اقدس ﷺ په اقتداء کښې د جمعې لمونځ چه د کائناتو ټول متاع ئې په پرتله کښې هيڅ دي. نو له دې څخه لوی سعادت بل څه کيدلی شي. نفس اجازت خو ئې ورکړ ليکن دلته هم له قيوداتو سره چه ماحول او زمانه د فساد نه وي. د ښځې عزت او عصمت په خطر کښې نه وي او ښځې به له سر څخه تر پښو پورې پټې وي چه دې ته په "متلفقات بمروطهن" کښې هم اشاره شوې ده. او په صفونو کښې به د هغوی صف تر ټولو وروستی وي چه تر ټولو به مخکښې راځي او تر ټولو به مخکښې ځي. او د سړيو او ښځو د سترګو د ټکر نوبت هم را نه شي. او ځينو فقهاوو او امامانو د جمعې په لمانځه کښې د نر او ښځې محاذات او برابري د لمانځه ماتوونکی بللی دی. غرض دا چه ډول ډول ممنوعات او قيدونه په دې کښې هم لحاظ شوي دي.

يوې صحابيې رضى الله عنها د سرور کائنات ﷺ په اقتداء کښې د لمانځه د کولو هيله ښکاره کړه نو حضور ﷺ ورته وفرمايل چه په کور کښې لمونځ ادا کول ستا لپاره تر هغه لمانځه بهتر دی چه د کور په سرای کښې ئې ادا کوی او د کور په برانډه کښې د لمانځه ادا کول ستا لپاره له هغه لمانځه څخه بهتر دی چه په جومات کښې ئې ادا کوی. او د کور د دې لمانځه بهتري ئې د هغه جومات تر لمانځه زياته وګڼله چه يو لمونځ ئې د نورو جوماتونو په پرتله په زرګونو چنده فضليت لري. او بيا د سرور کائنات ﷺ په اقتداء کښې د لمانځه په مقابله کښې د دنيا او آخرت د ټولو دولتونو په مقابله کښې بې قيمته دی. او د سعادت او نيکبختۍ په هغې زمانې کښې چه د عفت او تقوىٰ دور وو او د تسليم او انقياد کيفيت پخپله په ښځو کښې هم دومره وو چه د حجاب د آيت په نزول باندې چه کومې ښځې په لاړ کښې د تګ په حالت کښې وې هم هلته يوې خوا ته کښيناستلې او بل قدم ئې په هغه وخت کښې واخيستې چه خپل څادرونه ئې په تيکريو کښې پټې کړلې. جومات ته د تللو په ضمن کښې چه اجازه ورکړې شوه نو په يوه آيت کښې ئې هغه هم د شپې له تياره سره مقيد کړله چه څوك هم تلل غواړي نو د شپې په تياره کښې تلل ورته بهتر دي. او په يوه روايت کښې ئې وفرمايل چه کله جومات ته د تللو قصد او اراده کوی نو خوشبويي به نه لګوی بلکه ممانعت هم وارد شو چه کومه ښځه چه خوشبويي لګوي نو له مونږ سره دې د ماسخوتن په لمانځه کښې نه شريکيږي. او د خوشبويي څخه پرته داسې سينګار او ځان جوړول هم بند او ممنوع دي چه په جومات کښې د لمونځ کوونکو لپاره د فتنې او فساد باعث او سبب جوړ شي. جومات ته چه راځي نو خيرن به راځي يعنې د سينګار او ډول په حالت کښې به نه را ووځي. او بيا د خوشبويي ممانعت خو يواځې له جومات سره مخصوص نه دی بلکه چه هر کله د باندې ووځي نو د خوشبويي له لګولو څخه به

ځان ساتي تر څو د خلکو د متوجه کیدلو ذریعه جوړه نه شي او د اسې ښځې ته چه خوشبویي ولګوي او د خلکو تر څنګ تیریږي زانیه ویل شوي دي. "فهي کذا و کذا"

د باندې د وتلو په وخت کښې دا قید هم ولګول شو چه "وَ لْيَضْرِبْنَ بِخُمُرِهِنَّ عَلٰى جُيُوْبِهِنَّ" یعنې اوږده ټیکري دې په ځانونو واچوي. ښځې چه کله شرنګوونې ګینړه په ځان نه پورې کوي او په زوره زوره قدمونه دې نه ږدي چه د ګینړې آواز ئې پورته نه شي او خلکو ته د هغې د پټې ګینړې معلومات ونه شي او یا د هغو له آواز څخه خلك د هغې خوا ته مائل نه شي. ځکه چه آیت کریمه دی چه: "وَ لَا يَضْرِبْنَ بِاَرْجُلِهِنَّ" (الآية) نبي کریم ﷺ وفرمایل چه ښځوته په پردیو سړو باندې د سلام اچول نشته. او نه په هغوی باندې د پردي سړي د سلام ځواب شته. د تمدن او تهذیب په نامه سره د ښځو کلبونو او محفلونو ته را ایستونکو ته په دې کښې سبق دی چه نبي کریم ﷺ ښځې حمام ته له تللو څخه منع کړې ځکه چه حمام د سړیو او ښځو د ګډون له ځایونو څخه یو ځای دی. او د اسې ترقي یافته او تمدني معاشرې د شریعت د صاحب ﷺ د برداشت وړ نه وو او همد ارنګه ښځې ئې له جنازې سره له تللو څخه هم منع کړې.

**یواځې عملي او علمي نه بلکه خیالي او تصوراتي تحدیدات:** او همد ارنګه ئې د ښځو په د اسې منصبونو او دندو باندې تاکنه ممنوع وګرځوله چه په هغو کښې له سړیو سره ګډون او مخامخ والی او یا خلوت مواقع په لاس ورځي. حکومت او ریاست، ولایت عامه، قضاء او د محکمو له کارونو څخه ئې ښځې منع کړې. دا تحدید ادت یواځې تر تمدني، معاشرتي، عملي او علمي تر حده پورې محدود نه وو بلکه تر خیالاتو او تصوراتو پورې د حیاء او عفت ساتنه وشوه. او په سړیو باندې ئې له ښځو څخه په زیاتو شویو اوبو اودس کول څخه په ځینو حالاتو کښې ناجائز او په ځینو حالاتو کښې مکروه وګرځولی دی. د اسې نه وي چه د خیالاتو سلسله له اود اسه څخه تر ګناه پورې ورسیږي. او کوم عمل چه د ګناهونو د پاکوالي ذریعه وي هغه د ګناهونو ذریعه جوړه شي. په جنازې کښې به امام د ښځې له سینې څخه به یو څه لرې دریږي اګر که په هغې باندې پرده هم پرته وي. تر څو چه د امام تصورت د ښځې د محاسنو خوا ته و نه ګرځي. امام په جمع کښې د مقتدیانو د اقتداء نیت به کوي لیکن په ځانګړې توګه به د ښځې د اقتداء نیت نه کوي. همد ارنګه د سلام د ګرځولو په وخت کښې به د ښځې نیت نه کوي تر څو چه لمونځ په شروع یا پای کښې د بدو تصوراتو او د نفس د ناجائزې برخې موجب و نه ګرځي.

**آیا پرده بې ځایه حبس دی؟:** نن څه شوي دي چه د ښځو په کور کښې بند اوسیدل ګوا که هغوی په قفس کښې بندیدل دي. او دا بې ځایه حبس په "مساواتي" دور کښې نه شي برداشت کیدلی او دا ډول په کورونو کښې په کښیناستلو سره د ښځو صحت خرابیږي. حالانکه د ښځو پخپلې خوښې او طبعي تقاضو سره په کورونو کښې کښیناستل، په د اسې حال کښې چه د دیني او دنیوي ضروریاتو لپاره د شرائطو او قیدونو په لحاظ کولو سره چه د ښائست له ښوولو او د



فواحشو د ذریعې له جوړیدلو څخه ځان وساتي د باندې هم وتلی شي. او د کور چار دیوالي د هغوی لپاره د زرګونو خطراتو او مصیبتونو څخه د تحفظ ذریعه ده. دا هیڅکله قید او تکلیف نه دی بلکه عین راحت او نعمت دی. که چېرته په کور کښې پخپلې خوښې سره کښیناستل قید وي نو سړی هم ډیر وخت په کورونو کښې اوسیږي. هغوی هم جبراً وباسی بیا نو پرته له ضرورت څخه ګرځیدل به د سړیو لپاره هم معیوب وي.

**د نر او د ښځې دائره کار:** اصل معامله د خلقي او جبلتي تقاضو له وجهې ویشلې ده. سړی د باندې ووځي او د ښځې او د هغې د بچیانو لپاره په زرګونو پریشانۍ او مصیبتونه ګالي. په دوکانونو، کارخانو او د اسې نورو کارونو کښې خپله خوله بهوي او د زړه په ویلې کولو سره روزي ګټي. او کله کله بیا په مزدورۍ او بزګرۍ کښې قید وي. او کله د دفتر په یوه کونج کښې د خپل ژوند ټول وخت تیروي. او همد ارنګه د ښځو په ذمې باندې د کور کارونه، د بچیانو تربیت او حفاظت او د کور ساتنه ده. هغوی د کور اسیر نه دي بلکه د کور ښائست او د آبادۍ رڼا ګانې دي. نوی تهذیب د ظلم او قید په نامه سره په ظاهره په زخم باندې مالګې دوړوي او هغوی د باندې د ناقابل برداشت ذمه واریو او مصیبتونو خوا ته باسي او د دې تر څنګ په کارخانو او دفترونو کښې او په چوکونو او بازارونو کښې د خپلو ځانونو لپاره د تعیش آلې جوړوي او پیدا کوي. یوې خوا ته د قید دا استدلال او بلې خوا ته په هغه وخت کښې دا وایي چه د پاکستان زیاتره خلك په کلیو کښې د پردې پابند نه دي او د خپل خودساخته استدلال نفي کوي.

**په کور کښې کښیناستل قید نه بلکه راحت او نعمت دی:** که چېرته په آرام او راحت، آبرو او عزت سره د راحت په کونج کښې ژوند تیرول قید دی نو د ښارونو د لکونو عوامو ژوند څه دی چه د زرګونو مشکلاتو په ژرنده کښې په میده کیدو سره په یوه ښار کښې خپل مستعار ژوند تیروي. د هر ډول راحت څخه محروم، د اوبو کمی، د خوراك نه میندیدل او اوس د ښار د فضا د ککړ والي په نتیجه کښې د هوا غوندې عام نعمت څخه محروم دي. نو که چېرته دا ټول قید وي او قید هم د اسې بد قید نو بیا دې ټوله ښاري آبادي باید د ځنګلو خوا ته را و ایستل شي. چه هغوی په آزادو فضاوو او ځنګلونو کښې آزاد وګرځي. او که چېرته دا ټول قید نه وي نو ښځو ته پخپل اختیار او رغبت او د فطرت په بناء سره په کورونو کښې اوسیدل هم قید نه دی.

**پرده نه بلکه بې پردګي د صحت د خرابوالي سبب دی:** او بیا د ښځو د صحت د خرابوالي ژړا کیږي. حالانکه زمونږ په ملك کښې د صحت د خرابوالي په شرح کښې د زیاتوالي اسباب هغه دي چه یواځې په ښځو باندې نه بلکه سړي، سپین ږیري او هلکان ئې ټول پخپل لاس کښې اخیستي دي. د ژوند له ضرورتونو څخه اکثره د استحصالي زولنو له وجهې محروم دي. کومه خالصه غذا یا خوراك نه پیدا کیږي. او نه د سر د پټولو لپاره یو موزون کور پیدا کیږي. او نه د یخ او ګرمۍ څخه د ځان ساتنې په خاطر مناسب لباس پیدا کیږي. د خالصې اوبو او هوا څخه هم بې

برخې دي نو د صحت شرح به څنګه بهتر کيدلی شي۔ اګر که د صحت د ساتنې اصل اسباب و پلټل شي او د چور او چپاول په دې کاروبار کښې کمی وشي چه له وجهې ئې عوام د مصيبتونو او لورې په کنده کښې لويدلي دي۔ نوي آسانتياوې، خصوصاً د ښځو د علاج معالجې خوا ته توجه وشي، او که چېرته د ښځو په کور کښې کښيناستل د صحت د بربادۍ ذريعه وي نو راځی چه د مخلوطو، بې حياوو او بې حجابو ملکونو حال هم وګورو چېرته چه ښځې دومره آزادې دي چه په هفتو هفتو کښې د خپل کور د سرای ليدل ئې نه په برخه کيږي۔ هلته چه کله ښځه قدم د باندې بږدي نو په زرګونو پريشانۍ او خطراتو سره مخامخ او په جسماني او نفسياتي بيماريو کښې اخته کيږي۔ د اروپا ورځ په ورځ زياتيدونکې په زرګونو ډول ډول جنسي، عصبي، نفسياتي، ذهني او دماغي امراضو او د مړګونو په شمير کښې د زياتوالي راپورونه ولولی او مطالعه ئې کړی۔ د تفريح ځايونو او کلبونو ژوند د اروپايي قومونو د صحت لپاره د سرطان دانه ګرځيدلې ده۔ او په داسې جنسي مرضونو اخته دي چه له دې څخه مخکښې ئې نوم او نښان هم نه وو۔ په زرګونو او لکونو ښځې د اسقاط حمل او د حمل په اړوندو مرضونو کښې مبتلا دي۔ د کارخانو او دفترونو نوکري د هغو صحت خراب کړی دی۔ هغوی د خپلو بچيانو د ساتنې او تربيې قابلې نه دي پاتې شوې او د خپل خاوند او والدينو خدمت نه شي کولی۔ په هغو باندې د هسټريا دورې راځي او په ذهني فشارونو کښې مبتلا کيدونکې دي۔

**نظر بازي د ذهني انتشار او د معاشرې د فساد ذريعه ده:** او بيا د ښځو له کورونو څخه وتل يوازې د هغې د صحت د تباهۍ موجب نه دی بلکه د ټولې معاشرې د سقم او بيمارۍ ذريعه جوړيږي۔ هغوی چه په کوم ځای باندې تيريږي نو د ډيرو نظرونو نښانه جوړيږي۔ د يوه سړي په لاره کښې د تللو په وخت يو په يو د نظر جذبوونکې څيره ويني، هغه ته په دفتر او کارخانو کښې د بې پردې ګډون او خبرو اترو مواقع پيدا کيږي۔ او دا نظر بازي د هغه د خپلې کورنۍ نظام له منځه وړي، ذهني انتشار، د فسدو خيالاتو پيدا کيدل، جنسي او جذباتي بلا ګانې، د محبت او عشق آفتونه۔ الغرض دا ټول شيان د هغوی د ذهني ګډوډۍ، د زړه پريشاني او اعصابو د خرابيدو ذريعه جوړيږي۔ او بيا د زړه بيماري، جنسي او اخلاقي مرضونه، د بصارت کمزوري، د دماغو نه توازن، د وينو فشار، او عصبي مرضونو د يوې پرده لرونکې معاشرې سره موازنه کړی او بيا پخپله فيصله وکړی۔

**د تعليم لپاره بې حجابي:** بيا دا هم ويل کيږي چه د ښځو لپاره د تعليم ضرورت دی او اقتصادي حالات د جلا تعليم تحمل نه شي کولی۔ ليکن اوس خبره دا ده چه هغه کوم تعليم دی چه د ښځو لپاره ضروري ګڼل شوی دی۔ د ښځې لپاره په اسلام کښې د تعليم تصور هغه تصور نه دی کوم چه د اروپا پيداوار دی۔ د دفترونو، کارخانو، او دوکانونو فرائض ئې د دوی په ضرورت پورې نه دي تړلي۔ تر څو چه د هغه لپاره ښځه کلرک (انجينره) يا مزدوره جوړه کړي۔ اسلامي تعليم ښځې لره د يوې سليقه لرونکې، وفا شعار، مهذب، اخلاقي او حياء لرونکې ذات



د جوړولو لپاره دی۔ اسلام هغه تعليم ته اهميت ورکوي کوم چه ښځه د خدای او رسول ﷺ، د خاوند او کورنۍ له حقوقو او د اولاد له ښې تربيې څخه خبروي۔ او د دې غيږ د کوچنيانو د تربيت اوله مدرسه ثابته شي۔ د دې تعليم لپاره هيڅکله دا لازم نه ده چه په مخلوطو درس ګاهو او بې حجابانه (بې پردې) ليليو کښې د خپلې حيا ملغلره ليلام کړي۔ الغرض هغه تعليم چه د بې پردګۍ سبب او لامل جوړيږي شريعت او اسلام د هغه حکم نه ورکوي، بې پردګي که چېرته د اخلاقو او معاشرې، جسماني او روحاني صحت، او د نيک سيرت لپاره تباه کن دی نو شريعت هيڅکله د هغه طرفدار نه دی۔ او بيا د ښځو د تعليم تاريخ وګوری چه کله د اسلام له ظهور څخه وروته د حجاب، عفت او عصمت دور راغی او ښځې پرده نشينې شوې نو په اسلامي تاريخ کښې د ديني تعليم او په علومو او فنونو باندې ښائسته شوې ښځې را ووتې چه د هغوی له علومو څخه د کور له ناستې پوره يوه دنيا مستفيده شوه۔ پس که چېرته د مفاسدو او فحشاوو له موجباتو پرته د پردې په شرعي حدودو کښې د ننه مسلمانې ښځې په علم او فضل کښې يوه نمونه وړاندې کولی شي نو د مغرب په بې حيا د جاهليت په عهد کښې کومې ښځې چه د باندې و هم ووځي نو په اسلامي علومو او فنونو کښې او د اخلاقو او تربيت په تعليم کښې په معاشرې کښې يوه نمونه هم نه شي وړاندې کولی کومه چه په علم او حياء سره حاصليږي۔ کله چه په بې پردګۍ سره د سترګې اوبه له منځه لاړې شي نو حقيقي علم او علمي ذهنيت هم له منځه ځي۔ د نوي دور علم سړيو ته پرته د انګريزي نظام له څو پرزو څخه نور څه ورکړه۔ او مونږ د دې جديد تعليم لپاره د ښځو عظمت، عفت او عصمت هم قربان کړو۔

لنډه دا چه د پردې حکم (نعوذ بالله) نه له فرسوده روايتونو څخه ګڼل کيږي او نه د کوم رسم او رواج په نتيجه کښې پيدا شوي دی۔ اسلام د عصمت او عفت محافظ دی، اسلام د فواحشو او منکراتو هيڅکله روادار نه دی، چېرته چه هم د فواحشو احتمالات زيات وي نو د پردې په احکامو کښې دغومره شدت پيدا کيږي او چېرته چه د فحشاء احتمال نه وي او د عصمت او عفت زياته پاملرنه وي نو هلته د پردې په حکم کښې هم نرمي او وسعت پيدا کيږي۔

**د ماډرن (جديد يا نوي) د جوړيدو شوقين:** پس کوم خلك چه مصلح او ماډرن (جديد او نوي) د جوړيدو په شوق کښې دي او د اسلام يو مضبوط نظام د خپلو ژبني حملو نښانه جوړوي هغوی دې د داسې اصلاحاتو انجام په يورپي قومونو کښې وګوري چه هغوی د بې پردګۍ او فحاشۍ د لاسه له کوم ذلت او رسوايي سره مخامخ شوي دي او بيا دې د عالم اسلام د دې ډول تش په نامه مصلحينو څخه هم سبق واخلي کوم چه په ترکيې او داسې نورو ملکونو کښې د يهودو او نصاراوو د تقليد په خاطر د اسلام يو مستحکم نظام متزلزل کول غوښتل۔ او د هغو دا قدم يوې خوا ته د قوم د معاشرتي او اخلاقي اقدارو د بربادۍ او بلې خوا ته مصلحين د ابدي ذلت او د مسلمانو په زړونو کښې د نفرت او ملامت مستحق جوړ شول۔ (مئی ۱۹۷۶ء)

# کتاب الطهارت

## باب الوضوء

## (د اودس احکام او مسائل)

### د اودس په شروع کښې د بسم الله د ویلو حکم

**سوال:** د اودس د شروع کولو په وخت کښې د بسم الله الرحمٰن الرحیم د لوستلو څه حکم دی؟ که چیرته یو سړی د اودس په شروع کښې په قصد یا سهوې سره بسم الله و نه لولي نو په اودس باندې کوم اثر پریوځي او که نه؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د اودس د شروع کولو په وخت کښې د بسم الله لوستل سنت دي۔ که چیرته له چا څخه بسم الله عمداً یا سهواً پاتې شي نو په اودس کښې کوم فرق نه راځي۔ لیکن سره له دې بیا بیا قصداً پریښودل ئې د ملامتی موجب دی۔

قال الحصکفیؒ: باب سُنن الوضوء و البداة با لتسمیة (ای من سُنن الوضوء) (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۱۰۸) و ایضاً قال و ترک السنة لا یوجب فساداً و لا سهواً بل اساءةً لو عامداً غیر مستخف و قالوا الاساءة ادون من الکراهة. (الدر المختار ج۱، ص۴۷۳)

قال ابن نجیمؒ: فی سُنن الوضوء (قوله کا لتسمیة) ای کما ان التسمیة سنة فی الابتداء مطلقاً. (البحر الرائق ج۱، ص۱۸، و مثله فی الهندیة ج۱، ص۶، الفصل الثانی فی سُنن الوضوء.

### برش د سنت مسواک ځای نه نیسي

**سوال:** د مسواک له وهلو څخه په عمومي توګه د غابښونو پاکوالی مقصود وي۔ په موجوده زماني کښې له برش څخه دا فائده په ښه توګه لاس ته راځي نو آیا دا د مسواکو ښه بدل ګرځي؟ یعنې د برش په استعمال سره سنت ادا کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د غابښونو پاکوالی بې له شکه د مسواک له فوائدو څخه یوه اهمه فائده ده لیکن د مسواک استعمال یوائځې د غابښونو د پاکوالي لپاره نه دی بلکه بنیادي عنصر او مقصد پکښې د رسول اللهﷺ د سنتو پیروي ده۔ په برش کښې هغه خصوصیات او صفات موجود نه دي کوم چه په مسواک کښې موجود دي۔ نو د دې لپاره په برش باندې سنت نه ادا کیږي۔ البته د برش نفس استعمال جائز دی۔

قال ابراهیم الحلبیؒ: ثم المستحب ان یکون المسواک من شجرة مرّة لزیادة ازالة تغیر الفم قالوا و یستاک بکل عود الا الرمان و القصب و افضله الاراک ثم الزیتون و ان یکون طوله شبراً فی غلظ المختصر. (کبیری، آداب الوضوء ص۳۷)

قال ابن عابدینؒ: (قولهٗ و السواک) با لکسر بمعنی العود الذی یستاک به. (رد المحتار ج۱، ص۱۱۳/۱۱۵، سُنن الوضوء) و فی ایضاً: و یستاک بکلّ عود الا الرمان و القصب و افضله الاراک ثم الزیتون.



### د مسواک د نشت والي په صورت کښې آیا ګوته د مسواک قائم مقام ګرځي؟

**سوال:** که چیرته له چاسره مسواک نه وي او یا د مسواکو په استعمال سره ورته تکلیف وي نو په داسې صورت کښې د شهادت ګوته د مسواک قائم مقام ګرځي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چیرته مسواک نه وي او یا په خوله کښې غابښونه نه وي او یا د مسواک د استعمال له وجهې د تکلیف او ضرر خطر وي نو په داسې صورت کښې ګوته د مسواک ځای نیسي۔

قال ابن عابدینؒ: قال فی الحلیة ثم بای اصبع استاک لا بأس به و الافضل ان یستاک با لسبابتین یبدأ با لسبابة الیسریٰ ثم با لیمنیٰ و ان شاء استاک بابهامه الیمنیٰ و السبابة الیمنیٰ یبدأ با لابهام من الجانب الایمن فوق و تحت ثمّ با لسبابة من الایسر کذٰلک. (رد المحتار علی الدر المختار ج۱، ص۱۱۵، سُنن الوضوء)

قال ابن نجیمؒ: و تقوم الاصبع او الخرقة الخشنة مقامه عند فقده او عدم اسنانه و تحصیل الثواب لا عند وجوده. (البحر الرائق ج۱، ص۲۱، سُنن الوضوء) و مثله فی الزیلعی ج۱، ص۴، سُنن الوضوء)

### د مسواک د ژوولو حکم

**سوال:** د مسواک د استعمال په وخت کښې که چیرته د مسواک د پستولو لپاره مسواک په غابښونو ژوي نو د شریعت له مخې جائز دی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** مسواک د غابښونو په ذریعې سره په پستولو کښې هیڅ بدې نشته او د سنت په ادا کولو کښې هیڅ اثر نه کوي۔ البته په طبي لحاظ سره د مسواک په ژولو سره د بینایي قوت متاثر کیږي۔ نو د دې لپاره د مسواکو ژوول مناسب نه دي۔

کما اخرجه البخاری عن عائشةؓ...... فاخذتُ السواک فقصمتهُ و نفضتهُ و طیّبتُه ثم دفعته النبیﷺ (صحیح البخاری ج۲، ص۶۳۸، باب وفات النبی) قال الحصکفیؒ و لا یمصه فانه یورث العمیٰ. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۱۱۴، سُنن الوضوء)

اخرجه الزیلعیؒ: عن عائشةؓ قالت...... فاخذتُ السواک فقضمتُه و طیّبتُه ثم دفعتُه الی رسول اللهﷺ (نصب الرایة ج۱، ص۸، احادیث السواک) قال الشیخ عبد الحیّ اللکهنویؒ: لا یمص السواک فانهٗ یورث العمیٰ. (العنایة ج۱، ص۱۱۹، باب سُنن الوضوء) و مثله فی مرقاة المفاتیح شرح مشکوٰة المصابیح ج۱۱، ص۲۳۸، باب وفات النبیؐ، الفصل الاول.

### د نوکانو د رنګ په موجودوالي کښې د اودس حکم

**سوال:** نن صبا عامې ښځې د نوکانو پالش یا رنګ استعمالوي نو آیا د نوکانو د رنګ شتون په اودس او غسل باندې اثر کوي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د نوکانو رنګ د نوې زماني مسئله ده۔ د دې لپاره مستقله جزئیه په متقدمینو کتابونو کښې نه پیدا کیږي۔ د موجوده دور مخور او مشهور علماوو د نوکانو پالش ناروا بولي ځکه چه په دې سره نوکان پټیږي او په اودس او غسل کښې نوکانو ته اوبه

رسیدل ممکن نه دي- نو د دې لپاره د لانده وړو غونډې د اوداسه او غسل مانع ګرځي-

لیکن د ځینو نورو علماوو په نزد د نوکانو پالش که چېرته د ښځې ښائست و منل شي نو بیا په دې صورت کښې ئې که چېرته لرې کول سخت نه وي نو د اودسه او غسل لپاره به ئې لرې کول ضروري وي او که چېرته ئې لرې کول سخت وي لیکن جِرم (پتوکی) لرونکی نه وي نو بیا به ئې حکم د کریزو غونډې وي- او که د جِرم د جوړېدلو په صورت کښې ئې لرې کول مشکل وي نو د حرج د جوړېدو په صورت کښې اَو به رسول ورته ضروري نه دي-

قال العلامة الحصکفیؒ: و یجب ای یفرض غسل کل ما یمکن من البدن بلا حرج مرةً (و بعد سطر) و لا یمنع ما علٰی ظفر صباغ و لا طعام بین اسنانه او فی سنه المجرف به یفتی و قیل ان صلبا منع و هو الاصح. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۱۵۲/۱۵۳، ابحاث الغسل)

بیا هم په موجوده زماني کښې د ا د مغربي ثقافت یو جزء ګڼل کیږي نو د دې لپاره د عزتمنو کورنیو د ښځینه وو لپاره له دې څخه ځان ساتل ضروري دي- له دې وجهې د محققینو علماوو په نزد د نوکانو پالش یا رنګ په اودسه او غسل دواړو باندې اثر اچوي-

## پــــه اودسه کښې د غاړې مسح

**سوال:** په اودسه کښې د غاړې مسح په کوم روایت سره ثابته ده؟ او د ثبوت په صورت کښې ئې د فقهاوو په نزد درجه څه ده؟ بینوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د غاړې د مسح په باره کښې ګڼ روایتونه راغلي دي چه له موقوفو روایتونو برسیره مرفوع روایتونه هم پکښې شته-

لما ذکر العلامة العینیؒ: عن ابن عمر ان النبیﷺ قال من توضأ و مسح عنقه لم یغل با لاغلال یوم القیٰمة. (البنایة شرح الهدایة ج۱، ص۱۰۸، باب الوضوء)

البته د فقهاوو په نزد ئې د حکم په تعین کښې اختلاف دی- ځینې علماء کرام ئې سنت بولي لیکن د خلاصې مصنف ئې مستحب والي ته ترجیح ورکړې ده او د کنز مصنف هم د اودسه په مستحباتو کښې یاده کړې ده-

قال ابن نجیمؒ: و قیل سنة و هو قول الفقیه ابی جعفر و بهٖ اخذ کثیر من العلماء کذا فی شرح مسکین و فی الخلاصة الصحیح انه ادب و هو بمعنی المستحب. (البحر الرائق ج۱، ص۲۸، مستحبات الوضوء)

عن وائل بن حجرؓ: قال شهدت النبیؐ و اُتِیَ باناءٍ فاکفا علی یمینه ثلاثاً ثم غمس یمینه فی الماء فغسل بها ذراعه الیمنٰی حتٰی جاوز المرفق ثلاثاً ثم غسل یساره ثلاثاً حتٰی جاوز المرفق ثلاثاً ثم مسح علی رأسه ثلاثاً و ظاهر اُذُنیه و ظاهر رقبته. (نصب الرایة ج۱، ص۱۳)

و قال صاحب التنویر: فی مستحبات الوضوء و مسح الرقبة. و قال ابن عابدینؒ (تحت قوله و مسح الرقبة) هو الصحیح و قیل انهٗ سنة. (رد المحتار علی الدر المختار ج۱، ص۱۲٤، مستحبات الوضوء) و مثله فی السعایة ج۱، ص۱۷۸، باب مسح الرقبة.



## په سر باندې د مسح مسنونه طریقه

**سوال:** د سر د مسح مسنونه طریقه کومه ده؟ بینوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د سر د مسح مسنونه طریقه دا ده چه د سر په ابتدائي برخې باندې د دواړو لاسونو ورغوي او ګوتې کښېښودې او تر غړې پورې ئې په داسې ډول یوسی چه ټول سر مو پرې رانیولی وي-

قال العلامة محمد امینؒ: و الاظهر ان یجع کفیه و اصابعه علی مقدم رأسه و یمدهما الی القفاء علی وجه یستوعب جمیع الرأس. (ردّ المحتار علی الدر المختار ج۱، ص۱۲۱، سُنن الوضوء)

قال ابن نجیمؒ: قال الزیلعی! تکلموا فی کیفیة المسح و الاظهر ان یضع کفیه و اصابعه....... الخ. (البحر الرائق ج۱، ص۲٦، سُنن الوضوء) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۷، الفصل الثانی فی سُنن الوضوء.

## د اودسه د کولو په وخت کښې د ږیرې د لمدولو حکم

**سوال:** د اودسه د کولو په وخت کښې د مخ د مینځلو په حالت کښې د ږیرې څه حکم دی؟ آیا د ټولې ږیرې پریمنځل ضروري دي او که څه نا څه برخه ئې؟ او د ګڼې او نرۍ ږیرې تر منځ ګوم فرق شته او که نه؟ بینوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** معلومه ده چه ږیره په دوه قسمه ده- ګڼه ږیره او نرۍ ږیره- که چېرته له ویښتانو څخه د مخ پوستکی معلومیده نو دا ږیره نرۍ ده او که چېرته د مخ پوستکی نه ښکاریده نو دا ږیره ګڼه ده- د نرۍ ږیرې منځل فرض دي او په ګڼې ږیرې کښې چه د مخ په حدودو کښې کومه ږیره واقع وي نو مینځل ئې فرض دي او کوم ویښتان چه زوړند دي د هغو مینځل فرض نه دي بلکه مسح ئې ضروري ده-

قال العلامة الحصکفیؒ: ثم لا خلاف ان المسترسل لا یجب غسله و لا مسحه بل یسنّ و ان الخفیفة الّتی ترٰی بشرتها یجب غسل ما تحتها........ و قال ابن عابدینؒ: (تحت قوله المسترسل) ای الخارج عن دائرة الوجه، و فسره ابن حجر فی شرح المنهاج بما لو مدمن جهة نزوله لخرج عن دائرة الوجه. (رد المحتار علی الدر المختار ج۱، ص۱۰۰، فرائض الوضوء)

قال فی الهندیة: و روی عن ابی حنیفة و محمد رحمهما الله تعالٰی انه یجب امرار الماء علی ظاهر اللحیة هو الاصح کذا فی التبیین و هو الصحیح هٰکذا فی الزاهدی و الشعر المسترسل من الذقن لا یجب غسله کذا فی المحیطین. (الهندیة ج۱، ص٤، کتاب الطهارة، الباب الاول) و مثلهٗ فی البحر الرائق ج۱، ص۱٦، فرائض الوضوء.

## په خضاب و هلې ږیرې باندې د اودسه حکم

**سوال:** په ویښتانو باندې د خضاب په لګولو سره په حقیقت کښې د ویښتانو خپل حقیقت له منځه ځي او په هغو باندې یوه نرۍ غونډې پرده راځي نو آیا په اودسه کښې ترې کوم فرق لویږي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په ویښتانو باندې د خضاب په لګولو سره پرده نه جوړیږي- نو د دي

لپاره د داسې رنګ د ورکولو په صورت کښې په اوداسه کښې کوم فرق نه راځي- لکه چه د رنګ ورکوونکي چه کله رخت يا جامې ته رنګ ورکوي نو په لاسونو کښې ئې رنګ پاتې کيږي او د ا رنګ د اودس او غسل مانع نه دی. البته که چېرته د بدن په داسې ځای کښې چه مينځل ئې ضروري وي او د لرګيو د رنګ غوندې رنګ پرې لګيدلی وي نو بيا په دې رنګ سره د پتوکي د جوړيدلو له وجهې د هغه ځای ته د اوبو رسول ممکن نه وي نو د دې لپاره د داسې رنګ لرې کول ضروري دي او که ئې لرې نه کړي نو اودس او غسل به ئې دواړه صحيح نه وي-

قال العلامة الحصكفىؒ: و لا يمنع ما على ظفر صباغ و لا طعام بين اسنانه او فى سنه المجوف به يفتى و هو الاصح. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۱، ص۱۵۴، ابحاث الغسل)

قال العلامة الشرنبلالىؒ: و لا ما على ظفر الصباغ من صبغ للضرورة و عليه الفتوىٰ. (مراقى الفلاح على صدر الطحطاوى ص۵۰، فصل فى تمام اقسام الوضوء) و مثله فى منية المصلى ص۲۳.

## له اوداسه نه وروسته د آسمان خوا ته د کتلو حکم

**سوال:** د اوداسه له پوره کيدو څخه وروسته د آسمان خوا ته د کتلو شرعي حيثيت څه دی؟ بينوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د اوداسه له بشپړ کيدو نه وروسته د آسمان خوا ته کتل کوم مقصود بالذات عبادت نه دی بلکه د مسنونو دعاګانو د لوستلو په وخت کښې ادب دا دی چه آسمان خوا ته سرې وګوري-

قال ابن عابدينؒ: و ان يقول بعد فراغه سبحانك اللّٰهمّ و بحمدك اشهد ان لآ اِله الاّ انت استغفرُكَ و اَتُوبُ اِليْكَ و اشهدُ اَنّ محمداً عبدك و رسولك ناظراً الى السماء. (رد المحتار على الدر المختار ج۱، ص۱۲۸، مندوبات الوضوء)

قال العلامة الكاشغرىؒ: بعد ما ذكر الادعية الماثورة ناظراً الى السماء. (مُنية المصلّى ص۱۴، سُنن الوضوء)

## د عبادت له کولو پرته د اودس لپاسه د اوداسه حکم

**سوال:** داسې اودس چه په هغه باندې عبادت لا نه وي شوی په هغه اوداسه باندې د بل اوداسه څه حکم دی؟ بينوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** اودس په اوداسه باندې په اتفاق سره جائز دي- البته که چېرته يو ځل څوك اودس وکړي او په هغه باندې ئې داسې عبادت ادا کړی نه وي چه اودس ورته شرط وي نو په داسې صورت کښې اودس په اوداسه باندې له کراهيت څخه خالي نه دی-

قال ابن عابدينؒ: و فى شرح المُنية فاذا لم يؤد به عمل ممّا هو المقصود من شرعيته كا لصلٰوة و سجدة التلاوة و مس المصحف ينبغى ان لا يشرع تكراره قربة لكونهٖ غير مقصود لذاتهٖ. (رد المحتار على الدر المختار ج۱، ص۱۱۹، مطلب فى الوضوء على الوضوء)

قال ابراهيم الحلبىؒ: فاذا لم يؤد بهٖ عمل ممّا هو المقصود من شرعيته كا لصلٰوة و سجدة التلاوة و مس المصحف ينبغى ان لا يشرع تكراره قربةً....... الخ. (كبيرى ص۲۶، سُنن الوضوء)



## په اوداسه کښې په يوه لاس سره د مخ د مينځلو حکم

**سوال:** ځينې خلك د اوداسه په وخت کښې خپل مخونه په يوه لاس سره مينځي چه له وجهې ئې اوبه هم ضائع کيږي او کله کله د ټول مخ په مينځلو کښې هم خنډ واقع شي نو آيا په يوه لاس سره د مخ پرې مينځل جائز دي او که نه؟ بينوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په اوداسه کښې د مغسوله (د مينځلو وړ) او ممسوحه (د مسح کولو وړ) اندامونو استيعاب (ټول نيونه) سنت دی- د دې لپاره رسول اللهﷺ په دواړو لاسونو باندې خپل مخ مبارك پريمينځه- نو په دې بنا په يوه لاس سره د مخ مينځل د سنتو خلاف دی-

لما قال الامام محمد اسمٰعيل البخارىؒ: باب غسل الوجه با ليدين من غرفة واحدة، عن ابن عباسؓ انه توضأ وجهه اخذ غرفة من ماءٍ فتمضمض بها و استنشق ثم اخذ غرفة من ماءٍ فجعل بها هٰكذا اضافها الى يده الاخرىٰ فغسل بها وجهه الخ. (الجامع الصحيح للبخارى ج۱، ص۲۶، باب غسل الوجه با ليدين من غرفة واحدة)

قال الشيخ ظفر احمد العثمانىؒ: په يوه لاس باندې د مخ پريمنځل او د سر مسح د سُنتو خلاف دی- (امداد الاحكام ج۱، ص۳۴۷، فصل فى سنن الوضوء و آدابه و مكروهاته)

## د ستوني د مسح حکم

**سوال:** په ځينو وختونو کښې ليدل شوي دي چه ځينې خلك د غاړې د مسح تر څنګ د ستوني مسح هم کوي- نو آيا د ستوني مسح جائز ده او که نه؟

**الجواب:** د اوداسه په آدابو کښې د غاړې مسح شامله ده، د حلقوم (ستوني) مسح په اسلافو کښې له چا څخه نه ده ثابته- د دې لپاره د ستوني مسح کول بدعت دی-

لما قال ابن نجيمؒ: و الثانى مسح الرقبة و هو بظهر اليدين و اما مسح الحلقوم فبدعة. (البحر الرائق ج۱، ص۲۸، كتاب الطهارت)

قال العلامة الحصكفىؒ: و مسح الرقبة بظهر يديه لا الحلقوم لانه بدعة. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۱، ص۱۲۴، مستحبات الوضوء) و مثله فى الهندية ج۱، ص۸، الفصل الثالث فى المستحبات.

## په اوداسه کښې د لاس د مينځلو شروع د ګوتو له خوا څخه سنت ده

**سوال:** زمونږ په سيمې کښې خلك د اوداسه په وخت کښې د ګوتو له خوا څخه اوبه پخپل لاس باندې بهوي- نو آيا دا طريقه صحيح ده او که نه؟ بينوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په اوداسه کښې لاسونه له څنګلو سره مينځل يو ځل فرض دی او درې ځله مينځل ئې سنت دي- همدا رنګه په پښې مينځلو کښې ابتداء د ګوتو له خوا څخه سنت ده-

لما فى الهندية: و من السنن البداية من رؤس الاصابع فى اليدين و الرجلين. (الهندية ج۱، ص۸، الفصل الثالث فى المستحبات)

لما قال ابن الهمامؒ: و من السنن الترتيب بين المضمضة و الاستنشاق و البدأة من مقدم الرأس و من رؤس الاصابع فى اليدين و الرجلين. (فتح القدير ج۱، ص۳۱، كتاب الطهارة)

## د اوداسه بهترینه طــــــریقه

**سوال:** اودس په ولاړې باندې کول ښه دي او که په ناستې باندې؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** اودس کول په ناستې باندې ښه دي ځکه چه د اوداسه په آدابو کښې دا راغلي دي چه اودس باید په ناستې وکړی شي۔

و من الآداب (ان یجلس المتوضی مستقبل القبلة عن غسل سائر الاعضاء) و من الآداب (ان یکون جلوسه علی مکان مرتفع). (حلبی کبیر ج۱، ص۳۱، باب الوضوء)

قال العلامة الحصکفیؒ: و الجلوس فی مکان مرتفع تحرزا عن الماء المستعمل و عبارة الکمال و حفظ ثیابه من التقاطر و هی اشمل. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۱۲۷، آداب الوضوء) و مثله فی السعایة ج۱، ص۱۸۰، آداب الوضوء.

## د ژمي په موسم کښې په اوداسه کښې د اندامونو د مینځلو طریقه

**سوال:** په ژمي کښې د سړي اندامونه دومره وچ وي چه که چېرته اوبه پرې تویې شي نو اندامونه پوره نه لمدیږي بلکه اکثره وچ غوندې پاتې کیږي۔ په داسې صورت کښې به سړی څنګه اودس کوي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په ژمي کښې اندامونه ډیر وچیږي او اوبو اندامونه په صحیح توګه نه لمدوي نو د دې لپاره فقهاوو لیکلي دي چه د له مینځلو څخه مخکښې مو خپل اندامونه یو ځل لامده کړی او بیا اوبو پرې تویې کړی تر څو چه اندامونه په ښه توګه پرې مینځل شي۔

لما قال العلامة الکاسانیؒ: عن خلف بن ایوب انهٗ قال ینبغی للمتوضی فی الشتاء ان یبل اعضاء شبه الدهن ثم یسیل الماء علیها لان الماء یتجافی عن الاعضاء فی الشتاء. (بدائع الصنائع ج۱، ص۳، کتاب الطهارة)

و فی الهندیة: عن خلف بن ایوب انهٗ قال ینبغی للمتوضی فی الشتاء ان یبل اعضاء شبه الدهن ثم یسیل الماء علیها لان الماء یتجافی عن الاعضاء فی الشتاء. (الهندیة ج۱، ص۹، الفصل الثالث فی المستحبات)

## په اوداسه کښې له بل څخه د مدد غوښتلو حکم

**سوال:** د فقهې په عامو کتابونو کښې لیکل شوي دي چه له بل څخه مدد غوښتل په اوداسه کښې مکروه دي لیکن په عامه توګه شاګرد د خپل استاذ لپاره او ملازم د خپل مالك لپاره د اوداسه اوبو تیاروي او بیا هغه اودس پرې کوی آیا دا مدد غوښتل هم مکروه دی او په اوداسه کښې ئې کوم فرق راځي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د دې مسئلې په باره کښې اګر که په فقهي ذخائرو کښې د بل په مطلق امداد کولو سره د کراهیت خبره راغلې ده لیکن د محققینو په نزد دا استعانت مطلقاً نه دی بلکه دا دوه حالتونه لري۔ (۱) د اوداسه د آلاتو د تیارۍ استعانت۔ (۲) په اوداسه کښې په مینځلو او مسح کښې استعانت۔ لومړنی استعانت بغیر له کراهیته جائز دی دا ډول استعانت د نبي کریم په باره کښې له صحابۀ کرامو رضی الله عنهم څخه ثابت دی کوم چه نبي کریم ﷺ



ترې څوك منع کړي نه دي۔ البته دوهم ډول استعانت پرته له کوم شرعي عذر څخه مکروه دی۔

لما قال العلامة ابن عابدینؒ: و حاصله ان الاستعانة فی الوضوء ان کانت بصب الماء او استقائه او احضاره فلا کراهة بها اصلاً و لو بطلبه و ان کانت با لغسل و المسح فتکره بلا عذر. (رد المحتار ج۱، ص۱۲۷، آداب الوضوء، مطلب فی مباحث الاستعانة فی الوضوء با لغیر)

قال العالم بن العلاء الانصاریؒ: و من الآداب ان یقوم بامر الوضوء بنفسه لحدیث عمر رضی الله عنه قال انا لا نستعین علی وضوئنا و مع هٰذا لو استعان بغیره جاز ان لا یکون الغاسل غیره بل یغسل بنفسه و قد صح ان رسول اللهﷺ استعان با لمغیرةؓ و کان المغیرةؓ یفیض الماء و رسول اللهﷺ کان یغسل. (الفتاوی التاتارخانیة ج۱، ص۱۱۲، آداب الوضوء)

## د بیمارۍ له وجهې په اوداسه کښې د مضمضې د نه کولو حکم

**سوال:** ځینې خلك داسې مرض لري چه که چېرته مضمضه کوي نو غاښونه ئې وینه کوي۔ اوس که چېرته یو مریض د عذر له وجهې مضمضه و نه کړي نو اودس ئې کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** مضمضه یا پوزې ته اوبو اچول د اوداسه له سنتونو څخه ګڼل کیږي۔ که چېرته یو سړی مضمضه یا استنشاق بغیر له عذرنه پریږدي نو ګنهګاریږي۔ لیکن د عذر له وجهې د خولې او پوزې په نه مینځلو سره ئې نه اودس خرابیږي او نه پرې ګناهګاریږي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: و غسل الفم الخ بمیاه ثلٰثة و الانف بمیاهٍ و هما سنتان مؤکدتان. فلو ترکها اثم علی الصحیح سراج قال فی الحلیة لعله محمول علی ما اذا جعل الترك عادة له من غیر عذر. (رد المحتار ج۱، ص۱۱۶، سنن الوضوء)

و فی الهندیة و السنة ان یتمضمض ثلاثاً، اولا ثم یستنشق ثلاثاً و یأخذ لکل واحدٍ منهما ماء جدیداً فی کل مرّة........ ان ترك المضمضة و الاستنشاق أثم علی الصحیح لانهما من سنن الهدیٰ و ترکها یوجب الاساء ة الخ. (الهندیة ج۱، ص۶، الفصل الثانی فی سنن الوضوء)

## په بیسن کښې د اوداسه د کولو حکم

**سوال:** د نن صبا په نوي دور کښې د مخ او لاس د مینځلو لپاره بیسنونه جوړ شوي دي کوم چه په ولاړې باندې خلك خپل مخ او لاسونه مینځي او په ناستې سره ئې نه شي مینځلی۔ آیا په بیسنونو کښې اودس جائز دی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** اودس پکښې جائز دی لیکن د ادب خلاف دی۔

و من الاداب (ان نجلس المتوضی مستقبل القبلة عند غسل سائر الاعضاء) و من الآداب (ان یکون جلوسه علی مکان مرتفع.(حلبی کبیر ج۱، ص۳۱، آداب الوضوء)

قال الحصکفیؒ: و الجلوس فی مکان مرتفع تحرزاً عن الماء المستعمل و عبارة الکمال و حفظ ثیابه من التقاطر و هی اشمل. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۱۲۷، آداب الوضوء) و مثله فی السعایة ج۱، ص۱۸۰، آداب الوضوء.

## د اوداسه په دوران کښې د خبرو د کولو حکم

**سوال:** نن صبا په عمومي توګه دا ښکاریږي چه ځینې خلك د اوداسه په دوران کښې دنیاوي

خبرې کوي۔ آيا د اوداسه په دوران کښې دنياوي خبرې جائزې دي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د اوداسه په دوران کښې د مأثوره دعاګانو لوستل مسنون دي۔ د دنياوي خبرو له وجهې لکه څرنګه چه دعاګانې نه لوستل کيږي نو د دې لپاره فقهاء کرامو ورته مکروه ويلي دي۔ البته د کومې ضروري پوښتنې ځواب يا چاته پيغام او د اسې نور ورکول له کراهيت پرته جائز دي۔

لما قال حسن بن عمار الشرنبلالیؒ: و يکره التکلم بکلام الناس لانه يشتغله من الادعية. قال الطحاویؒ: ما لم يکن لحاجة تفوته بترکه. (مراقی الفلاح علی صدر الطحطاوی ص ٦٤، فصل مکروهات الوضوء)

قال العلامة الحصکفیؒ: و من آدابه......... و عدم التکلم بکلام الناس الا لحاجة تفوته. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج ١، ص ١٢٦، آداب الوضوء مطلب فی مباحث الاستعانة فی الوضوء با لغير)

## د بواسيرو د مريض د اوداسه حکم

**سوال:** ځينې حضرات د بواسيرو په مرض باندې اخته دي چه له وجهې ئې د هغه هر وخت ريح يعنې هوا يا وينه خارجيږي۔ نو د داسې مريض د اوداسه حکم به څنګه وي؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د بواسيرو د مريضانو مرض که چېرته دومره سخت وي چه هر وخت وينه يا هوا ترې خارجيدله نو داسې مريضان د معذورينو په حکم کښې دي۔ کوم چه د هر لمانځه د وخت لپاره به نوی اودس کوي۔ او په اوداسه سره چه څومره لمونځونه او داسې نور عبادتونه وغواړي کولی ئې شي۔ او که چېرته ئې مرض د معذورينو تر اندازې پورې نه وي رسيدلی نو بيا د بواسيرو له وجهې وتونکې هوا يا وينه دواړه د اودس ماتوونکې دي۔

لما قال العلامة الحصکفیؒ: و صاحب عذر من به سلسل بوله لا يمکنه امساکه او استطلاق بطن او انفلات ريح........ ان استوعب عذره تمام وقت صلٰوة مفروضة بان لا يجد فی جميع وقتها زمنا يتوضأ و يصلی فيه خالياً عن الحدث و لو حکماً......... حکمه الوضوء لکل فرضٍ اللام للوقت ثم يصلّی به فيه فرضاً و نفلاً فاذا خرج الوقت بطل. آه (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج ١، ص ٣٠٥/ ٣٠٦، باب الحيض)

قال المرغينانیؒ: و من بن سلسل البول و الرعاف الدائم و الجرح الذی لا يرقأ يتوضئون لوقت کل صلٰوة فيصلون بذٰلك الوضوء فی الوقت ما شاء. (الهداية ج ١، ص ٥٠، باب الحيض) و مثله فی ردّ المحتار ج ١، ص ٣٠٥، باب الحيض، مطلب فی احکام المعذور.

## په اوداسه کښې واجبات نشته

**سوال:** آيا په اوداسه کښې واجبات شته او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د فقهاء کرامو له تصريحاتو څخه دا څرګنديږي چه په اوداسه او غسل دواړو کښې واجبات نشته۔

لما قال العلامة الحصکفیؒ: و سننه افاد انه لا واجب للوضوء و لا للغسل و الا لقدمه. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج ١، ص ١٠٢/ ١٠٣، سنن الوضوء)



قال ابن نجيمؒ: ذکر فی النهاية انه يجوز ان يکون الفرض فی مقدار المسح بمعنی الواجب لالتقهالهما فی معنی اللزوم و تعقب بانه مخالف لما اتفق عليه الاصحاب اذلا واجب فی الوضوء. (البحر الرائق ج ١، ص ١١، کتاب الطهارة)

## اخبارونه او ديني رسالې له اوداسه پرته د مس کولو حکم

**سوال:** د نن صبا په دور کښې په اخبارونو اور رسالو کښې د قرآنکريم الفاظ له ترجمې او تفسير سره ليکلي وي او همدارنګه په تفاسيرو کښې اکثره برخه تفسير وي نو آيا له قرآني الفاظو پرته د اخبارونو او رسالو او تفسيرونو نورې برخې بغير له اوداسه مس کول جائز دي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** بغير له اوداسه نه د قرآنکريم مس کول جائز نه ي۔ البته د تفسير او د اسې نورو کـــــاغذونو چه په ځينو برخو کښې د قرآنکريم آيتونه ليکلي وي د امام ابو حنيفه رحمه الله څخه مختلف روايتونه منقول دي چه له هغو څخه په ځينو روايتونو کښې کراهيت معلوميږي او له ځينو څخه عدم کراهيت معلوميږي۔ علامه ابراهيم حلبي نه مکروه والي ته ترجيح ورکړې ده او په دې باندې په عمل کولو کښې سهولت هم شته۔ ليکن د اولی خلاف خو خامخا دی۔

قال الشيخ ابراهيم الحلبیؒ: و يکره ايضاً للمحدث و نحوه مس تفسير القرآن و کتب الفقه و کذا کتب السنن و لانها لا يخلو عن آيات و هٰذا التعليل يمنع مس شروح النحو ايضاً...... و الاصح انهٗ لا يکره عند ابی حنيفةؒ. (کبيری ص ٥٦، فی آخر باب الغسل)

قال الشيخ اشرف علي التهانويؒ: له دې څخه معلومه شوه چه کله د غير قرآن عبارت زيات او غالب وي د هغه مس (لاس لګول) په مطلقه توګه کما هو الظاهر د امام صاحبؒ په نزد صحيح دی۔ و فی الاخذ به سهولة. (امداد الفتاوٰی ج ١، ص ٩٢، مسائل منثورة، کتاب الطهارة)

## د غوږونو او باړخوګانو تر منځ برخې د مينځلو حکم

**سوال:** ځينې خلك د چتکۍ په صورت کښې په اودس کولو سره د غوږ اوباړخو تر منځ حصه پريږدي۔ آيا په داسې کولو سره په اوداسه کښې کوم فرق راځي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د فقهي تصريحاتو له مخې د غوږ او باړخو تر منځ برخې د مخ په حکم کښې دي او په اوداسه کښې لکه څرنګه چه د مخ مينځل فرض دي همدارنګه د دغو برخو پريمينځل هم فرض دي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: و ما بين العذار و الأُذن لدخوله فی الحد و به يفتی. قال ابن عابدينؒ: قوله و ما بين العذار و الأُذن ای ما بينهما من البياض قوله و به يفتی و هو ظاهر المذهب و هو الصحيح و عليه اکثر المشائخ. (رد المحتار ج ١، ص ٩٧، کتاب الطهارة)

قال العلامة عالم بن العلاء الانصاریؒ: و اما البياض الذی بين العذار و بين شحمة الاذن قد ذکر شمس الائمة الحلوانی انهٗ ظاهر المذهب. (الفتاوٰی التاتارخانية ج ١، ص ٨٩، کتاب الطهارة)

## د سرخي، پوډر او کریم په موجود والي کښې د اوداسه د کولو حکم

**سوال:** آیا په داسې حال کښې چه یو چا لِپ سټیك (سُرخي)، پوډر او کریم وهلی وي اودس ئې ورسره کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** مروجه سُرخي، کریم او داسې نور د تیلو غونډې دي او پوډر د ګرد او غبار غونډې دی چه له وجهې ئې په اندامونو باندې پټوکی نه جوړیږي نو د دې لپاره که هغه چالګولي هم وي نو اودس ئې ورسره روا دی لیکن د اوداسه د کولو په وخت کښې لومړی هغه ځای لمدوي چه سُرخي، کریم یا پوډر پرې لګیدلی وي او بیائې مینځي۔ البته که چېرته سُرخي یا کریم داسې وي چه د نوکانو د رنګ غونډې پټوکی نیسي نو بیا اودس او غسل ورسره صحیح نه دي۔

لما قال العلامة ابو بکر الکاسانیؒ: عن خلف بن ایوب انهٗ قال ینبغی للمتوضئ فی الشتاء ان یبل اعضائه شبه الدهن ثم یسیل الماء علیها لان الماء یتجافی عَن الاعضاء فی الشتاء. (بدائع الصنائع ج۱، ص۳، کتاب الطهارة)

و فی الهندیة: عن خلف بن ایوب انهٗ قال ینبغی للمتوضئ فی الشتاء ان یبل اعضائه شبه الدهن ثم یسیل الماء علیها لان الماء یتجافی عَن الاعضاء فی الشتاء (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۹، باب الوضوء، الفصل الثالث فی المستحبات

## د جمعې د لمانځه د فوت کیدو له ویرې سره سره پوره اودس کول ضروري دي

**سوال:** ځینې خلك داسې څرګندیږي چه ډیر په بیړه کښې وي او د جمعې د فوت کیدو له وجهې په اوداسه کښې د سنتونو او داسې نورو پوره پاملرنه نه کوي۔ نو آیا په اوداسه کښې د سنتونو پرینښودل او په جمعې کښې شریکیدل ضروري دي او که سنتونه به پوره کوي اګر که د جمعې د فوت کیدو ویره هم وي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په شریعت مقدسه کښې د اوداسه د اسباغ حکم دی یعنې د اوداسه د تولو فرائضو، سنتونو او آدابو پوره کولو حکم شوی دی نو د دې لپاره د جمعې د فوت کیدو له ویرې سره به هم څوك د اوداسه سنتونه نه پریږدي او کامل اودس به کوي اګر که جمع ترې فوت هم شي۔

قال الشیخ ملا علی القاریؒ: قال ارسول اللهﷺ اسبغوا الوضوء. رواه مسلم. ای اتموه باتیان جمیع فرائضه و سننه و اکملوا واجباته. (مرقاة شرح مشکٰوة ج۱، ص۳۱۰)

عن عبد الله بن عمر قال رجعنا مع رسول اللهﷺ من مکة الی المدینة حتٰی اذا کنا بماء با لطریق تعجل قوم عند العصر فتوضأ و اوهم مُجَّال فانتهینا الیهم و اعقابهم تلوح لم یمسها الماء فقال رسول اللهﷺ ویل للاعقاب من النار اسبغوا الوضوء. (مشکٰوة ج۱، ص۴۶، باب سنن الوضوء)



## د زمزم په اوبو سره د اوداسه او غسل حکم

**سوال:** آیا د زمزم په اوبو سره اودس او غسل جائز دی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د زمزم اوبو متبرکې اوبو دي او ادب او احترام ئې شرعي ذمه واري ده نو د دې لپاره د بې اودسه سړي لپاره پرې اودس کول مکروه دي خو په دې شرط چه نورې اوبو وي۔ او که چېرته نورې اوبو نه وې نو بیا له کراهیت پرته اود پرې جائز دی لیکن د جنابت غسل او استنجاء خو په هر حالت کښې پرې مکروه دي۔ البته که یو اودس لرونکی سړی یا پاك بدن لرونکی سړی د تبرك له مخې اودس او غسل پرې وکړي نو له کراهیت پرته جائز دي۔

لما قال السید احمد الطحطاویؒ: یجوز الاغتسال و التوضؤ بماء زمزم ان کان علی طهارة للتبرك فلا ینبغی ان یغتسل بهٖ جنب و لا محدث و لا فی مکان نجس و لا یستنجی بهٖ و لا یزال به نجاسة حقیقة من بعض العلماء تحریم ذٰلك و قیل ان بعض الناس استنجٰی بهٖ فحصل لهٗ با سوْر. (طحطاوی حاشیة مراقی الفلاح ص۱۷، کتاب الطهارة، اقسام المیاه)

قال العلامة الحصکفیؒ: یکره الاستنجاء بماء زمزم. قال ابن عابدینؒ: تحته و کذا ازالة النجاسة الحقیقة من ثوبه او بدنه حتٰی ذکر بعض العلماء تحریم ذٰلك. (رد المحتار ج۲، ص۶۲۵، کتاب الحج، مطلب فی کراهیة الاستنجاء بماء زمزم

## د نشیي شیانو په استعمال سره د اوداسه حکم

**سوال:** آیا په شراب، هیروئین، چرس او داسې نورو په څکولو سره اودس ماتیږي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** چرس، افیون، شراب او هیروئینو څکول پخپله د اوداسه ماتوونکي نه دي لیکن له څکولو او چښلو وروسته ئې که چېرته نشه غالبه شي نو بیائې اودس ماتیږي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: (ینقضه اغماء) و منه الغشی و جنون و سکر بان یدخل فی مشیه تمایل و لو یاکل الحشیشه آه. قال ابن عابدینؒ: (قوله سکرا) هو حالة تعرض للانسان من امتلاء دماغه من الابخرة المتصاعدة من الخمر فیتعطل معه العقل الممیز بین الامور الحسنة و القبیحة اسمٰعیل عن البرجندی. (رد المحتار ج۱، ص۱۴۴، باب نواقض الوضوء)

و کذا فی الهندیة: (و الغشی و السکر) قال وحد السکر فی هٰذا الباب ان لا یعرف الرجل من المرأة و هو اختیار بعض المشائخ. و صدر الشهید و الصحیح ما نقل عن شمس الائمة الحلوانی انهٗ اذا دخل فی بعض مشیته تحرك کذا فی الذخیرة. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۲، الفصل الخامس فی نواقض الوضوء)

## د نشیي دواګانو د استعمال په صورت کښې د اوداسه حکم

**سوال:** نن صبا ځینې دواګانې داسې دي چه په هغو کښې نشه زیاته وي۔ نو آیا د داسې دواګانو په استعمال سره په اوداسه کښې کوم فرق راځي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** دوایي اګر که پخپل ذات کښې د اوداسه د ماتیدلو سبب نه ده لیکن کله چه د هغې د نشې له وجهې په انسان باندې بې هوشي راشي نو اودس ئې پرې ماتیږي۔ او که نه وي نو اودس ئې نه ماتیږي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: (ینقضه اغماء) و منه الغشی و جنون و سکر بان یدخل فی مشیه تمایل و لو یاکل الحشیشه

و قال ابن عابدينؒ: (قوله سكرا) هو حالة تعرض للانسان من امتلاء دماغه من الابخرة المتصاعدة من الخمر فيتعطل معه العقل المميز بين الامور الحسنة و القبيحة. (رد المحتار ج۱، ص۱٤٤، باب نواقض الوضوء)

و فى الهندية: (و الغشى و السكر) قال وحد السكر فى هٰذا الباب ان لا يعرف الرجل من المراة و هو اختيار بعض المشائخ. و صدر الشهيد و الصحيح ما نقل عن شمس الائمة الحلوانى انهٗ اذا دخل فى بعض مشيته تحرك. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۱۲، الفصل الخامس فى نواقض الوضوء)

## د ستنې د لګولو په صورت کښې د اودسه حکم

**سوال:** ډاکټران مريضانو ته دوه ډوله ستنې لګوي چه يو ډول ئې د غوښې وي او بل ډول ئې د رګ چه دې ته وريدي پيچکاري هم ويل کيږي۔ نو آيا د ستنې په لګولو سره اودس ماتيږي او که څنګه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** هر نجس (مردار) شى چه کله له بدن څخه ووځي نو اودس ورسره ماتيږي۔ په دغو دواړو پيچکاريو کښې وريدي پيچکارۍ هلته يقيني کيږي چه په پيچکارۍ کښې وينه راشي او که وينه ستنې ته را نه شي نو نه يقيني کيږي۔ لکه څرنګه چه د دې پيچکارۍ له وجهې د مردار شي وتل منځ ته راځي نو د دې لپاره يو ځاې د وريدي پيچکارۍ په لګولو سره اودس ماتيږي۔

قال العلامة الحصكفىؒ: و ينقضه خروج كل خارج نجس منه اى من المتوضى الحى معتادا اولا من السبلين اولا الى ما يطهر اى يلحقه حكم التطهير. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۱، ص۱۳٤، مطلب نواقض الوضوء)

قال العلامة ابن نجيم المصرىؒ: و ينقضه خروج نجس منه اى و ينقض الوضوء خروج نجس من المتوضئ الخ. (البحر الرائق ج۱، ص۲۹، كتاب الطهارة)

## د فلم په کتنې سره اودس نه متاثر کيږي

**سوال:** د ټي وي، وي سي آر او فلم په ليدلو سره په اودسه کښې کوم فرق راځي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** ټي وي، وي سي آر، فلم او داسې نور ليدل د فسق او فجور کارونه دي۔ په دې عمل سره سړى ګناهګاريږي ليکن په اودسه باندې کوم اثر نه کوي البته مستحبه دا ده چه د ګناهونو يعنې د دغو کارونو له کولو وروسته اودس وکړي۔

لما قال حسن بن عمار الشرنبلالىؒ: و مندوب للنوم على طهارة و اذا استيقظ منه......... و بعد غيبة و كذب و نميمة و كل خطيئة الخ. (نور الايضاح ص۳٤، فصل الوضوء على ثلاثة اقسام)

قال قاضيخانؒ: و مندوب......... و منها الوضوء بعد الغيبة و بعد انشاد الشعر. (فتاوىٰ قاضى خان على هامش الهندية ج۱، ص۳۲، باب الوضوء و الغسل فيه سبعة فصول) و مثله فى الهندية ج۱، ص۹، الفصل الثالث فى المستحبات)

## په ګرمو اوبو سره اودس جائز دى

**سوال:** په ګرمو اوبو سره اودس جائز دى او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** هر هغه اوبو چه پاکې وي اودس پرې مطلقاً جائز دى اګر که ګرمې وي



او که سړې، بيا هم په لمر باندې په ګرمو شويو اوبو باندې اودس کول په طبي لحاظ سره مکروه دي۔

ان عمرؓ: كان يسخن لهٗ ماءٌ فى قمقمة و يغتسل به. آه

ان عمرؓ: قال لا تغسلوا با لماء المشمس فانهٗ يورث البرص. آه (دار قطنى ج۱، ص۳۷/۳۹، باب الماء المسخن)

عن الاسلع بن شريكؓ: ...... فقلتُ اصابتنى جنابةٌ فخشيت البرد على نفسى فامرتُهٗ ان يرحلها وضعتُ احجاراً فاسخنتُ ماءً فاغتسلتُ به. آه و عن عائشةؓ قال نهى رسول اللهﷺ ان يتوضأ با لماء المشمس. (نصب الراية ج۱، ص۱۰۲/۱۰۳، باب الماء الذى يجوز به الطهارة) و مثله فى السعاية ج۱، ص۳۳٦/۳۳۷، باب الكراهية فى الماء المشمس الخ

## د عورت بربنډول د اودسه ماتوونکى نه دى

**سوال:** آيا د فرض (عورت) په بربنډوالي سره اودس ماتيږي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کشف عورت (د عورت بربنډوالى) د لمانځه فاسدوونکى دى ليکن د اودسه ماتوونکى نه دى۔ د دې لپاره د ښځې او سړي د عورت له بربنډيدو سره اودس ئې پرې نه خرابيږي ليکن پرته له ضرورت څخه خپل عورت بربنډول حرام دي۔

لما قال ابراهيم الحلبىؒ: و من الآداب (ان يستر عورته حين فرغ) اى من الاستنجاء و التجفيف لان الكشف كان لضرورة لقوله اَللّٰهُ اَحَقُّ اَنْ يَّسْتَحْيٖ منه. (كبيرى ص۳۱، آداب الوضوء)

قال العلامة عالم بن العلاء الانصارى و من الآداب ان لا يترك عورتهٗ مكشوفة يعنى بعد الاستنجاء. (الفتاوى التاتارخانية ج۱، ص۱۱۲، آداب الوضوء)

## له اودسه څخه وروسته شك او شبهه په اودسه کوم بد اثر نه کوي

**سوال:** که چېرته يوه سړي ته د اودسه او غسل له کولو وروسته د متيازو د وتلو شك ولويږي ليکن په غور سره له کتلو وروسته څرګند شي چه هيڅ شى هم نه دى وتلى او يا ئې ډير واري د باد د وتلو شك وشي نو آيا په دغو دواړو صورتونو کښې اودس متاثر کيږي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کله چه د متيازو د څاڅکي او يا هوا د وتلو پوخ يقين ئې نه وي نو محض په شك سره اودس نه متاثر کيږي او نه پرې د اودسه بيرته راګرځول ضروري دي۔

قال طاهر بن عبد الرشيدؒ: و من شك فى الحدث فهو على وضوئه و لو كان محدثاً فسك فى الطهارة فهو على حدثه. (خلاصة الفتاوىٰ الفصل الثالث فى الوضوء ج۱، ص۱۸)

قال الحصكفىؒ: و لو ايقن با لطهارةو شك با لحدث او با لعكس اخذ با ليقين. (الدر المختار على صدر رد المحتار، نواقض الوضوء ج۱، ص۱۵۰، و قال فى الهندية و مثله فى الفتاوى الهندية ج۱، ص۱۱۳، نواقض الوضوء.

## له اودسه څخه وروسته په لاسونو او پښو باندې د صابون د لګولو حکم

**سوال:** په سړو سيمو کښې د لاسونو او پښو له چاودې کيدو څخه د ځان ساتنې لپاره د اودسه له کولو څخه مخکښې خلك مختلف ډول صابونونه لګوي۔ آيا په دې سره اودس متاثر کيږي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** صابون پخپله پاك شی دی او د نظافت لپاره ئې استعمال جائز دی نو د دې لپاره په نوموړي صورت کښې د صابون لګول او د صابون پاتې کيدل او بيا له هغه سره لمونځ کول صحيح دي۔

قال القدوریؒ: و یجوز الطهارة بماءٍ خالطه شیء طاهر فغیر احد اوصافه کماء المد و الماء الذی اختلط به الزعفران و الصابون...... الخ. (مختصر القدوری ص۹، کتاب الطهارة)

قال ابراهیم الحلبیؒ: و تجوز الطهارة بماءٍ خالطه شیء طاهر فغیر احد اوصافه کماء الد و الماء الذی یختلط به الاشنان و الصابون او الزعفران....... الخ. (کبیری باب ما یجوز به الطهارة)

## په سيګريټو او نسوارو سره اودس ماتيږي او که نه؟

**سوال:** آيا په سيګريټو او نسوارو سره اودس ماتيږي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له نورو ماتوونکو څخه پرته اودس په هر هغه شي باندې هم ماتيږي چه په هغه کښې نشه وي۔ لکه څرنګه چه په سګريټو او نسوارو کښې هغومره نشه نشته چه فقهاء کرامو د اوداسه په ماتولو کښې اعتبار ورکړی وي۔ د دې لپاره په دغو دواړو باندې اودس نه ماتيږي۔ البته د بد بويي د لرې کيدو لپاره د خولې پرې مينځل ضروري دي۔

قال العلامة ابن عابدینؒ: فانهٗ لم یثب اسکاره و لا تفتیره و لا اضراره بل ثبت له منافع....... الخ. (رد المحتار علی در المختار، کتاب الاشربة ج۶، ص۴۵۹)

قال المفتی کفایت اللهؒ: د سګريټ په څکولو او نسوارو په اچولو سره اودس نه ماتيږي۔ (کفايت المفتي ج۲، ص۲۷۲، باب الطهاه، فصل چهارم)

## تر څو پورې چه د احليل (د ذکر له سر) څخه څاڅکی نه وي وتلی تر هغو پورې اودس نه ماتيږي

**سوال:** که چيرته له يو سړي څخه د متيازو يا مذي څاڅکي وخت ناوخته ووځي چه له مخې ئې هغه ته د هر لمانځه لپاره د اوداسه ضرورت پيښيږي۔ ليکن کله کله له يو لمانځه څخه تر بل لمانځه پورې کوم څاڅکی و نه ووځي۔ البته د احليل د ننه څاڅکي موجود وي۔ نو آيا په دې صورت کښې دوباره اودس کول ضروري دي او که مخکښيني اودس ئې کافي دی؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چيرته د عذر څښتن وي نو د هر لمانځه لپاره اودس کول ورته ضروري دي۔ البته د غير معذور د اوداسه د ماتيدو دارومدار په قطعي او يقيني ماتيدلو باندې دی۔ په نوموړي صورت کښې کله چه د متيازو د څاڅکي وتل يقيني وي نو اودس به کوي او که چيرته يقيني نه وي نو دوباره اودس کول ورته ضروري نه دي اګر که د متيازو څاڅکي په احليل کښې موجودې هم وي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: (و ینقضه خروج) کل خارج نجسٍ (منه) ای من المتوضیٔ الحیّ معتاداً اولا من



السبیلین اولا (الی ما یطهر) ثم المراد با لخروج من السبیلین مجرد الظهور.

و قال ابن عابدینؒ: (تحت قوله مجرد الظهور) ای الظهور المجردة عن السیلان فلو نزل البول الی قصبة الذکر لا ینقض لعدم ظهوره. (رد المحتار علی الدر المختار ج۱، ص۱۳۴، ۱۳۵، نواقض الوضوء)

و قال ابن نجیمؒ: (تحت قول النسفیؒ) و ینقضه خروج نجس منه) افاد بقوله خروج نجس ان الناقض خروجه لا عینه. (البحر الرائق ج۱، ص۲۹، نواقض الوضوء) و مثله فی تبیین الحقائق ج۱، ص۷، نواقض الوضوء)

## لــــه بدن څخه د خالصو اوبو په وتلو سره د اوداسه حکم

**سوال:** که چيرته د بدن له کومې برخې څخه خالصې اوبه ووځي چه له وينو او زوو سره ګډې نه وي نو آيا اودس پرې ماتيږي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چيرته دا وتلي اوبو يقيناً خالصې اوبه وي او وينې او زوې بالکل ورسره ګډې نه وي نو د اسې اوبو په وتلو سره اودس نه ماتيږي۔

قال الحسن بن عمارؒ: و عن الحسن ان ماء النفطة لا ینقض. (مراقی الفلاح ص۴۸، فصل فی نواقض الوضوء)

قال ابن نجیمؒ: و عن الحسن ان ماء النفطة لا ینقض. (البحر الرائق ج۱، ص۳۲، بحث الوضوء)

## د وينې په خپريدو سره د اوداسه حکم

**سوال:** که چيرته وينه او زوې د چا له بدن څخه ووځي ليکن د خپريدلو صورت غوره نه کړي نو آيا اودس ئې پرې ماتيږي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کله چه د وينې او زوې د زخم له خولې څخه ووځي او خپرې شي نو په دې سره اودس ماتيږي او که خپرې نه شي نو بيا نه ماتيږي۔

قال الحصکفیؒ: و ینقضه خروج کل خارج نجس منه الی ما یطهر ای یلحقه حکم التطهیر. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۱۳۴/۱۳۵، نواقض الوضوء)

قال ابراهیم الحلبیؒ: اذا خرج و تجاوز مکان خروجه الٰی موضع یلحقه ای یلحق ذٰلك الموضوع حکم التطهیر ای یجب تطهیره فی الجملة. (کبیری، ص۱۳۱، نواقض الوضوء) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۱۰، الفصل الخامس فی نواقض الوضوء.

## د پښو په چاودو کښې د دوايي له لګولو څخه وروسته د اوداسه حکم

**سوال:** د ژمي په موسم کښې په ډيرو سيمو کښې د خلکو پښې چاودې کيږي۔ په دې حالت کښې که چيرته دا چاودې له دوايي څخه ډکې شي او د اوداسه په وخت کښې هغو ته اوبو ورننه ننه ووځي نو آيا اودس ئې صحيح کيږي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چيرته د زخمونو منځ ته اوبو رسول نقصان وي نو په داسې صورت کښې د لاسونو او پښو په پوستکي باندې اوبو بهول کافي دي او د چاودو منځ ته اوبو رسول لازمي نه دي۔

قال ابن عابدینؒ: تحت قول الحصکفیؒ (فی اعضائه شقاق غسله ان قدر و الا مسحه الخ) و لو کان فی رجه فجعل

فیه الدواء یکفیه امرار الماء فوقه و لا یکفیه المسح. (رد المحتار علی الدر المختار ج۱، ص۱۰۲، فرائض الوضوء)

قال ابراهیم الحلبیؒ: اذا کان برجه شقاق فجعل فیه السُحم او المرهم ان کان یضره ایصال الماء لا یجوز غسله و وضوء و ان کان لا یضره یجوز اذا مر الماء علی ظاهره ذٰلك. (کبیری ص۵۷، الطهارة الکبرٰی، فرائض الغسل) و مثله فی خلاصة الفتاوٰی ج۱، ص۲۳.

## د ستني په ذریعې سره د وینې ایستل د اودس ماتوونکی دی

**سوال:** که چېرته یو څوك د ستنې په ذریعې سره له بدن څخه وینه اوباسي نو په دې سبب سره د بدن په یوې برخې باندې هم وینه نه خپرېږي کوم چه د "الی موضع یلحقه حکم التطهیر" د حکم د نه موجودیت له مخې په ظاهره خو دا د اودس ماتوونکی نه ښکاریږي. نو آیا دا خبره صحیح ده او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په نوموړي صورت کښې وینه د بدن په یوې برخې کښې د نه لګیدو تر څنګ د اوداسه ماتوونکې ده ځکه چه که چېرته دا وینه ستنې ته نه تللی نو خا مخا به په جسم باندې بهیدلې وای. د ستن وجود یو باندنی مانع دی چه د اوداسه د ماتیدلو په حکم باندې هیڅ اثر نه کوي.

قال ابن عابدینؒ: فالاحسن ما فی النهر عن بعض المتاخرین من ان المراد السیلان و لو بالقوّة ای فان دم الفصد و نحوه سائل الی ما یلحقه حکم التطهیر حکماً تامل. (رد المحتار علی الدر المختار ج۱، ص۱۳۴، نواقض الوضوء)

قال فی الهندیة: القراد اذا مص عضو انسان فامتلأ دماً ان کان صغیراً لا ینقض وضوئه کما لو مصت الذباب او البعوض و ان کان کبیراً ینقض و کذا العلقة اذا مصت عضو انسان حتٰی امتلأت من دمه انتقض وضوئه کذا فی محیط السرخسی. (الهندیة ج۱، ص۱۱، نواقض الوضوء) و مثله فی خلاصة الفتاوٰی ج۱، ص۱۷، الفصل الثالث نواقض الوضوء.

## د عذر د خاوند د اوداسه او کالیو حکم

**سوال:** د عذر د څښتن اودس خو په ځای نه پاتې کیږي نو د داسې سړي د اوداسه څه حکم دی؟ همدارنګه ډیر وارې د همدې عذر له وجهې ئې د کالیو پاك ساتل ممکن نه وي نو د هغه د کالیو د پاکوالي حکم څه دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له یوه سړي څخه د وینو د وتلو او یا د بادو د وتلو مریضي داسې صورت غوره کړي چه د لمانځه د یوه وخت غوندې وخت هم په نوموړي سړي د دې بیمارۍ له وجهې تیر نه شي نو داسې سړی شرعي معذور ګڼل کیږي او په معذور سړي باندې لازم دي چه د هر لمانځه لپاره به نوی اودس کوي او په دې اوداسه سره په همدې وخت کښې د ننه چه څومره عبادات کوي کولای ئې شي. البته د لمانځه د وخت په تیریدو سره ئې اودس پخپله ماتیږي او د بل وخت لپاره به دوباره بل اودس کوي.

سربیره پر دې که چېرته د جامو پاکوالی ممکن وي یعنې د لمانځه د کولو په وخت



کښې ئې کپړې د مینځلو له وجهې پاك پاتې کیدلی شي نو بیا د لمانځه په شروع کښې د جامو پاك ساتل ئې ضروري دي. او که چېرته دا ممکن نه وي نو بیا د جامو پاکوالی ئې له همدغه نجاست څخه ئې د جامې پاکوالی او مینځل ضروري نه دي.

قال الحصکفیؒ: و صاحبِ عذر من به سلسل بول او استطلاق بطن او انفلات ریح او استحاضة ان استوعب عذره تمام وقت صلٰوة مفروضة بان لا یجد فی جمیع وقتها زمناً یتوضأ و یصلّی فیه خالیاً عن الحدث (الی ان) و حکمه الوضوء لا غسل ثوبه و نحوه لکل فرض. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۳۰۵، مطلب فی احکام المعذور)

قال طاهر بن عبد الرشیدؒ: و یتوضأ صاحب الجرح السائل لوقت کل صلٰوة و یصلّی بذٰلك ما شاء من الفرائض و النوافل ما دام فی الوقت فان خرج الوقت ینتقض طهارته (و بعد اسطر) فان اصاب ثوبه من ذٰلك الدم فعلیه ان یغسل ان کان مفیداً اما اذا لم یکن مفیداً بان کان مصیبة مرةً اخرٰی. ثانیاً و ثالثاً حینئذ لا یفترض علیه غسله. (خلاصة الفتاوٰی ج۱، ص۱۶، الفصل الثالث)

## له دُبر څخه د چینجي د وتلو په صورت کښې د اوداسه حکم

**سوال:** که چېرته د کوم سړي له دُبر څخه د کومې بیمارۍ له وجهې یا پرته له بیمارۍ څخه چینجی ووځي نو آیا اودس ئې پرې ماتیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له دُبر څخه د چینجي وتل د اوداسه ماتوونکی دی. او په دې کښې معذور او غیر معذور دواړه برابر دي.

قال الحصکفیؒ: و خروج غیر نجس مثل ریح او دودة او حصاة من دُبرٍ لا. (ص۱۳۵) و قال ابن عابدینؒ: (قوله من دُبر) و کذا من ذَکَر او فرج فی الدّودة و الحصاة بالاجماع. (رد المحتار علی الدر المختار ج۱، ص۱۳۶، مطلب نواقض الوضوء)

# باب الغسل

## (د غسل احکام او مسئلې)

## په غسل کښې د غرغرې حکم

**سوال:** که چېرته د غسل د کولو په وخت کښې غرغره له چا څخه پاتې شي نو آيا غسل ئې صحيح کيږي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د جنابت په غسل کښې مضمضه د غسل له فرائضو څخه ده او دا فرض د خولې په پرې مينځلو باندې هم ادا کيږي آن تر دې پورې چه د اوبو په چنبلو سره هم دا فرض ادا کيږي۔ ليکن که چېرته مطلقاً د خولې مينځل له چا پاتې شي نو غسل ئې نيمګړی پاتې کيږي۔ په داسې حال کښې چه په مينځلو کښې د مبالغې (ښه کوشش) د نه کولو په صورت کښې غسل صحيح ګڼل کيږي۔

قال العلامة الحصكفىؒ: و فرض الغسل غسل كل فمه و يكفى الشرب عباً لان المج ليس بشرط فى الاصح. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۱، ص۱۵۱، ابحاث الغسل)

قال ابراهيم الحلبىؒ: و شرب الماء يقوم مقام المضمضة اذا كان لا على وجه السنة اذا بلغ الماء الفم كله و الا فلا. (كبيرى ص ۵۰، فرائض الغسل)

## د غسل د کولو په وخت کښې د پوزې د پريمينځلو حکم

**سوال:** د غسل په وخت په پوزې کښې د اوبو اچولو لپاره کومه طريقه بهتره ده؟ آيا اوبو پوزې ته اچول او د ګوتې وهل پکښې کافي دي او که اوبو به د ننه خوا ته ښکوي او د پوزې تر اقصیٰ پورې د اوبو رسول ضروري دي په داسې حال کښې چه د ښکولو او ځونړ کولو په صورت کښې د اوبو د پوزې تر اقصیٰ پورې د اوبو رسول تکليف وي؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د غسل په دوران کښې د پوزې پريمينځل فرض دي او د پزې حدود د پوزې تر نرمې پورې دي۔ په داسې صورت کښې خپل سهولت او آسانتياوو ته په نظر کولو سره چه کومه مناسبه طريقه وي هغه طريقه دې اختيار کړي۔

قال العلامة الحصكفىؒ: و فرض الغسل غسل كل فمه و يكفى الشرب عبا لان المج ليس بشرط فى الاصح و انفه حتى ما تحت الدرن. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۱، ص۱۵۱، ابحاث الغسل)

قال طاهر بن عبد الرشيدؒ: و انما يجوز اذا تمضمض و استنشق بناء على ان المضمضة و الاستنشاق فرض فى الغسل عندنا. (خلاصة الفتاوىٰ ج۱، ص۱۴، الفصل الثانى فى الغسل) و مثله فى الطحطاوى حاشية مراقى الفلاح ص ۸۱، فصل فى فرائض الغسل.



## له مصنوعي غاښونو سره د غسل حکم

**سوال:** د غاښونو له لويدلو څخه وروسته چه چا مصنوعي غاښونه لګولي وي آيا د غسل په وخت کښې به ئې باسي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** لکه څرنګه چه هر وخت د مصنوعي غاښونو ايستل د تکليف او حرج موجب نه دی نو د دې لپاره د غسل په وخت کښې ئې ايستل ضروري دي۔ له دې وجهې د آسانتياوو تر څنګ که چېرته چا و نه ايستل او د اوبو رسول هم ورته ممکن نه وو نو بيا ئې غسل نه ادا کيږي۔ او که چېرته ئې غاښونه په مستقله توګه لګولي وي او ايستلو کښې ئې تکليف وي نو بيا ئې له ايستلو برته هم غسل صحيح دی۔

قال العلامة الحصكفىؒ: بخلاف نحو عجين. و لا يمنع ما على ظفر صباغ و لا طعام بين اسنانه او فى سنه المجوف به يفتى و قيل ان صلباً منع و هو الاصح

قال ابن عابدينؒ: (قوله بخلاف نحو عجين) اى كعلك و شمع و قشر سمك و خبز ممضوغ متلبد جوهرة......... نعم ذكر الخلاف فى شرح المُنية فى العجين و استظهر المنع لان فيه لزوجة و صلابة تمنع نفوذ الماء. (قوله و هو الاصح) صرح به فى شرح المنية و قال لامتناع نفوذ الماء مع عدم الضرورة و الحرج آه. (رد المحتار على الدر المختار ج۱، ص۱۵۴، ابحاث الغسل)

قال العلامة ابراهيم الحلبىؒ: قال بعضهم هو ان كان صلباً ممضوغاً متاكداً لا يجوز غسله قل او كثر و هو الاصح لامتناع نفوذ الماء مع عدم الضرورة و الحرج. (كبيرى ص۴۹، الطهارة الكبرىٰ، فرائض الغسل) و مثله فى السعاية ج۱، ص۲۸۱، فرض الغسل.

## په غاښونو باندې د سرو زرو د پوښ په لګولو باندې د غسل حکم

**سوال:** ډير واري خلک د غاښونو د بيمارۍ له وجهې خپلو غاښونو ته د سرو زرو پوښ ور اغوندي چه غاښ په مکمله توګه پکښې پټيږي چه له وجهې ئې د مضمضې يعني خولې پريمينځلو په وخت کښې اوبو نه ور رسيږي۔ آيا په داسې صورت کښې د جنابت غسل روا کيږي او که نه؟ او سربيره پر دې که چېرته دا پوښ د زينت او ښايست لپاره وي نو په حکم کښې ئې ضرورت او عدم ضرورت سره برابر دي او که څنګه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په غاښ باندې د ضرورت په وخت کښې د سرو زرو پوښ ور اغوستل جائز دي او د غسل په وخت کښې د پوښ په لرې کولو کښې حرج دی۔ بلکه ډير واري د خولې د زخمي کيدو خطره هم پکښې وي۔ له دې وجهې د دې مجبورۍ له مخې د غسل په وخت کښې اصل غاښ ته د اوبو نه رسيدل معاف دي او له پوښ سره ئې هم غسل ادا کيږي۔

قال العلامة الحصكفىؒ: و لا يمنع الطهارة و نيم اى خرء ذباب و برغوث لم يصل الماء تحته و حناء و لو جرمه به يفتى. قال ابن عابدينؒ (قوله به يفتى صرح به فى المنية عن الذخيرة فى مسئلة الحناء و الطين و الدرن معللاً با لضرورة (و بعد اسطر) فا لاظهر التعليل با لضرورة. (رد المحتار على الدر المختار ج۱، ص۱۵۴، ابحاث الغسل)

قال ابراهیم الحلبیؒ: ان کان بین اسنانه طعام و لم یصل الماء تحته فی الغسل من الجنابة جاز لان الماء شیء لطیف یصل تحته غالباً قال صاحب الخلاصة و به یفتٰی (و بعد اسطر) و الطین و الدرن اذا بقیا علی البدن یجزئ وضوئهم للضرورة. (کبیری ص۴۹، باب الغسل)

او له ضرورت پرته د سروزرو د پوښ استعمال جائز نه دی او که چیرته چا لګولی وي نو د غسل په وخت کښې که چیرته د پوښ په لرې کولو سره له غاښ څخه د محرومیدو خطره وي نو د دې حرج له وجهې ئې غسل جائز دی لیکن که په لرې کولو کښې ئې حرج نه وي نو بیا به د غسل په وخت کښې د ابې ضرورته پوښ به لرې کوي.

## د غاښ په ډکولو سره په غسل باندې کوم فـــــرق نه پریوځي

**سوال:** که چیرته د چا غاښونه د مریضۍ له وجهې خالي شوي وي یعنې په منځ کښې ئې سوري شوي وي نو هغه ته د خپلو غاښونو د ډکولو ضرورت پیدا کیږي. نو آیا د غاښ د ډکولو له وجهې په غسل باندې کوم اثر پریوځي او که نه؟ ځکه چه د ډکولو په صورت کښې د غاښونو سوریو ته اوبو نه رسیږي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د غاښونو د خالي کیدلو او سوریو له وجهې په عمومي توګه په خوراك او څښاك کښې انسان ته تکلیف وي نو د دې لپاره په داسې وخت کښې له پاکې مصالحې څخه د غاښونو ډکول یو جائز علاج دی او د غاښونو له ډکولو وروسته د هر غسل لپاره ئې خالي کول د حرج او تکلیف سبب دی. نو له دې وجهې ئې خالي کول ضروري نه دي او په غسل کښې ئې هم کوم فرق نه راځي.

قال العلامة الحصکفیؒ: و لا یمنع الطهارة و نیم ای خرء ذباب و برغوث لم یصل الماء تحته و حناء و لو جرمه به یفتٰی. قال ابن عابدینؒ: (قوله و به یفتٰی) صرح به المنیة عن الذخیرة فی مسئلة الحناء و الطین و الدرن معللاً با لضرورة (و بعد اسطر) فا لاظهر التعلیل با لضرورة. (رد المحتار علی الدر المختار ج۱، ص۱۵۴، ابحاث الغسل)

قال ابراهیم الحلبیؒ: و الطین و الدرن اذا بقیا علی البدن یجزئ وضوئهم للضرورة. (کبیری ص۴۹، باب الغسل) و مثله فی مراقی الفلاح علی صدر الطحطاوی ص۵۰، فصل فی تمام احکام الوضوء.

## د جنابت په غسل کښې د ښځې لپاره د کوڅیو خلاصول ضروري نه دي

**سوال:** آیا ښځې ته د غسل په وخت کښې د کوڅیو خلاصول ضروري دي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چیرته ښځه د خپل سر ویښتان کوڅۍ کړي وي نو بیا د ویښتانو بیخونو ته د اوبو رسول ضروري دي او د کوڅیو خلاصول ورته ضروري نه دي.

البته که چیرته ئې ویښتان خلاص وي یعنې کوڅۍ کړې ئې نه وي نو بیا د ټولو ویښتانو پریمنځل ضروري دي. که چیرته څه ویښتان وچ پکښې پاتې شي نو غسل ئې نه کیږي.

قال العلامة الحصکفیؒ: و کفٰی بل اصل ضفیرتها ای شعر المرأة المضفور للحرج اما المنقوض فیفرض غسل کله اتفاقاً و



لو لم یبتل اصلها یجب نقضها مطلقاً هو الصحیح. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۱۵۳، ابحاث الغسل)

قال ابن نجیمؒ: (قوله و لا تنقض ضفیرة ان بل اصلها) ای و لا یجب علی المرأة ان تنقض ضفیرتها ان بلت فی الاغتسال اصل شعرها (و بعد اسطر) و یجب علیها الایصال الی اثناء شعرها اذا کان منقوضاً لعدم الحرج. (البحر الرائق ج۱، ص۵۲، کتاب الطهارة) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۱۳، الباب الثانی فی الغسل.

## د جنابت په حالت کښې د خوراك او څښاك حکم

**سوال:** د جنابت په حالت کښې د خوړلو، څښلو او ګرځیدلو څه حکم دی؟ او ډیر وارې د جنابت په حالت کښې له چا سره د خبرې کولو او د سلام د ځواب ورکولو ضرورت هم وړاندې کیږي نو په داسې حالت کښې سړی باید څه وکړي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د جنابت په حالت کښې خوراك، څښاك ګرځیدل، سلام اچول، او د سلام ځواب ورکول ټول جائز دي. البته د خوراك او څښاك په وخت کښې به خوله او لاسونه پریمینځي او له خولې پریمینځلو پرته خوراك به ورته مکروه وي.

قال العلامة الحصکفیؒ: لا قرأة قنوت (ای لا تکره) و لا اکله و شربه بعد غسل ید و فم و لا معاودة اهله قبل اغتساله. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج ج۱، ص۱۲۹، ابحاث الغسل)

قال سدید الدین الکاشغریؒ: و اذا اراد الجنب الاکل و الشرب ینبغی له ان یغسل یده و فیه ثم یاکل و یشرب. (منیة المصلی ص۲۹، بحث الطهارة، الطهارة الکبرٰی) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۱۶، الفصل الثالث فی المعانی الموجبة للغسل)

## د جنابت په حـــــالت کښې د نوکانو د پرې کولو او ویښتـــــانو د کمولو یا خـــــریلو حکم

**سوال:** د جنابت په حالت کښې د نوکانو پرې کول او د ویښتانو د خریلو څه حکم دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د جنابت په حالت کښې ټول جسم په ظاهري توګه د نجاست ښکار شوی وي نو د دې لپاره د ټول وجود پریمینځل فرض دي. په داسې حالت کښې د ویښتانو او نوکانو پرې کول مکروه دي. فقهاء کرامو مطلقاً د کراهیت ذکر کړی دی لیکن د قرائنو له اعتباره دا کراهیت تنزیهي کراهیت څرګندیږي.

و فی الهندیة: حلق الشعر حالة الجنابة مکروه و کذا قص الاظافیر. کذا فی الغرائب. (الهندیة ج۵، ص۳۵۸، الباب التاسع عشر فی الختان و الخصاء و قلم الاظفار و قص الشارب ج۵، ص۳۵۸)

قال الشیخ العلامة اشرف علی التهانویؒ: "در مطالب المؤمنین می آرد و ستردن و تراشیدن موی و گرفتن ناخنها د رحالت جناب کراهت است". (امداد الفتاوٰی ج۱، ص۲۸، فصل فی الغسل)

## د غســـــل په وخت کښې د خبرې کولو حکم

**سوال:** د غسل په وخت کښې د خبرو د کولو حکم څه دی؟ او په دې دوران کښې د مسنونو دعـــــاګانو د لوستلو شرعي حیثیت څـــــه دی؟ آیا د بربنډ والي په حالت کښې

خبرې کول جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د غسل په وخت کښې غلې اوسیدل بهتر دي۔ د بربنډ والي په حالت کښې فقهاء کرامو خبرې کول مکروه بللي دي او همد ارنګه د مسنونو دعاګانو د لوستلو وخت هم دا نه دی ځکه چه په ناپاکه ځای کښې د الله تعالی د نامه اخیستل بې ادبي ده۔

قال ابن عابدینؒ: و یستحب ان لا یتکلم بکلام مطلقۃ اما کلام الناس فلکراهته حال الکشف و اما الدعا فلانه فی مصب المستعمل و محل الاقذار و الاوحال آه. (رد المحتار علی الدر المختار ج ۱، ص ۱۵۶، مطلب سنن الغسل)

قال الحسن بن عمارؒ: و یستحب ان لا یتکلم بکلام معه و لو دعاء لانه فی مصب الاقذار و یکره مع کشف العورة (و بعد اسطر) و یزاد فیه کراهة الدعاء. (مراقی الفلاح ص ۵۷، آداب الاغتسال) و مثله فی الهندیة الفصل الثانی سُنن الغسل ج ۱، ص ۱۴.

## د غسل په وخت کښې د بربنډ والي په حالت کښې د اودسه حکم

**سوال:** د بربنډ والي په حالت کښې د اودسه حکم څه دی؟ په عوامو کښې دا خبره مشهوره ده چه د بربنډ والي په حالت کښې اودس نه کیږي آیا دا خبره صحیح ده؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د عورت بربنډ والی دا ودس له ماتوونکو څخه نه دی۔ دا خبره غلطه مشهوره شوې ده چه د بربنډ والي په حالت کښې اودس کول جائز نه دي۔ په غسل خانه کښې د جامو او کالیو ایستل او اودس کول جائز دي۔ البته د حیا تقاضا دا ده چه په خلوت کښې هم د ستر رعایت وکړي۔

لما قال العلامة ملا علی القاریؒ: حاصل حکم من اغتسل عاریاً انه ان کان بمحل خال لا یراه احد یحرم علیه نظر عورته حل له ذٰلک لکن الافضل الستستر حیاء من الله تعالی. (مرقاة شرح مشکوٰة ج ۲، ص ۳۹، باب الغسل، الفصل الثانی)

عن اُمّ هانیؓ بنت ابی طالب: تقول ذهبتُ الی رسول اللهﷺ عام الفتح فوجدتهٗ یغتسل و فاطمة تستره. (الجامع الصحیح للبخاریؒ ج ۱، ص ۴۲، باب من اغتسل عریاناً وحده فی الخلوة) و مثله عن میمونةؓ فی الصحیح المسلم ج ۱، ص ۱۵۴، باب تستر المغتسل بثوب و نحوه.

## غسل په ولاړې باندې بهتر دی او که په ناستې؟

**سوال:** د غسل په وخت کښې کوم یو کیفیت بهتر دی؟ آیا په ناستې باندې سړی غسل وکړي ښه دی او که په ولاړې باندې؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د غسل په وخت کښې د کوم خاص کیفیت پابندي ضروري نه ده۔ حالت او ځای ته په نظر کولو سره د اسې کیفیت اختیار کړي چه انساني بدن ته پکښې پرده وي۔ عموماً په ناستې سره په غسل کولو کښې پرده زیاته وي نو د دې لپاره په ناستې باندې غسل کول بهتر دي۔ د رسول اللهﷺ د غسل په باره کښې له روایت څخه څرګندیږي چه ده مبارکﷺ په ناستې باندې غسل کړی دی۔

لما اخرجه الامام ابو عبد الله محمد بن اسمٰعیل البخاریؒ: عن اُمّ هانیؓ تقول ذهبتُ الی رسول اللهﷺ عام الفتح فوجدته



یغتسل و فاطمة تستره فقال من هٰذه فقلتُ انا اُمّ هانیؓ. (الصحیح البخاری ج ۱، ص ۴۲، باب التستر فی الغسل عند الناس)

و اخرجه الامام فی صحیحه عن معاذة قالت قالت عائشةؓ کنتُ اغتسل انا و رسول اللهﷺ من اناء واحد بینی و بینه فیبادرنی حتی اقول دع لی دع لی قالت هما جنبان. (مسلم ج ۱، ص ۱۴۸، باب غسل الرجل و المرأة من اناء واحد)

## د غسل په وخت کښې په سر باندې مسح کافي نه ده

**سوال:** آیا په غسل کښې د ښځې لپاره هم د ټول بدن پریمینځل فرض دي؟ ځینې ښځې په بدن باندې اوبه تویوي او په سر باندې یوازې مسح کافي بولي۔ نو آیا په دې صورت کښې ئې غسل کیږي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د غسل په احکامو کښې نر او ښځې ټول برابر دي۔ لکه څرنګه چه د نر لپاره د ټول بدن پریمینځل فرض دي همد ارنګه د ښځې لپاره هم د ټول بدن پریمینځل فرض دي۔ که چېرته د غسل په وخت کښې په ویښتانو باندې مسح وکړي او پرې ئې نه مینځي نو غسل ئې نه ادا کیږي۔

قال الحصکفیؒ: و فرض الغسل غسل کل فمه و انفه حتی ما تحت الدرن و باقی بدنه لکن المغرب و غیره البدن من المنکب الی الألیة و حینئذٍ فالرأس و العنق و الید و الرجل خارجة لغة داخلة تبعاً شرعاً. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج ۱، ص ۱۵۲، ابحاث الغسل)

و فی الهندیة: الفصل الاول فی فرائضه و هی ثلاثة المضمضة و الاستنشاق و غسل جمیع البدن علی ما فی المتون. (الهندیة ج ۱، ص ۱۳، الباب الثانی فی الغسل) و مثله فی البحر الرائق ج ۱، ص ۴۵، کتاب الطهارة.

## د غسل لپاره د عورت د بربنډولو حکم

**سوال:** په ځینو سیمو کښې خلک په لویو لویو حوضونو او تالابونو کښې په اجتماعي توګه غسلونه کوي۔ ښکاره خبره ده چه د مخصوص اندام په ښکارولو سره خپل ضمیر انسان ملامتوي لیکن که چېرته یو سړی خپل مخصوص اندام په څه شي باندې پټ کړي او د اسې غسل وکړي چه تر نامه څخه لاندې برخه او له زنګنونو څخه پورته برخه ئې ټول خلک وینې۔ نو د شریعت په رڼا کښې د دې ډول غسل څه حکم دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** څرګنده ده چه که چېرته په د اسې ځای کښې څوک غسل وکړي چه یوازې وي او بل څوک ورسره نه وي نو په د اسې ځای کښې به هم له ضرورت څخه پرته د عورت له بربنډولو څخه احتراز کوي۔ د ضرورت تر اندازې پورې د عورت د بربنډولو اجازت شته لیکن په کوم ځای کښې چه خلک موجود وي نو په د اسې ځای کښې د سړي لپاره له زنګنونو څخه تر نامه پورې د عورت پټول فرض دي۔ او بربنډول ئې حرام دي۔ په د اسې ځای کښې دا ضروري ده چه پرده به شوې وي او غسل به کوي۔ البته که په د اسې حالت کښې غسل وکړي کوم چه په سوال کښې ئې یادونه شوې ده نو د حرامو د ارتکاب تر څنګ ئې د غسل د فرائضو په ادا کولو سره غسل ادا کیږي۔

قال ابراهیم الحلبیؒ: (و ان یغتسل فی موضع لا یراه احد) لاحتمال بدوّ العورة حال الاغتسال او اللبس و الحدیث یعلی بن اُمیة ان النبیﷺ قال ان الله حیّ ستیر یحب الحیاء و التستر فاذا اغتسل احدکم فلیستتر رواه ابو داؤد. (کبیری ص ۵۱، فرائض الغسل)

قال ابن عابدینؒ: قال فی شرح المُنية و هو غیر مسلم لان ترك المنهی مقدم علی فعل المامور. و للغسل خلف و هو التیمم فلا یجوز کشف العورة لاجله عن من لا یجوز نظره الیها. (رد المحتار علی الدر المختار ج۱، ص۱۵۶، ابحاث الغسل)

## د عورت د بربنډولو په صورت کښې د تیمم رخصت

**سوال:** که چېرته یوه سړي ته په داسې ځای کښې د غسل ضرورت پیښ شي چه د غسل کولو لپاره د پردې ځای نه وي. او که غسل کوي نو د عورت د بربنډیدو ډېر امکان وي. آیا په داسې صورت کښې د غسل په ځای د تیمم کولو رخصت شته او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کله چه د نورو خلکو په وړاندې د عورت له بربنډیدلو پرته غسل ممکن نه وي نو د داسې سړي لپاره تیمم کول جائز دي یعنې د عورت له بربنډولو څخه د ځان ساتنې لپاره دې په تیمم اکتفاء وکړي او کله چه موقع ورته پیدا شي نو بیا دې غسل وکړي.

قال ابراهیم الحلبیؒ: و للغسل خلف وهو التیمّم و لا یجوز کشف العورة عند من لا یجوز نظره الیها لاجله. (کبیری ص ۵۱، فرائض الغسل)

قال ابن عابدینؒ: و لا یخفٰی ان تاخیر الغسل لا یقتضی عدم التَیمّم فان المبیح له و هو العجز عن الماء قد وجدنا فهم. (رد المحتار علی الدر المختار ج۱، ص۱۵۵، ابحاث الغسل)

## د شهوت د موجودوالي تر ختمېدو وروسته د مني په بندولو سره د غسل حکم

**سوال:** که چېرته چا خپل د ذکر سر کلك و نیو او مني ئې پرې نه ښوده چه را ووځي. لیکن کله ئې چه شهوت ختم شو نو بیا ئې پرېښوده آیا په داسې صورت کښې په نوموړي باندې غسل واجبېږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د طرفینؒ (امام ابو حنیفه او امام محمد رحمهما الله) په نزد په دې صورت کښې غسل پرې واجبېږي لیکن د امام ابو یوسف رحمه الله په نزد د مني د خروج په وخت کښې د شهوت شتون ضروري دی. په نوموړي صورت کښې د مني د خروج په وخت کښې د شهوت د نشت والي له وجهې د امام ابو یوسف په نزد غسل واجب نه دی لیکن فتوٰی د طرفینؒ په قول ده.

البته که چېرته یو ځوك چېرته میلمه وي او د احتلام په صورت کښې د کوربه له خوا څخه د شك د پیدا کیدو امکان وي نو بیا د احتلام په وخت کښې د دې طریقې په اختیارولو سره د امام ابي یوسفؒ په قول باندې عمل کول جائز دي لیکن فتوٰی پرې نه شي ورکول کیدلی.

قال العلامة الحصکفیؒ: و شرطه ابو یوسفؒ و بقوله یفتٰی فی ضیفٍ خاف رِیبةً او استحیٰ کما فی المستصفی و فی القهستانی و التاتارخانیة معزیاً للنوازل و بقول ابی یوسفؒ ناخذ لانهٗ ایسر علی المسلمین قلت و لا سیما فی الشتاء و السفر. و قال ابن عابدینؒ قوله و شرطه ابو یوسفؒ ای شرط الدفق، و اثره الخلاف یظهر فیما لو احتلم او نظر بشهوة فامسك ذکره حتٰی سکنت شهوته ثم ارسله فانزل وجب عندهما لا عنده. (و بعد اسطر) (قوله قلت) ظاهره المیل الٰی اختیار ما فی النوازل، و لکن اکر الکتب علی خلافه حتی البحر و النهر و لا سیما قد ذکروا ان قوله قیاس و قولهما استحسان و انه الاحوط



فینبغی الافتاء بقوله فی مواضع الضرورة. فقط. (رد المحتار علی الدر المختار ج۱، ص۱۶۰، ابحاث الغسل)

قال ابن نجیمؒ: ثم اتفق اصحاب المذهب انه لا یجب الغسل اذا انفصل عن مقره من الصلب بشهوة الا اذا خرج علی رأس الذکر و انما الخلاف فی انه هل یشترط مقارنة الشهوة الخروج فعند ابی یوسفؒ نعم و عندهما لا و قد اشار الی اختیار قولهما بقوله عند انفصاله ای فرض الغسل عند خروج منی موصوف با لدفق و الشهوة عند الانفصال عن محله عندهما. (البحر الرائق ج۱، ص۵۵، مبحث الغسل)

## د غسل په وخت کښې چه کوم ځای ته د اوبو رسول مشکل وي نو بیا به سړی څه کوي؟

**سوال:** د ختنې (سنتی) په وخت کښې د حشفې (د ذکر سر) ګیر چاپیره کله واړې پوستکی پاتې کیږي چه له وجهې ئې د غسل په وخت کښې حشفې ته اوبو رسول مشکل وي او پرته له تکلیف او سخت کوشش څخه اوبو نه ور داخلیږي. نو آیا په داسې صورت کښې به سړی څه کوي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کوم ځای ته چه د اوبو داخلول مشکل وي نو په هغه ځای باندې د غوړونو د سوریو غوندې په ظاهر پوستکي باندې له اوبو بهولو سره غسل صحیح کیږي. د داسې تدبیرونو د غوره کولو ضرورت نشته چه د حرج او تکلیف موجب وي.

قال العلامة الحصکفیؒ: و لو کان خاتمه ضیّقاً نزعه او حرکه وجوباً کقرط و لو لم یکن بثقب اذنه قرط قد دخل الماء فیه ای الثقب عند مروره علٰی اذنه اجزاء کسُرّة و اذن دخلهما الماء (و الا) یدخل ادخله و لو باصبعه و لا یتکلّف بخشب و نحوه و المعتبر غلبة ظنه با لوصول. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۱۵۵، ابحاث الغسل)

قال ابراهیم الحلبیؒ: امرأة اغتسلت هل تتکلّف فی ایصال الماء الٰی ثقب القرط ام لا قال ای محمد تتکلف فیه ای فی ایصال الماء الٰی ثقب القرط کما تتکلف فی تحریك الخاتم ان کان ضیقاً و المعتبر فیه غلبة الظن با لوصول (و بعد اسطر) و لا تتکلف لغیر الامرار من ادخال عود و نحوه فان الحرج مدفوع. (کبیری ص۴۸، فرائض الغسل) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۱۴، فی فرائض الغسل.

## له غسل څخه وروسته د دوباره اودس کولو حکم

**سوال:** آیا له غسل څخه وروسته دوباره اودس کول ضروري دي او که د غسل په ضمن کښې په شوي اودسه باندې اکتفاء صحیح ده؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** بهتره دا ده چه له غسل څخه مخکښې اودس وشي. البته که چېرته ئې له غسل څخه مخکښې اودس نه وي کړی نو بیا د غسل په ضمن کښې په اودسه سره اکتفاء صحیح ده. په داسې حالت کښې له غسل څخه وروسته دوباره اودس ضروري نه دی. البته که چېرته له غسل څخه وروسته په بلې مرحلې کښې اودس وکړي نو جائز دی.

قال ابن نجیمؒ: و اتفق العلماء علی عدم وجوب الوضوء فی الغسل الا داؤد الظاهری فقال با لوجوب فی غسل الجنابة و اذ توضأ اولاً لا یأتی بهٖ ثانیاً بعد الغسل فقد اتفق العلماء علٰی انه لا یستحب وضوء ان للغسل اما اذا توضأ بعد الغسل و اختلف

المجلس علٰی مذهبنا او فصل بینهما بصلٰوة کما هو مذهب الشافعی فیستحب. (البحر الرائق ج۱، ص ۵۰، سُنن الغسل)

قال العلامة الحصکفیؒ: لو توضأ اولاً لا یأتی بهٖ ثانیاً لانه لا یستحب وضوء ان للغسل اتفاقاً اما لو توضأ بعد الغسل و اختلف المجلس علٰی مذهبنا او فصل بینهما بصلٰوة کقول الشافعیة فیستحبّ. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۱۵۸، سُنن الغسل)

## له خوب څخه د پاڅیدلو نه وروسته یو اځې په لمدوالي باندې د غسل حکم

**سوال:** که چېرته یو سړی سهار له خوب څخه د پاڅیدو په وخت کښې پرته له شهوت، دفق یعنې توپ څخه لمدوالی محسوس کړي نو آیا غسل پرې واجبیږي او که نه؟ په د اسې حال کښې چه احتلام هم ورپه زړه نه وي او نه ئې د لمدوالي په باره کښې د ا یقین وي چه د ا مني ده؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په خوب کښې د احتلام د نه یادیدو تر څنګ یو اځې د لمدوالي د محسوسولو په صورت کښې احتیاطاً غسل پرې واجب دی۔ البته که چېرته ئې د ا یقین وي چه د ا مني نه بلکه مذي ده نو بیا غسل پرې واجب نه دی۔

قال ابراهیم الحلبیؒ: و اما اذا لم یتذکر الاحتلام و تیقّن انهٗ منی او شک هل هو منی او مذی فکذٰلک یجب علیه الغسل فی هاتین الحالتین ایضاً اجماعاً للاحتیاط و ان تیقّن انهٗ مذی فلا غسل علیه. (کبیری ص ۴۲، اما الطهارة الکبرٰی نهی الاغتسال)

قال طاهر بن عبد الرشید البخاریؒ: و الثالث اذ رأی البلل علی فراشه و لم یتذکر الاحتلام عندهما یجب علیه الغسل و عند ابی یوسفؒ لا غسل علیه. (خلاصة الفتاوٰی ج۱، ص۱۳، الفصل الثانی فی الغسل) و مثله فی الهندیة ج۱، ص ۱۵، الفصل الثالث فی المعانی الموجبة.

## د احتلام د هیریدو په صورت کښې د اداشوي لمونځونو حکم

**سوال:** له یوه چا څخه احتلام هیر شوی وو او له څو ورځو وروسته ور په زړه شو چه په فلاني ورځ خو زه شیطان خطا کړی وم۔ نو اوس به ئې د څو ورځو د اداشوي لمونځونو حکم څه وي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته څو ورځې وروسته احتلام ور په زړه شي چه فلانی ورځ زه شیطان خطا کړی وم نو له هغې ورځې څخه دې د لمونځونو قضایي شروع کړي۔ او که چېرته ئې د ورځې د تعین په اړه علم نه وي نو له آخري خوب څخه به جنوب ګڼل کیږي او له آخري خوب څخه وروسته ئې چه څومره لمونځونه ادا کړي وي د هغو قضایي به راګرځوي۔

لما قال الشیخ عبد الحیؒ: اگر دانست که احتلام فلان روز است حکم جنابت ازان روز جاری خواهد شد و اگر تعین روز معلوم نه شُد حکم احتلام از آخر نوم که بعد ازان نه خسپیده است داده خواهد شد. (مجموعة الفتاوٰی (فارسی) ج۳، ص۲۶، باب الغسل)

## له ډبوسکي سره ایلاج (دخول) د غسل موجب دی

**سوال:** د ډبوسکي د استعمالولو په صورت کښې له انزال پرته جماع د غسل موجب دی او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په نفس التقاء ختانین (د دوو فرجونو سره لګیدنه) سره چه کله حُشفه



پټه شي نو له انزال پرته هم غسل واجبیږي خو په دې شرط چه دواړو ته د یوه او بل د فرجونو حرارت محسوس شي۔ د دې لپاره فقهاوو هغه ایلاج (دخول) چه له غټ توکري سره وي او د فرج د داخل حرارت محسوس نه شي د غسل موجب نه دی ګرځولی۔ لیکن په ډبوسکي کښې اګر که ذکر پټ وي مګر دا غلاف دومره نری وي چه له هغه سره سره د تولو لذتونو احساس کیږي او دواړه له یوه او بل څخه خوند اخیستلی شي۔ نو د دې لپاره د ډبوسکي سره په داخلولو کښې له انزال پرته هم غسل واجبیږي۔

لما قال حسن بن عمارؒ: و منها ایلاج بخرقة مانعة من وجود اللّذة علی الاصح. قال الشیخ احمد الطحطاوی (قولهٗ مانعة من وجود اللذة) اقتصر علی ذکر اللذة هنا و زاد فیما تقدم وجود الحرارة و لعلهما متلازمان. (الطحطاوی حاشیة مراقی الفلاح ص ۸۰، فصل عشرة اشیاء لا یغتسل منها)

و قال ایضاً لو لف ذکره بخرقة و اولجه و لم ینزل فا لاصح انه ان وجد حرارة الفرج و اللذة وجب الغسل و الا فلا. (مراقی الفلاح علی صدر الطحطاوی ص۷۸، موجبات الغسل)

قال العلامة الحصفکیؒ: اولج حسفته او قدرها ملفوفة بخرقة ان وجد لذة الجماع وجب الغسل و الا لا علی الاصح. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص ۱۶۴/۱۶۵، باب الغسل)

## د ټیسټ ټیوب بې بې سره د غسل د وجوب مسئله

**سوال:** د ټیسټ ټیوب بې بې په ذریعې سره چه کومه مني د ښځې په رحم کښې اېښودله کیږي نو آیا په دې سره په ښځې باندې غسل واجبیږي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د غسل د وجوب سبب د نفس مني وتل او یا دخول نه دی بلکه اصل علت یکښې لذت او د قلب تسکین دی کوم چه د شهوت په ذریعه حاصلیږي۔ په ټیسټ ټیوب بې بې کښې د لذت او تسکین علت نشته او یو اځې د مشین په ذریعې سره مني د ښځې رحم ته رسول کیږي۔ نو ښکاره خبره چه په دې طریقې سره هغه لذت او تسکین نه ورته حاصلیږي کوم چه له سړي سره په جماع کښې ورته حاصلیږي۔

د دې مثال د اسې دی لکه چه یوه ښځه پخپل فرج کښې ګوته داخله کړي او یا د او یا له سړي پرته د بل شي ذکر داخل کړي کوم چه د غسل واجبوونکی نه دی۔ البته که چېرته د ټیسټ ټیوب بې بې په وخت کښې د ښځې انزال وشي نو بیا غسل پرې واجبیږي۔ لیکن بغیر د انزال نه هم غسل کول ډیر احوط دی۔

لما قال العلامة الحصکفیؒ: و فرض الغسل عند خروج منی من العضو....... منفصل عن مقره هو صلب الرجل و ترائب المرأة.......... بشهوة ای لذةٍ و لو حکماً کمُحتلم و لم یذکر الدفق یشمل منی المرأة لان الدفق فیه غیر ظاهرٍ. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۱۵۹/۱۶۰، باب الغسل)

و ایضاً قال و لا عند ادخال اصبع و نحوه کذکر غیر آدمی و ذکر خنثی و میّت و صبیّ لا یشتهی و ما یصنع من نحو خشب فی الدبر او القبل علی المختار. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۱۶۶، باب الغسل)

قال حسن بن عمار: اولها خروج المنی و هو ماء الی ظاهر الجسد لانه ما لم یظهر لا حکم له اذا انفصل عن مقره بشهوة من غیر جماع. (مراقی الفلاح علی صدر الطحطاوی ص ۷۶، فصل موجبات الغسل)

و ایضاً و منها ادخال اصبع و نحوه کشبه ذکر مصنوع من نحو الجلد فی احد السبیلین علی المختار مقصور الشهوة. (مراقی الفلاح علی صدر الطحطاوی ص ۸۱، فصل عشرة اشیاء لا یغتسل منها)

## د ځناور د وطی کولو په صورت کښې د غسل مسئله

**سوال:** که چېرته یو څوک کوم ځناور وطی کړي لیکن انزال ئې و نه شي نو آیا غسل پرې واجبیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** یواځې ایلاج (دخول) د غسل واجبونکی نه دی بلکه د ایلاج لپاره محل مشتهات ضروري دی۔ لکه څرنګه چه ځناور یا مړی د مشتهات محل نه دی نو د دې لپاره له انزال پرته په نفس وطی غسل نه واجبیږي۔

لما قال العلامة الحصکفیؒ: و لا عند وطی بهیمة او میتة او صغیرة غیر مشتهاة بان تصیر مفضاة بالوطی و ان غابت الحشفه....... بلا انزال لقصور الشهوة. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۱۶۶، ابحاث الغسل، سُنن الوضوء)

و فی الهندیة: و الایلاج فی البهیمة و المیتة و الصغیرة التی لا یجامع مثلها لا یوجب الغسل بدون الانزال. (الهندیة ج۱، ص۱۵، الفصل الثالث فی المعانی الموجبة الغسل) و مثله فی خلاصة الفتاویٰ ج۱، ص۱۳، الفصل الثانی فی الغسل.

## د التقاء ختانینو په صورت کښې د غسل حکم

**سوال:** د ښځې او نر فرجونه چه کله له یو بل سره ولګیږي نو آیا په دواړو باندې غسل واجبیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د مقدسو احادیثو له صریحو او واضحو الفاظو څخه دا څرګندیږي چه په نفس التقاء ختانینو سره غسل نه واجبیږي خو په دې شرط چه حشفه په فرج کښې داخل شوی نه وي۔

لما اخرج الامام ابو عیسی الترمذیؒ: عن عائشةؓ قالت اذا جاوز الختانُ الختانَ وجب الغسل فعلتُه انا و رسول اللهﷺ فاغتسلنا. (الجامع الترمذی ج۱، ص۳۰، باب ما جاء اذا التقی الختان وجب الغسل)

قال الحصکفیؒ: و عند ایلاج حشفه هی ما فوق الختان آدمی احتراز عن الجنی یعنی اذا لم تنزل........ او ایلاج قدرها من مقطوعها و لو لم یبق منه قدرها....... فی احد سبیلی آدمی حی یجامع مثلهُ علیهما. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۱۶۱/۱۶۲، سُنن الغسل) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۱۵، الفصل الثالث فی المعانی الموجبة.

## له غسل څخه وروسته د مني په وتلو سره د غسل حکم

**سوال:** کله کله د بیړې له وجهې د جماع یا احتلام څخه وروسته سړی غسل کوي او له غسل څخه وروسته د مني څاڅکي خارجیږي نو آیا دوباره غسل واجبیږي او که لومړی غسل کافي دی؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د غسل له کولو څخه وروسته چه کومې څاڅکي را ووځي په هغو کښې دا تفصیل دی چه که چېرته د مني څاڅکي له ګرځیدو، خوب او یا له متیازو کولو څخه



وروسته وتلي وي نو لکه څرنګه چه ډیر واري په داسې حالاتو کښې له شهوت او توپ څخه پرته مني را ووځي نو د دې لپاره د شهوت د نشتوالي له وجهې لومړی غسل کافي دی او دوباره غسل پرې واجب نه دی۔ او که چېرته د یادو شویو عوارضو څخه مخکښې د مني څاڅکي را ووځي نو دوباره غسل پرې واجب دی۔

لما فی الهندیة: لو اغتسل من الجنابة قبل ان یبول او ینام و صلی ثم خرج بقیة المنی فعلیه ان یغتسل عندهما خلافاً لابی یوسفؒ و لکن لا یعید تلک الصلوٰة فی قولهم جمیعا کذا فی الذخیرة و لو خرج بعد ما بال او نام او مشی لا یجب علیه الغسل اتفاقاً کذا فی التبیین. (الهندیة ج۱، ص۱۴، الفصل الثالث فی المعانی الموجبة الغسل)

قال ابن عابدینؒ: و کذا لو خرج منه بقیة المنی بعد الغسل قبل النوم او البول او المشی الکثیر نهر ای لا بعده لان النوم و البول و المشی یقطع مادة الزائل عن مکانه بشهوة فیکون الثانی زائلاً عن مکانه بلا شهوة فلا یجب الغسل اتفاقاً. (رد المحتار ج۱، ص۱۶۰، موجبات الغسل)

## په سوئمنګ پول کښې د غسل کولو حکم

**سوال:** نن صبا د غسل کولو لپاره په ځینو ځایونو کښې سوئمنګ پول جوړ شوی دی کوم چه د لس په لسه (سل ذراع) حوض څخه لوی دی۔ آیا په هغه کښې غسل کول صحیح دي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کوم حوض چه لس په لسو کښې وي نو د مفتی به قول له مخې د هغه اوبه د جاري اوبو په حکم کښې دي۔ لهذا په نوموړي صورت کښې که چېرته دا سوئمنګ پول د لس په لسه ذراع او یا له دې څخه لوی وي نو هغه د جاري اوبو په حکم کښې راځي۔ د دې لپاره په هغه کښې غسل کول جائز دي۔ البته لکه څرنګه چه په سوئمنګ پول کښې غسل کول د کفارو او فساقو شیوه او طریقه ده نو د دې لپاره په داسې ځایونو کښې له غسل کولو څخه پرهیز وکړې۔

لما قال طاهر بن عبد الرشید البخاریؒ: الحوض الکبیر مقدار بعشرة ازرع فی عشرة ازرع.......... و علیه الفتویٰ. (خلاصة الفتاویٰ ج۱، ص۳، کتاب الطهارة)

التقدیر بعشر فی عشر هو المفتی به قال السید احمد الطحطاوی (قوله هو المفتی به) هو قول عامة المشائخ خانیة و هو قول الاکثر و به ناخذ نوازل و علیه الفتویٰ کما فی شرح الطحطاوی. (طحطاوی حاشیة مراقی الفلاح ص۲۱، کتاب الطهارة، بحث اقسام المیاه) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۱۸، الباب الثالث فی المیاه.

## د جنابت غسل فوراً ضروري نه دی

**سوال:** په عوامو کښې دا خبره زیاته مشهوره ده چه له ښځې سره د جماع له کولو څخه فوراً وروسته غسل کول ضروري دي او که نه نو ګناهګاریږي۔ آیا په رښتیا هم دا خبره صحیح ده؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د جماع له کولو څخه وروسته اګر که غسل په سړي واجبیږي لیکن دا وجوب علی الفور نه دی بلکه کله چه موقع پیدا شي نو غسل دې وکړي۔ لیکن بهتره دا ده چه

چه له جماع څخه فوراً وروسته غسل وکړي۔

عن ابن عمرؓ قال ذکر عمر بن الخطاب رضی الله عنه لرسول اللهﷺ انه تصیبه الجنابة من اللیل فقال له رسول اللهﷺ توضأ و اغسل ذکرک ثم نم. متفق علیه. (مشکوٰة ج۱، ص۴۹، باب مخالطة الجنب)

عن عائشةؓ رضی الله عنها قالت کان رسول اللهﷺ اذا کان جنباً فاراد ان یاکل او ینام توضأ وضوء للصلوٰة. (متفق علیه) (مشکوٰة المصابیح ج۱، ص۴۹، باب مخالطة الجنب و ما یباح له) و مثله فی الفقه الاسلامی و ادلته ج۱ ص۳۸۲، المطلب الخامس مکروهات الغسل.

## د مصنوعي ویښتانو په اودسه او غسل کښې حکم

**سوال:** په موجوده دور کښې ښځې خپل ویښتان اوږده او د ګڼ ښکاریدو لپاره مصنوعي ویښتان لګوي۔ نو په اودسه او غسل کښې د دغو ویښتانو حکم څه دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** اګر که دا عمل شرعاً ممنوع دی۔ رسول اللهﷺ دا عمل د لعنت موجب ګرځولی دی لیکن که چېرته ئې څوک ولګوي نو په غسل کښې د ښځو لپاره یوائې دا ضروري ده چه د ویښتانو بیخونو ته اوبه ورسوي او په غسل او اودسه کښې د دغو ویښتانو لرې کول ضروري نه دي۔ خو په دې شرط چه په اودسه کښې د سر د مسحې څلورمه برخه په اصلي ویښتانو وشي۔ او که چېرته ټوله مسح په مصنوعي ویښتانو وشي نو بیائې اودس نه کیږي۔

لما قال العلامة برهان الدین المرغینانیؒ: لیس علی المراة ان تنقض ضفائرها فی الغسل اذا بلغ الماء اصول الشعر. (الهدایة ج۱، ص۱۴، فصل فی الغسل)

قال العلامة حسن بن عمار الشرنبلالیؒ: لا یفترض نقض المضفور من شعر المراة ان سری الماء فی اصوله اتفاقاً الخ. (مراقی الفلاح علی صدر الطحطاوی ص۸۲، فصل فرائض الغسل) و مثله فی کبیری ص۴۷، فرائض الغسل.

## یوائې د لمدوالي محسوسول د غسل موجب نه دی

**سوال:** که چېرته یو سړی د ویښې په حالت کښې له شهوت او توپ پرته پخپل ذکر کښې د مني یا مذي لړ غوندې لمدوالی محسوس کړي کوم چه د احلیل د ننه پاتې شي او د باندې را نه وځي۔ نو آیا په دې صورت کښې غسل پرې واجبیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په نوموړي صورت کښې غسل واجب نه دی ځکه چه د غسل د وجوب لپاره د مني وتل په شهوت او توپ سره ضروري دي کوم چه په نوموړي صورت کښې نشته۔ البته د دې لمدوالي په وتلو سره اودس ماتیږي۔ او که چېرته څاڅکي د باندې را و نه وځي او د احلیل د ننه پاتې شي نو بیائې اودس هم نه ماتیږي۔

و فی الهندیة: منها الجنابة و هی تثبت بسببین احدهما خروج المنی علی وجه الدفق و الشهوة. (الهندیة ج۱، ص۱۴، الفصل الثالث فی المعانی الموجبة للغسل)

قال برهان الدین المرغینانیؒ: المعانی الموجبة للغسل انزال المنی علی وجه الدفق و الشهوة من الرجل و



المراة حالة النوم و الیقظة. (الهدایة ج۱، ص۳۱، فصل فی الغسل) و مثله فی خلاصة الفتاوی ج۱، ص۱۲، الفصل الثانی فی الغسل۔

## د څو ځله جماع لپاره یو غسل کافي دی

**سوال:** که چېرته یو سړی له خپلې منکوحې سره څو ځلې جماع وکړي او یا له خپلو دوو، درېو یا څلورو ښځو سره جماع وکړي او په آخر کښې یو ځل غسل وکړي نو دا غسل ئې کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له یوې یا ډیرو ښځو سره د څو ځله جماع کولو لپاره یو غسل کافي دی او د هر ځل جماع لپاره د جلا غسل ضرورت نشته۔

د حضرت انس رضی الله عنه څخه روایت دی چه: ان رسول اللهﷺ طاف ذات یوم علی نسائه فی غسل واحد. (ترمذی ج۱، ص۳۶، باب ما جاء فی الرجل یطوف علی نسائه بغسل واحد)

و قال الحصکفیؒ: و لا معاودة اهله قبل اغتساله الا اذا احتلم لم یأت اهله. قال الحلبیؒ ظاهر الاحادیث انما یفید الندب لا نفی الجواز المفاد من کلامه. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۱۷۵/۱۷۶، ابحاث الغسل)

قال طاهر بن عبد الرشید البخاریؒ: و لا بأس للجنب ان ینام و یعاود اهله قبل ان یغتسل او یتوضأ. (خلاصة الفتاوی ج۱، ص۱۴، الفصل الثانی فی الغسل) و مثله فی مشکوٰة ج۱، ص۴۹، باب مخالطة الجنب و یباح له الفصل الاول۔

## د جنابت په حالت کښې د ضرورت په وخت کښې جومات ته د تللو حکم

**سوال:** که چېرته له جومات څخه د باندې ګرمې اوبه نه وي او په سړو اوبو باندې غسل تکلیف وي نو د ګرمو اوبو د را اخیستلو لپاره جومات ته داخیدلی شي او که نه؟ او همدارنګه ډیر ځله د پمپ تنې په جومات کښې د ننه وي۔ نو آیا جنوب سړی د اوبو د مشین د چالانولو لپاره جومات ته داخیدلی شي او که نه؟ په د اسې حال کښې چه په سړو اوبو باندې د باندې په غسل کولو کښې تکلیف وي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته له جومات څخه د باندې د غسل انتظام نه وي او د ضرورت په خاطر جومات د اخیدل ضروري وي نو تیمم دې وکړي او بیا دې جومات ته داخل شي۔

قال ابن عابدینؒ: لکن لقائل ان یقول ان مراد المبتغی ان الجنب اذا وجد ماء فی المسجد و اراد دخوله للاغتسال تیمّم و یدخل. (رد المحتار علی الدر المختار ج۱، ص۲۴۳، باب التیمّم)

قال ابراهیم الحلبیؒ: جنب وجد الماء فی المسجد و لم یجده فی غیره و لیس معه احد یاتیه به تیمّم لاجل الدخول. (کبیری ص۷۲، باب التیمم)

قال ابراهيم الحلبيؒ: و ان ماتت فيها شاة او كلب او آدمي نزح جميع ماء....... و كذا ينزح جميع الماء اذا استخرج الكلب او الخنزير حياً. (كبيری ص۱۵۷، فصل فی البئر)

قال العلامة الحصكفيؒ: فان اخرج الحيوان غير منتفخ و لا متفسخ و لا متمعط فان كان كآدمي و كذا سقط و سخلة و جدي و اوز كبير نزح كله. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۱، ص۲۱۵، فصل فی البير) و مثله فی الهندية ج۱، ص۱۹، الباب الثالث فی المياه.

قال العلامة ابن عابدينؒ: تحت قوله كآدمي محدث اى ينزح فيه اربعون. (رد المحتار ج۱، ص۲۱۳، باب البئر)

## د کوهي د اوبو او بيت الخلاء تر منځ د فاصلې اندازه

**سوال:** په ډيرو کورونو کښې د بيت الخلاء لپاره کندې کينډل کيږي کوم چه د بيت الخلاء ټول غټې او وړې متيازې پکښې جمع کيږي او همدارنګه د دې کوهي په شاوخوا کښې د اوبو کوهی هم موجود وي. آيا د کوهي او بيت الخلاء تر منځ بايد څومره فاصله وي او که چېرته ډير ور نژدې وي نو د کوهي په اوبه باندې کوم اثر کوي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د اوبو د پاکوالي او نجاست حکم د بيت الخلاء د کندې او کوهي تر منځ د ګندګې ور رسيدلو پورې موقوف دی۔ او د ا رسيدنه د زمکې د سخت او نرم والي له وجهې فرق کوي۔ په هکله ئې کومه خاصه فاصله نه ده ټاکل شوې۔ بيا هم سړی بايد دې ته وګوري چه له څومره فاصلې څخه د کوهي د اوبو رنګ او خوند د بدليدو خطره نه وي نو هغومره فاصله دې په منځ کښې پريږدي او د بيت الخلاء کنده دې وکني۔

قال فی الهندية: بئر الماء اذا كانت بقرب البئر النجسة فهی طاهرة ما لم يتغير طعمه او لونه او ريحه كذا فی الظهيرية و لا يقدر هذا بالذرعان حتى اذا كان بينهما عشر اذرع و كان يوجد فی البئر اثر البالوعة فماء البئر نجس و ان كان بينهما ذراع واحد و لا يوجد اثر البالوعة فماء البئر طاهر. كذا فی المحيط و هو الصحيح. (الهندية ج۱، ص۲۰، الباب الثالث فی المياه)

قال طاهر بن عبد الرشيد البخاريؒ: و ادنى ما ينبغي ان يكون بين بئر الماء و البالوعة سبعة اذرع و التعويل على نفوذ الرائحة ان تغير لونه او طعمه او ريحه نجسة و الا فلا. (خلاصة الفتاوى ج۱، ص۱۲، الجنس الثالث فی الآبار) و مثله فی رد المحتار على الدر المختار ج۱، ص۶۲، فصل فی البئر)

## په کوهي کښې د مردار شي لکه څپلې يا لرګي او د اسې نورو د پريوتلو حکم

**سوال:** په کوهي که چېرته مردار شي لکه څپلې، لرګي، خيره او د اسې نور شيان ولويږي نو آيا کوهی پرې مردار اريږي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته د لويدلي شي ايستل له کوهي څخه ممکن وي نو ايستل ئې ضروري دي۔ او که چېرته ئې ايستل ممکن نه وي نو بيا که د کوهي د تولو اوبو ايستل مشکل نه وي نو تولې اوبه به ئې باسي او که نه وي نو د دريو سوو بوکو په ايستلو سره کوهی



پاک ګڼل کيږي۔

قال العلامة الحصكفيؒ: ينزح كل مائها بعد اخراجه الا اذا تعذر كخشبة او خرقة متنجسة فينزح الماء الى حد لا يملأ نصف الدلو يطهر الكل تبعاً. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۱، ص۲۱۲، فصل فی البئر)

قال فی الهندية: و لو وقعت فی البئر خشبة نجسة او قطعة ثوب نجس و تعذر اخراجها و تغيبت فيها طهرت الخشبة و الثوب تبعا بطهارة البئر كذا فی الظهيرية. (الهندية ج۱، ص۲۰، الباب الثالث فی المياه) و مثله فی السعاية ج۱، ص۴۲۶)

## د هغه کوهي حکم چه د مړ حيوان ايستل ترې مشکل وي

**سوال:** که چېرته په کوهي کښې کوم چرګ يا بل شی ولويږي او مړ شي او ايستل ئې هم ترې ممکن نه وي او نه د تولو اوبو ايستل ئې ممکن وي نو د دريو سوو بوکو د ايستل تر څنګ به په کوهي کښې د نجاست له موجودوالي سره د کوهي څه حکم وي؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په د اسې حالت کښې چه کله د تولو اوبو ايستل ممکن نه وي او د نجاست ايستل هم د انسان په وس کښې نه وي نو له کوهي څخه به د ومره پورې اوبه نه استعمالوي چه هغه چرګ يا کوم بل حيوان خاورې شوی نه وي۔ ځينو علماوو ئې د خاورې کيدو نيته شپږ مياشتې بنوولې ده۔

قال ابن عابدينؒ: قلت فلو تعذر ايضاً ففی القهستاني عن الجواهر لو وقع عصفور فيها فعجزوا عن اخراجه فما دام فيها فنجسة فتترك مدةً يعلم انه استحال و صار حمأة و قيل مدة ستة اشهر. (رد المحتار على الدر المختار ج۱، ص۲۱۲، فصل فی البئر)

قال محمد عبد الحيؒ: و ذكر القهستاني فی جامع الرموز نقلاً عن الجواهر لو وقع فيها عصفور فعجزوا عن اخراجه فما دام فيها فنجسة فيترك مدةً يعلم انه استحال و صار حمأة و قيل مدة ستة اشهر انتهى. و هذا ايضاً يفيد انه لا بد من اخراج عين النجس فاذا تعذر فيترك الى ان يستحيل. (السعاية ج۱، ص۴۲۶، فصل فی البئر)

## د سپي په لويدو سره د کوهي د اوبو حکم

**سوال:** که چېرته کوم کوهي ته سپی ور ولويږي او مړ شي نو د کوهي په اوبو باندې څومره اثر کوي؟ که چېرته کوهی پرې مردار اريږي نو په کوهي کښې د ختو، بوکو او رسۍ به څه حکم وي؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د سپي په لويدلو سره اوبه مردار اريږي۔ د سپي د جسم له ايستلو څخه وروسته به د کوهي تولې اوبه وباسي که چېرته ممکن وي او که نه وي نو له دوو سوو بوکو څخه تر دريو سوو بوکو پورې اوبه دې ترې وباسي۔ د ختو، بوکو او رسۍ مينځل ضروري نه دي۔ همدارنګه د کوهي ګير چاپيره ديوالونه د لمدوالي له وجهې هم نه خرابيږي۔

قال فی الهندية: اذا وقعت فی البئر نجاسة نزحت و كان نزح ما فيها من الماء طهارة لها باجماع السلف كذا فی الهداية. (الهندية ج۱، ص۱۹، الباب الثالث فی المياه)

قال ابن عابدينؒ: (قوله ينزح كل مائها) اى دون الطين لورود الآثار بنزح الماء (و بعد اسطر) (يطهر الكل) اى

من الدلو و الرشاء و البکرة. (رد المحتار علی الدر المختار ج۱، ص۲۱۲، فصل فی البئر) و مثله فی مراقی الفلاح ص۲۲، فصل فی مسائل البئر.

## په ناپاکو اوبو سره د پاخه شوي شي د خوړلو او د اودسه په کولو سره د ادا شوي لمونځونو حکم

**سوال:** له کوهي څخه مړ ځناور که هغه وروست شوی وي او که نه چه و ایستل شي او د لویدو د تاکلي وخت څخه نا خبرۍ په بنا باندې د هغه کوهي اوبو د اودسه یا د جامو د پرې مینځلو، یا د وړو د لمدولو او دیگ پخولولپاره استعمال شوي وي- نو د دې حالت په باره کښې د شریعت حکم څه دی؟ بینوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کوهي ته نجاست ولویږي او د لویدلو وخت ئې معلوم نه وي نو د لویدلو د وخت له معلومولو مخکښې که چېرته د دې کوهي په اوبو باندې اودسونه شوي وي، یا کالي پرې پرې مینځل شوي وي نو په اجماع سره د هیڅ شي بیرته را گرځول نشته- او که چېرته له بې اودسي یا جنابت څخه ئې اودس یا غسل پرې کړی وي او ناپاکې جامې پرې مینځل شوي وي نو د امام ابو حنیفه رحمه الله په نزد که چېرته حیوان وروست شوی وي یا پړسیدلی وي نو د دریو شپو او ورځو لمونځونه به را گرځوي او په دې دوران کښې ئې چه څومره جامې یا لوښي مینځلي وي د هغو دوباره مینځل لازمي دي- او کوم وړه چه پرې لامده شوي وي که هغه موجود وي نو ځناورو ته دې ورکړي- او د صاحبینو په نزد د یوه شي بیرته را گرځول هم پرې نشته بلکه په کوم وخت کښې ئې چه د لویدو علم راغلی وي له هغه وخت څخه به کوهی مردار گڼل کیږي- ځینو علماوو د صاحبینو قول راجح گرځولی دی او مفتٰی به ئې گڼلی دی- لیکن اکثرو علماوو د امام صاحبؒ قول راجح بللی دی- بیا هم که چېرته دښته یا ډاگ وي او د کوهي د حفاظت کوم انتظام نه وي نو بیا د صاحبینو په قول باندې عمل کول هم صحیح دي-

لما قال شیخ الاسلام ابو بکر بن علی الحدادؒ: اذا وجد فی البئر فارة میتة او غیرها...... و لا یدرون متٰی وقعت و لم تنتفخ و لم تنفسخ اعادوا صلٰوة یوم و لیلة و ان کانت انتفخت او تفسخت اعادوا صلٰوة ثلاثة ایام و لیالیها. فی قول ابی حنیفةؒ (اذا کانوا توضئوا منها) ای و هو محدثون و غسلوا کل شیء اصابه ماؤها ای غسلوا ثیابهم من نجاسة اما ان توضئوا منها و هو متوضئون او غسلوا ثیابهم من غیر نجاسة فانهم لا یعیدون اجماعاً....... و قال ابو یوسفؒ و محمدؒ لیس علیهم شیء حتٰی یتحققوا متٰی وقعت. (الجوهرة النیرة ج۱، ص۲۰، فصل فی البئر)

قال ابن عابدینؒ: (قوله قیل و به یفتٰی) قائله صاحب الجوهرة و قال العلامة قاسم فی تصحیح القدوری قال فی فتاوی العتابی قولهما هو المختار قلت لم یوافق علی ذٰلك فقد اعتمد قول الامام البرهانی و النسفی و الموصلی و صدر الشریعة و رجح دلیله فی جمیع المصنفات. (رد المحتار ج۱، ص۲۱۹، مطلب مهم فی تعریف الاستحسان)

قال ابن نجیمؒ: و اعلم ان البئر تنجس من وقت وقوع الحیوان الذی وجد میتاً فیها ان علم ذٰلك الوقت و ان لم یعلم فقد صار الماء مشکوکاً فی طهارته و نجاسته فاذا توضئوا منها و هم متوضئون او غسلوا ثیابهم من غیر نجاسة فانهم لا یعیدن اجماعاً لان الطهارة لا تبطل بالشك و ان توضئوا منها و هم محدثون او اغتسلوا من جنابة او غسلوا ثیابهم عن نجاسة....... فی الاول و الثانی خلاف فعند ابی حنیفةؒ التفصیل المذکور فی الکتاب و قالا یحکم بنجاسة ماؤها قبل العلم بها و لا یلزمهم اعادة شیء من الصلٰوة و لا غسل ما اصابه ماؤها قبل العلم و هو القیاس لان الیقین لا یزول بالشك. (البحر الرائق ج۱، ص۱۲۳، کتاب الطهارة)

و قال (بعد اسطر) فی تصحیح الشیخ القاسم و فی فتاوی العتابی المختار قولهما قلتُ هو المخالف لعامة الکتب فقد رجح دلیله فی کثیر من الکتب و قالوا انه الاحتیاط فکان العمل علیه و ذکر الاسبیجابی ان ما عجن به قال بعضهم یلقی الی الکلاب و قال بعضهم یعلف المواشی. (البحر الرائق ج۱، ص۱۲۵، کتاب الطهارة) و مثله فی السعایة ج۱، ص۴۳۸/۴۳۹، کتاب الطهارة فی احکام الآبار)

# بـــــاب الحوض

## د حوض احكـــــام او مسئلې)

### د لس په لس څخه د كوچني حوض حكم

**سوال:** په ځينو سيمو كښې واړه واړه حوضونه جوړيږي او د اوبو د جاري والي په وخت كښې خو څه مشكله مسئله نه وي ليكن كله چه اوبو جاري نه وي نو له د اسې حوض څخه د اودس كولو حكم څه دى په ځانګړې توګه په هغه وخت كښې چه د حوض يوې خوا ته د سپيو يا نورو حيواناتو نجاست هم موجود وي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** كوم حوض چه لس په لس ګزه كښې نه وي نو يو اڅې د نجاست په لويدو سره مرد اريږي۔ او كوم حوض چه لس په لس ګزه يا تر دې زيات لوى وي نو تر څو پورې چه د اوبو اوصاف بدل شوي نه وي يو اڅې د نجاست په لويدو سره نه مرد اريږي۔ له دې وجهې كه چېرته نوموړى حوض د لس په لس ګزو څخه كم وي او نجاست پكښې لويدلى وي نو د دې لپاره چه اوبه ئې نجسې دي اودس كول پرې ناجائز دي۔ البته د اوبو د بهيدو په صورت كښې د لس په لس ګزو څخه كوچنى حوض هم نه مرد اريږي۔

لما قال العلامة عبد اللّٰه بن محمود المودود و الماء الراكد اذا وقعت فيه نجاسة لا يجوز به الوضوء الا ان يكون عشرة اذرع فى عشرة. (الاختيار لتعليل المختار ج۱، ص ۱٤، حكم الماء الراكد ان وقعت فيه نجاسة)

قال العلامة ابراهيم الحلبىؒ: و الماء الراكد الاصل عندنا ان الماء القليل ما لم يكن عشرا فى عشر يتنجّس بوقوع النجاسة فيه و ان لم يظهر فيه اثرها من لون و نحوه. (كبيرى ص ۹٤، فصل فى احكام الحياض) و مثله فى خلاصة الفتاوىٰ ج۱، ص ٤، احكام الحياض.

### د ګول (د ائرې غوندې ګـــــرد) حوض حكم

**سوال:** د سور او اوږدوالي د اندازې له بيانولو څخه څرګنديږي چه حوض به يا د مستطيل شكل لري او يا د مربع۔ ليكن ډير حوضونه د اسې دي چه ګول يعنې د دائرې شكل لري۔ نو آيا د څلويښت ګزه د ائره شكله حوض ته حوض كبير ويل كيدلى شي او كه نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د حوض د مستطيل يا مربع شكل درلودل ضروري نه دي بلكه د پاكوالي دار و مدار ئې په لويوالى باندې دى۔ له دې وجهې د ګول يعنې د ائرې شكله حوض چه ساحه ئې لس په لس ګزه كيږي نو هغه ته حوض كبير ويل كيږي۔

قال ابن عابدينؒ: (قوله اى فى المربع) اشار الى ان المراد من اعتبار العشر فى العشر ما يكون وجهه مائة ذراعٍ سواء كان مربعاً و هو ما يكون كل جانب من جوانبه عشرة و حول الماء اربعون و وجهه مائة او كان مدوراً او مثلثاً. (رد المحتار على الدر المختار ج۱، ص ۱٤۲، باب المياه)



قال ابن نجيمؒ: فان كان الحوض مدوراً ففى الظهيرية يعتبر ستّة و ثلاثون و هو الصحيح و هو مبرهن عند الحساب......... و فى الخلاصة و صورة الحوض الكبير المقدر بعشرة فى عشرة ان يكون من كل جانب من جوانب الحوض عشرة و حول الماء اربعون ذراعاً. (البحر الرائق ج۱، ص ۷۷، كتاب الطهارة)

### د مختلفو كنارو لـــــرونكي حوض حكم

**سوال:** كه چېرته د حوض اوږدوالى او سور (پلنوالى) مختلف وي ليكن سره له دې اوسطه ساحه ئې د لس په لس ګزو څخه زياته وي نو آيا د اسې حوض د لوى حوض په حكم كښې ګڼل كيږي او كه نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د لوى حوض اوبو د بهيدونكي اوبو په حكم كښې د راتلو دارو مدار د اطرافو په تناسب او برابروالي پورې موقوف نه دى۔ بلكه د اوبو په ډير والي پورې موقوف دى۔ كه چېرته د حوض درميانه ساحه د لس په لس ګزو څخه زياته وه او د مبتلي به په رأيه كښې اوبو زياتې معلوميدلې نو بيا د سور او اوږدوالي د فرق له وجهې د اسې حوض د لس په لس ګزو په حكم كښې راځي او د جاري اوبو په حكم كښې د اخليږي۔

قال الحصكفىؒ: و لو له طول لا عرض لكنه يبلغ عشراً فى عشر جاز تيسراً. قال ابن عابدينؒ (قوله تيسراً) اى جاز الوضوء منه بناء على نجاسة الماء المستعمل او المراد جاز و ان وقعت فيه نجاسة و هٰذا احد قولين، و هو المختار. (رد المحتار على الدر المختار ج۱، ص۱۹۳، باب المياه)

قال ابن نجيمؒ: فان كان الحوض مدوراً ففى الظهيرية يعتبر ستة و ثلاثون و هو الصحيح و هو مبرهن عند الحساب و فى الخلاصة و صورة الحوض الكبير المقدر بعشرة فى عشرة ان يكون من كل جانب من جوانب الحوض عشرة و حول الماء اربعون ذراعاً. (البحر الرائق ج۱، ص۷۷، كتاب الطهارة)

### په لـــــوى حوض كښې د اودسه حكم

**سوال:** كه چېرته كوم حوض د شرعي اندازې په مقدار لوى وي او يو څوك اودس پكښې وكړي او د اودس كولو په وخت كښې د مستعملو اوبو څاڅكي بيرته پكښې ولويږي نو آيا د سړي اودس پكښې صحيح كيږي او كه نه؟ په د اسې حال كښې چه د مستعملو اوبو د وتلو كومه بله طريقه نه وي؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په لوى حوض كښې تر څو پورې چه د اوبو اوصاف يعنې رنګ، خوند او بوى بدل شوي نه وي د مستعملو اوبو د څاڅكو په لويدلو سره اوبه نه مرد اريږي۔ په شريعت كښې دا اوبو پاكې دي او اودس او غسل دواړه پرې جائز دي۔

قال العلامة الحصكفىؒ: و كذا يجوز براكد كثير كذٰلك اى وقع فيه نجس لم ير اثره و لو فى موضع وقوع المرئية به يفتى بحر. (الدر المختار على هامش رد المحتار ج۱، ص ۱۹۰/۱۹۱، باب المياه)

قال ابن نجيمؒ: (قولهٗ و الا فهو كا لماء الجارى) اى و ان يكن عشراً فى عشر فهو كا لجارى فلا يتنجس موضع الوقوع. (البحر الرائق ج۱، ص۸۲، كتاب الطهارة) و مثله فى الهندية ج۱، ص۱۸، الباب الثالث فى المياه.

## زیـــاتې اوبو د اوصافو له تبدیلۍ څخه پرته پاکې وي

**سوال:** که چېرته یو لوی حوض چه اندازه ئې د لس په لس ګزو څخه زیاته وي- آیا د خوشایو او د اسې نورو ګندګیو په لویدلو سره مرد اریږي او که نه؟ بینوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** ښرګنده دې وي چه کومې اوبو چه حقیقتاً جاري وي او که حکماً په هغو کښې د نجاست د لویدلو په صورت کښې چه د اوبو اوصاف بدل نه کړي په اوبو کښې هیڅ فرق نه راځي- لیکن دا دې هم ښرګنده وي چه لس په لس ګزه کښې حوض د جاري اوبو په حکم کښې راتلل د امام ابو حنیفه رحمه الله په مذهب کښې یو روایت دی لیکن په نن زمانې کښې د ناپوهۍ له وجهې فقهاء کرامو په لس په لس ګزه باندې فتوٰی ورکوي-

قال العلامة نطاهر بن عبد الرشید البخاری: النجاسة اذا وقعت فی حوض ان کان کبیراً فهو بمنزلة البحر لا یتنجس الا ان یتغیر طعمه او لونه او ریحه........ قال (بعد اسطر) الحوض الکبیر مقدر بعشرة اذرع فی عشرة اذرع و علیه الفتوٰی. (خلاصة الفتاوٰی ج۱، ص۳، کتاب الطهارة)

و التقدیر بعشر فی عشر هو المفتی به و ذکر السید احمد الطحطاوی فی تحت (قوله و المفتٰی به) هو قول عامة المشائخ خانیة و هو قول الاکثر و به ناخذ نوازل و علیه الفتوٰی. (الطحطاوی حاشیة مراقی الفلاح ص۲۱، بحث اقسام المیاه) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۱۸، الباب الثالث فی المیاه.

## په نهـــــر کښې د ګندګۍ د اچولو په صورت کښې د اوبو حکم

**سوال:** لوی لوی نهرونه چه آبادیو ته نژدې تیر شوي وي خلك په عمومي توګه خپل نجاستونه پکښې اچوي آن تر دې پورې چه د کلي د بیت الخلاء ګانو اوبو هم په دغو نهرونو کښې شاملیږي- ډیر واري د نجاست ډیر والی په اوبو کښې هم ښرګندیږي- نو آیا د داسې نهرونو په اوبو باندې اودس او غسل صحیح دی؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د نهرونو اوبو بهیدونکې وي او په بهیدونکو اوبو باندې چه تر څو پورې ئې اوصاف یعنې رنګ، خوند او بوی بدل شوي نه وي یوائې د نجاست په لویدلو سره اوبو ناپاکې نه ګرځي- په داسې لویو نهرونو کښې عموماً نجاست مغلوبیږي او په اوبو باندې ئې کوم خاص اثر نه معلومیږي- نو د دې لپاره د نهرونو اوبو صفا او پاکې وي او غسل او اودس دواړه پرې جائز دي-

قال الحصکفی: و یجوز بجار وقعت فیه نجاسة و الجاری هو ما یعد جاریاً عرفاً ان لم یرٰی یعلم اثره فلو فیه جیفة او بال فیه رجال فتوضأ آخر من اسفله جاز ما لم یر فی الجریة اثره و هو اما طعم او لون او ریح. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۱۸۷، باب المیاه)

قال فی الهندیة: و فی النصاب و الفتوٰی فی الماء الجاری انهٗ لا یتنجس ما لم یتغیر طعمه او لونه او ریحه من النجاسة کذا فی المضمرات. (الهندیة ج۱، ص۱۷، الباب الثالث فی المیاه) و مثله فی البحر الرائق ج۱، ص۸۲، کتاب الطهارات)



# بـــــاب التیمم

## (د تیمم احکام او مسئلې)

## د تیمـــــم نیت

**سوال:** د تیمم نیت سړی باید څنګه وکړي؟ که چېرته عربي نیت د چا زده نه وي نو پخپلې ژباندې د نیت کولو حکم څه دی؟ او همدارنګه د عربي نیت الفاظ کوم دي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د تیمم نیت د زړه له ارادې څخه مراد دی- چه کله په زړه کښې د تیمم اراده وکړي نو همدا د تیمم نیت دی- بیا هم بهتره دا ده چه په ژبې سره هم نیت الفاظ ووایي- که چېرته د چا په عربي ژبې باندې نیت زده نه وي نو پخپلې ژبې باندې هم د هغه ترجمه ویلی شي- او په عربي کښې د تیمم نیت دا دی: "نویت ان اُتیمم لرفع الحدث و لاستباحة الصلٰوة" لیکن نیت په ژبې باندې د تیرولو په وخت کښې د نوموړي عمل په زړه کښې اراده ضروري ده تر څو چه د ژبې او زړه اراده سره یو ځای شي-

قال الحسن بن عمار: و هو لغةً القصد و شرعاً مسح الوجه و الیدین عن صعید مطهر و القصد شرط له. (و بعد اسطر) یشترط لحصة نیة التیمم للصلٰوة بهٖ احد ثلاثة اشیاء امانیة الطهارة من الحدث القائم به او نیة استباحة الصلٰوة او نیة عبادة مقصودة لا تصح بدون طهارة. (مراقی الفلاح ص۶۰، باب التیمم)

و فی الهندیة: منها النیة و کیفیتها ان ینوی عبادة مقصودة لا تصح الا با لطهارة او نیة الطهارة او استباحة الصلٰوة تقوم مقام ارادة الصلٰوة..... الخ. (الهندیة ج۱، ص۲۶/۲۵، باب التیمم) و مثله فی تبیین الحقائق ج۱، ص۴۰/۳۹، باب التیمم.

## د جومـــــات په خاورې باندې د تیمم حکم

**سوال:** د ضرورت په وخت کښې د جومات په دیوالو باندې د تیمم وهلو څه حکم دی؟ بینوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د جومات په دیوال یا فرش باندې تیمم وهل مکروه دي ځکه چه د تیمم په صورت کښې دا خاوره د حدث یعنې بې اودسي لرې کوونکې وګرځي- کومه خاوره یا ختمه یا ډبره چه په جومات کښې لګیدلې وي هغه واجب التعظیم وي- نو د دې تعظیم او احترام له مخې په هغې باندې د حدث د لرې کولو نسبت بې ادبي ده- البته که چېرته د دیوال یا فرش خاوره چا جمع کړې وي او د جومات په کوم کُنج کښې ئې ایښې وي نو بیا تیمم پرې جائز دی ځکه چه د خاورې جمع کول او د جومات په کوم کُنج کښې ئې کیښودل له جومات څخه د باندې ګڼل کیږي- او د جومات خاوره چه کله د باندې و ایستل شي نو هغه تقدس او حرمت ئې پخپل حال نه پاتې کیږي-

قال قاضی خان: و یکره مسح الرجل من طین و الردغة بأُسطوانة المسجد او بحائطه و ان مسح بتراب فی المسجد ان کان ذٰلك التراب مجموعاً فی ناحیة غیر منبسط لا باس به و ان کان منبسطاً مفروشاً یکره لانه بمنزلة ارض المسجد. (فتاوی قاضی خان علی هامش الهندیة ج۱، ص۶۵، فصل فی المسجد)

قال العلامة اشرف علی التهانوی: په دې وخت کښې روایت لاس ته را نه غی لیکن چېرته مې لیدلي دي چه

مکروه دی۔ (امداد الفتاوٰی ج ۱، ص ۳۹، فصل فی التیمم) و مثله فی امداد الاحکام ج ۱، ص ۴۴۰، آداب المساجد)

## په تیمم کښې د ږیرې د خلالولو حکم

**سوال:** په اوداسه کښې خو د ږیرې خلالول سنت دي لیکن آیا په تیمم کښې د ږیرې خلالول څه حکم لري؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په تیمم کښې د ږیرې خلالول سنت دي لیکن د خلالولو لپاره ئې مستقله ضربه په تیمم کښې نشته۔

قال العلامة ابن عابدینؒ: و فی الفیض و یخلل لحیته و اصابعه و یحرك الخاتم و القرط کا لوضوء و الغسل آه. قلت لکن فی الخانیة ان تخلیل الاصابع لا بد منه لیتم الاستیعاب و قال فی البحر و کذا نزع الخاتم او تحریکه آه فبقی تخلیل اللحیة من السنن. (رد المحتار علی الدر المختار ج ۱، ص ۲۳۲، باب التیمم)

## د جنازې د لمانځه لپاره د تیمم حکم

**سوال:** د اوبو د موجود والي تر څنګ که چېرته د جنازې د فوت کیدو خطره وي نو تیمم جائز دی او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** هر هغه لمونځ چه خلیفه (قائم مقام) و نه لري او د قضا را ګرځول ئې ممکن نه وي او د هغه د فوت کیدو خطره وي نو د دې مجبورۍ په اساس د هغه د ادا کولو لپاره تیمم کول جائز دي۔ لهٰذا د جنازې د لمانځه د فوت کیدو له وجهې تیمم جائز دی۔ بیا هم د مړي ولي له دې حکم څخه مستثنٰی دی او د هغه لپاره اودس کول ضروري دي۔ ن

قال العلامة الحصکفیؒ: و جاز لخوف فوت صلٰوة الجنازة ای کل تکبیراتها و لو جنباً. او فوت عید بفراغ امام او زوال الشمس)

قال ابن عابدینؒ: (قوله و جاز لخوف فوت صلٰوة جنازة) ای لو کان الماء قریباً (قوله کل تکبیراتها) فان کان یرجوا ان یدرك البعض لا یتمم لانه یمکنه اداء الباقی وحده. بحر عن البدائع و القنیة. (رد المحتار علی الدر المختار ج ۱، ص ۲۴۱، باب التیمم)

قال فی الهندیة: و یجوز التیمم اذا حضرته جنازة الولی غیره فخاف ان اشتغل با لطهارة ان تفوته الصلٰوة و لا یجوز للولی و هو الصحیح هکذا فی الهدایة. (الهندیة ج ۱، ص ۳۱، الفصل الثالث فی المتفرقات) و مثله فی مختصر القدوری ص ۱۵، باب التیمم)

## د قرآن د تلاوت لپاره تیمم جائز دی

**سوال:** آیا د قرآن مجید د تلاوت لپاره پرته له عذر څخه تیمم جائز دی او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د تلاوت لپاره اودس شرط نه دی او هر هغه عبادت چه د هغه لپاره اودس شرط نه وي د هغه ادا کول بې له اودسه هم صحیح وي۔ لیکن سره له دې تیمم ورته مستحب دی۔ رسول اللهﷺ یو ځل یو اخې د سلام د ځواب د ادا کولو لپاره تیمم وهلی دی۔

قال محمد عبد الحیؒ: و یتمم لذکر الله و لکل خیر و لو السلام قال ابن عمرؓ مرّ رجل من المهاجرین علی رسول اللهﷺ و هو یبول فسلّم علیه و لم یرد علیه حتٰی کاد الرجل یتواری عنه ثم یتمم فرد السلام و قال لم یمنعنی ان ارد علیك السلام الا انی لم اکن علٰی طهر ففی هٰذا الحدیث دلالة علی کراهة الکلام و عدم استحباب السلام و رده فی هٰذا المقام و علی انه یستحب ان یکون ذکر الله علی الوضوء او التیمم لان السلام اسم من اسماء الله تعالٰی کذا فی



المصابیح و نحوه ای یتیمم ایضاً لمثل ذٰلك المذکور کمس المصحف و قرأة القرآن عنه او عن ظهر القلب. و زیارة القبور و دفن المیّت و الآذان و الاقامة و الدخول فی المسجد او خروجه و لو عند وجود الماء صرح به فی شرح النقایة نقلاً من المبسوط. (السعایة ج ۱، ص ۵۳۲، باب التیمم)

قال العلامة محمد یوسف البنوریؒ: و یجوز التیمم مع وجود الماء لما لیس الطهور شرطاً فی فعله و حله کدخول المسجد للمحدث و کذا النوم او قرأة القرآن علٰی ظهر القلب..... الخ. (معارف السنن ج ۱، ص ۴۹۷، بیان مسئلة جواز التیمم مع وجود الماء لما لم یکن الطهور شرطاً.

## د عذر د چښتن لپاره د خادم د نشت والي په صورت کښې د تیمم حکم

**سوال:** که چېرته د چا په لاس او پښو باندې د اسې مرض لګیدلی وي چه له وجهې ئې نوموړی پخپله په اوداسه باندې قادر نه وي نو آیا د اسې څوك به د اوداسه لپاره خادم نیسي او که تیمم به وهي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په د اسې سړي باندې د خادم د نیولو ضرورت نشته۔ کله چه د معاون یا خادم کوم ممکن صورت ورته میسر وي نو اودس به کوي او که نه نو په تیمامه سره به لمونځ کوي۔

قال ابن نجیمؒ: او کان لا یجد من یؤضئه و لا یقدر بنفسه اتفاقاً و ان وجد خادماً کعبده و ولده و اجیره لا یجز به التیمم اتفاقاً. (البحر الرائق ج ۱، ص ۱۴۰، باب التیمم)

قال العلامة الحصکفیؒ: او لم یجد من یؤضئه فان وجد و لو بأُجرة مثل و له ذٰلك لا یتیمم فی ظاهر المذهب. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج ۱، ص ۲۳۳، باب التیمم) و مثله فی الهندیة ج ۲، ص ۲۸، باب التیمم.

## د جنابت په تیمم باندې د اودس ماتیدل هیڅ اثر نه کوي

**سوال:** یو جنوب سړی که چېرته د کوم عذر له وجهې تیمم وکړي او له هغه نه وروسته ئې اودس مات شي او تر اوسه پورې ئې په غسل باندې هم قدرت نه وي پیدا کړی۔ نو آیا د اوداسه د کولو تر څنګ به د جنابت لپاره دوباره تیمم وهي او که مخکښینی تیمم ئې د جنابت لپاره کافي دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** تر څو پورې چه عذر باقي وي نو د جنابت لپاره هم هغه یو تیمم کافي دی۔ د غسل کوم واجبوونکی عمل چه تر څو پورې دوهم ځل متحقق شوی نه وي نو په اوبو باندې د قدرت د پیدا کولو تر وخته پورې د جنابت لپاره د دوهم تیمم ضرورت نشته۔ البته چه اودس ئې کله مات شي نو دوباره به باقاعده اودس کوي۔ لیکن که چېرته د دوهم ځل لپاره احتلام شي یا جماع وکړي نو بیا به د دوهم جنابت لپاره دوهم ځل تیمم وهي۔

قال ابراهیم الحلبیؒ: و ان کان الماء یکفی للوضوء و لا یکفی للمعة یتوضأ به و لا ینتقض تیمم الجنابة لان الماء فی حق اللمعة کا لمعدوم لعدم کفایته لها. (کبیری ص ۸۶، باب التیمم)

قال فی الهندیة: لو کان مع الجنب ما یکفی للوضوء یتیمّم و لا یجب التوضؤ به الا اذا کان مع الجنابة حدث یوجب الوضوء. (الهندیة ج ۱، ص ۳۰، الفصل الثالث فی المتفرقات)

# باب المسح علی الخفین
## (په موزو باندې د مسح احکام او مسئلې)
### تر ښنګري پورې په موزو باندې د مسح د کولو حکم

**سوال:** که چېرته موزې د مضبوط ډول څرمن څخه د اسې جوړې شي چه ښنګري پرې پټ شي نو آیا په د اسې موزو باندې مسح جائزه ده او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په موزو باندې د مسح د جواز لپاره دا ضروري ده چه په هغو کښې ښنګري پټ شي بلکه که چېرته د پنډۍ څه برخه پکښې پټه شي نو بیا هم په مسح کښې کوم فرق نه راځي۔

قال فی الهندیة: منها ان یکون الخف مما یمکن قطع السفر به و تتابع المشی علیه و یستر الکعبین و ستر ما فوقهما لیس بشرط هٰکذا فی المحیط حتٰی لو لبس خفاً لا ساق له یجوز المسح ان کان الکعب مستوراً. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۳۲، الباب الخامس فی المسح علی الخفین)

قال العلامة الحصکفیؒ: شرط مسحه ثلاثة امور الاوّل کونه ساتراً محل فرض غسل القدم مع الکعب. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۲۶۱، باب المسح علی الخفین)

### له جـــــرابو سره په موزو باندې د مسح حکم

**سوال:** که چېرته یو څوك لومړی جرابې په پښو کړي او بیا پرې د پاسه موزې واغوندي آیا په د اسې صورت کښې په موزو باندې مسح کیږي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په صورت مسئوله کښې مسح په اصل حقیقت کښې په موزو باندې کیږي او د موزو لاندې جرابې په پښو کول د مسح لپاره کوم مانع عمل نه دی۔ له دې وجهې له جرابو سره هم په موزو باندې مسح روا کیږي۔

قال ابن عابدینؒ: (قوله او جرموقیه و لو فوق خُفٍ او لفافة ای سواء کانت ملفوفة علی الرجل تحت الخف او کان مخیطة ملبوسة تحته کما افاده فی شرح المُنیة. (رد المحتار علی الدر المختار ج۱، ص۲۶۸/۲۶۹، باب المسح علی الخفین)

قال ابراهیم الحلبیؒ: یعلم منه جواز المسح علی خفٍ لبس فوق خف مخیط من کرباس او جوخ او نحوهما مما لا یجوز علیه المسح لان الجرموق اذا کان بدلاً عن الرجل و یجعل ما لا یجوز المسح علیه فی حکم العدم اولٰی ما فی اللفافة. (کبیری ص۱۱۲، فصل فی المسح علی الخفین) و مثله فی البحر الرائق ج۱، ص۱۸۱، باب المسح علی الخفین)



### په جـــــرابو باندې د مسح شرطونه

**سوال:** په جرابو باندې د مسح د کولو په باره کښې د شریعت حکم څه دی؟ ځینې خلك د اسې دي چه هغوی له نیلون څخه په جوړو شویو جرابو مسح کوي۔ په شریعت کښې په د اسې صورت کښې اودس کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د متواترو احادیثو له مخې په موزو باندې مسح ثابته ده۔ موزې په عمومي توګه له څرمنې څخه جوړې شوي وي نو د دې لپاره په مطلق جرابو باندې مسح جائزه نه ده۔ البته علماوو په جرابو باندې د مسح کولو لپاره څلور شرطونه لګولي دي چه په لاندې ډول دي:

﴿۱﴾ د اسې سختې او ډبلې وي چه درې میله (دولس زره ګامه) پرته له څپلۍ څخه تګ ورسره ممکن وي۔

﴿۲﴾ د اغوستلو په صورت کښې په پنډیو باندې پخپله باید لګیدلې وي او ښکته نه راځي۔

﴿۳﴾ او د لاندې له خوا څخه اوبو نه جذبوي۔

﴿٤﴾ د پاسه له کتلو څخه د ننه پښه نه ترې معلومیږي۔

لکه څرنګه چه په اوسني نیلوني جرابو کښې دا شرطونه موجود نه دي نو د دې لپاره مسح پرې جائزه نه ده۔ او چه څوك ئې پرې وکړي نو اودس به ئې نیمګړی وي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: او جوربیه و لو من غزل او شعر الثخنین بحیث یمشی فرسخاً و یثبت علی الساق بنفسه و لا یرٰی ما تحته و لا یشف الا ان ینفذ الی الخفّ قدر الفرض. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۱، ص۲۶۹، باب المسح علی الخفین)

قال ابن نجیمؒ: (قوله و الجورب المجد و المنعل و الثخنین) ای یجوز المسح علی الجورب اذا کان مجلداً او منعلاً او ثخیناً (و بعد اسطر) و الثخنین ان یقوم علی الساق من غیر شد و لا یسقط و لا یشف و فی التبیین و لا یرٰی ما تحتهٗ. (البحر الرائق ج۱، ص۱۸۲، باب المسح علی الخفین) و مثله فی خلاصة الفتاوٰی ج۱، ص۲۸، باب المسح علی الخفین.

### په بوټونو بـــــاندې د مسح حکم

**سوال:** که چېرته یو څوك د اسې بوټونه په پښو کړي چه ښنګـــــري ئې پکښې پټ وي او مضبوط هم دومـــــره وي چه پرې کیدل ئې نه وي نو آیا په د اسې بوټونو باندې مسح جائزه ده او که نه؟ او څرګنده دې وي چه په هغو باندې له دریو میلونو څخه زیـــــات سفر هم پرې کولی شي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په د اسې بوټانو باندې د مسح د جواز ټول شرائط موجود دي له دې وجهې مسح پرې جائزه ده۔

قال العلامة الحصکفیؒ: شرط مسحه ثلاثة امور الاول کونه ساتراً لقدم مع الکعب او یکون نقصانه اقل من

الخرق المانع فیجوز علی الزربول لو مشدوداً. و الثانی کونه مشغولاً با لرجل لیمنع سرایة الحدث. الثالث کونه مما یمکن متابعة لمشی المعتاد فیه فرسخا فاکثر. قال ابن عابدینؒ (قوله لو مشدوداً) لان شدة بمنزلة الخیاطة و هو مستمسك بنفسه بعد الشد کا لخفّ المخیط بعضه ببعض فافهم. و فی البحر عن المعراج و یجوز علی الجاروق المشقوق علی ظهر القدم و له ازرار یشدها علیه تسده لانه کغیر المشقوق..... الخ. (رد المحتار علی الدر المختار ج۱ ص ۲۶۱ تا ۲۶۳، باب المسح علی الخفین)

قال ابن نجیمؒ: و یجوز علی الجاروق المشقوق علی ظهر القدم و له ازرار یشده علیه یسده لانه کغیر المشقوق و ان ظهر من ظهر القدم شیء فهو کخروق الخفّ. (البحر الرائق ج۱، ص۱۸۳، باب المسح علی الخفین) و مثله فی خلاصة الفتاوٰی ج۱، ص۲۸، باب المسح علی الخفین)

## په ګوتو کښې د ورم د پیدا کیدو له وجهې په پښو باندې د مسح حکم

**سوال:** د ژمي په موسم کښې ډیر وارې په پښو کښې سوزش پیدا کیږي او ګوتې شریږي چه له وجهې نې د اوبو له استعمالولو څخه تکلیف نور هم زیاتیږي۔ نو آیا په د اسې پښو باندې مسح جائزه ده او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په نوموړې صورت کښې که چېرته د سړو اوبو په استعمالولو سره سـرې ته تکلیف وي نو ګرمې اوبو دې استعمالې کړي او کـه چېرته د ګرمو اوبو استعمال هم ورته د تکلیف باعث وي نو بیا مسح ورته جائزه ده۔ البته که چېرته د پټۍ لاندې مسح کول ورته تکلیف نه وو نو بیا دې په څرمن باندې مسح وکړي او که چېرته په څرمنې باندې په مسح کولو کښې تکلیف وو او د مرض د زیاتوالي خطـــره وه نو بیا دې په پټۍ باندې مسح کول ورته جـــائز دي۔

قال ابن نجیمؒ: و فی شرح الجامع الصغیر لقاضیخان و المسح علی الجبائر علی وجوه ان کان لا یضرّه غسل ما تحته یلزمه الغسل و ان کان یضره الغسل با لماء البارد و لا یضرّه الغسل با لماء الحار یلزمه الغسل با لماء الحار و ان کان یضرّه الغسل و لا یضره المسح یمسح ما تحت الجبیرة و لا یمسح فوقها. (البحر الرائق ج۱، ص۱۸۷، باب المسح علی الخفین)

قال ابراهیم الحلبیؒ: و المسح علی الجبیرة علی وجوهٍ ان کان لا یضرّه غسل ما تحته یلزم الغسل با لاجماع و ان کان یضرّه الغسل ما تحته با لماء البارد و لا یضرّه با لماء الحار یلزمه الغُسل با لماء الحار و ان کان یضرّه الغسل لا یضره المسح یمسح ما تحت الجبیرة و لا یمسح ما فوق الجبیرة. (صغیری ص۶۵، باب المسح) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۳۵، باب المسح.



# بـــــاب الحیض

## (د حیض احکام او مسئلې)

## د حیض په حالت کښې د تسبیح لوستلو حکم

**سوال:** د حیض او نفاس په دوران کښې خو ښځه د قرآنکریم تلاوت نه شي کولی لیکن آیا تسبیحات او قرآني او مسنوني دعاګانې لوستلی شي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د حیض او نفاس په حالت کښې د ښځو لپاره د تسبیحاتو او دعاګانو لوستل جائز دي۔ البته د قرآني دعاګانو د تلاوت په نیت سره لوستل ورته حرام دي او د دعا په نیت سره ورته جائز دي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: و لا یکره النظر الیه ای القرآن لجنب و حائض و نفساء لان الجنابة لا تحل العین کما لا تکره ادعیة ای تحریماً. و الا فا لوضوء لمطلق الذکر مندوب و ترکه خلاف الاولٰی و هو مرجع کراهة التنزیهیة. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۱۷۴، مطلب یطلق الدعاء علی ما یشمل الثناء)

و فی الهندیة: و لا یکره قرأت القنوت فی ظاهر الروایة کذا فی التبیین و علیه الفتوٰی کذا فی التجنیس و الظهیریة و یجوز للجنب و الحائض الدعوات و جواب الآذان و نحو ذٰلك کذا فی السراجیة. (الهندیة ج۱، ص۳۸، الفصل الرابع فی احکام الحیض و النفاس)

## د حیض په حالت کښې له ښځې سره د جماع حکم

**سوال:** د حیض په ورځو کښې له ښځې سره د جماع کولو حکم څه دی؟ او له جماع برسیره لمس (لاس وروړل) او تقبیل (ښکلول) ئې جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له حائضه ښځې سره د قرآني نص له مخې جماع ناجائزه او حرامه ده۔ په د اسې حالت کښې له جماع څخه پرهیز او د ځان ساتنه وکړي۔

لقوله تعالٰی: وَيَسْئَلُوْنَكَ عَنِ الْمَحِيْضِ قُلْ هُوَ اَذًى فَاعْتَزِلُوا النِّسَآءَ فِى الْمَحِيْضِ وَلَا تَقْرَبُوْهُنَّ حَتّٰى يَطْهُرْنَ.

البته له جماع څخه پرته لمس او تقبیل او همدارنګه د ضرورت په وخت کښې له مافوق الازار څخه استفاده جائزه ده۔

قال العلامة الحصکفیؒ: و قربان ما تحت ازار یعنی ما بین سرة و رکبة و لو بلا شهوة و حل ما عداه.

و قال ابن عابدینؒ: تحت قوله (یعنی ما بین سرة و رکبة) فیجوز الاستمتاع با لسرة و ما فوقها و الرکبة و تحتها و لو بلا حائل و کذا بما بینهما بحائل بغیر الوطی. (رد المحتار علی الدر المختار ج۱، ص۲۹۲، باب الحیض.

قال العلامة ابو بکر بن علی الحدادؒ: حرمة الجماع و له ان یقبلها و یضاجعها و یستمتع بجمیع بدنها ما خلا ما بین السرة و الرکبة. (الجوهرة النیرة ج۱، ص۳۵، باب الانجاس) و مثله فی الفتاوی الهندیة ج۱، ص۳۹، الفصل الرابع فی احکام الحیض.

## د ناقص الخلقت بچي په ولادت باندې د نفاس حکم

**سوال:** که چېرته د یوې ښځې د بچي خلقت پوره شوی نه وي یعنې ځینې اند امونه ئې جوړ شوي او ځینې نه وي جوړ شوي یا بالکل اند امونه جوړ شوي نه وي بلکه د غوښې ټکړه وي۔ نو د دې ناقص الخلقت او یا د غوښې د ټکړې له وتلو څخه وروسته له ښځې څخه چه کومه وینه راځي هغې ته نفاس ویل کیږي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته حمل د غوښې یوه ټکړه وي یعنې اند امونه بالکل جوړ شوي نه وي او ضائع شي نو له هغې نه وروسته تلونکې وینه د حیض په حکم کښې ګڼل کیږي په دې شرط چه د حیض تر مودې پورې جاري وي او د حیض له مودې څخه زیاته شوې وینه مرض ګڼل کیږي۔ البته که چېرته د حمل اند امونه جوړ شوي وي نو د هغه د ضائع کیدو نه وروسته به وینه د نفاس وینه ګڼل کیږي۔

قال فی الهندیة: و السقط ان ظهر بعض خلقه من اصبع او ظفر او شعر ولد فتصیر به نفساء هٰکذا فی التبیین و ان لم یظهر شیءٌ من خلقه فلا نفاس لها فان امکن جعل المرئی حیضاً یجعل حیضاً و لا فهو استحاضة. (الهندیة ج۱، ص۳۷، الفصل الثانی فی النفاس)

قال العلامة الحصکفیؒ: و سقط ظهر بعض خلقه کید او رجل او اصبع او ظفر او شعر ولد حُکماً فتصیر المرأة به نفساء و الامة ام ولد فان لم یظهر لهٗ شیء فلیس بشیء و المرئی حیض ان دام ثلاثاً و تقدمه طهر تام و الاستحاضة. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۳۰۲، مطلب احوال السقط) و مثله فی البحر الرائق ج۱، ص۲۱۸، باب الحیض.

## د حیض په ورځو کښې د استعمالیدونکې ځیرې حکم

**سوال:** ځینې ښځې د حیض په ورځو کښې استعمالیدونکې ځیره (کرسف) ګلیو ته غورځوي چه له وجهې ئې د انسان په ذهن کښې عجیب او غریب ډول خیالات پیدا کیږي۔ پوښتنه دا ده چه د داسې ځیرې په باره کښې د اسلامي شریعت حکم څه دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د غیرت او حیا دا تقاضا ده چه د حیض په ورځو کښې استعمالیدونکې ځیره (کرسف) دوباره استعمال نه شي بلکه ښه خبره دا ده چه وسوزول شي او په ګلیو کښې اچول ئې مناسب نه دي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: کل عضو لا یجوز النظر الیه قلب الانفصال لا یجوز بعده کشعر عانته و شعر راسها و عظم ذراع جرّة میتة و ساقها و قلامة زفر رجلها دون یدها و ان النظر الی ملأة الاجنبیة بشهوة حرام. (رد المحتار ج۶، ص۳۷۱، کتاب الکراهیة، فصل فی النظر)

و فی خیر الفتاوٰی: که چېرته له پریمنځلو وروسته دوباره استعمال نه شي نو بیا دې وسوځول شي۔ (خیر الفتاوٰی ج۲، ص۱۳۹، باب الحیض)



## حیض کله او څنګه شروع شو

**سوال:** حضرت مفتي صاحب! یوه مسئله را ته پیښه شوې ده او هغه دا چه حیض کله او څنګه او له چا څخه شروع شوی دی چه تر ننه پورې جاري او ساري ده مهرباني وکړی د دې مسئلې په تولو اړخونو باندې رڼا واچوی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** حیض یو مرض دی چه الله تعالی د آدم علیه السلام لوڼرې پکښې مبتلا کړي دي۔ حضرت حوا علیها السلام غنم او یا کوم بل شی چه له خوړلو څخه ئې منع شوي وو وئې خوړه نو الله تعالی حضرت حوا له دې وجهې په دې مرض باندې اخته کړه او تر ننه پورې د هغې په اولاد کښې دا بیماري روانه ده۔

لما قال العلامة الحصکفیؒ: و سببه ابتداء ابتلاء الله لحوّاء لاکل الشجرة و فی الشامی ای و بقی بناتها الی یوم القیامة و ما قیل انه اول ما ارسل الحیض علی بنی اسرائیل فقد رده البخاری بقوله و حدیث النبی ﷺ اکبر و هو ما رواه عن عائشه رضی الله عنها قالت قال رسول الله ﷺ فی الحیض هٰذا شیء کتبه الله علی بناتِ آدم قال النووی ای انه عام فی جمیع بنات آدم. (رد المحتار ج۱، ص۲۸۳، باب الحیض)

قال الشیخ السید احمد الطحطاویؒ: (قول و سببه ابتداء) ای السبب فی حصوله اولاً (قوله ابتلاء الله لحوّاء) فیه رد علی من قال انه اول ما ارسل علی بنی اسرائیل فان الحدیث دال علی عمومه لجمیع بنات آدم و الحدیث اقوٰی و هو ما روی عن عائشةؓ قالت قال رسول الله ﷺ فی الحیض هٰذا شیءٌ کتبه الله علی بنات آدم. (طحطاوی حاشیة الدر المختار ج۱، ص۱۴۶، باب الحیض)

## د حیض په دوران کښې د هر رنګ اوبه حیض بلل کیږي

**سوال:** د حیض په ورځو کښې له ښځې څخه مختلف ډوله اوبه راځي۔ آیا ټول ډولونه (رنګونه) د حیض دي او که یوازې د سور رنګ وینه یا اوبه حیض ګڼل کیږي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د حیض په ورځو کښې هر رنګ لرونکې اوبه به حیض ګڼل کیږي پرته له خالص سپین رنګ څخه۔ ځکه چه خالصې سپینې اوبه حیض نه دي بلکه هغه پاکۍ او د پاکوالي علامه ده۔ ام المؤمنین حضرت سیده عائشه رضی الله تعالی عنها په خدمت کښې مسلمانې ښځې خپل کرسفونه (هغه ځیره چه د وینې د نه خوریدو لپاره ئې ښځې استعمالوي) لیږل نو هغې به ورته وفرمایل چه انتظار وکړی تر دې پورې چه سپینې اوبه راشي۔

لما قال المرغینانیؒ: و ما تراه المرأة من الحمرة و الصفرة و الکدرة حیض حتی تری البیاض خالصاً. (الهدایة ج۱، ص۴۶، باب الحیض)

قال العلامة الحصکفیؒ: و ما تراه المرأة من لو ککدرة و تربیة فی مدته المعتادة سوٰی بیاض الخالص. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۲۸۹، باب الحیض)

## حائضه ښځه دې د لمانځه په وختونو کښې ذکر او اذکار خپل معمول جوړ کړي

**سوال:** د حیض په حالت کښې ښځې ته د لمانځه د کولو اجازه نشته. آیا یوه ښځه د خپل معمول د همیشه والي لپاره د لمانځه په وختونو کښې چه پخپلې مصلی باندې د کښیناستلو په صورت کښې تسبیح، تهلیل او نور اذکار کولی شي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د حائضه ښځې لپاره مستحبه د اده چه د لمانځه په وختونو کښې دې اودس وکړي او پخپلې مصلې دې کښیني او تر دومره وخته پورې دې تسبیح، تحمید، تهلیل او د لسې نور اذکار وکړي چه تر څومره وخته پورې ئې مخکښې لمونځ کاوه تر څو چه معمول کښې ئې فرق رانه شي۔

قال ابن عابدینؒ: و یستحب لها ان تتوضأ لوقت کل صلوٰة و تقعد علی مُصلاّها و تسبّح و تهلل و تکبر بقدر ادائها کی لا تنسیٰ عادتها و فی روایة یکتب لها احسن صلوٰة کانت تصلّی. (رد المحتار ج١، ص٢٩٠، باب الحیض)

قال العلامة عالم بن العلاء الانصاریؒ: و یستحب للمرأة الحائض اذا دخل علیها وقت الصلوٰة ان توضأ و تجلس عند مسجد بیتها. و فی السراجیة مقدار ما یمکن اداء الصلوٰة لو کانت طاهرة و تسبّح و تهلل کیلا تزول عنها عادة العبادة. (الفتاوی التاتارخانیة ج١، ص٣٣٢، باب الحیض، نوع فی الاحکام التی تعلق با لحیض) و مثله فی الهندیة ج١، ص٣٨، الباب السادس فی الدماء المختصة با لنساء، الفصل الرابع فی احکام الحیض.

## د حیض په حالت کښې د جماع حکم

**سوال:** ځیني خلک په د اسې حال کښې چه له شرعي احکامو او د حیض او نفاس له مسائلو څخه خبر نه وي له خپلو ښځو د حیض او نفاس په حالت کښې جماع کوي نو آیا د شریعت له مخې د هغوی د اعمل څه حکم لري؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د حیض په دوران کښې له ښځې سره جماع د قرآنکریم او نبوي ﷺ احادیثو د تصریحاتو له مخې ناجائزه، حرامه او ګناه کبیره ده. په دې دوران کښې له خپلې ښځې سره سرې باید جماع و نه کړي. البته که چېرته یو څوک د غلطۍ او بې علمۍ له وجهې د حیض په ابتدائي ورځو کښې جماع وکړي نو یو دینار او که په آخري ورځو کښې ئې جماع وکړي نو نیم دینار صدقه کول افضل دي او توبه او استغفار پرې واجب دی۔

لما قال العلامة حسن بن عمارؒ: و یحرم با لحیض و النفاس الجماع و الاستمتاع بما تحت السرة الی تحب الرکبة لقوله تعالی: وَ لاَ تَقْرَبُوهُنَّ حَتّٰی یَطْهُرْنَ......... و قوله ﷺ "لك ما فوق الازار" فان وطئها غیر مستحل له یستحب ان یتصدّق بدینار و نصف و یتوب و لا یعود و جزم فی المبسوط و غیره بکفر مستحله. (مراقی الفلاح علی صدر الطحطاوی ص١١٦، باب الحیض)

و فی الهندیة: فان جامعها و هو عالم با لتحریم فلیس علیه الا التوبة و الاستغفار و یستحب ان یتصدق بدینار و نصف دینار. (الهندیة ج١، ص٣٩، الفصل الرابع فی احکام الحیض و النفاس الخ) و مثله فی الدر المختار علی صدر رد المحتار ج١، ص٢٩٧، کتاب الحیض.



## د حیض په حالت کښې د قرآنکریم د ورښوولو حکم

**سوال:** نن صبا د نجونو په مدارسو کښې ښځې استاذانې دي نو آیا د هغوی لپاره د حیض په حالت کښې نجونو ته د قرآنکریم ورښوول جائز دي او که نه؟ په د اسې حال کښې چه د قرآنکریم ورښوول یو ضروري کار دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په شریعت مقدسه کښې حائضه ښځې ته د قرآنکریم ورښوول جائز نه دي لیکن چېرته چه تلاوت ضروري وي هلته د مفتیٰ بهٖ قول له مخې د تعلیم په نیت سره په تکي لوستل جائز دي۔ اګر که د امام طحاويؒ د تحقیق مطابق نیم آیت هم لوستلی شي۔

قال ابن عابدینؒ: (قوله و قراۃ القرآن) ای ولو دون آیة من المرکبات لا المفردات لانه جوز للحائض المعلّمة تعلیمه کلمة کلمة کما قدمناه انتهیٰ. (رد المحتار ج١، ص٢٩٣)

قال الشیخ السید احمد الطحطاویؒ: قوله و قراۃ القرآن) ای یمنع الحیض و مثله الجنابة قراۃ قرآن و شمل اطلاقه الآیة و ما دونها و هو قول الکرخی و صححه صاحب الهدایة فی التجنیس و قاضیخان فی شرح الجامع الصغیر و الولوالجی فی فتواه و مشی علیه المصنف فی المستصفی و قواه فی الکافی و نسبه صاحب البدائع الی عامة المشایخ. (طحطاوی حاشیة الدر المختار ج١، ص١٥٠، باب الحیض) و مثله فی التاتارخانیة ج١، ص٣٣٣، باب الحیض، نوع فی الاحکام التی تتعلق با لحیض.

## د حائضه ښځې لپاره د دیني کتابونو د مطالعې حکم

**سوال:** د حیض په حالت کښې ښځې ته د دیني کتابونو کتل جائز دي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د حیض په حالت کښې له قرآنکریم څخه پرته د نورو دیني کتابونو کتنه شرعاً منع نه دي۔ البته د مطالعې لپاره ئې اخیستل او د پاڼې اړول ئې له پوښ یا غلاف څخه پرته مکروه دي۔

لما قال العلامة ابن الهمامؒ: قالوا یکره مس کتب التفسیر و الفقه و السنن لانها لا تخلوا عن آیات القرآن و هٰذا التعلیل یمنع شروح النحو ایضاً. (فتح القدیر ج١ ص١٥٠، باب الحیض)

قال ابن نجیمؒ: قالوا یکره مس التفسیر و الفقه و السنن لانها لا تخلوا عن آیات القرآن و لهٰذا التعلیل یمنع مس شروح النحو ایضاً. (البحر الرائق ج١، ص٢٠١، باب الحیض) و مثله فی التاتارخانیة ج١، ص٣٣٣، باب الحیض، نوم فی الاحکام التی تتعلق با لحیض.

## د حیض په حالت کښې د آیت الکرسي تلاوت

**سوال:** زه اکثره د شپې په خوب کښې ډاریږم یوه صاحب ماته ویلي دي چه آیت الکرسي تلاوت کوه۔ نو آیا د حیض په حالت کښې زه آیت الکرسي لوستلی شم او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د اسې خو شرعاً د حائضې او جنوب لپاره د قرآنکریم تلاوت جائز نه دی لیکن که چېرته یو قرآني آیت د دعا په نیت سره ولولي نو له کراهیت پرته جائز دي۔ البته د تلاوت په نیت سره ئې مه لولی۔

لما قال ابن عابدینؒ: (و قرأة القرآن بقصده) ای فلو قرأت الفاتحة علی وجه الدعاء او شیئاً من الآیات التی فیها معنی الدعاء و لم ترد القرأة لا بأس به الخ. (رد المحتار ج۱، ص۲۹۳، باب الحیض)

قال الشیخ السید احمد الطحطاویؒ: (قوله بقصده) اما اذا قرأ علی قصد الثناء او افتتاح امر لا یمنع فی اصح الروایات و التسمیه لا تمنع اتفاقاً اذا کانت علی قصد الثناء او افتتاح امر خلاصة و فی العیون لابی اللیث و لو قرأ الفاتحة علی سبیل الدعاء او شیئاً من الآیا ت التی فیها معنی الدعاء و لم یرد به القرأة فلا بأس به. (طحطاوی حاشیة الدر المختار ج۱، ص۱۵۰، باب الحیض)

## د حائضه ښځې په لاس د پاخه شوي شیانو حکم

**سوال:** حائضه ښځه د حیض په ورځو کښې خوراکونه او د اسې نور شیان پخوي او خپل بچي ته شیدې هم ورکوي. نو آیا د دوی په لاس د پاخه شوي شیانو او خپل بچي ته د حیض په حالت کښې د شیدو ورکولو حکم څه دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** اسلام د فطرت دین دی او د یهودیانو غوندې په دې حالت کښې ئې ښځه د یوه مردار شي غوندې نه دی ګڼلی او نه ئې د نصاراوو غوندې د مخکښیني پاك حالت غوندې له ګڼلو سره د استعمالولو حکم ورکړی دی بلکه په کومو کومو ځایونو کښې چه پرهیز ممکن وي هلته ئې ممانعت فرمایلی دی او په کومو ځایونو کښې چه خلاصون نه وي هلته ئې د جواز حکم ورکړی دی. د دې لپاره د حائضه په لاس د پاخه شوي شیانو له خوړلو او په دې حالت کښې خپل بچي ته د شیدو ورکولو څخه خلاصون نه وي. نو له دې وجهې د دې په لاس د پاخه شوي شیانو خوړل او خپل بچي ته شیدې ورکول جائز دي. البته مستحبه دا ده چه د دغو کارونو لپاره دې ښځه اول اودس وکړي او بیا دې خپلو کارونو ته انجام ورکړي.

لما قال الشیخ السید احمد الطحطاویؒ: و له ان یقبلها و یضاجعها و لا یکره طبخها و لا استعمال ما مسته من عجین او ماء او غیرهما. (طحطاوی حاشیة مراقی الفلاح ص۱۱۶، باب الحیض)

قال الشیخ السید احمد الطحطاویؒ: و لا یکره طبخها و لا استعمال ما مسته من عجین او ماءٍ او غیرهما الا اذا توضأت بقصد القربة کما هو المستحب الخ. (طحطاوی حاشیة الدر المختار ج۱، ص۱۴۹، باب الحیض)

## د آپریشن په ذریعې سره د بچي له ایستلو څخه وروسته د وینې حکم

**سوال:** نن صبا له ډیرو ښځو څخه د آپریشن په ذریعې سره بچي ایستل کیږي. نو له آپریشن څخه وروسته چه کومه وینه راځي آیا هغه د نفاس په حکم کښې ده او که څنګه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** نفاس هره هغه وینه ده چه د بچي له پیدا کیدو وروسته د مور له رحم څخه روانه وي. که بچی ئې د آپریشن په ذریعه را ایستل شوی وي او که پخپله په فطري توګه پیدا شوی وي. نو اوس که چېرته راتلونکې وینه له رحم څخه وي نو نفاس دی او که د آپریشن له ځای څخه راځي نو نفاس نه دی او په ښځې باندې به اودس او لمونځ لازم وي.



لما قال العلامة الحصکفیؒ: و النفاس لغة ولادة المرأة و شرعاً دم یخرج من رحم فلو ولدته من سرتها إن سال الدم من الرحم فنفساء و الا فذات جرح و ان ثبت له احکام الولد عقب ولد او اکثر منقطعاً عضوا عضوا لا اقله. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۲۹۹، باب الحیض)

قال الشیخ السید احمد الطحطاویؒ: قوله فلو ولدته من سرتها) بان کان بها جرح فا نشقت و خرج الولد منها (قوله فنفساء) لانه وجد خروج الدم من الرحم عقب الولادة (قوله الا فذات جرح) یعنی لا تعطی حکم النفساء (قوله و ان ثبت له احکام الولد) من القضاء العدة و صیرورة الامّة به ام الولد و لو علق الطلاق بولادتها وقع لوجود الشرط. (طحطاوی حاشیة الدر المختار ج۱، ص۱۵۳، باب الحیض) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۳۷، الباب السادس فی الدماء المختصة با لنسآء، الفصل الثانی فی النفاس.

## له ولادت څخه مخکښې د راتلونکې وینې حکم

**سوال:** کله کله له ولادت څخه مخکښې له ښځې څخه د وینې راتلل شروع کیږي. د دې وینې څه حکم دی؟ او په دې دوران کښې نوموړې ته د لمانځه او د اسې نورو احکامو په ځای کول جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** نفاس هرې هغې وینې ته ویل کیږي چه د بچي له پیدا کیدو څخه وروسته راځي او حیض هغې وینې ته ویل کیږي چه پرته له کوم سبب څخه له رحم څخه راځي. په نوموړې صورت کښې په دې وینې باندې د نفاس تعریف نه صادقیږي ځکه چه د بچي له ولادت څخه مخکښې راغلې ده. او نه د حیض په حکم کښې راځي ځکه چه د رحم خوله د بچي له وجهې بنده ده نو د دې لپاره دا وینه د استحاضه په حکم کښې ده چه په دې دوران کښې هر ډول عبادت ورته جائز دی.

قال برهان الدین المرغینانیؒ: و الدم الذی تراه الحامل ابتداء او حال ولادتها قبل الولد استحاضة. (الهدایة ج۱، ص۵۲، کتاب الحیض)

و فی الهندیة: و کذا ما تراه الحامل ابتداء او حال ولادتها قبل خروج الولد. (الهندیة ج۱، ص۳۸، الباب السادس فی الدماء المختصة الخ، الفصل الثالث فی الاستحاضة. و مثله فی الفقه الاسلامی و ادلته ج۱، ص۴۶۵، المبحث الثانی فی تعریف الناس و مدته.

## له حائضه څخه د انتفاع اخیستلو حکم

**سوال:** له حائضه ښځې سره جماع د قرآنکریم د آیت له مخې حرامه ده لیکن آیا له دې څخه مطلقاً انتفاع اخیستل جائز دي او که څه ګنجائش پکښې نشته؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** اسلام له حائضه ښځې سره جماع حرامه کړې ده او له جماع پرته لستمتاع شرعا کومه بده خبره نه ده. نو د دې لپاره فقهاء کرامو لیکلي دي چه د سرې لپاره له حائضې څخه له نامه څخه پورته او له زنګنو څخه کښته استمتاع پرته له کومې پردې څخه جائزه ده او له نامه څخه کښته او له زنګنونو څخه پورته له حائل سره یعنې د پرتاګه له پلسه استمتاع جائزه ده.

لما قال العلامة ابن العابدینؒ: (تحت قوله یعنی ما بین سرة و رکبة) فیجوز الاستمتاع با لسرة و ما فوقها و

الرکبة و ما تحتها و لو بلا حائل و کذا بحائل بغیر الوطیء و لو تلطخ دماً. (رد المحتار ج ۱، ص ۲۹۲، باب الحیض)

و فی الهندیة: و له ان یقبلها و یضاجعها و یستمتع بجمیع بدنها ما خلا بین السرة و الرکبة عند ابی حنیفةؒ و ابی یوسفؒ. (الهندیة ج ۱، ص ۳۹، الباب السادس، الفصل الرابع فی احکام الحیض و النفاس)

## د ستنې په ذریعې سره د حیض د بندولو حکم

**سوال:** نن صبا د اسې ستنې شته چه په لګولو سره ئې ښځو ته حیض نه راځي یعنې حیض ئې بندیږي خصوصا د حج په ورځو کښې ښځې د اسې ستنې لګوي. که چېرته د کومې ښځې د حیض وخت او میعاد پوره وي او وخت ئې هم ټاکلی وي چه په هره میاشت کښې هغې ته حیض ورځي. او د ستنې په ذریعې سره په دې میاشت کښې ئې وینه را نه شي نو آیا دا ښځه د خپل حیض په نیته کښې چه د ستنې په ذریعې سره ئې وینه بنده ده لمونځ، روژه او د اسې نور عبادتونه کولی شي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** حیض د هغې وینې په لیدلو پورې اړه لري چه پرته له کوم سبب څخه له رحم څخه راځي ګواکه حیض د وینې راتلو ته ویل کیږي. په صورت مسئوله کښې چونکه وینه د ستنې په ذریعې سره بنده شوې ده نو د دې لپاره یوازې ورځو ته حیض نه ویل کیږي او نه د حیض احکام پرې جاري کیږي بلکه د اسې ښځې ته لمونځ، روژه، طواف او د اسې نور ټول عبادات جائز بلکه لازمي دي.

قال العلامة عالم بن العلاء الانصاریؒ: یجب ان یعلم بان حکم الحیض و النفاس و الاستحاضه لا یثبت الا بخروج الدم و ظهوره و هٰذا هو ظاهر مذهب اصحابنا و علیه عامة المشائخ. (الفتاوی التاتارخانیة ج ۱، ص ۳۳۰، کتاب الحیض، نوع فی بیان انه متٰی یثبت حکم الحیض)

و فی الهندیة: اذا رأت المرأة الدم تترک الصلٰوة من اوّل ما رأت قال الفقیه و به ناخذ. (الهندیة ج ۱، ص ۳۸، الباب السادس، الفصل الرابع فی احکام الحیض و النفاس)

## د پنځلسو ورځو د طهر (پاکوالي) له تیریدو څخه وروسته د وینې د راتلو حکم

**سوال:** که چېرته د یوې ښځې د حیض له تیریدو څخه وروسته دوباره وینه راشي نو آیا دا وینه به حیض ګڼل کیږي او که نه؟ او د پاکوالي کمه موده څو ورځې ده؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د حنفي فقهې د تصریحاتو په رڼا کښې د طهر کمه موده پنځلس ورځې ده. که چېرته وینه د پنځلسو ورځو له تیریدو څخه مخکښې بیا راشي او د دې ښځې کوم ټاکلی عادت نه وي نو دا وینه چه د پنځلسو ورځو له تیریدو څخه مخکښې شروع شوې ده د پنځلسو ورځو تر پوره کیدو پورې به استحاضه ګڼل کیږي او له هغه څخه وروسته به حیض ګڼل کیږي.

لما قال العلامة الحصکفیؒ: و اقل الطهر بین الحیضتین او النفاس و الحیض خمسة عشر یوما و لیالیها اجماعاً. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج ۱، ص ۲۸۵، باب الحیض)

قال العلامة عالم بن العلاء الانصاریؒ: و من جمة ذٰلک الدم المتخلل فی اقل مدة الطهر و لا یمکن معرفة ذٰلک الا بعد معرفة اقل الطهر و اقله خمسة عشر یوما عندنا. (الفتاوی التاتارخانیة ج ۱، ص ۳۲۴، کتاب الحیض)



## د جنابت په حالت کښې په کمپیوټر سره د قرآنکریم د لیکلو حکم

**سوال:** د جنابت په حالت کښې د ټایپ په مشین یا کمپیوټر په ذریعې سره د قرآني آیتونو لیکل څنګه دي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په شریعت مقدسه کښې اصل شی د قرآنکریم احترام او عظمت دی. همدا وجه ده چه د جنوب لپاره د قرآنکریم تلاوت صحیح نه دی او همدارنګه فقهاء کرامو د جنوب لپاره د قرآنکریم لیکل هم منع کړي دي. چه په ټایپ یا کمپیوټر سره د قرآنکریم د لیکلو هم همدا حکم دی یعنې جائز نه دي. البته د دغو جدیدو آلاتو په ذریعې سره د بې اودسۍ په حالت کښې د قرآنکریم د آیتونو لیکل جائز دي خو په دې شرط چه د قرآن په آیتونو ئې لاس و نه لګیږي.

لما فی الهندیة: و الجنب لا یکتب القرآن و ان کانت الصحیفة علی الارض و لا یضع یده علیها و ان کان ما دون الآیة. (الفتاوی الهندیة ج ۱، ص ۳۹، الفصل الرابع فی احکام الحیض الخ)

قال السید احمد الطحطاویؒ و اما کتابة القرآن فلا بأس بها اذا کانت الصحیفة علی الارض عند ابی یوسف لانه لیس بحامل للصحیفة و کره ذٰلک محمدؒ و به اخذ مشائخ بخارٰی. (الطحطاوی علی مراقی الفلاح ص ۱۱۵، باب الحیض)

## د حائضه ښځې د دمولو حکم

**سوال:** که چېرته حائضه، نفلسه او جنوب مریض شي نو په قرآني آیتونو سره ئې دمولی شي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د وظائفو او اورادو لپاره پاکوالی شرط نه دی او له پاکوالي څخه پرته هم څوک دمولی شي. نو کله چه د دم کوونکي لپاره پاکوالی شرط نه دی نو په چا باندې چه دم کیږي د هغه په درجه اولی سره پاکوالی شرط نه دی. له دې وجهې حائضه یا نفاسه ښځه اګر که پخپله ناپاکه وي لیکن دمول ئې جائز دي.

لما قال العلامة الحصکفیؒ: و لا بأس لحائض و جنب بقرأة ادعیة و مسها و حملها و ذکر اللّٰه تعالٰی و تسبیح و زیارة قبور و دخول مصلی عید. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج ۱، ص ۲۹۳، باب الحیض)

قال السید احمد الطحطاویؒ: (تحت قوله و یحرم قرأة آیة من القرآن الا بقصد الذکر) ای او الثناء او الدعاء ان اشتملت علیه فلا بأس به فی اصح الروایات قال فی العیون و لو انه قرأ الفاتحة علی سبیل الدعاء او شیئاً من الآیات التی فیها معنی الدعاء و لم یرد به القرآن فلا بأس به. (الطحطاوی حاشیة مراقی الفلاح ص ۱۱۴، باب الحیض) و مثله فی البحر الرائق ج ۱، ص ۱۹۹، باب الحیض.

## د مستحاضه حکم

**سوال:** ډیر وارې یوې ښځې ته د حیض او نفاس په موده کښې له خپلې مودې څخه زیاته یا کمه وینه راځي. په دې دوران کښې د اسې ښځې باید څه وکړي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د حیض او نفاس له شرعي مودې څخه د کمو یا زیاتو وینو راتللو ته استحاضه ویل کیږي. په د اسې ښځې یعنې مستحاضه ښځې باندې دا لازمي ده چه د حیض او نفاس د وخت له پوره کیدو څخه وروسته غسل وکړي او بیا به د هر لمانځه لپاره نوی اودس کوي. او د اسې ښځې ته د ټولو هغو عبادتونو کول جائز دي چه د حیض په دوران کښې ورته ناجائز وو.

لما قال العلامة الحصكفیؒ: و دم الاستحاضة حكمه كرعاف دائم وقتاً كاملاً لا يمنع صوماً و صلٰوة و لو نفلاً و جماعا لحديث توضیء و صلی ان قطر الدم علی الحصير. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۲۹۸، باب الحيض)

و فيه: حكمه الوضوء لا غسل ثوبه و نحوه لكل فرض اللام للوقت......... ثم يصلی به فرضاً و نفلاً. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۳۰۶، باب الحيض)

قال العلامة المرغينانیؒ: و المستحاضة و من به سلسل البول و الرعاف الدائم و الجرح الذی لا يرقأ يتوضئون لوقت كل صلوة فيصلون بذلك الوضوء فی الوقت ما شاؤا من الفرائض و النوافل. (الهداية علی صدر البناية ج۱، ص۴۷۹، باب الحيض) و مثله فی الهندية ج۱، ص۳۹، الباب السادس فی الدماء المختصة بالنساء، الفصل الرابع فی احكام الحيض.

## د معذور شرعي تعريف

**سوال:** په شريعت مقدسه كښې د معذور چا ته ويل كيږي تعريف ئې وكړی؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** كله چه يوه مريض ته د لمانځه په ټول وخت كښې د ومره وخت پيدا نه شي چه له مرض پرته پرې تير شي نو د اسې سړي ته معذور ويل كيږي۔

قال العلامة الحصكفیؒ: بان لا يجد فی جميع وقتها زمناً يتوضأ و يصلی فيه خالياً عن الحدث الخ. و هٰذا شرط العذر فی حق الابتداء و فی حق البقاء كفٰی وجوده فی جزء من الوقت و لو مرة الخ. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۳۰۵، مطلب فی احكام المعذور)

قال العلامة حسن بن عمار الشرنبلالیؒ: و لا يصير من ابتلی بناقض معذوراً حتٰی يستوعبه العذر وقتاً كاملاً ليس فيه انقطاع لعذره بقدر الوضوء و الصلٰوة اذ لو وجد لا يكون معذوراً. (مراقی الفلاح علی صدر الطحطاوی ص۱۱۹، باب الحيض) و مثله فی الهندية ج۱، ص۴۰، الباب السادس، الفصل الرابع فی احكام الحيض و النفاس.

## د داسې معذور سړي حكم چه د مالوچ په ايښودلو سره ئې متيازې بنديږي

**سوال:** كه چېرته د مثانې د كمزورۍ له وجهې د انسان متيازې څڅيدلې او د مخنيوي لپاره ئې مالوچ كښيږدي۔ نو آيا په دې حالت كښې هم د وخت په تيريدو سره اودس ماتيږي او كه نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د اودس د ماتيدلو دارو مدار تر احليله پورې د متيازو په وتلو پورې دی۔ له دې وجهې كه چېرته له كومې وجهې د متيازو څاڅكې بندې كړی شي نو تر څو پورې چه متيازې تر احليله پورې نه وي رسيدلی تر هغو ئې اودس نه ماتيږي۔ البته چه كله مالوچ وُ ايستل شي او كرسف لوند شوی وي نو په دې وخت كښې ئې اودس ماتيږي۔

لما قال الشيخ السيد احمد الطحطاویؒ: و فی المضمرات عن النصاب به سلسل بول فجعل القطنة فی ذكره و منعه من الخروج و هو يعلم انه لو لم يخش ظهر البول فاخرج القطنة و عليها بلة فهو محدث ساعة اخراج القطنة فقط و عليه الفتوٰی. (طحطاوی حاشية مراقی الفلاح ص۱۱۹، باب الحيض)

قال الشيخ عبد الحی اللكهنویؒ: اذا خاف الرجل خروج البول فحشی احليله بقطنة و لو لاه يخرج البول فلا بأس به و لا ينقض وضوئه حتٰی يظهر البول علی القطنة و ان ابتل الطرف الداخل كذٰلك ما لم يبتل الظاهر منه. (السعاية ج۱، ص۲۰۱، باب الحيض)



# بـــــاب الانجـــــاس

## (د ګندګيو احكام او مسئلې)

## د خوب په حالت كښې له خولې څخه د وتونكې اوبو حكـــــم

**سوال:** زما له خولې څخه د خوب په حالت كښې ډيرې اوبو را ووځي او ډير ځله مې په كاليو پورې هم لګيږي نو آيا دا اوبو پاكې دي او كه مردارې؟ او كه مردارې وي نو آيا كالي پرې مردار اريږي او كه نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د ژوندي سړي له خولې څخه وتونكې اوبو پاكې دي اګر كه د خوب په حالت كښې له نس څخه هم وتلې وي۔ البته د مړ سړي له خولې څخه وتونكې اوبو مردارې دي۔ د دې لپاره د خوب يا ويښې په حالت كښې د خولې لاړې او وتونكې اوبو پاكې دي او كالي هم نه پرې مرد اريږي۔

لما فی الهندية: لعاب النائم طاهر سواء كان من الفم او منبعثا من الجوف عند ابی حنيفةؒ و محمدؒ و عليه الفتوٰی و اما لعاب الميّت فقد قيل انه نجسٌ. (الفتاوی الهندية ج۱، ص۴۶، باب الانجاس)

قال الشيخ الدكتور وهبة الزحيلی: عرفنا فی انواع المطهرات فی الآدمی الميّت قولين قول الحنفية انه نجس عملاً بفتوٰی بعض الصحابة (ابن عباسؓ و ابن الزبيرؓ) كسائر الميتات........ و اما الماء السائل من فم النائم وقت النوم فهو طاهر كما صرح الشافعية و الحنابلة. (الفقه الاسلامی و ادلته ج۱، ص۱۶۶، الآدمی ميت و ما يسيل من فم النائم)

## د غسل د كولو په وخت كـــــښې د اوبو په لوښي كښې د مستعملو اوبو څاڅكې د لويدلو حكـــــم

**سوال:** د غسل په وخت كښې كه چېرته د بې احتياطۍ له وجې يا سره له احتياطه د مستعملو اوبو څاڅكي د اوبو لوښي ته ولويږي نو آيا اوبو پرې مرد اريږي او كه نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** كه چېرته د اوبو په د غو څاڅكو كښې ظاهري نجاست نه وي يعنې په هغو باندې ظاهري نجاست لرې شوي نه وي نو د كمو څاڅكو په لويدلو سره اوبو نه مرد اريږي ځكه چه له دې څخه بچ كيدل د انسان په وس كښې نه وي۔ بيا هم تر څو چه ممكن وي بايد سړی احتياط ورسره وكړي چه څاڅكې د اوبو لوښي ته ور و نه لويږي۔

قال العلامة الحصكفیؒ: و انتضاح غسالة لا تظهر مواقع قطرها فی الاناء عفو. و قال ابن عابدينؒ و فی الفتح و ما ترشش علی الغاسل من غسالة الميّت مما لا يمكنه الامتناع عنه ما دام فی علاجه لا ينجسه لعموم البلوٰی. (رد المحتار علی الدر المختار ج۱، ص۳۲۵، باب الانجاس)

قال ابن نجيمؒ: ما ترشش علی الغاسل من غسالة الميّت مما لا يمكنه الامتناع عنه ما دام فی علاجه لا ينجسه

لعمومو البلوٰی. (البحر الرائق ج ۱، ص ۲۳۶، باب الانجاس) و مثله فی مراقی الفلاح ص ۸۵، باب الانجاس.

## د پلاستیکي لوښي د پاکولو طـــــــریقه

**سوال:** پلاستیکي لوښی که چېرته په ګندګي ککړ شي نو د هغه د پاکولو طریقه څه ده؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د شریعت له مخې چه کوم لوښی جاذب نه وي یعنې نجاست ئې نه جذب کاوه نو له د اسې لوښي سره که چېرته نجاست ولګیږي نو په درې ځله پرې مینځلو سره پاکیږي۔ په د اسې صورت کښې د بیا بیا پرې مینځلو لپاره وچوالی ضروري نه دی۔

قال ابن عابدینؒ: ای ما لا یتشرب النجاسة مما لا ینعصر یطهّر با لغسل ثلاثاً و لو دفعة بلا تجفیف کا لخزف و الآجر المستعملین کما مرّو کا لسیف و المرآة و مثله ما یتشرب فیه شیء قلیل کا لبدن و النعل. (رد المحتار علی الدر المختار ج ۱، ص ۳۳۲، مطلب فی حکم الوشم)

قال فی الهندیة: و ما لا ینعصر یطهر با لغسل ثلاث مرّاتٍ و التجفیف فی کل مرة لان التجفیف آثراً فی استخراج النجاسة وحد التجفیف ان یخلیه حتٰی ینقطع التقاطر و لا یشترط فیه الیبس هٰذا اذا تشربت النجاسة کثیراً و ان لم یتشرب فیه او تشربت قلیلاً یطهر با لغسل ثلاثاً هٰکذا فی المحیط. (الهندیة ج ۱، ص ۴۲، الباب السابع فی النجاسة)

## د جنوب د خولو حکـــــــم

**سوال:** که چېرته د جنابت په حالت کښې څه وخت په سړي تیر شي او د ګرمي له وجهې ئې له بدن څخه خوله ووځي نو د دې خولې حکم څه دی؟ آیا جامې پرې مرد اریږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د انسان خوله په هر حالت کښې پاکه ده که سړی جنوب وي او که پاك۔ د خولې د پاکوالي تخصیص له اسلام سره دی۔ فقهاء کرامو د پس خوردې او خولې حکم یو ګڼلی دی۔ البته که چېرته کوم اند ام باندې نجاست لګیدلی وي او د خولې په وتلو سره نجاست پوست شي او جامې پرې ککړې شي نو جامې مرد اریږي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: فسؤر آدمی مطلقاً و لو جنباً او کافراً او امرأة و ماکول اللحم طاهر الفم (طاهر) طهور بلا کراهة (وبعد اسطر) و حکم عرق کسؤر. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج ۱، ص ۲۲۲/۲۲۸، مطلب فی السؤر)

قال العلامة ابن نجیمؒ: و عرق کل شیء معتبر بسؤره طهارة و نجاسة و کراهیة. (البحر الرائق ج ۱، ص ۱۲۶، باب الانجاس) و مثله فی تبیین الحقائق ج ۱، ص ۳۱، باب الانجاس.

## له جـــــامو څخه د مني د پاکولو طریقه

**سوال:** که چېرته د چا کالي په مني ککړ شوي وي نو آیا یوازې په ګرولو سره پاکیږي او که مینځلو ته ئې هم ضرورت شته۔ همد ارنګه په نرمې او سختې مني کښې فرق شته او که دواړه یو شی دي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له مني څخه د پاکوالي دوه طریقې دي که چېرته نرمه وي نو له



مینځلو پرته ئې بله چاره نشته او که چېرته سخته وي او وچه شوې وي نو له وچیدلو وروسته په ګرولو سره هم پاکیږي خو چه اثرات ئې پاتې نه شي۔ او د علامه ابن عابدین د تحقیق مطابق دا حکم یوازې د سختې منی لپاره دی که چېرته مني د کومې بیمارۍ له وجهې نرۍ شوې وي نو مینځل ئې ضروري دي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: و یطهر منیّ ای محله یابس بفرك و لا یضر بقاء اثره ان طهر رأس حشفه کان مستنجیا بماء و فی المجتبٰی اولج فنزع فانزل لم یطهر الا بغسله لتلوّثه با لنجس انتهٰی ای برطوبة الفرج فیکون مفرعاً علی قولهما بنجاستها، اما عنده فهی طاهرة کسائر رطوبات البدن. جوهرة. و الا یکن یابساً او لا رأسها طاهر فیغسل کسائر النجاسات و لو دماً عبیطاً علی المشهور بلا فرق بین منیة و لو رقیقاً لمرض به و منیها. قال ابن عابدینؒ (قوله و منها) ای منی المرأة کما صححه فی الخانیة و هو ظاهر الروایة عندنا کما فی مختارات النوازل و جزم فی السراج و غیره بخلافه و رجحه فی الحلیة بما حاصله ان کلامهم متظافر علی ان الاکتفاء با لفرك فی المنی استحسان با لاثر علی خلاف القیاس، فلا یلحق به الا ما فی معناه من کل وجه و النص ورد فی منی الرجل و منی المرأة لیس مثله لرقته و غلظ منی الرجل و الفرك انما یؤثر زوال المفروك او تقلیله و ذٰلك فیما لهٗ جرم و الرقیق المائع لا یحصل من فرکه هٰذا الغرض فیدخل منی المرأة اذا کان غلیظاً و یخرج منی الرجل اذا کان رقیقاً لعارض. (رد المحتار علی الدر المختار ج ۱، ص ۳۱۲/۳۱۳، باب الانجاس)

و فی الهندیة: (و منها) الفرك فی المنی اذا اصاب الثوب فان کان رطباً یجب غسله و ان جف علی الثوب اجزأ فیه الفرك استحساناً. (الهندیة ج ۱، ص ۴۴، الباب السابع فی النجاسة)

## لــــــه مني، مذي او ودي څخه د پاکوالي حکم

**سوال:** آیا د مني، مذي او ودي څخه د جامو د پاکولو دا یوه طریقه ده چه په اوبو سره به ئې سړی مینځي او که د هریوه د پاکوالي ځان ځانته طریقې دي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له مذي او ودي څخه پاکوالی یوازې په اوبو سره حاصلیدلی شي البته د مني د پاکوالي طریقه دا هم ده چه د وچیدو په صورت کښې په ګرولو سره هم پاکیږي خو په دې شرط چه مني نرۍ نه وي۔ او که نرۍ وي نو په اوبو سره ئې مینځل ضروري دي۔

قال طاهر بن عبد الرشید البخاریؒ: اذا حت النجاسة لم یجز الا فی المنی الیابس فان کان رطباً لا یطهر الا با لغسل و هو نجس عندنا (و بعد اسطر) و لکن هٰذا اذا لم یخرج المذی قبل خروج المنی اما اذا خرج المذی ثم خرج المنی لا یطهر الثوب با لفرك. (خلاصة الفتاوٰی ج ۱، ص ۴۱، الفصل السادس فی غسل الثوب و الدهن)

قال ابراهیم الحلبیؒ: و اما الفرك فیزیل النجاسة فی المنی فیطهر الثوب من المنی به ای با لفرك اذا یبس المنی علی الثوب. (کبیری ص ۱۸۰، فصل فی الاسار)

## د کوځه ګشتې چرګې (د جـــــاجه مخلاة) د پس خوردې حکم

**سوال:** په ګلیو او ګندګیو کښې ګرځیدونکې چرګې که چېرته د اوبو په ډك لوښي کښې مښوکه ډوبه کړي نو اوبو پرې مرد اریږي او که نه آیا کومې چرګې چه په پنجره یا کوټه کښې

بندې وي له هغو چرګو سره برابرې دي چه د باندې ګرځیدونکي دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** پس خورده د تل لپاره د د غوښې تابع وي۔ د کوم حیوان چه غوښه حلاله وي د هغه لاړې له اوبو سره د ګډیدو په صورت کښې اوبو نه مرد اریږي۔ لهذا که چېرته د کورنی چرګې مبنوکی له نجاست او ګندګي څخه پاکه وي او د اوبو په لوښي کښې ئې ډوبه کړې وي نو اوبوه نه مرد اروي۔ البته په ګلیو کښې د ګرځیدونکي چرګې مبنوکه په عمومي توګه له نجاست څخه پاکه نه وي نو د دې لپاره د داسې چرګې پس خورده مشکوکه ده لیکن په نجاست باندې ئې حکم نه شي لګیدلی۔

قال حسن بن عمارؒ: و سؤر الدجاجة المخلاة التی تجول فی القاذورات و لم یعلم طهارة منقارها من نجاسة فکره سؤرها للشك فان لم یکن کذٰلك فلا کراهة فیه. (مراقی الفلاح علی صدر الطحطاوی ص ۲۴، فصل فی احکام السؤر)

قال ابن عابدینؒ: و اما المخلاة فلُعابها طاهر فسؤرها کذٰلك لکن لما کانت تأکل العذرة کره سؤرها و لم یحکم بنجاسة للشك حتیٰ لو علمت النجاسة فی فمها تنجّس و لو علمت الطهارة انتفت الکراهة. (رد المحتار علی الدر المختار ج ۱، ص ۲۲۴، باب المیاه) و مثله فی البحر الرائق ج ۱، ص ۱۳۲، مسئلة السؤر)

## د سپي څـــــرمن د دباغت وړ ده

**سوال:** آیا دسپي پوستکی په دباغت سره پاکیږي او که نه؟ په د اسې حال کښې چه د فقهې په عامو کتابونو کښې دي چه پوستکی د دباغت له وجهې پاکیږي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د احنافوؒ په نزد له دې وجهې چه سپی یو نجس العین حیوان نه دی پوستکی ئې په دباغت سره پاکیږي۔ البته د حشرات الارض لکه مار، لړم او خنزیر پوستکي د دباغت وړ نه دي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: و کل اهاب دبغ و لو بشمس و هو یحتملها طهر فیصلی بهٖ و یتوضأ منه و ما لا یحتملها (فلا و علیه) فلا یطهر جلد حیة و فارة خلا جلد خنزیر فلا یطهر (و بعد اسطر) و افاد کلامه طهارة جلد کلب و قیل هو المعتمد. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج ۱، ص ۲۰۴، مطلب فی احکام الدباغة)

قال حسن بن عمارؒ: و یطهر جلد الکلب لانهٗ لیس نجس العین فی الصحیح با لدباغة. (مراقی الفلاح ص ۹۰، فصل یطهر جلد المیتة) و مثله فی کبیری ص ۱۷۷، فصل فی النجاسة الحقیقة.

## د سپي د پس خوردې، په لوښي کښې ئې د خوراك او بیائې د پاکولو حکم

**سوال:** ځینې خلك په عمومي توګه پخپلو کورونو کښې سپي ساتي کله کله په ناڅاپي توګه د خوړلو او چښلو په لوښي کښې خوله ننه باسي نو آیا په د اسې لوښي کښې خوراك او چښاك جائز دی او که نه؟ او همد ارنګه د د اسې لوښي د پاکولو طریقه څنګه ده؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د سپي پس خورده د نجاست غلیظه په حکم کښې دی۔ لهذا کوم لوښي ته چه سپي خوله ننه ایستلې وي هغه که چېرته جاذب (جذب کوونکې) نه وي نو په



درې ځله پریمینځلو سره پاکیږي او که چېرته لوښی جاذب وي نو د هر ځل پریمینځلو سره به ئې وچول (یعنې دومره انتظار چه د اوبو څڅیدل ترې بند شي) ضروري دي۔

قال حسن بن عمارؒ: و القسم الثانی سؤر نجس نجاسة غلیظةً و قیل خفیفة لا یجوز استعماله ای لا یصح التطهیر به بحال و لا یشربه الا مضطر کا لمیتة و هو ای السؤر النجس ما شرب منه الکلب سواء فیه کلب صید او ماشیة و غیره لما روی الدار قطنی عن ابی هریرةؓ عن النبیﷺ فی الکلب ولغ فی الاناء انه یغسل ثلاثاً او خمساً او سبعاً.

قال الشیخ احمدؒ: انه یغسل ثلاثاً....... الخ. و ما ذاك الا لنجاسته و یندب عندنا التسبیع و کون احداهنّ با لتُراب. (طحطاوی حاشیة مراقی الفلاح ص ۲۳، فصل فی بیان احکام السؤر)

قال محمد عبد الحیؒ: و قول خامس ذهب الیه اصحابنا الحنفیة من عدم وجوب التسبیع و الثمان مع نجاسة السؤر و کفایة الثلاث کسائر النجاسات. (السعایة ج ۱، ص ۴۴۹، سؤر الکلب) و مثله فی الهندیة ج ۱، ص ۲۴، الفصل الثانی فیما لا یجوز به التوضؤ.

## د نجسې جامې له مینځلو وروسته د نبنتیځلو حکم

**سوال:** د مرد ارې جامې له مینځلو وروسته څو وارې نبنتیځل ضروري دي؟ آیا د پاکوالي د ارومدار ئې په نبنتیځلو پورې دی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په جامو باندې که چېرته نجاست مرئیه (په سترګو ښکاریدونکی نجاست) لګیدلې وي نو د عین نجاست له لرې کیدو سره جامې پاکیږي او نبنتیځل ئې ضروري نه دي۔ البته که چېرته نجاست غیر مرئیه (چه په سترګو نه ښکاریږي) وي نو د هغه د پاکوالي د ارومدار په غلبۀ ظن پورې اړه لري۔ او د درې ځله نبنتیځلو سره په عمومي توګه جامه پاکه ګڼل کیږي لیکن دا هم په ذهن کښې کښینوی چه آخري ځل باید ښه مضبوط و نبنتیځل شي۔

قال ابراهیم الحلبیؒ: اما اذااصابت الثوب نجاسة هٰذا شروع فی کیفیة تطهیر النجاسة با لغسل فان النجاسة اما ان تکون مرئیة او غیر مرئیة فان کانت مرئیة فطهارته زوال عینها الا ما یشق (و بعد اسطر) و ان لم تکن النجاسة مرئیة یغسلها حتیٰ یغلب علی ظنه انه قد طهر و هٰذا اذا لم یکن لها ریح فان کان یجب الغسل الیٰ زواله الا ما یشق و قیل اذا غسل الثوب من غیره مرّة و عصر با لمبالغة یطهر و قیل انه لا یطهر ما لم یغسل ثلاث مرات یعصر فی کل مرة و الفتویٰ علی الاوّل. (کبیری ص ۲۱۱/۲۱۲، فصل فی الاسار)

قال العلامة الحصکفیؒ: و کذا یطهر محل نجاسة مرئیة بقلعها ای بزوال عینها و آثرها و لو بمرة او بما فوق ثلاث فی الاصح و لا یضر بقاء اثر. و یطهر محل غیرها ای غیر المرئیة بغلبة ظن الغاسل طهارة محلها بلا عذر و به یفتیٰ و قدر ذٰلك لموسوس بغسل و عصر ثلاثا. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج ۱، ص ۳۲۸/۳۳۱، مطلب فی حکم الوشم) و مثله فی خلاصة الفتاویٰ ج ۱، ص ۴۰، الفصل السادس فی غسل الثوب و الدهن.

## لــــه خارجي لباسونو سره د مینځلو پرته د لمانځه د اداکولو حکم

**سوال:** نن صبا په بازار کښې د بهرني مستعملې جامې لکه کوټونه، جامې او پایجامې او د اسې نور پلورل کیږي۔ په ظاهره خو په دغو باندې هیڅ نجاست نه ښکاریږي لیکن دا هم څرګنده نه وي چه پاکې به وي او که نه؟ نو آیا د اسې جامو سره له مینځلو پرته لمونځ اداکیږي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته په ظاهره پرې نجاست نه وي او غالب ګمان دا وي چه نجاست پرې نه دی لګیدلی نو پاکې دي او اغوستل او لمونځ ورسره اداکول جائز دي البته مینځل ئې بهتر دي۔

قال ابن عابدینؒ: و من هٰنا قالوا لا بأس بلبس ثیاب اهل الذمة و الصلٰوة فیها الا الازار و السراویل فانه تکره الصلٰوة فیها لقربها من موضع الحدث و تجوز، لان الاصل الطهارة، و للتوارث بین المسلمین فی الصلٰوة بثیاب الغنائم قبل الغسل، و تمامه فی الحلیة. (رد المحتار علی الدر المختار ج۱، ص۲۰۵/۲۰۶، احکام الدباغة)

قال العلامة الحصکفیؒ: ثیاب الفسقة و اهل الذمة طاهرة. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۳۵۰، فصل فی الاستنجاء)

## د غټې او ډبلې جامې د پاکولو طــــریقه

**سوال:** د اسې جامې یا بل شی چه نښتیځل ئې مشکل وي د پاکولو طریقه ئې څه ده؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته په د اسې جامې یا کوم بل شي باندې نجاست ولیدل شي چه نښتیځل ئې ممکن نه وي نو د اسې جامه د نجاست په لرې کولو سره پاکیږي۔ او که چېرته د اسې نجاست پرې لګیدلې وي چه په سترګو نه لیدل کیده نو پاکوالی ئې د مینځونکي په ظن غالب پورې تړلې ده۔ او که چېرته د اسې څوک وي چه په غلبه ظن باندې نه پوهیده نو درې وارې دې پریمینځي او د هر ځل له پریمینځلو وروسته دې دومره ځنډ پکښې وکړي چه د اوبو د ځاځکو ځڅیدل ترې بند شي۔ برسیره پردې یوه بله طریقه ئې هم شته او هغه دا چه په یوه لوی حوض یا د جاري اوبو په ویالې کښې دې ډوب کړي او یو څه وخت دې پکښې پریږدي۔ چه کله ئې ترې راباسي نو پاکه به ګڼل کیږي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: و یطهر محل غیرها ای غیر مرئیة بغلبة ظن غاسل لو مکلّفاً و الا فمستعمل طهارة محلها بلا عدد به یفتی و قدر ذٰلك لموسوس بغسل و عصر ثلاثاً او سبعاً فیما ینعصر مبالغاً بحیث لا یقطر و لو کان لو عصره غیره قطر طهر با لنسبة الیه دون ذٰلك الغیر، و لو لم یبالغ لرقته هل یطهر الاظهر نعم للضرورة و قدر بتثلیث جفاف ای القطاع تقاطر فی غیره ای غیر منعصر مما یتشرب النجاسة و الا فبقلعها کما مر، و هٰذا کله اذا غسل فی اجانة، اما لو غسل فی غدیر او صب علیه ماء کثیر او جری علیه الماء طهر مطلقاً بلا شرط عصر و تجفیف و تکرار غمس هو المختار. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۳۳۱/۳۳۳، باب الانجاس)

قال ابراهیم الحلبیؒ: و فی فتاوٰی ابی اللیث خف بطانة ساقه من الکرباس فدخل فی جوفه ماء نجس فغسل الخف دلکه با لید ثم ملأ الخف ثلاثاً و اهرقه الا انه لم یتهیأ له عصر الکرباس فقد طهر الخف ای بمجرد جریان الماء ظاهرا



و باطنا و لم یشترط فیه عصر الخف و لا الکرباس لتعسره قیاساً علی مسئلة البساط. (کبیری ص۱۸٤، فصل فی الاسار)

## په ډرائي کلینر باندې د جــــامو د پاکولو حکم

**سوال:** د ډرایي کلینر په ذریعې سره جامې په پټرول سره پاکیږي لیکن په دې طریقې کښې جامې نښتیځل کیږي نه بلکه په حرارت سره جامې وچیږي۔ نو آیا په دې طریقې سره په مینځل شویو جامو کښې لمونځ کیږي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته جامې پاکې وي او یوازې خیرنې شوې وي او دا خیرې ئې د ډرائي کلینر په ذریعې سره لرې کولې نو د جامو په پاکوالي باندې هیڅ اثر نه کیږي۔ بیا هم دا ضروري ده چه په مائع شي باندې د پریمینځلو په وخت کښې ناپاکې جامې ورسره نه وي یو ځای کړي۔ که چېرته ئې ناپاکې جامې ورسره یو ځای کړې وې او دومره پټرول ئې پرې اچولی وي چه جامې نښتیځل کیدلی شوای نو په دې صورت کښې هم جامې پاکیږي۔ او که چېرته جامې د حرارت په ذریعې سره وچیدلې او ناپاکې جامې ورسره یو ځای شوې وې نو د خیرې له لرې کولو وروسته هم جامې مردارې پاتې کیږي او بیا ئې په اوبو سره پریمینځل ضروري دي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: یجوز رفع نجاسة حقیقیة عن محلها و لو اناء او ماکولا علم محلها او لا بماء و لو مُستعملاً به یفتی و بکل مائع طاهر قالع للنجاسة. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۳۰۹، باب الانجاس)

لما قال العلامة ابو البرکات النسفیؒ: یطهر البدن و الثوب با لماء و بمائع مزیل کا لخل و ماء الورد. (کنز الدقائق ج۱، ص۱۵، باب الانجاس) و مثله فی الاختیار ج۱، ص۳۵، باب الانجاس.

## پــــه شیدو کښې د پچو یا خوشایو په لویدلو سره د شیدو حکم

**سوال:** د ووزې، غوا او میښې د لوشلو په وخت کښې په شیدو کښې که چېرته پچې یا خوشایي ولویږي نو شیدې پرې مردارېږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته پچې یا خوشایي په شیدو کښې حل شوي نه وي بلکه له لویدو سره زر ترې و ایستل شي نو شیدې نه پرې مردارېږي۔ البته که چېرته پکښې حل شي نو بیا شیدې مردارېږي او د استفادې وړ نه پاتې کیږي۔ لیکن دا خبره هم شته چه دا حکم د شیدو د لوشلو له وخت سره خاص دی او که چېرته له دې وخت څخه پرته په بل وخت کښې پچې په شیدو کښې ولویږي نو په دم ګړی (فوراً) کښې شیدې مردارېږي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: و بعرتی ابل و غنم کما یعفٰی لو وقعتا فی محلب وقت الحلب فرمیتا فوراً قبل تفتت و تلون.

قال ابن عابدینؒ: قال فی الفیض فلا ینجس الا اذا کان کثیراً سواء کان رطباً او یابساً صحیحاً او منکسراً و لا فرق بین ان یکون للبئر حاجزا ولا هو الصحیح و فی التاتارخانیة و لم یذکر محمدؒ فی الاصل روث الحمار و الخثی و اختلفوا فیه فقیل ینجس و لو قلیلاً او یابساً و قیل لو یابساً فلا و اکثرهم علی انه لو فیه ضرورة و بلوٰی لا ینجس و الا نجس

(قوله و قت الحلب) فلو وقعت فی غیر زمان الحلب فهو کوقوعها فی سائر الاوانی فتنجس فی الاصح. (قوله و التعبیر با لبعرتین) ای فی مسئلتی البئر و المحلب. (رد المحتار ج۱، ص۲۲۱، فصل فی البئر)

قال ابراهیم الحلبیؒ: و ان وقعت ای البعرة و البعرتان فی اللبن وقت الحلب فاخرجت حین وقعت و لم یبق لها لون لم یتنجس اللبن (و بعد اسطر) و فی الکافی قال لا فرق بین الرطب و الیابس و الصحیح و المنکسر و الروث و الخثی و البعرة لان الضرورة تشمل الکل و الروث اذا کان صلباً فهو بمنزلة البعرة فی الحکم. (کبیری ص۱۶۱/۱۶۲، فصل فی البئر) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۱۹، الباب الثالث فی المیاه)

## د ناپاك شربت د پاکولو طـــــریقه

**سوال:** که چېرته په کوم لوښي کښې ډېر شربت وي او سپی خوله پکښې ډوبه کړت او څه ئې ترې وچښل۔ نو آیا پاتې شربت به تویوي او که د ګړې په جوړولو کښې به استعمالیږي او همد ارنګه د شریعت له مخې ئې د پاکوالي کوم امکان شته او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د اسې مائع چه د سپي د خولې له ډوبولو سره یو ځل مردار شي نو له هغه څخه د ګوړې جوړول او چښل حرام او ناجائز دي۔ البته د فقهاء کرامو له تصریحاتو څخه د هغه د پاکوالي یوه طریقه څرګندیږي چه د شربت له اندازې څخه درې ګوني اندازه اوبو ورسره ګډې کړي او بیا ئې دومره په اور کښېږدي او وئې خوټوي چه ټولې اوبو ئې د اور په ذریعه وچې شي نو له اوبو څخه پاتې شوی شربت پاکیږي۔

قال ابن عابدینؒ: (قوله و یطهر دهن و عسل) قال فی الدُرر و لو تنجس العسل فتطهیره ان یصب فیه ماء بقدره فیغلی حتٰی یعود الٰی مکانه و الدهن یصب علیه الماء فیغلی فیعلوا الدهن الماء فیرفع بشیء هٰکذا ثلاث مرات. آه. (رد المحتار علی الدر المختار ج۱، ص۳۲۴، مطلب فی تطهیر الدهن و الغسل)

قال ابراهیم الحلبیؒ: الا یرٰی ما روی عن ابی یوسفؒ فی تطهیر الدهن النجس انه اذا جعل الدهن فی اناء فصب علی الماء فیعلوا الدهن علی وجه الماء فیرفع بشیء و یراق الماء ثم یفعل هٰکذا حتٰی اذا فعل کذٰلك ثلاث مرات یحکم بطهارة الدهن. (کبیری ص۱۷۳، فصل فی الاسار) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۴۲، الباب السابع فی النجاسة.

## د حقیقت له بدلیدو سره حکم هم بدلیــــږي

**سوال:** که چېرته د مالګې په کان کښې ناپاکې اوبو جمع شي او مالګه وګرځي نو آیا د دغې مالګې استعمالول جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په شریعت کښې د شیانو د حقیقت په بدلیدو سره ئې حکم هم بدلیږي۔ له دې وجهې په نوموړې صورت کښې ناپاکې اوبو او یا نور مردار شیان د مالګې په کان کښې د مالګې د جوړیدو په صورت کښې مالګه ګرځي او پاکیږي او له د اسې کان څخه د مالګې خوړل جائز دي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: و لا ملح کان حماراً او خنزیراً و لا قذر وقع فی بئر فصار حماة لانقلاب العین، به یفتٰی.



قال ابن عابدینؒ: مقتضٰی ما مر ثبوت انقلاب الشیء عن حقیقة کا لنحاس الی الذهب و قیل انهٗ غیر ثابت لان قلب الحقائق محال و القدرة لا تتعلّق با لمحال و الحق الاوّل. (رد المحتار علی الدر المختار ج۱، ص۳۲۶، باب الانجاس)

قال ابراهیم الحلبیؒ: و لو احرقت العذرة او الروث فصار کل منهما رماداً او مات الحمار فی الملحة فصار ملحا او وقع الروث و نحوه فی البئر فصار حمأة زالت نجاسة و طهر عند محمدؒ حتٰی لو اکل الملح او صلّی علی ذٰلك الرماد جاز. (کبیری ص۱۸۸، فصل فی البئر)

## لــــــه نجس شي څخه ځ جوړ شوي صابون حکم

**سوال:** که چېرته له نجس شي څخه صابون جوړ شي نو آیا د د اسې صابون استعمال جائز دی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د اسې صابون پاك دی او استعمال ئې جائز دی۔ ځکه چه د صابون په جوړولو سره د نجس شي حقیقت هم بدلیږي۔ او د حقیقت له بدلون سره هغه شی پخپل حال کښې نه پاتې کیږي۔ له دې وجهې د اشی له مرداري یا ناپاکي څخه د پاکوالي حالت ته د اخل شو۔

قال العلامة الحصکفیؒ: و یطهر زیت تنجس یجعله صابوناً به یفتٰی للبلوٰی کتنور رش بماءٍ نجس لا بأس با لخبز فیه کطین نجس فجعل منه کوز بعد جعله علی النار یطهر ان لم یظهر فیه اثر النجس بعد الطبخ ذکره الحلبیؒ. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۳۱۵/۳۱۶، باب الانجاس)

قال ابراهیم الحلبیؒ: و اکثر المشائخ اختاروا قول محمد و علیه الفتوٰی لان الشرع رتب وصف النجاسة علی تلك الحقیقة و قد زالت با لکلیة فان الملح غیر العظم و اللحم فاذا صارت الحقیقة ملحاً ترتب علیه حکم الملح (و بعد اسطر) وعلی قول محمدؒ فرعوا طهارة صابون صنع من دهن نج و علیه یتفرع ما لو وقع انسان او کلبٌ فی قدر الصابون فصار صابوناً یکون طاهراً لتبدل الحقیقة. (کبیری ص۱۸۹، فصل فی الاسار) و مثله فی خلاصة الفتاوٰی ج۱، ص۴۳، الفصل السادس فی غسل الثوب و الدهن.

## د حــــلال ځناور د متیازو او خوشایو حکم

**سوال:** هغه حلال ځناور چه غوښې ئې خوړل کیږي آیا د هغو متیازې او خوشایې نجاست خفیفه (سپکه مرداري) ده او که نجاست غلیظه (سخته مرداري) ده او که د دغو ځناور نجاست په جامو باندې ولګیږي نو لمونځ ورسره جائز دی او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د کومو ځناورو چه غوښه خوړل کیږي د هغو نجاست د نجاست خفیفه په حکم کښې دی۔ البته خوشایې ئې نجاست غلیظه ده۔ او د نجاست خفیفه حکم دا دی چه که چېرته د جامو د مستقلې برخې لکه لستوني یا لمن د څلورمې برخې څخه په کمه اندازه پرې ککړه شي نو لمونځ ورسره کیږي او له دې څخه په زیات ککړ والي سره لمونځ نه کیږي۔ په د اسې حال کښې چه نجاست غلیظه د یوه درهم له اندازې څخه چه زیاته وي نو لمونځ نه ورسره کیږي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: و عفا الشارع عن قدر درهم و هو مثقال فی نجس کثیف له جرم و عرض مقعر الکف فی رقیق من مغلظة کعذرة و دم و خمر و خرأ کل طیر لا یذرق فی الهواء کبط اهلی او دجاج و روث و خثی افاد بهما

نجاسة خرأ كل حيوان غير الطيور و عفى دون ربع جميع بدن و ثوب و لو كبيراً من نجاسة مخففة كبول ماكول.

قال ابن عابدينؒ: قوله (و لو كبيراً الخ) اعلم انهم اختلفوا فى كيفيّة اعتبار الربع على ثلاثة اقوال فقيل ربع ظرف اصابته النجاسة، كا لذيل و الكم و الدخريص ان كان المصاب ثوباً و ربع العفو المصاب كا ليد و الرجل ان كان بدناً و صححه فى التحفة و المحيط و المجتبٰى و السراج. و فى الحقائق و عليه الفتوٰى. (رد المحتار علىٰ الدر المختار ج۱، ص۳۱۶ تا ۳۲۲، باب الانجاس)

و فى الهندية: و كذٰلك الخمر و الدم المسفوح و لحم الميتة و بول ما لا يؤكل و الروث و اخثاء البقر و العذرة و نجو الكلب و خرء الدجاج و البط و الاوز نجس نجاسة غليظة هٰكذا فى فتاوٰى قاضى خان. (الهندية ج۱، ص۴۶، الفصل الثانى فى الاعيان النجسة) و مثله فى فتاوٰى قاضى خان على هامش الهندية ج۱، ص۱۸، فصل فى النجاسة التى نصيب الثوب.

## د سپي د متيـــــازو حكم

**سوال:** كه چيرته سپى په كوم لوښي يا كوهي كښې متيازې وكړي نو د هغه لوښي او كوهي د اوبو څه حكم دى؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د سپي متيازې چونكه نجاست غليظه دي له دې وجهې كه چيرته د متيازو يو څاڅكى ئې لوښي يا كوهي ته ولويږي نو شرعا د كوهي او د لوښي دواړو اوبه مرد اريږي۔

قال ابن نجيمؒ: و انما ينجس ماء البئر كله بقليل النجاسة لان البئر عندنا بمنزلة الحوض الصغير الا ان يكون عشراً فى عشر كذا فى فتاوٰى قاضى خان. (البحر الرائق ج۱، ص۱۱۰، كتاب الطهارة)

قال العلامة الحصكفىؒ: اذا وقعت نجاسة ليس بحيوان و لو مخففة او قطرة بول او دم او ذنب فارة (و بعد اسطر) ينزح كل مائها الذى كان فيها وقت الوقوع. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۱، ص۲۱۱/۲۱۲، فصل فى البئر) و مثله فى خلاصة الفتاوٰى ج۱، ص۱۰، مسائل البئر.

## د پـــــاكو او ناپاكو شيانو د ګډون حكم

**سوال:** هغه ناپاكې اوبه چه له پاكې خاورې سره ګډې شي او خته ترې جوړه شي نو د دې ختې حكم به څه وي؟ آيا د اوبو د ناپاكۍ له وجهې به دا خته ناپاكه ګڼل كيږي او كه د پاكې خاورې له وجهې پاكه ګڼل كيږي؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** كله چه اوبه او خاوره سره ګډه شي اګر كه اوبه پاكې وي او خاورې مرداري وي يا خاورې پاكې وي او اوبه مرداري وي په هغو كښې د فقهاء كرامو اختلاف دى۔ ځينو ئې پاكوالي ته او ځينو ئې ناپاكي ته ترجيح وركړې ده۔ قاضي خان او ابراهيم حلبيؒ د ناپاكۍ خبره مفتى به بللې ده۔ نو د دې لپاره د اسې خته به مرداره ګڼل كيږي۔

قال طاهر بن عبد الرشدى البخارىؒ: الماء الطاهر اذا اختلط به التراب النجس و صار طيناً او كان الماء نجساً و التراب طاهر فا لعبرة للنجس ايهما كان نجساً فا لطين نجس و به اخذ الفقيه ابو الليث و هٰكذا روى عن ابى يوسفؒ. (خلاصة الفتاوٰى ج۱، ص۴۶، الفصل الثامن فى النجاسة)



قال ابراهيم الحلبىؒ: الماء و التراب اذا اختلطا و كان احدهما نجساً فا لطين الحاصل منهما نجس لان اختلاط النجس با لطاهر ينجسه هٰذا هو الصحيح كما ذكره قاضى خان و هو اختيار الفقيه ابى الليث (و بعد اسطر) فللّٰه در الفقيه ابى الليث و للّٰه در قاضى خان حيث جعل قوله هو الصحيح مشيرا الٰى ان سائر الاقوال لا صحة لها بل هى فاسدة لان النتيجة تابعة لاخس المقدمتين دائما. (كبيرى ص۱۸۸، فصل الاسار) و مثله فى الهندية ج۱، ص۱۴۸، الفصل الثانى فى الاعيان النجسة.

## د كــــــالي مينځلو په مشين سره د مينځل شويو جامو حكم

**سوال:** د كالي مينځلو په مشين كښې كالي د اسې مينځل كيږي چه خلك يو ځل صابون يا سرف پوډر پكښې اچوي او پاكې او ناپاكې جامې يو ځاى پكښې اچوي او مينځي ئې او يا له يوه او بل پسې ئې مينځي۔ آيا په دې طريقې سره د جامو د پاكوالي حكم څه دى؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** اګر كه اول ځل په مرد ارو اوبو سره ټولې جامې مرد اريږي ليكن له دې مينځلو څخه وروسته له دې نجس صابون څخه له ايستلو وروسته په مشين كښې يا له ماشين څخه د باندې څو ځله مينځل كيږي او له جامو څخه هغه نجس صابون لرې كيږي چه له مخې ئې په جامو كښې نجسې اوبه نه پاتې كيږي۔ نو د دې لپاره د مرد ارۍ له لرې كولو څخه وروسته جامې پاكيږي او له دې وجهې د كالي مينځلو په ماشين باندې پريمينځل شوي كالي پاك دي۔

قال العلامة فخر الدين الزيعلىؒ: و النجس المرئى يطهر بزوال عينه لان كنجس المحل باعتبار العين فيزول بزوالها و لو بمرة....... و غيره با لغسل ثلاثاً و العصر كل مرة اى غير المرئى من النجاسة يطهر بثلاث غسلات و با لعصر فى كل مرّة و المعتبر فيه غلبة الظن. (تبيين الحقائق ج۱، ص۷۵، فصل فى الانجاس)

قال العلامة عالم بن العلاء الانصارى: و يجب ان علم ان ازالة النجاسة واجبة و ازالتها ان كانت مرئية بازالة عينها و اثرها ان كانت شيئاً يزول اثرها و لا يعتبر فيه العذر و ان كان شيئاً لا يزول اثرها فازالتها بازالة عينها و يكون ما بقى من الاثر عفواً و ان كان كثيراً...... هٰذا اذا كانت النجاسة مرئية و ان كانت غير مرئية كا لبول و الخمر ذكر فى الاصل و قال يغسلها ثلاث مرات و يعصر فى كل مرّة فقد شرط الغسل ثلاث مرات و شرط العصر فى كل مرةً. (الفتاوى التاتارخانية ج۱، ص۳۰۶، كتاب الطهارة، الفصل الثامن فى تطهير النجاسات) و مثله فى الفقه الاسلامى و ادلته ج۱، ص۱۶۷، التقسيم الثالث، تقسيم النجاسة الى مرتبة الخ.

## د شــــــرابو د خالي بوتل د استعمال حكم

**سوال:** د شرابو خالي بوتل د تيل يا د اسې نورو لپاره استعمالول څنګه دي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** شراب پخپل ذات كښې يو نجس شى دى چه په كوم لوښي كښې شراب موجود وي د هغه استعمال هم جائز نه دى۔ ليكن له ښه پرې مينځلو څخه وروسته چه كله د سړي دا يقين وشي چه د شرابو آثار پكښې پاتې نه دي نو بيائې استعمال د تيلو يا د اسې نورو شيانو لپاره جائز دى۔

قال النبى ﷺ نهيتكم عن النبيذ الا فى سقاء فاشربوا فى الاسقية كلها و لا تشربوا سكراً. (شرح طيبى ج۱،

ص۱۳۸، کتاب الایمان، الفصل الاول)

قال العلامة ملا علی القاریؒ: فلما مضت مدة اباح النبیﷺ استعمال هٰذه الظرف و فان اثر الخمر زال عنها. (مرقات شرح مشکٰوة ج۱، ص۹۱، کتاب الایمان، الفصل الاول) و مثله فی حاشیة مشکٰوة ج۱، ص۱۳، کتاب الایمان، الفصل الاول.

## د تي رودونکي بچي د متیازو حکم

**سوال:** جناب مفتي صاحب! که چېرته تي رودونکی بچی د چا په جامو باندې متیازې وکړي نو د جامو پریمينځل ورته ضروري دي او که د تي رودونکي بچي متیازې پاکې دي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د تي رودونکي بچي متیازې هم د لویو خلکو غوندې نجسې دي۔ چه کله د چا جامې پرې ککړې شي نو مينځل ئې ضروري دي۔ البته دومره فرق پکښې شته چه د تي رودونکي بچي له متیازو څخه ځان ساتنه ګرانه وي نو د دې لپاره د ټولې جامې پریمينځل ورته ضروري نه دي بلکه یوازې د متیازو په ځای باندې دې دومره اوبو واچوي چه په څومره اوبو سره دا جامې درې وارې پریمينځل کیدلی شي۔

قال العلامة حسن بن عمارؒ: و بول ما لا یؤکل لحمه کا الآدمی و لو رضیعا . قال الشیخ السید احمد الطحطاویؒ: (قوله و لو رضیعا) لم یطعم سواء کان ذکراً او اُنثٰی. (طحطاوی حاشیة مراقی الفلاح ص۱۲۳، باب الانجاس)

قال العلامة الحصکفیؒ: و بول غیر ماکول و لو من صغیر لم یطعم. قال ابن عابدینؒ (تحت قوله لم یطعم) ای لم یاکل فلا بد من غسله. (رد المحتار ج۱، ص۳۱۸، باب الانجاس، مطلب فی طهارة بوله)

## د شب پـــــــرك د متیازو حکم

**سوال:** دلته زمونږ په سیمه کښې شب پرك ډیر دي کله کله زمونږ په جامو باندې هم متیازې کوي لیکن مونږ ته معلوم هم نه وي او لمونځ ورسره کوو۔ آیا په دې صورت کښې له نوموړو جامو سره زمونږ لمونځونه کیږي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** اګر که د قاعدې له مخې د کوم شي چه غوښه نه خوړل کیږي متیازې او نور شیان ئې د نجاست غلیظه په حکم کښې دي لیکن شب پرك د مجبورئ له مخې له دې حکم څخه مستثنٰی ده ځکه چه له هغه څخه ځان ساتنه ممکنه نه ده۔ لهذا د شب پرك متیازې او ګندګي پاك دي او پرې ککړ شویو جامو سره لمونځ صحیح دی۔

قال العلامة ابن عابدینؒ: و بول غیر ماکول و لو من صغیر لم یطعم الا بول الخفاش و خرأه. قال ابن عابدینؒ تحته...... فی البدائع و غیره بول الخفافیش و خرأها لیس بنجس لتعذر صیانة الثوب و الاوانی عنها لانها تبول من الهواء و هی فارة طیارة فلهذا تبول آه. و مقتضاء ان سقوط النجاسة للضرورة. (رد المحتار ج۱، ص۳۱۹، باب الانجاس)

قال العلامة ابو بکر الکاسانیؒ: و بو الخفافیش و خرؤها لیس بنجس لتعذر صیانة الثیاب و الاوانی عنه لانها تبول فی الهواء و هی فارة طیارة فلهٰذا تبول. (بدائع الصنائع ج۱، ص۶۲، فصل و اما الطهارة الحقیقة)



## په کوهي کښې د اوسیدونکې چنګښې د متیازو حکم

**سوال:** ګرامي قدر مفتي صاحب! زمونږ د کور په کوهي کښې چنګښې ډیرې اوسیږي۔ که چېرته په اوبو کښې متیازې وکړي نو د داسې اوبو په باره کښې د شریعت څه حکم دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د فقهي اصولو او قواعدو څخه څرګندیږي چه د چنګښې متیازې ناپاکې دي ځکه چه د هغه شي چه غوښه ئې نه خوړل کیږي متیازې نجاست غلیظه دي۔ په صورت مسئوله کښې چنګښې په اوبو کښې اوسیږي نو له دې وجهې چه ځان ساتنه ترې مشکله ده د ضرورت له مخې ئې په متیازو باندې د کوهي اوبو نه مرداریږي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: و بول غیر ماکول و لو من صغیر لم یطعم الا بول الخفاش و خرأه فطاهر و کذا بول الفارة لتعذر التحرز عنه و علیه الفتوٰی. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۳۱۸، باب الانجاس)

قال الشیخ السید احمد الطحطاویؒ: بول الفارة طاهر لتعذر التحرز عنه و علیه الفتوٰی یحمل علی العفو. (طحطاوی حاشیة مراقی الفلاح ص۱۲۳، فصل فی الانجاس)

## په مـــــــردارو ختو باندې د جوړ شوي لوښي د استعمالولو حکم

**سوال:** که چېرته کولال د لوښو د جوړولو لپاره مرداري ختې لمدې کړي نو آیا په مردارو ختو باندې د جوړ شوي لوښي استعمال جائز دی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د مردار شي د پاکولو ډیرې طریقې دي چه د هغو له جملې څخه په اور باندې د پخولو طریقه هم ده۔ په صورت مسئوله کښې چونکه نوموړې مرداره ختې په اور باندې پخه شوې ده د دې لپاره د اور په ذریعې سره نجاست ترې لرې شوی دی او لوښی پاك شوی دی۔ له دې وجهې د داسې لوښي استعمال جائز دی۔

قال العلامة ابن نجیمؒ: فی الفتاوٰی اذا احترقت الارض با لنار فتیمم بذٰلك التراب قیل یجوز التیمم و قیل لا یجوز و الاصح الجواز. (البحر الرائق ج۱، ص۲۲۶/۲۲۸، باب الانجاس)

و فی الهندیة: و منها الاحراق...... الطین النجس اذا جعل منه الکوز او القدر فطبخ یکون طاهرا کذا فی المحیط. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۴۴، الباب السابع فی الانجاس، الفصل الاول فی تطهیر الانجاس)

## د مُردار ځناور د څرمن حکم

**سوال:** که چېرته یو ځناور پخپله مردار شي نو د هغه د څرمنې تر ایستلو وروسته د هغې د استعمال څه حکم دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب:** د حدیث شریف له مخې په مطلقه توګه د کوم ځناور څرمن را ایستل او رنګول یا دباغت ورکولو سره پاکیږي۔ د دې لپاره د مُرداز ځناور څرمن د دباغت له ورکولو وروسته ئې استعمال جائز دی۔

کثیر من اصحابنا. (رد المحتار ج۱، ص۳۱۸، باب الانجاس، مطلب فی طهارة بولهﷺ)

قال الملا علی القاریؒ فی جمع الوسائل: قال ابن حجر! و بهٰذا استدل جمع من ائمتنا المتقدمین و غیرهم علی طهارة فضلاتهﷺ و هو المختار و فاقاً لجمع من المتاخرین فقد تکاثرت الادلة علیه وعده الائمة من خصائصهﷺ. (جمع الوسائل شرح الشمائل ج۲، ص۳، باب ما جاء فی تعطر رسول اللهﷺ)

## د خوشايي تيپې د استعمالولو او پلورلو حکم

**سوال:** په اکثرو کليو کښې د خوشايو په تيپې اور بلوي او خوراك پرې تياروي او ځيني خلك ئې پلوري۔ نو آيا د تيپې بلول او پلورل جائز دي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د فقهاء کرامو له صريحو عباراتو څخه دا څرګنديږي چه د تيپې په بلولو او خرڅولو کښې څه حرج نشته۔

لما قال العلامة ابن عابدینؒ: (تحت قوله کسرقین و بعر) و المراد انه یجوز بیعهما و لو خالصین. و فی البحر عن السراج و یجوز بیع السرقین و البعر و الانتفاع به و الوقود به. (رد المحتار ج۵، ص۵۸، باب فی البیع الفاسد، قبل مطلب الآدمی مکرم)

قال العلامة ابن نجیمؒ: یجوز بیع السرقین و البعر و الانتفاع به و الوقود کذا فیا لسراج الوهاج. (البحر الرائق ج۶، ص۷۱، کتاب البیوع، باب البیع الفاسد)

## د ژوندي مـــــار د پوستکي حکم

**سوال:** ځيني حکيمان زخمي سړي ته د مار جامه (هغه پوستکی چه مار پخپله له ځانه لرې کوي) د علاج په توګه ور استعمالوي. آيا شرعاً ئې استعمال څنګه دی؟ او لمونځ ورسره کيږي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** مسلمان حاذق طبيب چه مريض ته کومه دوايي ورکړي د هغې استعمالول جائز دي۔ تر کومه ځايه پورې چه د مار د پوستکي مسئله ده نو د فقهاء کرامو د تصريحاتو مطابق مار چه کله پخپل ژوند کښې خپل پوستکی واچوي نو پاك دی او لمونځ کول ورسره جائز دي۔

لما فی الهندیة: قمیص الحیة الصحیح انه طاهر کذا فی الخلاصة. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۴۶، باب الانجاس)

قال العلامة طاهر بن عبد الرشید البخاریؒ: و فی سخة القاضی الامام و قمیص الحیة ا لصحیح انه طاهر. (خلاصة الفتاوی ج۱، ص۴۴، الفصل السابع فیما یکون نجسا الخ)



# بـــاب الاستنجاء

## (د استنجاء احکام او مسئلې)

## د عورت د بربنډولو په صورت کښې د استنجا حکم

**سوال:** که چېرته د استنجا لپاره د پردې ځای نه وي نو آيا په داسې ځای کښې استنجا جائزه ده چه هلته د عورت د بربنډيدلو امکان وي؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په استنجا کښې که چېرته د عورت د بربنډيدلو خطره وي نو له استنجا پرته اودس کول جائز دي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: بلا کشف عورة عند احد ما معه فیترکه کما مرّ فلو کشف له صار فاسقاً. قال ابن عابدینؒ (قوله فلو کشف له صار فاسقا) ای للاستنجاء با لماء قال نوح الفندی لان کشف العورة حرام، و مرتکب الحرام فاسق سواء تجاوز النجس المخرج اولا و سواء کان المجاوز اکثر من الدرهم او اقل. (رد المحتار علی الدر المختار ج۱، ص۳۳۸، فصل فی الاستنجاء)

و فی الهندیة: و الاستنجاء با لماء افضل ان امکنه ذٰلك من غیر کشف العورة و ان احتاج الی کشف العورة یستنجی با لحجر و لا یستنجی با لماء. (الهندیة الفصل الثانی فی الاستنجاء ج۱، ص۴۸) و مثله فی خلاصة الفتاوٰی ج۱، ص۳۵، الاستنجاء.

## د درهـــــم له اندازې څخه زيات نجاست معاف نه دی

**سوال:** له متيازو وروسته چه کله لوټه استعمال شي نو بيا په اوبو باندې استنجا ضروري ده او که نه؟ او که چېرته په کوم ځای کښې په اوبو باندې د استنجا کولو فرصت نه وي نو آيا يوازې په لوټې باندې استنجاء کافي کيږي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته نجاست د درهم له اندازې څخه تجاوز کړی وي نو دوباره په اوبو باندې استنجا ضروري ده۔ البته که چېرته د درهم له اندازې څخه نجاست کم وي او يا بالکل نه وي نو بيا د لوټې استنجاء کافي ده۔ ليکن په دې صورت کښې هم په اوبو سره استنجا بهتره او افضله ده۔

قال ابراهیم الحلبیؒ: اما ان زادت النجاسة المتجاوزة عن المخرج علی قدر الدرهم فغسله ای النجس او المخرج فرض اجماعاً. (کبیری ص۲۹، آداب الوضوء)

و قال ابن عابدینؒ: ثم اعلم ان الجمع بین الماء و الحجر افضل و یلیه فی الفضل الاقتصار علی الماء و یلیه الاقتصار علی الحجر و تحصل السنة با لکل و ان تفاوت الفضل کما افاده فی الامداد. (رد المحتار علی الدر المختار ج۱، ص۳۳۸، فصل فی الاستنجاء)

و فی الهندیة: و الثانی اذا تجاوزت مخرجها یجب عند محمد رحمه الله قل او کثر و هو الاحوط. (الهندیة

ج ۱، ص ۵۰، الفصل الثالث فی الاستنجاء) و مثله فی الهدایة ج ۱، ص ۷۶، فصل فی الاستنجاء.

## په ټائلټ پیپر (د تشناب په کاغذ) باندې د استنجا حکم

**سوال:** نن صبا یو خاص ډول کاغذ کوم چه د لیکلو لپاره نه استعمالیږي او یوائځې د استنجاء لپاره جوړ شوي دي آیا په د اسې کاغذونو باندې چه د کاغذ نوم پرې جاري دی استنجا جائزه ده و که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په کاغذ سره د استنجا د نه جواز علت د کاغذ عظمت او تقدس دی۔ ځکه چه کاغذ عموماً د لیکلو لپاره استعمالیږي۔ او د تشناب کاغذ چونکه په ځانګړې توګه د استنجاء لپاره تیارشوي دي نو ځکه په مروجه ټائلټ پیپر کښې له دې وجهې چه د کاغذ ځانګړتیاوې پکښې نشته استنجاء پرې صحیح ده۔

قال ابن عابدینؒ: و اذا کانت العلة فی الابیض کونه آلة للکتابة کما ذکرناه یؤخذ منها عدم الکراهة فیما لا یصلح لها اذا کان قالعاً للنجاسة غیر متقوم کما قدمناه من جوازه با لخرق البوالی و هل اذا کان متقوماً ثم قطع منه قطعة لا قیمة لها بعد القطع یکره الاستنجاء بها ام لا !الظاهر الثانی. (رد المحتار علی الدر المختار ج ۱، ص ۳۴۰، فصل الاستنجاء)

قال العلامة محمد یوسف البنوریؒ: له المراد من الحجر فی الحدیث کل شیء طاهر غیر محترم قالع للنجاسة سواءٌ کان حجراً او مدراً او غیرهما. (معارف السنن ج ۱، ص ۱۱۷، باب الاستنجاء با لحجارة)

## د استنجا په وخت کښې د سلام اچولو حکم

**سوال:** د استنجا په وخت کښې سلام اچول یا د سلام ځواب ورکول جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** فقهاء کرامؒ د متیازو په وخت کښې سلام اچول مکروه بللي دي۔ د استنجا په وخت کښې که څېرته متیازې څڅیدلې نو د دې حکم له مخې په دې وخت کښې هم سلام اچول مکروه دي او که څېرته څاڅکې نه وې نو بیا هم د سلام اچول له بې ادبۍ څخه خلاص نه دی۔ نو د دې لپاره په د اسې مواقعو کښې له سلام اچولو څخه پرهیز وکړی او که څېرته څوك سلام واچوي نو له استنجا څخه وروسته ئې ځواب ورکړی ځکه چه د سلام په ځواب کښې ځنډ جائز دی۔

قال ابن عابدینؒ: عبارة الغزنویة و لا یتکلم فیه ای فی الخلاء و فی الضیاء عن بستان ابی اللیث یکره الکلام فی الخلاء و ظاهره انه لا یختص بحال قضاء الحاجة. (رد المحتار علی الدر المختار ج ۱، ص ۳۴۴، فصل فی الاستنجاء)

و فی الهندیة: و لا یتکلم و لا یذکر الله تعالی و لا یشمت عاطساً و لا یرد السلام و لا یجیب المؤذن. (الهندیة ج ۱، ص ۵۰، الفصل الثالث فی الاستنجاء) و مثله فی البحر الرائق ج ۱، ص ۲۴۳، باب الانجاس.



## په اوبو سره د استنجا حکم

**سوال:** که څېرته د متیازو له کولو وروسته څوك یوائځې په اوبو باندې استنجا وو هي یعنې لوټه یا ډېره او د اسې نورو استعمال نه کړي نو آیا استنجا به ئې جائزه وي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له لوټې څخه وروسته په اوبو باندې استنجا مستحبه ده او د نه پاکوالي په صورت کښې کله چه نجاست د درهم له اندازې څخه زیات وي نو په اوبو باندې استنجا واجبه ده۔ البته یوائځې په اوبو باندې هم استنجاء جائزه ده۔ لیکن په دې کښې دې ته پاملرنه ضروري ده چه د اوبو له استعمال څخه مخکښې د متیازو څاڅکي بند شوي دي او که نه؟ او که نه نو له دې بغیر د جامو د مرداریدو خطره هم وي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: و یعتبر القدر المانع لصلوة فیما وراء موضع الاستنجاء لان ما علی المخرج ساقط شرعاً. قال ابن عابدینؒ (تحت قوله و یعتبر ...... الخ) ای خلافاً لمحمدؒ و الحاصل ان ما جاوز المخرج ان زاد علی الدرهم فی نفسه یفترض غسله اتفاقاً و ان زاد بضم ما علی المخرج الیه لا یفترض عندهما و عند محمدؒ یفرض غسله بناء علی ان ما علی المخرج فی حکم الظاهر عنده فلا یسقط اعتباره و بضم (و بعد اسطر) و قدمنا عن الاختیار انه الاحوط. (رد المحتار علی الدر المختار ج ۱، ص ۳۳۹، فصل فی الاستنجاء)

قال ابراهیم الحلبیؒ: و من الآداب ان یغسل مخرج النجاسة بعد الاحجار اذا لم یتجاوز النجاسة مخرجها اما اذا جاوزت مخرجها و الحال انها لم تکن قدر الدرهم فغسله سنة و ان کان قدر الدرهم فغسله واجب. (کبیری ج ۱، ص ۲۹/۲۸، آداب الوضوء) و مثله فی الهندیة ج ۱، ص ۵۰، الفصل الثالث فی الاستنجاء.

## په ښي لاس سره د استنجاء حکم

**سوال:** په ښي لاس سره د استنجا حکم څه دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د ښي لاس د شرافت له وجهې په استنجا او د اسې نورو کارونو کښې ئې استعمالول مکروه دي۔ البته د عذر له وجهې څه پروا نه لري۔

لما قال العلامة شرنبلالیؒ: یکره الاستنجاء با لید الیمنیٰ الا من عذر..... قال احمد الطحطاویؒ تحته فانه یفید عدم الکراهة با لیمین حال العذر و هو کذٰلك. (الطحطاوی حاشیة مراقی الفلاح ص ۳۹، فصل فیما یجوز به الاستنجاء و ما یکره)

و فی الهندیة: و یکره الاستنجاء با لعظم و الروث و المرجیع و الطعام و اللحم و الزجاج و کذا با لیمین هٰکذا فی التبیین. و اذا کان با لیسریٰ عذر یمنع الاستنجاء بها جاز ان یستنجی بیمینه من غیر کراهة. (الهندیة ج ۱، ص ۵۰، الفصل الثالث فی الاستنجاء)

## د استنجا لپاره د اوبو اندازه

**سوال:** د استنجا لپاره د اوبو کومه خاصه اندازه ټاکلې ده او که نه؟ که څېرته یو څوك زیاتې اوبو استعمال کړي نو د اسراف په حکم کښې د اخلیږي او هغه سړی به ګنهګاریږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** حضور ﷺ د اوبو په استعمالولو کښې د اعتدال او میانه روي

ترغیب ورکړی دی لیکن د استنجا په حالت کښې د خاصې اندازې تعین نشته. د ا د نجاست په کموالي او زیاتوالي او د سړو په اعتبار سره فرق لري تر څو پورې چه د نجاست د لرې کیدو په باره کښې ظن غالب نه وي تر هغو پورې د اوبو استعمالول جائز دي.

قال العلامة الحصکفیؒ: و الغسل با لماء الی ان یقع فی قلبه انه طهر ما لم یکن موسوماً فیقدر بثلاث.

قال ابن عابدینؒ: (قوله فیقدر بثلاث) و قیل بسبع للحدیث الوارد فی ولوغ الکلب معراج عن المبسوط. (رد المحتار علی الدر المختار فصل فی الاستنجاء ج۱، ص۳۳۸/۳۳۷، فصل فی الاستنجاء)

قال برهان الدینؒ: و یستعمل الماء الی ان یقع فی غالب ظنه انه قد طهر و لا یقدر با لمرّات الا اذا کان موسوساً فیقدر با لثلاث فی حقه و قیل السبع. (الهدایة ج۱، ص۷۵، فصل فی الاستنجاء) و مثله فی مراقی الفلاح ص۲۷، فصل فی الاستنجاء.

## د مغـــــــــربیانو په طرز یه بیت الخلا کښې د متیازو کولو حکم

**سوال:** نن صبا په ځینو ځایونو کښې د مغربیانو په طرز بیت الخلاوې جوړیږي کوم چه په ولاړې متیازې پکښې کیږي. نو آیا په دې ډول بیت الخلاوو کښې متیازې کول جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په ولاړې باندې متیازې اگر که د ضرورت په وخت کښې جائزې دي لیکن له ضرورت پرته په ولاړې باندې متیازې کول د سنتو خلاف دی. البته د نن صبا په مغربي طرز باندې په جوړو شویو بیت الخلاوو کښې په متیازو کولو کښې یو خو د حضورﷺ د سنتو خلاف ورزي راځي او بل له کفارو سره تشبه لازمیږي. نو د دې لپاره په مغربي طرز باندې په جوړ شویو بیت الخلاوو کښې د دوی د تهذیب مطابق په ولاړې باندې متیازې کول مناسب نه دي.

لما قال العلامة الحصکفیؒ: و کره تحریماً استقبال قبلة و استدبارها....... و ان یبول قائماً او مضطجعاً او مجرداً من ثوبه بلا عذر. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۳۴۴/۳۴۱، فصل فی الاستنجاء)

و فی الهندیة: یکره ان یبول قائماً او مضطجعاً. (الهندیة ج۱، ص۵۱/۵۰، باب الاستنجاء)

## په ولاړې باندې د متیازې کولو حکم

**سوال:** د افغانستان په جهاد کښې د ځینو کسانو پښې پرې شوي دي او ځینو ته د ملا د سخت درد له وجهې په ولاړې باندې د متیازو ضرورت پیښیږي. نو آیا په ولاړې باندې متیازې کول جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** اسلام له نجاست څخه د ځان ساتنې حکم ورکړی دی او همدارنگه په دې باندې ډیر تاکید کړی دی چه د متیازو له څاڅکو څخه خپل ځانونه وساتی. ځکه چه د قبر عذاب اکثره له همدې وجهې وي. نو ددې لپاره فقهاء کرامو په ولاړې باندې متیازې کول مکروه بللي دي. بیا هم که چېرته د کوم معقول عذر له وجهې په ناستې باندې متیازې کول



ناممکن او مشکل وي نو بیا په ولاړې هم ورته جائزې دي.

لما قال حسن بن عمارؒ: و یکره البول قائماً لتنجسه غالباً الا من عذر کوجع بصلبه الخ. (مراقی الفلاح علی صدر حاشیة طحطاوی ص۴۲، فصل فیما یجوز به الاستنجاء و ما یکره به الخ)

قال السید یوسف البنوریؒ: ان البول قائماً و ان کانت فیه رخصة و المنع للتادیب لا للتحریم کما قاله الترمذی و لکن الیوم الفتوٰی علی تحریمه اولٰی حیث اصبح شعار الغیر المسلمین من الکفار و اهل الادیان الباطلة. (معارف السنن ج۱، ص۱۰۶، باب النهی عن البول قائماً)

## د استنجاء په وخت کښې د شمال خوا ته د مخ گرځولو حکم

**سوال:** زمونږ په سیمه کښې دا مشهوره ده چه شمال خوا ته وره قبله ده او مغرب خوا ته لویه قبله ده. نو لکه څنگه چه د استنجا په وخت کښې قبلې ته مخ یا شا گرځول جائز نه دي نو همدارنگه د شمال خوا ته هم جائز نه دي. آیا دا خبره صحیح ده او که څنگه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په مبارکو احادیثو کښې د قبلې په خوا د متیازو او استنجا په وخت کښې مخ یا شا گرځول جائز نه دي او له دې پرته د جنوب او شمال دواړ خواوو ته مخ یا شا گرځولو حکم شوی دی. اوس دا دواړه طرفونه به د هرې علاقې د جغرافیایي نظام مطابق وي. یعني په کومو ځایونو کښې چه کعبه شریفه د مغرب یا مشرق په طرف وي نو د هغې نورې دوه خواوې به شمال او جنوب وي. او په کومو ځایونو کښې چه کعبه شریفه د هغې علاقې د جنوب یا شمال په طرف کښې واقع وي نو د هغو ځای خلکو ته د مشرق یا مغرب خوا ته د مخ یا شا گرځولو حکم دی.

عن ابی ایوب الانصاریؓ: قال النبیﷺ اذا اتیتم الغائط لا تستقبلوا القبلة و لا تستدبروها لکن شرّقوا اَوْ غرّبوا. (الجامع الترمذی ج۱، ص۸، باب فی النهی عن استقبال القبلة بغائط الخ)

قال العلامة الحصکفیؒ: کما کره تحریماً استقبال قبلة و استدبارها لاجل بول او غائط....... و لو فی بنسیان لاطلاق النهی. (الدر المختار علی صدر رد المختار ج۱، ص۳۴۱، فصل فی الاستنجاء) و مثله فی مراقی الفلاح علی صدر الطحطاوی ص۴۱، فصل فی الاستنجاء.

## په وښو او د اسې نورو باندې د استنجاء حکم

**سوال:** په وښو او د اسې نورو پاڼو یا هډوکو باندې استنجا جائزه ده او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د هر ذي شرف یا حیوان یا پیرې یا انسان په ماکولاتو (د خوراك په شیانو) باندې شریعت مقدسه له استنجا کولو څخه خلك منع کړي دي. لکه څرنگه چه واښه او د ونې پاڼې د څناورو خوراك دی او هډوکي د پیریانو خوراك دی نو د دې لپاره په دغو شیانو باندې استنجا مکروه تحریمي ده.

لما قال العلامة الحصکفیؒ: و کره تحریماً بعظم و طعام و روث یابس کعذرة یابسة........ و فحم و علف حیوان. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۳۴۱/۳۳۹، باب الانجاس، فصل فی الاستنجاء)

و فی الهندیة: و یکره الاستنجاء با لعظم و الروث و الرجیع و الطعام و اللحم و الزجاج و الخزف و ورق الشجر و الشعر. (الهندیة ج۱، ص۵۰، الفصل الثالث فی الاستنجاء) و مثله فی البحر الرائق ج۱، ص۲۴۳/۲۴۲، فصل فی الاستنجاء.

## د استنجا په وخت کښې د لاسونو د مینځلو تر څنګ د بدبویې د موجودوالي حکم

سوال: په اوبو سره د استنجا له کولو څخه وروسته کله کله په لاسونو کښې بدبویي محسوسیږي په د اسې حال کښې چه په لاس باندې نجاست موجود هم نه وي نو آیا د بدبویي په موجود والي کښې لاسونه پاك بلل کیږي او که نه؟

الجواب باسم ملهم الصواب: په اوبو سره د استنجا له کولو وروسته چه په لاسونو کښې کومه بدبویي پاتې شي له هغې سره سره لاسونه پاك بلل کیږي- په هندیه کښې دي چه:

و تطهر الید مع طهارة موضع الاستنجاء. (الهندیة ج۱، ص۴۹)

لیکن بهتره دا ده چه له استنجا څخه وروسته دوباره هم لاسونه پریمینځي تر څو چه ښه پاکوالی او نظافت حاصل شي لکه څرنګه چه په هندیه کښې دي: و یغسل یده کما یکون یغسلها قبله لیکون انقٰی و انظف و قد روی ان النبیﷺ غسل یده بعد الاستنجاء و دلك یده علی الحائط. کذا فی التجنیس. (الهندیة ج۱، ص۴۹، الفصل الثالث فی الاستنجاء)

قال الشیخ عبد الحی اللکهنویؒ: بزوال عین نجاست و جرمش طهارت بدن می شود و اما اثر نجاست یعنی رنك و بوی پس باید که بآب شسته این را زائل نماید و از همین جا است که پیغمبر خداﷺ دست مبارك خود را بعد استنجاء می شوید و بر دیوار می مالید تا اثر باقی نماند و اگر ازاله آن دشوار بود یعنی محتاج صابون وغیره باشد بقاء آن لا بأس به است الخ. (مجموعة الفتاوٰی (فارسی) ج۳، ص۳۴/۳۳، فصل فی الاستنجاء)

## د ښځو لپـــــــاره هم د لوټې استعمالول ضروري دي

سوال: د سړیو لپاره خو د متیازو څخه وروسته په لوټې باندې استنجا ضروري ده آیا د ښځو لپاره هم همدا حکم دی؟ بینوا توجروا۔

الجواب باسم ملهم الصواب: په لوټې باندې استنجا لکه څرنګه چه د سړیو لپاره مستحبه ده همدارنګه د ښځو لپاره هم مستحبه ده- او په لوټې باندې له استنجا کولو څخه وروسته په اوبو باندې د پاکوالی حاصلول نور هم بهتر دي- البته په سړیو باندې استبراء ضروري ده او په ښځو باندې نه۔

قال العلامة ابن عابدینؒ: قلتُ بل صرح فی الغزنویة بانها تفعل کما یفعل الرجل الاّ فی الاستبراء فانها لا استبراء علیها بل کما فرغت من البول و الغائط تصبر ساعة لطیفة ثم تمسح قبلها و دبرها با لاحجار ثم تستنجی با لماء. (رد المحتار ج۱، ص۳۳۷، فصل فی الاستنجاء)



و فی الهندیة: و المرأة تفعل فی جمیع الاوقات مثل ما یفعل الرجل فی الشتاء. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۴۸، الفصل الثالث فی الاستنجاء)

## له اوبو پرته یوائې په لوټې باندې د استنجا کولو حکم

سوال: که چېرته له یوه سړي څخه په لوټې باندې د استنجا له کولو وروسته په اوبو باندې استنجا هیره شي او فوراً اودس وکړي او لمونځ شروع کړي- نو آیا لمونځ ئې کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

الجواب باسم ملهم الصواب: اګر که بهتره او افضله دا ده چه په اوبو او لوټې دواړو باندې استنجا وکړي لیکن که چېرته یو څوك یوائې په لوټې یا یوائې په اوبو باندې استنجاء وکړي نو بیا هم صحیح دی- نو څکه که یو څوك له کومې وجهې په لوټې باندې په شوې استنجاء اکتفا وکړي او لمونځ ورسره وکړي نو لمونځ ئې صحیح کیږي۔

قال العلامة ابن عابدینؒ: اعلم ان الجمع بین الماء و الحجر افضل و یلیه فی الفضل الاقتصار علی الماء و یلیه الاقتصار علی الحجر و تحصل السنة با لکل و ان تفاوت الفضل کما افاده فی الامدار وغیره. (رد المحتار ج۱، ص۳۳۸، فصل فی الاستنجاء)

قال العلامة حسن بن عمار الشرنبلالیؒ: و الافضل فی کل زمان الجمع بین استعمال الماء و الحجر مرتبا فیمسح الخارج ثم یغسل المخرج....... و یجوز ای یصح ان یقتصر علی الماء فقط و هو یلی الجمع بین الماء و الحجر فی الفضل او الحجر و هو دونهما فی الفضل. (مراقی الفلاح علی صدر الطحطاوی ص۳۶، فصل فی الاستنجاء) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۴۸، الفصل الثالث فی الاستنجاء.

## د متیازو په وخت کښې د لمر یا سپوږمۍ خوا ته د مخ ګرځولو حکم

سوال: آیا د سپوږمۍ یا لمر خوا ته د متیازو په وخت کښې مخ ګرځول جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

الجواب باسم ملهم الصواب: له فقهي ذخائرو څخه څرګندیږي چه د متیازو په وخت کښې لمر یا سپوږمۍ یا تیزې هوا خوا ته مخ ګرځول مکروه دي- البته که چېرته لمر یا سپوږمۍ په وریځو کښې پټ وي نو بیا د متیازو په وخت کښې مخ ګرځول ورته بغیر له کراهیت څخه جائز دي۔

قال العلامة ابن عابدینؒ: و الذی یظهر ان المراد استقبال عینهما مطلقاً لا جهتهما و لا ضوئهما و انه لو کان ساتراً یمنع عن العین و لو سحاباً فلا کراهة و ان الکراهة اذا لم یکونا فی کبد السماء. (رد المحتار ج۱، ص۳۴۲، باب الاستنجاء)

قال العلامة حسن بن عمار الشرنبلالیؒ: و یکره استقبال عین الشمس و القمر لانها آیتان عظیمتان آه قال السید احمد الطحطاوی تحت قوله یکره استقبال الخ اطلاق الکراهة یقتضی التحریم و قید با لعین اشارة الٰی انهٗ لو کان فی مکان مستور و لم تکن عینهما بمرئی منه لا یکره بخلاف القبلة الخ. (طحطاوی حاشیة مراقی الفلاح ص۴۱، فصل فی الاستنجاء)

## د استنجا د وس نه لرونکي سړي لپاره د استنجا حکم

**سوال:** زما د یوه ورور دواړه لاسونه له روس سره په جهاد کښې پرې شوي دي او واده هم نه لري. نو آیا ده لپاره د استنجا څه حکم دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کوم سړی چه پخپله له استنجا څخه عاجز وي یعني استنجا ئې په وس کښې نه وي که د بیمارۍ له وجهې وي او که ئې لاسونه پرې شوي وي او واده هم ونه لري نو د داسې سړي لپاره استنجا معاف ده۔ البته که چېرته ئې یو لاس پرې وي نو تر کومه ځایه پورې ئې چه وس رسیږي استنجا دې وکړي او که ئې وس نه رسیده نو بیا د مجبورۍ په صورت کښې استنجا ورته معاف ده۔

قال العلامة عالم بن علاء الانصاریؒ: الرجل المریض اذا لم یکن لهٗ امرأة و لا امة و له ابن و اخ و هو لا یقدر علی الوضوء قال یتوضئه ابنه او اخوه غیر الاستنجاء فانه لا یمس فرجه و یسقط عنه و المرأة المریضة اذا لم یکن لها زوج و هی لا تقدر علی الوضوء و لها بنت او اخت توضئها و یسقط عنها الاستنجاء آه و لا یخفٰی ان هٰذا التفصیل یجری فیمن شلت یداه لانه فی حکم المریض. (الفتاوی التاتارخانیة ج۱، ص۱۰۴، کتاب الطهارة)

قال العلامة ابن عابدینؒ: (تحت قوله سقط اصلا کمریض) و الرجل المریض اذا لم یکن له امرأة و لا امة و له ابن و اخ و هو لا یقدر علی الوضوء قال یتوضئه ابنه او اخوه غیر الاستنجاء فانه لا یمس فرجه و یسقط عنه و المرأة المریضة اذا لم یکن لها زوج و هی لا تقدر علی الوضوء و لها بنت او اخت توضئها و یسقط عنها الاستنجاء و لا یخفٰی ان هٰذا التفصیل یجری فیمن شلت یداه لانه فی حکم المریض. (رد المحتار ج۱، ص۳۴۱، فصل فی الاستنجاء) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۴۹، فصل فی الاستنجاء.

## د ښځې او نــــــــر په استنجا کښې فرق

**سوال:** د سړي او ښځې په استنجا کښې څه فرق شته او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د سړي او ښځې په استنجا کښې هیڅ فرق نشته یعني لکه څرنګه چه سړي په استنجا کښې اوبه او لوټې استعمالولی شي همدارنګه ئې ښځې هم استعمالولی شي۔ البته د سړي لپاره استبراء (یعنې له متیازو څخه وروسته دومره انتظار کول چه څاڅکي بند شي) ضروري ده او د ښځې لپاره ضروري نه ده۔

قال العلامة ابن عابدینؒ: قلت بل صرح فی الغزنویة بانها تفعل کما یفعل الرجال فی الاستبراء فانها لا استبراء علیها بل کما فرغت من البول و الغائط تصبر ساعة لطیفة ثم تمسح قبلها و دبرها با لاحجار ثم تستنجی با لماء. (رد المحتار علی در المختار ج۱، ص۲۴۸، فصل فی الاستنجاء)

قال حسن بن عمارؒ: یلزم الرجل الاستبراء و المراد طلب برائة المخرج عن اثر الرشح حتٰی یزول اثر البول و لا یحتاج المرأة الی ذٰلک بل تصبر قلیلاً ثم تستنجی. (مراقی الفلاح ص۶۴، فصل فی الاستنجاء) و مثله فی البحر الرائق ج۱، ص۲۴۰، باب الانجاس.



## د مجبورۍ له وجهې بل ته استنجا ور وهل

**سوال:** یو سړی دومره مریض دی چه پخپله استنجا نه شي وهلی آیا دغه سړي ته بل څوک استنجاء وهلې شي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته یو څوک د بیمارۍ او کمزورۍ له وجهې پخپله په استنجا وهلو باندې قادر نه وي نو د بل استنجا وهل ورته جائز دي۔ خو په دې شرط چه خپله ښځه یا ئې وینځه وي۔ له خپلې ښځې یا وینځې څخه بغیر ئې بل څوک استنجا نه شي وهلی۔ په دې صورت کښې بیا استنجا ورته معاف دی۔

لما فی الهندیة: الرجل المریض اذا لم یکن له امرأة و لا امة و له ابن و اخ و هو لا یقدر علی الوضوء فانه یوضیه ابنه او اخوه غیر الاستنجاء فانه لا یمس فرجه و سقط عنه الاستنجاء کذا فی المحیط. و المرأة المریضة اذا لم یکن لها زوج و عجزت عن الوضوء و لها ابنة او اخت توضیها و سقط عنها الاستنجاء. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۵۰، الفصل الثالث فی الاستنجاء)

قال العلامة فخر الدین قاضی خانؒ: و کذا قالوا فی المریض اذا لم یکن لهٗ امرأة و عجز عن الوضوء و لهٗ ابن او اخٌ فانهٗ یوضیه الا انّه لا یمس فرجه الا من یحل له وطؤها و المرأة المریضة ان لم یکن لها زوج و عجزت عن الوضوء و لها بنتٌ او اختٌ توضیها و یسقط عنها الاستنجاء. (الفتاوی قاضی خان علی هامش الهندیة ج۱، ص۳۳، فصل فی صفة الوضوء)

## په ولاړې باندې د متیازو کولو مسئله

**سوال:** د پتلون د اغوستلو په صورت کښې په ولاړې باندې د متیازو د کولو ضرورت پیدا کیږي۔ نو آیا په ولاړې باندې متیازې کول جائز دي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** رسول اللهﷺ د مجبورۍ په حالت کښې او د کوم عذر له وجهې په ولاړې باندې بولې کړي دي۔ او له عذر او مجبورۍ پرته په عامو حالاتو کښې ئې په ناستو بولې کړي دي۔ نو د دې لپاره فقهاء کرامو په ناستې د بولو کولو حکم ورکړی دی او په ولاړې ئې بولې مکروه بللي دي۔ او د مجبورۍ په حالاتو کښې سړي ته په ولاړې باندې متیازې کول جائز دي لیکن له څاڅکو څخه به ځان ساتي۔

لما قال العلامة الحصکفیؒ: و کذا یکره......... ان یبول قائماً او مضطجعاً او مجرداً من ثوبهٖ بلا عذرٍ آه. قال العلامة ابن عابدینؒ (تحت قوله ان یبول قائماً) لما ورد من النهی عنه لقوله عائشه رضی اللّٰه عنها من حدثکم ان النبیﷺ کان یبول قائماً فلا تصدقوه ما کان یبول الا قاعداً......... فلذا قال العلماء یکره الا لعذر و هی کراهة تنزیهة لا تحریم. (رد المحتار ج۱ ص۳۴۴، باب الاستنجاء)

قال العلامة یوسف البنوریؒ: ان البول قائما و ان کانت فیه رخصة و المنع للتادیب لا للتحریم کما قال الترمذی و لکن الیوم الفتوٰی علی تحریمه اولٰی حیث اصبح شعاراً لغیر المسلمین من الکفار. (معارف السنن ج۱، ص۱۰۶، باب ما جاء من الرخصة فی ذٰلک)

## د متیازې په وخت کښې بچی قبلې ته مخامخ نیول

**سوال:** د ښځو دا عادت وي چه کله کله هغوی خپل بچي د متیازو کولو لپاره قبلې ته مخامخ نیسي آیا د شریعت له مخې د اسې کول جائز دي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د قبلې خوا ته مخ یا شا کرځول دواړه مکروه دي۔ په فقهي ذخائرو کښې د ښځو لپاره دا عمل مکروه کڼل شوی دی۔ نو د دې لپاره ښځې باید خپل بچي د متیازو په وخت کښې قبلې ته مخامخ و نه نیسي۔

کما قال العلامة الحصکفیؒ: و کذا یکره هٰذه تعم التحریمیة و التنزیهیة للمرأة امساك صغیر لبول او غائط نحو القبلة. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۳۴۲، باب الاستنجاء)

قال العلامة حسن بن عمار الشرنبلالیؒ: و یکره امساك الصبی نحو القبلة للبول. قال السید احمد الطحطاویؒ (تحت قوله یکره امساك الصبی)........ و یکره امساکه حال قضاء حاجته نحو القبلة و عین القمرین و نحو ذٰلك.
(الطحطاوی حاشیة مراقی الفلاح ص۴۱، باب الاستنجاء) و مثله فی البحر الرائق ج۱، ص۲۴۳، فصل فی الاستنجاء.

## بیت الخلاء ته د داخلیدو طـــــریقه

**سوال:** جناب مفتي صاحب! ما له یوه سړي څخه اوریدلي دي چه بیت الخلاء ته د داخلیدو په وخت کښې به اول کینه پښه د اخلوې او د وتلو په وخت کښې به اول ښۍ پښه باسې۔ آیا دا خبره صحیح ده او که څنګه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په معاشرت کښې دوه ډوله عملونه وجود لري یو هغه اعمال دي چه لوړ عظمت او شان لري او دوهم هغه عمل چه خسیس او بې عظمت او نه شان لرونکی وي۔ په شریعت مقدسه کښې په هر هغه عمل چه د شان او عظمت خاوند وي له ښۍ خوا څخه د شروع کولو حکم دی۔ او په هر هغه خسیس عمل چه شان او عظمت نه لري له کیڼې خوا څخه د شروع کولو حکم دی۔ لکه څرنګه چه بیت الخلاء ته د داخلیدو په وخت کښې سړی باید اول کینه پښه داخله کړي او د وتلو په وخت کښې باید لومړی ښۍ پښه را وباسي او همدا طریقه د بیت الخلا له آدابو څخه ده۔

لما قال الشیخ وهبة الزحیلی: یدخل الخلاء برجه الیسریٰ و یخرج برجه الیمنیٰ لاکل ما کان من التکریم یبدأ فیه با لیمین و خلافه با لیسار لمناسبة الیمین للمکرم و الیسار للمستقذر. (الفقه الاسلامی و ادلته ج۱، ص۲۰۳، خامساً آداب قضاء الحاجة)

و فی الهندیة: و یستحب لهٗ عند الدخول فی الخلاء ان یقول اللّٰهم اِنِّیْ اَعُوْذُ بِكَ مِنَ الْخُبْثِ وَ الْخَبَائِثِ و یقدم رجله الیسریٰ و عند الخروج یقدم الیمنیٰ. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۵۰، فصل فی الاستنجاء) و مثله فی معارف السنن ج۱، ص۷۶، باب ما یقول اذا دخل الخلاء.



## د قضاء حاجت په وخت کښې که چیرته چا ته پرنجي ورشي نو څه به کوي؟

**سوال:** که چیرته د قضاء حاجت په وخت کښې چا ته پرنجي ورشي نو آیا الحمد لله به وایي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د قضاء حاجت په وخت کښې خبرې، ذکر او اذکار مکروه دي۔ البته که چیرته چا ته د قضاء حاجت په وخت کښې پرنجي ورشي نو هغه باید الحمد لله ووایي لیکن په زړه کښې نه په ژبه۔

لما فی الهندیة: فان عطس حمد الله بقلبه و لا یحرك لسانه الخ. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۵۰، فصل فی الاستنجاء)

لما قال الشیخ وهبة الزحیلی: اذا عطس حمد الله بقلبه و یقول بعد الاستنجاء اللّٰهم طَهِّرْ قَلْبِی مِنَ النِّفَاقِ. الخ. (الفقه الاسلامی و ادلته ج۱، ص۲۰۶، خامساً، اداب قضاء الحاجة)

## د قضاء حاجت لپاره د کښیناستو په وخت کښې د کالي د پورته کولو حکم

**سوال:** جناب مفتي صاحب! کله چه یو څوك د قضاء حاجت لپاره بیت الخلاء ته ورځي نو پرتوګ به څه وخت باسي او لمن به کله پورته کوي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د قضاء حاجت لپاره د کښیناستلو په وخت کښې دې پرتوګ په هغه وخت کښې باسي او لمن به پورته کوي چه کله زمکې ته نږدې شي۔

لما قال الشیخ وهبة الزحیلی: یستحب الا یرفع ثوبه حتٰی یدنو من الارض لان ذٰلك استر له و لما روی ابو داوٗد عن النبی ﷺ انه کان اذا اراد الحاجة لا یرفع ثوبه حتٰی یدنو من الارض. (الفقه الاسلامی و ادلته ج۱، ص۲۰۴، خامساً آداب قضاء الحاجة)

عن ابن عمرؓ: ان النبی ﷺ کان اذا اراد حاجة لا یرفع ثوبه حتٰی یدنو من الارض. قال الشیخ خلیل احمد السهارنفوریؒ تحت هٰذا الحدیث و هٰذا لان النبی ﷺ نهی عن التعری فی الخلوت. ایضاً و قال فا لله احق ان یستحی منه من الناس و هٰذا یدل علی ان جواز التعری فی الخلوت للضرورة فلا ینبغی ان یرفع ثوبه قبل الضرورة. (بذل المجهود ج۱، ص۱۰، کیف التکشف عند الحاجة)

## بیت الخلاء ته د قرآني آیتونو او نبوي احادیثو له پاڼو سره د ننوتلو حکم

**سوال:** آیا د قضاء حاجت لپاره بیت الخلاء ته د ننوتلو په وخت کښې که د چا په جیب کښې د قرآني آیتونو او احادیثو پاڼې وي۔ آیا له د اسې مقدسو پاڼو سره بیت الخلا ته ننوتل جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په اسلامي شریعت کښې د هر معظم شي د تعظیم او احترام حکم ورکړ شوی دی۔ لکه څرنګه چه د قرآني آیتونو او مبارکو احادیثو پاڼې ډیرې معظمې، محترمې او مکرمې دي او بیت الخلاء ته له ځان سره په وړلو کښې ئې تحقیر (سپکوالی) راځي۔ نو د دې لپاره رسول الله ﷺ پخپله بیت الخلاء ته د داخلیدلو په وخت کښې خپله ګوته

مبارکه له ګوتې څخه لرې کوله ځکه چه په هغې باندې محمد رسول الله لیکلي وو- البته که چېرته د داسې کاغذونو د باندې په ایښودو کښې د ضائع کیدو خطره وي نو له ځان سره ئې بیت الخلاء ته په وړلو کښې څه قباحت نشته-

لما قال الشیخ وهبة الزحیلی: لا یحمل مکتوباً ذکر اسم الله علیه او کل اسم معظم کا لملائکة و العزیز و الکریم و محمد و احمد. لما روی انس ؓ ان النبی ﷺ کان اذا دخل الخلاء وضع خاتمه و کان فیه محمد رسول الله فان احتفظ به و احترز علیه من السقوط فلا بأس. (الفقه الاسلامی و ادلته ج١، ص٢٠٢، آداب القضاء الحاجة)

قال الشیخ خلیل احمد السهارنفوری ؒ: (تحت قوله النبی ﷺ) عن انس ؓ ان النبی ﷺ کان اذا دخل الخلاء وضع خاتمه یعنی ینزع خاتمه من الاصبع ثم یضعه خارج الخلاء و لا یدخل الخلاء مع الخاتم و هذا العظیم اسم الله عز و جل و یدخل فیه کلما کان فیه اسم الله من القرطاس و الدراهم الخ. (بذل المجهود ج١، ص١٣، باب الخاتم یکون فیه ذکر الله تعالی یدخل به الخلاء)

## د قضاء حاجت په دوران کښې د برش یا مسواك د وهلو حکم

**سوال:** د دې مسئلې په باره کښې د دین علماء کرام څه فرمایي چه یو سړی په بیت الخلاء کښې د قضاء حاجت لپاره ناست وي لیکن په همدې مهال کښې مسواك هم وهي آیا د داسې کولو شرعا جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د د قضاء حاجت له مستحباتو څخه دی چه سړی به د متیازې کولو په دوران کښې له قضاء حاجت پرته بل هیڅ عمل به هم نه کوي- نه به آسمان ته ګوري او نه به خپلې شرمګاه ته ګوري او نه ښي او چپې خوا ته ګوري- همد ارنګه سړی دې باید په دې دوران کښې له برش وهلو او مسواك وهلو څخه هم ډډه وکړي-

لما قال الشیخ وهبة الزحیلی: یستحب الا ینظر الی السماء و لا الی فرجه و لا الی ما یخرج منه و لا یعبث بیده و لا یلتفت یمیناً و لا شمالاً و لا یستاك لان ذلك کله لا یلیق بحاله. (الفقه الاسلامی و ادلته ج١، ص٢٠٦، آداب القضاء الحاجة)

لما فی الهندیة: و لا ینظر لعورته الا لحاجة و لا ینظر الی ما یخرج منه و لا یبزق و لا یمتخط و لا یتنحنح و لا یکثر الالتفات و لا یعبث ببدنه و لا یرفع بصره الی السماء الخ. (الفتاوی الهندیة ج١، ص٥٠، فصل فی الاستنجاء)

## بیت الخلا ته په بـــــــربنډو پښو د ننوتلو حکم

**سوال:** د ځینو جوماتونو استنجا خانې د جوماتونو په د داسې ځایونو کښې وي چه هلته له بوټونو سره تلل صحیح نه وي ځکه چه د جومات صحن ته د تللو ضرورت ورسره وي نو آیا د داسې استنجا خانې او بیت الخلاوو ته ابلې پښې تګ صحیح دی او که څنګه؟ بینوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** داسې خو له بوټونو سره بیت الخلا او استنجا خانو ته تلل د قضاء حاجت له آدابو او مستحباتو څخه دی لیکن په صورت مسئوله کښې د جومات عظمت او حرمت ته په نظر کولو سره ابلې پښې په تللو کښې څه بدي نشته- بیا هم مناسبه دا ده چه د جومات استنجاء خانې باید په د داسې ځایونو کښې جوړې شي چه هلته له څپلیو سره تلل ممکن وي-



لما قال الشیخ وهبة الزحیلی: ان یلبس نعلیه و یستر رأسه و یاخذا حجار الاستنجاء او یهیء و یعد المزیل للنجاسة من ماء و نحوه. (الفقه الاسلامی و ادلته ج١، ص٢٠٣، باب خامساً، آداب قضاء الحاجة)

## د استعمال شوي لوټې د بیا استعمالولو حکم

**سوال:** ځینې خلك په استعمال شوي لوټې باندې دوباره استنجاء وهي- په شریعت کښې د لوټې له وچید و څخه وروسته په هغې باندې د بیا استنجا وهلو اجازه شته او که نه؟ بینوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په لوټو یا ډېرو باندې د استنجاء وهلو په صورت کښې دا ضروري ده چه هغه لوټه یا ډېره پاکه وي- د دې لپاره فقهاوو په یو ځــــــل استعمال شوي لوټې یا ډېرې باندې بیا استنجا وهل ناجائز ګرځولي دي- بیا هم که چېرته ډېره یا لوټه غټه وي او څو کونجونه ولري نو بیا د ګڼو لوټو په حکم کښې راځي او په هر یوه کونج ئې مستقله استنجا وهل له کراهیت پرته جائز دي-

قال العلامة ابن همام ؒ: و لا یجزئه الاستنجاء بحجر استنجی به مرةً الا ان یکون له حرف آخر لم یستنج به. (فتح القدیر ج١، ص١٩٠، فصل فی الاستنجاء)

قال فی الهندیة: و کذا لا یستنجی بحجر استنجی به مرةً هو او غیره الا اذا کان حجراً له احرف له ان یستنجی کل مرة بطرف لم یستنج به فیجوز من غیر کراهة کذا فی المحیط. (الهندیة ج١، ص٥٠، الفصل الثالث فی الاستنجاء) و مثله فی خلاصة الفتاوی ج١، ص٢٤، باب الاستنجاء.

# مسائـــــل شتّٰی

## (د غسل او اوداسه مختلف احکام او مسئلې)

### د غسل او اوداسه لپاره د اوبو انـــــدازه

**سوال:** د اوداسه او غسل لپاره سړی باید څومره اوبه استعمال کړي؟ آیا شرعاً د اوبو د استعمال لپاره کومه ټاکلې اندازه شته او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په شریعت کښې د اوداسه او غسل لپاره د اوبو کومه د اسې خاصه اندازه نه ده ټاکل شوې چه له هغې څخه په کمې یا زیاتې اوبو باندې اودس او غسل کیږي یا نه کیږي۔ البته د مبارکو احادیثو په رڼا کښې حضرت عائشه صدیقه رضی الله تعالٰی عنها فرمایي چه نبي کریم ﷺ به په یوې صاع اوبو باندې غسل او په یوه مد اوبو باندې ئې اودس کاوه۔ د صاع اندازه د موجوده اندازې له مخې ۲۷۰ تولې او د مد اندازه ۶۸ تولې او څو ماشې جوړیږي۔

لما قال العلامة السید احمد الطحطاویؒ: و اعلم انه نقل غیر واحد الاجماع علی عدم التقدیر فی ماء الوضوء و الغسل بل هو بقدر الکفایة لاختلاف طباع الناس. و عن عائشه رضی الله عنها جرت السنة عن رسول الله ﷺ فی الغسل من الجنابة صاع ثمانیة ارطال و فی الوضوء رطلان هما مد فا لمد ربع صاع. (طحطاوی ص ٦٤، کتاب الطهارة، فصل فی المکروهات)

قال العلامة الکاسانیؒ: مقدار الماء الذی یغتسل به فقد ذکر فی ظاهر الروایة و قال ادنٰی ما یکفی فی الغسل من الماء صاع و فی الوضوء مُد...... ثم هٰذا التقدیر الذی ذکره محمدؒ من الصاع و المُدّ فی الغُسل و الوضوء لیس بتقدیر لازم بحیث لا یجوز النقصان عنه او الزیادة علیه بل هو بیان مقدار ادنی الکفایة عادة حتّٰی مّن اسبغ الوضوء و الغسل بدون ذٰلك اجزاًه و ان لم یکفه زاد علیه لان طباع الناس و احوالهم تختلف. (بدائع الصنائع ج۱، ص۳۵، مطلب آداب الوضوء)

### د ګنجي (هغه سړی چه په سر کښې ئې ویښتان نه وي) د مخ د حدودو تعین

**سوال:** جناب مفتي صاحب! د فقهې په ځینو کتابونو کښې د مخ حد د سر له ویښتانو څخه د زنې تر لاندیني حصې پورې او له یوه غوږ څخه تر بل غوږه پورې دی۔ نو اوس که چېرته د یوه سړي د سر له نیمایي څخه ئې ویښتان شنه شوي وي نو د داسې سړي به خپل مخ تر کوم ځایه پورې مینځي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د فقهاء کرامؒ په عباراتو کښې چه کومه خبره راغلې ده چه د مخ حد د سر له ویښتانو څخه د زنې تر لاندې حصې پورې ده نو له دې څخه مراد دا دی چه په عامه توګه چه له کوم ځای څخه د سر د ویښتانو شنه کېدل شروع کیږي۔ یعني په عام عرف کښې چه



د عامو خلکو د سر ویښتان چه له کوم ځای څخه شنه کیږي هغه ته اعتبار دی۔ نو د دې لپاره که چېرته د کوم سړي سر بالکل ګنجی وي او هیڅ ویښتان و نه لري نو هغه باید د مخ په وینځلو کښې د عرف مطابق عمل وکړي۔

قال العلامة حسن بن عمار الشرنبلالیؒ: و حدّه ای جملة الوجه طولاً من مبدأ سطح الجبهة سواء کان به شعر ام لا. قال السید احمد الطحطاویؒ (قوله سواء کان به شعر ام لا) اشار به الٰی ان الاغم و الاصلح و الاقرع و الانزع فرض غسل الوجه منهم ما ذکر. (طحطاوی و مراقی الفلاح ص ٤٥، احکام الوضوء)

قال العلامة الحصکفیؒ: من مبدأ سطح جبهته ای المتوضیء بقرینة المقام الٰی اسفل ذقنه ای منبت اسنانه السفلٰی طولاً کان علیه شعر او لا عدل من قولهم من قصاص شعره الجاری علی الغالب الی المطرد لیعم الاغم و الاصلح و الانزع. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۹۷، کتاب الطهارة) و مثله فی الهندیة ج۱، ص٤، کتاب الطهارة.

### لـــــه خوب څخه د ویښېدو وروسته د مسواك د وهلو حکم

**سوال:** آیا د شپې له خوب څخه د بیدارېدو نه وروسته مسواك وهل مسنون دي او که د ورځې له خوب (قیلوله او د غرمې خوب) څخه هم د ویښېدو نه وروسته مسواك وهل مسنون دي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** فقهاء کرامؒ د مطلقا خوب څخه له ویښېدو څخه وروسته مسواك وهل مستحب بللي دي۔ که د شپې وي او که د ورځې د غرمې د قیلولې خوب۔ نو د دې لپاره سړی چه هر وخت له خوبه پاڅي نو مسواك وهل ورته مستحب دي۔

قال العلامة حسن بن عمار الشرنبلالی رحمه اللّٰه: و یستحب لتغیر الفم و القیام من النوم. (مراقی الفلاح علی صدر الطحطاوی ص۳۷، فصل سنن الوضوء)

قال العلامة ابن عابدین رحمه اللّٰه: و یستحب فی خمسة مواضع اصفرار السن و تغیر الرائحة و القیام من النوم و القیام الی الصلٰوة و عند الوضوء. (رد المحتار ج۱، ص۱۱۳، سنن الوضوء، مطلب فی دلالة المفهوم) و مثله فی البحر الرائق ج۱، ص۲۰، سنن الوضوء.

### مــــــریض ته د تیمم لپاره د نیت حکم

**سوال:** جناب مفتي صاحب! زما نیکه مریض او ډېر کمزوری دی۔ ډاکټرانو په هغه باندې د اودس کولو او د اسې نورو لپاره د اوبو استعمالول بند کړي دي نو د دې لپاره زه هغه ته تیمم ور وهم۔ نو آیا د تیمم د وهلو لپاره نیت به زه کوم او که هغه به ئې کوي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په تیمم کښې نیت د هغه سړي په ذمې باندې وي چه څوك د پاکۍ او اودس حاصلول غواړي۔ لکه څرنګه چه په دې صورت کښې پاکوالی ستا نیکه حاصلوي نو د دې لپاره د تیمم نیت هم په هغه باندې لازم دی نه په تاسو۔

لما قال العلامة ابن نجیم المصری رحمه اللّٰه: مریض تیمّمه غیره فا لنیّة علی المریض دون المتیمم. انتهٰی. (الاشباه و النظائر ج۱، ص۱۸۰، القاعدة الثانیة ۳۳٤)

قال الشیخ المفتی عبد الرحیم لاجپوری: د مذکوره مجبوریو په صورتونو کښې که چېرته بل څوک چا ته تیمم ورکړي نو تیمم ئي کیږي لیکن نیت به پخپله معذور کوي، د تیمم ورکوونکي سړي نیت اعتبار نه لري۔ (فتاوىٰ رحیمیه ج۸، ص۹۱، کتاب الطهارة)

## د غسل په وخت کښې اوبو ته د استعمال شویو اوبو څاڅکو د ورلویدلو حکم

**سوال:** د جنابت د غسل په وخت کښې که چېرته د مستعملو اوبو څاڅکې د اوبو په لوښي کښې ولویږي نو آیا په دې سره نورې اوبه مرد اریږي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** فقهاء کرامو لیکلي دي چه که چېرته د جنوب سړي له بدن څخه د غسل په دوران کښې د توییدونکي اوبو څاڅکي پاکو اوبو ته ولویږي نو په دې سره پاکې اوبه نه مرد اریږي او غسل کول پرې جائز دي۔

لما فی الهندیة: جنب اغتسل فا نتضح من غسله شيء فی انائه لم یفسد علیه الماء. (الفتاوىٰ الهندیة ج۱، ص۲۳، الفصل الثانی فیما لا یجوز به التوضؤ)

قال العلامة طاهر بن عبد الرشید البخاری: جنب اغتسل فانتضح من غسله شيء فی انائه لم یفسد علیه الماء. (خلاصة الفتاوىٰ ج۱، ص۸، کتاب الطهارات، الفصل الاول)

## د مـردارو شیانو د سوځولو په صـورت کښې د هغو د لوګي او بخـاراتو (تاؤ) حکم

**سوال:** ډیر واري د ګندګۍ له ډیرانونو څخه تاو پورته کیږي۔ که چېرته د انسان په جامو یا بدن باندې ولګیږي نو آیا جامې یا بدن ئي پرې مرد اریږي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له نجاست څخه پورته کیدونکي بخارات او لوګي که چېرته د انسان په جامو او بدن باندې ولګیږي نو د هغه بدن او جامې نه پرې مرد اریږي۔ اګر که ځینو ویلي دي چه پرې مرد اریږي لیکن راجح قول دا دی چه نه پرې مرد اریږي۔

لما فی الهندیة: دخان النجاسة اذا اصاب الثوب او البدن الصحیح انه لا ینجسه. (الفتاوىٰ الهندیة ج۱، ص۴۷، الفصل الثانی فی الاعیان النجسة)

قال العلامة حسن بن عمار الشرنبلالی رحمه الله: و بخار الکنیف و الاصطبل و الحمام اذا قطر لا یکون نجساً استحساناً. (مراقی الفلاح علی صدر الطحطاوی ص۱۳۲، قبل الفصل یطهر جلد المیتة)

## د تي رودونکي بچي د قی حکـم

**سوال:** که چېرته تي رودونکی بچی په چا باندې قی وکړي نو آیا د هغه قی به پاک وي او که ناپاک؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** قی چه کله په ډکه خوله سره وي نو مطلقاً نجس دی که د لوی سړي وي او که د تي رودونکي بچي۔ بیا هم که چېرته قی په ډکه خوله سره نه وي نو بیا مرد ار نه دی۔



قال العلامة الحصکفی: ینقضه قيء ملأ فاه من مرة او علق او طعام او ماء اذا وصل الی معدته و ان لم یستقر و هو نجس مغلظ و لو من صبی ساعة ارتضاعه و هو الصحیح. لمخالطة النجاسة ذکره الحلبی. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۱۳۷، مطلب نواقض الوضوء)

## د کوچني په اوبو کښې د لاس ډوبـولو حکم

**سوال:** که چېرته یو کوچنی د اوبو په لوښي کښې لاس ډوب کړي نو آیا اوبه پرې مرد اریږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په صورت مسئوله کښې د اوبو پاکوالی او نجس والی د بچي د لاس په پاکوالي او ناپاکوالي پورې اړه لري۔ که چېرته د بچي لاس په یقیني توګه پاک او صفا وي نو له شبهې پرته اوبه هم پاکې دي۔ او که چېرته د کوچني لاس نجس وي نو اوبه به هم نجسې وي۔ بیا هم که چېرته د شك غوندې صورت پیدا شي نو بهتره دا ده چه هغه اوبه استعمالې نه شي او که ئي څوك استعمال هم کړي نو پروا نه لري۔

قال العلامة فخر الدین قاضی خان: و کذا الصبی اذا دخل یده فی البئر او فی الاناء لا یتوضأ منه استحساناً ما لم ینزح و ان لم ینزح و توضأ جاز. (فتاوىٰ قاضی خان علی هامش الهندیة ج۱، ص۹، فصل فی البیر)

## د اودسه په وخت کښې د آذان د ځواب ورکولو حکم

**سوال:** که چېرته یو څوك په اودسه شروع وکړي او په دې وخت کښې آذان هم شروع شي نو آیا دا سړی به د اودسه دعا ګانې وایي او که به د آذان ځواب ورکوي؟ د شریعت له مخې کوم یو افضل دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د اودسه په وخت کښې مسنونې دعاګانې او د آذان ځواب ورکول دواړه سنت دي۔ له دې وجهې په دواړو کښې چه کوم یو وغواړي هغه دې ادا کړي۔ بیا هم د اذان ځواب ورکول ورته بهتر دي۔ او وجه ئي دا ده چه د آذان اوریدونکي ته د سلام ځواب ورکول هم مناسب نه دي په داسې حال کښې چه د سلام ځواب ورکول واجب دي۔

قال العلامة الکاسانی: و لا ینبغی ان یتکلم السامع فی حال الآذان و الاقامة و لا یشتغل بقرائة القرآن و لا بشيء من الاعمال سوی الاجابة و لو کان فی القرأة ینبغی ان یقطع و یشتغل با لاستماع و الاجابة. (بدائع الصنائع ج۱، ص۱۵۵، فصل ما یجب علی السامعین عند الآذان)

قال العلامة ابن عابدین: و ینبغی للسامع ان لا یتکلم و لا یشتغل بشيء فی حالة الآذان و الاقامة و لا یرد السلام ایضاً لان الکل یخل با لنظم. (رد المحتار ج۱، ص۳۹۹، باب الآذان، مطلب فی کراهة تکرار الجماعة فی المسجد)

## د تیمم د جواز لپاره د مســـــافت اندازه

**سوال:** اوبو چه له سړي څخه څومره لرې وي نو تیمم ورته روا دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کله چه څوك د یو میل په فاصله له اوبو څخه لرې وي نو تیمم ورته جائز دی او له میل څخه څلور زره ذراعه مراد دی یعنې کله چه له کوم سړي څخه په څلورو خواوو کښې اوبه یو یو میل لرې وي نو تیمم ورته جائز دی۔

قال العلامة الحصکفیؒ: و من عجز عن استعمال الماء الخ لبُعدهٖ و لو مقیماً فی المصر میلاً اربعةً آلاف ذراع و هو اربع عشرون اصبعاً و هی ست شعیرات ظهر لبطن و ست شعرات بغل. (الدر المختار علی صدر رد المختار ج۱، ص۲۳۳، باب التیمم)

و فی الهندیة: یجوز التیمم لمن کان بعیداً من الماء میلاً هو المختار فی المقدار سواء کان خارج المصر او فیه و هو الصحیح و سواء کان مسافراً او مقیماً....... ان المیل هو ثلث الفرسخ اربعة آلاف ذراع طول کل ذراع اربع و عشرون اصبعا و عرض کل اصبع ست حبات شعیر ملحقة ظهر البطن. (الهندیة ج۱، ص۲۷، الباب الرابع فی التیمم)

## په سکـــــــرو باندې د تیمم وهلو حکم

**سوال:** سکاره په دوه قسمه دي یو جبلي (غرنی) کوم چه له کانونو څخه ایستل کیږي او یو هغه سکاره چه د لرګیو د سوځیدو په نتیجه کښې منځ ته راځي۔ آیا په غرني سکرو او د هغو په ایرو باندې تیمم وهل جائز دي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** غرني سکاره چونکه حکماً ډبره وي نو د دې لپاره د زمکې له جنس څخه ګڼل کیږي او تیمم پرې جائز دی۔ همدارنه د دغو سکرو په ایرو باندې هم تیمم وهل جائز دي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: و مترمد با لاحتراق الا رماد الحجر فیجوز کحجر مدقوق او مغسول. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۲۴۰، باب التیمم)

قال الشیخ خلیل احمدؒ: د بنده په نزد په غرنۍ سکرو او د هغو په ایرو باندې تیمم جائز دی ځکه چه د هغو حکم د ډبرو دي۔ (فتاوٰی خلیلیه ج۱، ص۷۵، کتاب الطهارة، باب التیمم)

## په ایـــــــرو باندې د تیمم وهلو حکم

**سوال:** په ایرو باندې تیمم جائز دی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب:** د تیمم لپاره دا شرط دی چه هغه شی چه تیمم پرې وهل کیږي د زمکې له جنس څخه به وي۔ فقهاء کرامو د زمکې د جنس د پیژندګلوي په باره کښې فرمایلي دي چه هر هغه شی چه په سوزولو سره نه ایرې کیږي او نه ویلې کیږي هغه د زمکې له جنس څخه ګڼل کیږي۔ او چونکه ایرې له داسې شي څخه جوړیږي چه اور ئې سوزوي او بیا په نتیجه کښې ایرې ترې جوړې شي کوم چه د جنس الارض د زمکې د جنس والي تعریف پرې نه صادقیږي۔ نو سره له دې چه پاکې هم دي لیکن تیمم پرې جائز نه دی۔



قال العلامة ابو بکر الکاسانیؒ: جنس الارض فکل ما یحترق با لنار فیصیر رمادا کا لحطب و الحشیش و نحوهما او ما ینطبع و یلین کا لحدید و الصفر و النحاس و الزجاج و عین الذهب و الفضة و نحوها فلیس من الارض و ما کان بخلاف ذٰلك فهو من جنسها. (بدائع الصنائع ج۱، ص۵۳، فصل فی بیان ما یتیمم به)

و فی الهندیة: ما یحترق با لنار فیصیر رمادا کا لحطب و الحشیش و نحوهما او ما ینطبع و یلین کا لحدید و الصفر و الزجاج و عین الذهب و الفضة و نحوها فلیس من جنس الارض و ما کان بخلاف ذٰلك فهو من جنسها. (الهندیة ج۱، ص۲۶، الباب الرابع فی التیمّم، الفصل الاول)

## پـــــه بالبنت باندې د تیمم وهلو حکم

**سوال:** یو سړی د بیمارۍ له وجهې همیشه په بستر کښې پروت وي او ډاکټرانو د اوبو له استعمالولو څخه منع کړی دی نو آیا د داسې سړي لپاره په بالبنت باندې تیمم وهل جائزي دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** داسې بیمار چه د بستر خاوند وي او ډاکټرانو د اوبو له استعمال څخه منع کړي وي د هغه لپاره په ګدۍ یا بالبنت باندې تیمم وهل جائز دي خو په دې شرط چه ګرد او غبار پرې پروت وي لکه څرنګه چه فتاوٰی تاتارخانیه کښې راغلي چه: و الصحیح قول ابی حنیفة رحمه الله تعالٰی: و صورة التیمم با لغبار ان یضرب بیدهٖ ثوباً او لبداً او وسادةً و ما اشبهها من الاعیان الطاهرة التی علیها غبار فاذا وقع الغبار علی یده تیمّم آه. تاتارخانیة ج۱، ص۲۴۰، باب التیمم)

قال ابراهیم الحلبیؒ: و لا یجوز عندنا بما لیس من جنس الارض و هو ما یلین با لنار او یترمد کا لذهب و الفضة و الحدید و الرصاص و الصفر و النحاس و نحوها مما ینطبع و یلین با لنار و کا لحنطة و سائر الحبوب و الاطعمة من الفواکه و غیرها و انواع النباتات مما یترمد با لنار اذا لم یکن علیها غبار و ان کان علی هٰذه الاشیاء المذکورة غبار یجوز التیمم بغبارها عند ابی حنیفةؒ الخ. (کبیری ص۷۶، باب التیمم) و مثله فی مجموعة الفتاوٰی ج۱، ص۱۷۸، کتاب الطهارة.

## په یوه ځای باندې بیا بیا د تیمم وهلو حکم

**سوال:** په یوه ځای باندې بیا بیا تیمم وهل جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په یوې لوټې یا کوم بل ځای باندې د فقهاء کرامو د اقوالو له مخې په څو څو واره تیمم وهل جائز دي۔

لما قال العلامة عالم بن العلاء الانصاریؒ: و اذا تیمم مراراً من موضع واحدٍ جاز. (التاتارخانیة ج۱، ص۲۴۲، قبل نوع من یجوز لهٗ التیممْ و لا یجوز له)

و فی الهندیة: و اذا تیمم مرارا من موضع واحدٍ جاز کذا فی التاتارخانیة. (الهندیة ج۱، ص۳۱، الباب الرابع فی التیمم، الفصل الثالث فی المتفرقات)

## د قرآنکریم د تلاوت لپاره په شوي تیمم باندې د لمانځه د اداکولو حکم

**سوال:** کوم تیمم چه د تلاوت لپاره یا نورو اذکارو لپاره وهل شوی وي په هغه تیمم سره د لمانځه اداکول جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** عبادت په دوو ډولونو دی۔ یو هغه عبادت چه اودس ورته شرط دی لکه لمونځ، د تلاوت سجده او د اسې نور۔ او بل هغه عبادت چه اودس ورته شرط نه دی لکه د قرآن تلاوت، جومات ته داخلیدل او د دین ښوونه او د اسې نور۔ اوس که چېرته تیمم د هغو عباداتو لپاره وهل شوی وي چه د هغو لپاره اودس شرط وي نو په هغه تیمم سره تول عبادتونه جائز دي۔ او که چېرته تیمم د هغو عباداتونو لپاره وهل شوی وي چه اودس ورته شرط نه وي نو په هغه تیمم سره د هغو عباداتو اداکول صحیح نه دي چه اودس ورته شرط دی۔ د دې لپاره د قرآنکریم د تلاوت یا نورو اذکارو لپاره لکه څرنگه چه اودس شرط نه دی نو په د اسې تیمم سره د لمانځه اداکول صحیح نه دي۔

لما قال العلامة الحصكفیؒ: لو تیمّم لدخول مسجد او لقرأة و لو من مصحف......لم تجز الصلٰوة به عند العامة. قال ابن عابدینؒ (تحت قوله لم تجز الصلٰوة به) ای لفقد الشرط و هو امر ان لكون المنوی عبادة مقصودة و كونها لا تحل الا با لطهارة. (رد المحتار ج۱، ص۲۴۵، باب التیمم)

قال ابن نجیم المصریؒ: و صرحوا بانه لو تیمّم لدخول المسجد او القرأة و لو من مصحف او مسه او زیارة القبور...... لا تجوز الصلٰوة بذٰلك التیمّم عند عامة المشائخ لان بعضها لیست بعبادة مقصودة و ان كان عبادة مقصودة لكن یصح بدون الطهارة. (البحر الرائق ج۱، ص۱۵۰، باب التیمّم) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۲۶، الباب الرابع فی التیمّم، الفصل الاول.

## د وخت د تنگوالي له وجهې د تیمم وهلو حکم

**سوال:** که چېرته یو د اسې واقعه را منځ ته شي چه سړي ته د غسل ضرورت پیښ شي او هلته د لمانځه وخت ډېر کم وي۔ نو آیا د وخت د تنگوالي له وجهې سړی تیمم وهلی شي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د وخت تنگوالی د اسې شرعي عذر نه دی چه له وجهې ئې غسل پرېښودل شي او په تیمم باندې اکتفا وشي۔ بلکه په هر حال کښې غسل ضروري دی۔

لما قال العلامة الحصكفیؒ: لا یتمّم لفوت جمعة و وقت و لو وترا لفواتها الی بدلٍ. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۲۴۶، باب التیمّم)

قال العلامة ابراهیم الحلبیؒ: و لو خاف خروج الوقت لو اشتغل با لوضوء فی سائر الصلٰوة ما عدا صلٰوة الجنازة و العید لا یتمّم عندنا. (كبیری ص۸۳، فصل فی التیمم)



## په محبس (بندي خانې) کښې د اوبو د نشت والي په صورت کښې د تیمم حکم

**سوال:** د افغانستان او کشمیر په جهاد کښې چه کوم خلك د کفارو په جیلونو کښې بندیان دي۔ که چېرته د اوبو د موجودوالي ترڅنگ کفار هغوی د اودس او غسل لپاره پرې نږدي نو آیا دا خلك په تیمم سره لمونځونه کولی شي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د تیمم د جواز لپاره په اوبو باندې د قدرت نه درلودل شرط دی۔ او دا قدرت نه درلودل که د لرې والي له وجهې وي او یا د مرض یا د دښمن له وجهې وي۔ په دې ټولو صورتونو کښې په تیمم باندې دلمونځونو اداکول جائز دي۔ له دې وجهې که چېرته قیدیان په تیمم سره لمونځونه وکړي نو ورته جائز دي۔

قال العلامة الحصكفیؒ: من عجز عن استعمال الماء...... لبعده و لو مقیماً فی المصر میلاً......... او لمرضٍ یشتد او یمتد بغلبة ظن او قول حاذق مُسلم...... او برد یهلك الجنب او یمرضه....... او خوف عدُوّ كحیة او نار علی نفسه و لو من فاسق او حبس غریم او ماله...... او عطش و لو لكبه او رفیق القافلة حالاً او مآلاً. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۲۳۲ تا ۲۳۵، باب التیمّم)

قال الشیخ السید احمد الطحطاویؒ: (و منه خوف عدُوّ) آدمی او غیره سواء خافه علی نفسه او ماله او امانته او خافت فاسقاً عند الماء او خاف المدیون المفلس الحبس و لا اعادة علیهم و لا علٰی من حبس فی السفر بخلاف المكره علی ترك الوضوء فتیمّم فانه یعید الصلٰوة. (مراقی الفلاح علی صدر الطحطاوی ص۹۲، باب التیمّم)

## د زخمي سړي لپاره د تیمم حکم

**سوال:** که چېرته یو سړی دومره زخمي وي چه غسل ورته مشکل وي نو آیا هغه د غسل په ځای تیمم وهلی شي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته د ځان په نیم وجود یا تر دې زیات باندې زخمونه وي نو هغه تیمم وهلی شي۔ البته که چېرته د بدن زخمونه ئې کم وي او د غسل کول ورته ممکن وي نو بیا به غسل کوي او د زخم په ځایونو دې مسح وکړي۔ او که چېرته ئې زخمونه هم کم وي لیکن د اوبو رسیدل ورته تاوان وي نو بیا هم تیمم ورته جائز دی۔

و یجوز التیمّم اذا خاف الجنب اذا اغتسل با لماء ان یقتله البرد او یمرضه. و ان كان به جراحات یعتبر الاكثر محدثاً كان او جنباً ف فی الجنابة یعتبر كثر البدن و فی الحدث یعتبر اكثر اعضاء الوضوء فان كان الاكثر صحیحاً و الاقل جریحاً یغسل الصحیح و یمسح علی الجریح ان امكنه و ان لم یمكنه المسح یمسح علی الجبائر او فوق الخرقة و لا یجمع بین الغسل و التیمّم. (الهندیة ج۱، ص۲۸)

قال العلامة الحصكفیؒ: او المرض یشتد او یمتد بغلبة ظن او قول حاذق مسلم و لو بتحرك. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۲۳۳، باب التیمم) و مثله فی الفقه الاسلامی و ادلتُه ج۱، ص۴۱۸، باب التیمّم، المرض اوبطء البرء.

## په سړو سیمو کښې د تیمم حکم

**سوال:** آیا یو جُنُب سړی په سختو سړو علاقو کښې لکه سوات، سیاچین او د اسې نورو د زیات یخ له وجهې لمونځونه یا نور عبادات په تیمم سره ادا کولی شي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د تیمم د مشروعیت د اوبو په نشت والي او په اوبو باندې د قدرت په نه درلودلو پورې اړه لري۔ او پرته له شرعي عذر څخه په تیمم باندې سړی نه پاکیږي او ډیر زیات یخ هم د تیمم لپاره شرعي عذر بلل کیږي۔ لیکن چه کله د ګرمو اوبو انتظام نه وي او په سړو اوبو سره د غسل کولو په صورت کښې د مریضی یا د کوم اندام د تلف کیدو خطره وي۔ البته یو اځې اودس به سړی په یخو اوبو کوي ځکه چه په اودس کښې دومره نقصان نه وي۔

لما قال العلامة الحصكفیؒ: او برد یهلك الجنب او یمرضه و لو فی المصر اذا لم تكن لهٗ اجرة الحمام و لا ما یغنه. قال العلامة ابن عابدینؒ قید با لجنب لان المحدث لا یجوز له التیمّم للبرد فی الصحیح. (رد المحتار ج۱، ص۲۳۴، باب التیمّم)

## په مالګې باندې د تیمم د کولو حکم

**سوال:** جناب محترم مفتي صاحب! کله چه څوك د مالګې په كان كښې كار كوي كه چېرته هلته ورته د تیمم ضرورت پیښ شي او نژدې ځای کښې خاوره هم نه وي نو آیا په مالګې باندې تیمم وهلی شي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** غرنۍ مالګه چونکه د زمکې له جنس څخه ده نو له دې وجهې په هغې باندې شرعاً تیمم وهل جائز دي۔ بیا هم کومه مالګه چه د سمندر له اوبو څخه جوړه شوې وي په هغې باندې تیمم وهل جائز نه دي۔

كما قال العلامة ابراهیم الحلبی رحمه الله: و لو تیمّم با لملح نظر ان كان مائیا ای كان ماء فجمد لا یجوز لانهٗ لیس من اجزاء الارض و ان كان جبلها ای معدنیا و هو ما استحال ملحا من اجزاء الارض یجوز به التیمّم لانهٗ جنس الارض. (كبیری ص۷۶، باب التیمم)

قال العلامة القاضی خان رحمه الله: اختلفوا فی الجبلی و الصحیح هو الجواز. (فتاوی قاضی خان ج۱، ص۶۲، فصل فیما یجوز به التیمم) و مثله فی البحر الرائق ج۱، ص۱۴۷، باب التیمّم.

## په یوې لوټې باندې بیا بیا د تیمم وهلو حکم

**سوال:** جناب مفتي صاحب! یو سړی دومره مریض دی چه له کټ څخه نه شي کوزیدلی او له ځان سره ئې یوه لوټه ایښې ده چه د هر لمانځه لپاره په همدې لوټې باندې تیمم وهي۔ آیا شرعاً د اسې کول صحیح دي او که به د هر تیمم لپاره نوې لوټه را اخلي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کوم سړی چه بیمار وي او د طبیب د مشورې مطابق د اوبو استعمال ورته مضر وي نو شرعاً د هغه لپاره تیمم جائز دی۔ اوس که بیمار په یوې لوټې یا یوه ځای باندې



بیا بیا تیمم کوي او که د هر وار تیمم لپاره نوې لوټه را اخلي شرعاً دواړه جائز دي او هیڅ پروا نه لري۔

لما فی الهندیة: اذا تیمّم مراراً من موضع واحد جاز كذا فی التاتارخانیة. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۶، باب التیمّم)

## د نائلون په جرابو باندې د مسح حکم

د نائلون په غټو او ډبلو جرابو باندې د مسح په باره کښې حضرت مولانا شمس الحق افغاني رحمه الله او د مولانا مفتي محمد فرید صاحب مفتي د ار العلوم حقانیه د افتوٰی د دار العلوم حقانیې ترجمان "ماهنامهٔ الحق" شائع کړې وه۔ د فتوٰی اهمیت ته په نظر کولو سره اوس په فتاوٰی حقانیه کښې هم شاملیږي۔

(از مرتب علیه الرحمه)

فی الدر المختار او جوربیة و لو من غزل او شعر الثخینین بحیث یمشّی فرسخاً و یثبت علی الساق بنفسه و لا یرٰی ما تحته و لا یشف الخ. (حلبی كبیر ص۱۲۱) و حد الجورب الثخینین ان یستمسك ای یثبت و لا ینسدل علی الساق من غیر ان یشد بشیء هٰكذا فسروه كلهم و ینبغی ان یقیه بما اذا لم یكن ضیقاً فانا نشاهد ما یكون فیه ضیق یستمسك علی الساق من غیر شد و لو كان من الكرباس.

له پورتني عباراتو څخه څرګنده شوه چه په جرابو باندې مسح په څو شرائطو پورې مشروطه ده۔ لومړی دا چه د پورتني عباراتو له مخې چه دومره سختې، غټې او ډبلې وي چه که چېرته له بوټونو پرته یو اځې همدا جرابې واغوستل شي نو کم تر کمه په هغو کښې سړی درې میله منزل کولی شي په د اسې حال کښې چه له پښو سره تړلې هم نه وي او له پنډۍ څخه کښته هم نه راځي۔ دوهمه دا چه په چټکۍ سره اوبو هم نه جذبوي کما صرح بهٰذا القید فی الشرح الکبیر ص۱۰۸ او دریم شرط دا چه له برسیره کتنې څخه ئې د ننه شی نه څرګندیږي۔ او څلورم شرط دا چه له پښو څخه کښته راتلل ئې د تنګوالي له وجهې نه وي۔

پس د نائلون په جرابو کښې چه مونږ څومره ګورو دا شرائط پکښې موجود نه دي۔ ځکه چه په نائلون کښې د خپریدو (لوییدو) او تولیدو خاصیت موجود دی۔ نو له اغوستلو ورسته کښته نه راتلل ئې د انقباض او تنګوالي له وجهې دی۔ او بیا لږ وخت او د لږ منزل څخه وروسته بیا له لوییږي هم او له پنډۍ څخه کښته هم راځي۔ دا ټول شرائط پکښې نشته۔ ځکه چه کله د اغوستلو په وخت کښې د څکولو غونډې وڅکول شي نو د ننه هر شی ترې معلومیږي۔ او بیا په چټکۍ سره اوبو هم جذب کوي۔ برعکس د ټاټ له جرابو څخه۔ نو په دې بناء باندې د نائلون په جرابو باندې مسح جائزه نه ده۔ او که چېرته د نائلون د اسې جرابې وي چه دا ټول شرطونه پکښې موجود وي نو بیا د مفتٰی بهٖ قول مطابق په هغو باندې مسح جائزه ده۔ "هذا من عندي و لعل عند غیري احسن من هذا" (مفتي محمد فرید مد ظله)

د دې مسئلې د نور وضاحت لپاره د حضرت مولانا شمس الحق افغاني رحمه الله څخه هم استفسار شوی وو چه د هغه تحقیق په لاندې ډول دی:

د څخنینو په باره کښې د فقهي د کتابونو له جملې څخه د رد المحتار ج۱، ص۱۸۸ عبارت په لاندې ډول دی:

بحیث یمشي فرسخاً و یثبت علی الساق نفسه و لا یرٰی ما تحته و لا ینشف (الدر) و فی الدر و فی بعض الکتب ینشف و فسر فی الخانیة الاوّل بان لا یشف الجورب الماء الی نفسه کا لادیم و الصرم و فسر الثانی بان لا یجاوز الماء الی القدم و قال تحت بنفسهٖ ای من غیر شد آه.

له دې عبارت څخه څرګنده شوه چه په څخنینو باندې د مسح د جواز لپاره د څخانت وجود ضروري دی چه له درېو امورو څخه متحقق کیږي. لومړی له بوټونو پرته چه سړی درې میله یا تر درې میله زیات سفر پکښې کولی شي. دوهم له تړلو پرته له پښو سره پیوست لګیدلي وي. درېیم که چېرته اوبو پرې واچول شي نو د ننه لاړې نه شي. د دغو درېو امورو مجموعه په ځانګړې توګه درېیم خبره د نائلون په جرابو کښې نشته. نو له دې وجهې د نائلون په جرابو باندې مسح جائزه نه ده. او په دې کښې احتیاط هم ځکه ضروري دی چه په قرآن پاک کښې د پښو پریمینځل راغلي دي کوم چه قطعي دی او د مسح علی الخفین حدیثونه مشهور یا متواتر دی. له دې وجهې د تخصیص لپاره کافي دي. په جرابو باندې زما په نزد فقط د اسې صحیح السند او صریح الدلالت حدیثونه د شهرت په درجه کښې وجود نه لري. او د له خفینو سره ئې د قیاس لپاره د قوي مشاکلت او مشابهت ضرورت دی. و الله اعلم (احقر شمس الحق افغاني بهاولپور)

## د مجلــــــدینو او منعلینو جرابو حکم

**سوال:** په فقهي کتابونو کښې مې لوستلي دي چه په جرابو باندې مسح جائزه نه ده لیکن په مجلدینو او منعلینو جرابو باندې جائزه ده. نو د مجلدینو او منعلینو مطلب څه دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د مجلدینو یا منعلینو جرابو مطلب دا دی چه مجلد هغو جرابو ته ویل کیږي چه په ټولو باندې څرمن لګیدلې وي او منعلین هغو جرابو ته ویل کیږي چه لاندې څرمن ترې لګیدلې وي.

قال العلامة الحصکفیؒ: بسکون النون ما جعل علی اسفله جلدة. و قال ابن عابدینؒ (قوله ما جعل علی اسفله جلدة) ای کا لنعل للقدم و هٰذا ظاهر الروایة و فی روایة الحسن ما یکون الی الکعب ابن کمال (قوله و المجلدین ما جعل الجلد علی اعلاه و اسفله آه) (رد المحتار ج۱، ص۲۷۰، باب المسح علی الخفین)

قال حسن بن عمار الشرنبلالیؒ: جورب منعل بوضح الجلد اسفله کا لنعل للقدم و اذا جعل اعلاه و اسفله یقال له مجلد. (مراقی الفلاح علی صدر الطحطاوی ص۱۰۳، باب المسح علی الخفین) و مثله فی الفقه الاسلامی و ادلته ج۱، ص۳۴۳، سابعاً المسح علی الجوارب.



## په عادي جرابو باندې د پاسه په اغوستل شویو بوټونو باندې د مسح حکم

**سوال:** د رخت په عادي جرابو باندې مسح خو جائزه نه ده البته که چېرته د ژمي په موسم کښې د یخ له وجې له پاسه پرې بوټونه واغوستل شي چه ښنګري پکښې پټ وي نو آیا په د اسې بوټونو باندې د پاسه مسح جائزه ده او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د رخت په جرابو باندې مسح جائزه نه ده ځکه چه په هغو باندې د مسح تعریف نه صادقیږي. چونکه دلته په نوموړي صورت کښې د جرابو په سر د بوټونو د مسح حکم دی نو د دې لپاره په د اسې صورت کښې په بوټونو باندې مسح جائزه ده لیکن په دې شرط چه د بوټونو لاندیني برخې پاکې وي.

قال حسن بن عمار الشرنبلالیؒ: و الخف الساتر لکعبین ماخوذ من الخفة لان الحکم به خف من الغسل الی المسح...... صح ای جاز المسح علی الخفین فی الطهارة من الحدث الاصغر الخ (مراقی الفلاح علی صدر الطحطاوی ص۱۰۱/۱۰۲، باب المسح علی الخفین)

قال العلامة الحصکفیؒ: و الخف شرعاً الساتر لکعبین فا کثر من جلد و نحوه شرط مسحه ثلاثة امور الاول کونه ساتر محل فرض الغسل للقدم مع الکعب، و الثانی کونه مشغولاً با لرجل یمنع سرایة الحدث، و الثالث کونه مما یمکن متابعة المشی...... و هو جائز.... بسنة مشهورة. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۲۶۱ تا ۲۶۵، باب المسح علی الخفین) و مثله فی الفقه الاسلامی و ادلته ج۱، ص۳۳۲، خلاصة الشروط فی المذهب.

## په پګړۍ، خولۍ او د اسې نورو باندې د مسح کولو حکم

**سوال:** آیا اودس کوونکی په پګړۍ، خولۍ او د اسې نورو باندې مسح کولی شي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د مسح ثبوت د قیاس مخالف راغلی دی نو له دې وجهې یوائې په موزو باندې مسح جائزه ده او له موزو بغیر په پګړۍ، خولۍ او د اسې نورو باندې مسح جائزه نه ده.

لما قالؒ الشیخ الدکتور وهبة الزحیلی: قال الحنفیة لا یصح المسح علی عمامة و قلنسوة و برقع و قفازین لان المسح ثبت بخلاف القیاس فلا یلحق به غیره. (الفقه الاسلامی و ادلته ج۱، ص۳۴۰، باب المسح، سادسا علی العمامة)

قال العلامة حسن بن عمار الشرنبلالیؒ: و لا یجوز ای لا یصح المسح علی عمامة و قلنسوة و برقع و قفازین لان المسح ثبت بخلاف القیاس فلا یلحق به غیره. (مراقی الفلاح علی صدر الطحطاوی ص۱۰۷، فصل المسح علی الخفین) و مثله فی الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۲۷۲، باب المسح علی الخفین.

## په پټۍ باندې د مسح کولو حکم

**سوال:** په پټۍ باندې مسح تر څه وخته پورې باقي وي او په کومو کومو حالاتو کښې ئې د مسح نیته پای ته رسیږي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په پټۍ باندې مسح په دوو حالتونو کښې ماتیږي. یو د پټۍ د لرې

کیدلو یا لویدلو په صورت کښې خو چه زخم جوړ شوی وي- ځکه چه د کوم علت له وجهې مسح شروع شوې وه هغه علت له منځه تللی دی- او بل د بې اودسۍ له وجهې- یعنې د اودسه د ماتوالي په صورت کښې د پټۍ مسح هم له منځه ځي-

لما قال الشيخ وهبة الزحيلي: يبطل المسح على الجبيرة فى حالتين هما (۱)نزعها و سقوطها قال الحنفية يبطل المسح على الجبيرة ان سقطت عن برء لزوال العذر..... (۲)الحدث يبطل المسح على الجبيرة با لاتفاق با لحدث. (الفقه الاسلامی و ادلته ج۱، ص۳۵۶، نواقض المسح على الجبيرة)

قال العلامة ابو بكر الكاسانیؒ: فسقوط الجبائر عن برء ينقض المسح. (بدائع الصنائع فى ترتيب الشرائع ج۱، ص۱٤، مطلب نواقض المسح على الجبيرة)

## په زخم باندې د مسح مسئله

**سوال:** که چېرته په زخم باندې مسح کول تکلیف وي نو سړی باید څه وکړي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته د زخم په ظاهر باندې له مسحې څخه تکلیف وي نو په پټۍ باندې دې د پاسه مسح وکړي او که چېرته بیا هم ورته د سخت تکلیف احساس کیده نو بیا د مجبورۍ له وجهې ئې نه مسح کول جائز دي-

لما قال الشيخ وهبة الزحيلي: و اذا رمدوامره طبيب مسلم حاذق الا يغسل عينه او انكسر ظفره او حصل به داء و جعل عليه دواء جاز له المسح للضرورة و ان ضرّه المسح تركه لان الضرورة تقدر بقدرها. (الفقه الاسلامی و ادلته ج۱، ص۳۵۵، نواقض المسح على الجبيرة)

قال العلامة الحصكفیؒ: انكسر ظفره فجعل عليه دواء او وضعه على شقوق رجله اجرى الماء عليه و ان قدر و الا مسحه و الا تركه. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۱، ص۲۸۱، باب المسح على الخفين) و مثله فى مراقى الفلاح على صدر الطحطاوى ص۱۰۹، فصل فى مسح الجبيرة.

## په پلستر باندې د مسح کولو حکم

**سوال:** د لاس او پښو یا نورو اندامونو د ماتوالي په صورت کښې ډاکټر صاحبان د هغه اندام د جوړیدلو لپاره پلستر لګوي- آیا په نوموړي پلسترونو باندې مسح جائزه ده او که نه؟ بینوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د پلستر استعمال د مات شوي اندام د جوړوالي لپاره وي او د ډاکټر له اجازې پرته ئې خلاصول په عمومي توګه تاواني وي- او که چېرته مضر هم نه وي نو بیا ئې بار بار خلاصول او تړل په مالي اعتبار سره د نقصان باعث جوړیږي- نو د دې لپاره د پټۍ غوندې د پلستر دننه د ملفوفو (پټو شویو) اندامونو پریمینځل ضروري نه دي بلکه مسح ئې کافي ده-

لما قال العلامة الحصكفیؒ: و يمسح نحو (مفتصد و جريح على كل عصابة مع فرجتها فى الاصح) قال ابن عابدينؒ (قوله على كل عصابة) اى على كل فرد من افرادها سواء كانت عصابة تحتها جراحة و هى بقدرها او زائدة عليها كعصابة المفتصد، او لم يكن تحتها جراحة اصلاً بل كسرا و كى و هٰذا معنى قول الكنز كان تحتها جراحة او لا لكن اذا



كانت زائدة على قدر الجراحة فان ضره الحل و الغسل مسح الكل تبعاً و الا فلا. (رد المحتار ج۱، ص۲۸۰، باب التيمم، مطلب فى لفظ كل اذا خلت على منكر او معروف)

قال ابراهيم الحلبى رحمه الله: جاز له المسح على كل الجبيرة ما تحته جراحة و ما ليس تحته تبعاً لو صح الجراحة لان الجبيرة و العصابة لا توضيح على وجه تأتى على موضع الجراحة فحسب بل تكون على ما حول الجراحة ايضاً فتحققت الضرورة الى جواز المسح على الزائد على الجراحة الخ. (كبيرى ص۱۱۷، باب المسح على الخفين) و مثله فى مراقى الفلاح على صدر الطحطاوى ص۱۰۷، فصل فى الجبيرة و نحوها.

## د مار (منګور) په کوهي کښې د لویدو او مړ کیدو حکم

**سوال:** که چېرته مار کوهي یا حوض ته ولویږي او مړ شي نو د داسې کوهي یا حوض د اوبو حکم څه دی؟ بینوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** مار په عمومي توګه په دوه ډوله وي یو ډول هغه ماران چه په دښتو او بیابانونو کښې وي که چېرته وینه پکښې وي او کوهي یا حوض ته ولویږي او مړ شي نو کوهی او حوض پرې مردار یږي- او که چېرته وینه پکښې نه وي نو بیا نه مرداریږي- دوهم ډول هغه ماران چه په اوبو کښې اوسیږي د هغو په اوبو کښې مړ کیدل د اوبو د ناپاکۍ سبب نه ګرځي یعنې اوبو نه مرداروي-

لما قال العلامة الحصكفیؒ: و مائى مولد و لو كلب الماء و خنزيره (كسمك و سرطان) و ضفدعٍ الا برياً له دم سائل فيفسد فى الاصح كحية برية ان لها دم و الا لا. قال ابن عابدينؒ (قوله كحية برية) اما المائية فلا تفسد مطلقاً كما علم مما مر و كا لحية البرية و الوزغة لو كبيرة لها دم سائل منية (قوله و الا لا) اى ان لم يكن للضفدع البرية و الحية البرية دم سائل فلا يفسد آه. (رد المحتار ج۱، ص۱۸۵، باب المياه، مطلب فى مسائله الوضوء من الفساقى)

قال الشيخ اشرف على التهانویؒ: که چېرته د وچې مار وي پس اندازه دې کړي او و دې ګوري چه په کوهي کښې خوسوه بوکې اوبه دي هم هغومره اوبو دې تړې وباسي اګر که کوهي وچ هم نه شي نو پاکیږي- البته که چېرته د تجربې له مخې دا تحقیق وشي چه په داسې کښې بهیدونکې وینه نه وي نو په داسې مار سره کوهی نه مرداریږي- همدارنګه که چېرته د اوبو مار وي بیا هم کوهی پرې نه مرداریږي- (امداد الفتاوٰی ج۱، ص۳۲، فصل فى البئر)

## د کوم ځناور د یوه اندام د لویدو په صورت کښې د کوهي د اوبو حکم

**سوال:** زمونږ له که هي څخه د مرغۍ وزر ووت؟ آیا د مرغۍ په وزر باندې کوهی مرداریږي او که نه؟ او که مرداریږي نو له شلو څخه تر دیرشو بوکو پورې د اوبو را ایستل کافي دي او که څنګه؟ بینوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** اګر که د مرغۍ په اندازه د کوم حیوان په لویدو سره کوهی مرداریږي او له شلو څخه تر دیرشو بوکو پورې د اوبو په ایستلو سره کوهی بیرته پاکیږي لیکن د کوم

حیوان د اندام د لویدلو دا حکم نه دی- بلکه د حیوان د کوم اندام لویدل د لوی حیوان له لویدلو سره برابر دی د دې لپاره که د کوچني حیوان یا د لوی حیوان کوم اندام کوهي ته ولویږي نو د کوهي تولې یا له ۲۰۰ څخه تر ۳۰۰ بوکو پورې اوبو به ترې ایستل کیږي-

قال العلامة ابن عابدینؒ: (تحت قوله حیوان دموی و انتفخ) لو وقع ذنب فارة ینزح الماء کله یجزو به ظهر انه لو جرح الحیوان بلا تفسخ و نحوه ینزح الجمیع کما فی الفتح و ان قطعة منه کتفسخه و لهٰذا قال فی الخانیة قطعة من لحم المیتة تفسده. (رد المحتار ج۱، ص۲۱۳، فصل فی البئر)

قال الشیخ المفتی عزیز الرحمٰن الدیوبندیؒ: در صورت مسئوله کشیدن مقدار جمله آن چاه لازم است و تا وقتیکه مقدار مذکوره کشیده نه شود و نوشیدن ازان آب و طعام بآن پخته خوردن ناجائز و حرام است. قال مولانا السید ابو السعود فی حاشیة المسکین معزیا الی الحموی و قطعة الحیوان فی الحکم کا لحیوان المتفسخ. (فتاوٰی دار العلوم دیوبند ج۱، ص۱۵۲، فصل فی البئر، مرتبه مولانا ظفر الدینؒ) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۲۰، الباب الثالث فی المیاه.

## د چرمښکی په لویدلو سره د کوهي د اوبو حکم

**سوال:** زمونږ په کور کښې چرمښکی ډېرې زیاتې دي او کله کله اوبو ته هم لویږي او مړ کیږي- آیا په دې سره اوبو مرد اریږي او که نه؟ بینوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په عامو چرمښکیو کښې بهیدونکې وینه نه وي نو د دې لپاره که چېرته اوبو ته ولویږي او مړ شي نو اوبو پرې نه مرد اریږي او اودس او غسل تول پرې جائز دي-

قال العلامة ابو بکر الکاسانیؒ: اما الذی لیس له دم سائل فا لذباب و العقرب و الزنبور و السرطان و نحوها و انه لیس بنجس عندنا. (بدائع الصنائع ج۱، ص۶۲، فصل اما الطهارة الحقیقة)

قال العلامة حسن بن عمار الشرنبلالیؒ: و لا ینجس الماء و لا المائعات علی الاصح بموت ما بمعنی حیوان لا دم له سواء البری و البحری فیه ای الماء و المائع. (مراقی الفلاح علی صدر الطحطاوی ص ۳۱، فصل فی الآبار)

## د مرغانو د ګندګی په لویدلو سره د اوبو د پاکوالي حکم

**سوال:** زمونږ د کور له کوهي سره یوه ونه ده چه هر وخت پکښې د مرغانو ګڼه ګونه وي او کله کله ئې ګندګی کوهي ته هم لویږي- په شریعت مطهره کښې د دغو مرغانو د ګندګی حکم څه دی آیا اوبو پرې مرد اریږي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په صورت مسئوله کښې د مرغانو له ګندګی څخه ځان ساتل ډېر مشکل وي نو د دې لپاره شریعت مقدسه په اوبو کښې د مرغانو د ګندګی په لویدو سره د اوبو د نجس والي حکم نه دی کړی او د اسې اوبو پاکې او د استعمال وړ دي-

قال العلامة الحصکفیؒ: و لا نزح فی بول فارة فی الاصح و لا بخرء حمام و عصفور و کذا سباع طیر فی الاصح [illegible] ونها عنه. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۲۲۰، فصل فی البئر)

[illegible]لامة حسن بن عمار الشرنبلالیؒ: و لا یفسد ای لا ینجس الماء بخرء حمام..... و لا ینجس بخرء



عصفور و نحوها مما یؤکل من الطیور غیر الدجاج و الاوز و الحکم بطهارته استحسان الخ. (مراقی الفلاح علی صدر الطحطاوی ص ۳۰، فصل فی مسائل الآبار)

## د چینه لرونکي کوهي په پاکوالي کښې د امام محمدؒ قول مفتٰی به دی

**سوال:** د چینه لرونکي کوهي په پاکوالي کښې د احنافو علماوؒ مختلف اقوال دي لکه د امام ابو حنیفهؒ په نزد د مبتلٰی بهٖ یا د دوو عادلو کسانو رایه به د اعتبار وړ وي او د امام ابو یوسفؒ په نزد چه په کوهي کښې څومره اوبه وي د هغو په اندازې سره به اوبه ترې ایستل کیږي په داسې حال کښې چه د امام محمدؒ په نزد له ۲۰۰ څخه تر ۳۰۰ بوکو پورې اوبه به ترې ایستل کیږي-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د احنافو علماوؒ په نزد اګر که په دې مسئلې کښې مختلفې رأیې دي لیکن متاخرینو فقهاء کرامو د عوامو د آسانتیا لپاره د امام محمدؒ قول مفتٰی بهٖ ګرځولی دی- اګر که ځینو د امام صاحبؒ قول ته مفتٰی بهٖ ویلي دي-

قال العلامة الحصکفیؒ: و قیل یفتی بمأتین الٰی ثلٰثمائة و هٰذا ایسر. قال ابن عابدینؒ و جزم به فی الکنز و الملتقی و هو مروی عن محمدؒ و علیه الفتوٰی خلاصة و تاتارخانیة عن النصاب و هو المختار معراج عن العتابیة و جعله فی العنایة روایة عن الامام و هو المختار و الایسر کما فی الاختیار. (رد المحتار ج۱، ص۲۱۵، فصل فی البئر)

قال العلامة ابن نجیم المصریؒ: ان الفتوٰی علی انه ینزح ثلٰثمائة و کذا فی معراج الدرایة معزیا الٰی فتاوی العتابی ان المختار ما عن محمدؒ...... و الافتاء بما عن محمد اسهل علی الناس. (البحر الرائق ج۱، ص۱۲۳، کتاب الطهارة)

## له فرج څخه وتونکې هوا د اودس ماتوونکې نه ده

**سوال:** د لمانځه په دوران کښې که چېرته د یوې ښځې د مخکښې له خوا فرج څخه هوا خارجه شي نو آیا نومورې دې لمونځ مات کړي او بیا به اودس کوي او که اودس ئې پرې نه ماتیږي؟ بینوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کومه هوا چه له دبر یعنې د شا له خوا څخه ووځي د اودس ماتوونکې ده او کومه هوا چه له فرج یعنې د مخې له خوا څخه ووځي هغه د اودس ماتوونکې نه ده- له دې وجهې په نومورې صورت کښې د نومورې ښځې اودس مات نه دی او لمونځ ئې کیږي-

لما قال العلامة ابو بکر بن علی بن الحدادؒ: و الریح الخارجة من الذکر و فرج المرأة لا تنقض الوضوء علی الصحیح الا ان تکون المرأة مفضاة فانهٗ یستحب لها الوضوء. (الجوهرة النیرة ج۱، ص۸، کتاب الطهارة، نواقض الوضوء)

لما قال العلامة الحصکفیؒ: و لا خروج ریح من قُبل غیر مفضاة اما هی فیندب لها الوضوء و قیل یجب و قیل لو منتنة الخ. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۱، ص۱۲۶، باب نواقض الوضوء) و مثله فی الفتاوی الهندیة ج۱، ص۹، باب نواقض الوضوء.

## له عـــــادت څخه مخکښې د نفاس د وینو د بنـــــدیدو په صورت کښې د جمـــــاع حکم

**سوال:** که چیرته د یوې ښځې د نفاس وینه د ښځې د خپل عادت له ورځو څخه پنځه یا شپږ ورځې مخکښې بنده شي نو آیا خاوند ئې جماع ورسره کولی شي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د کومې ښځې چه د نفاس وینې ئې د عادت له ورځو څخه مخکښې بنده شي نو تر هغه وخته پورې چه د عادت ورځې ئې پوره شوي نه وي خاوند ئې جماع او قِربان (نزدیکت) نه شي ورسره کولی۔ البته که چیرته د وینې له بندیدو وروسته په همدې حالت کښې د یوه لمانځه وخت پرې تیر شي نو لمونځ او روژه ادا کولی شي۔

لما قال العلامة الزیلعیؒ: و لو انقطع دمُها دون عادتها یکره قِربانها حتّٰی یمضی عادتها و علیها ان تصلی و تصوم. (تبیین الحقائق ج۱، ۳۹، کتاب الحیض)

لما قال العلامة ابن نجیم المصریؒ: اذا انقطع اما دون العشرة دون عادتها لا یقربها و ان اغتسلت ما لم تمض عادتها. (البحر الرائق ج۱، ص۲۰۳، کتاب الحیض)

## په پخې خښتې باندې د تیمم حکـــــم

**سوال:** یو مریض سړی چه د اوبو په استعمال باندې قادر نه دی او په پخې خښتې باندې تیمم وهي او لمونځ کوي۔ آیا د نوموړي سړي د تیمم او په هغه باندې د هغه د ادا شویو لمونځونو حکم څه دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د امام ابو حنیفةؒ په نزد کوم شیان چه د زمکې له اجزاوو څخه وي په هغو باندې تیمم وهل جائز دي۔ چونکه پخه خښته هم د زمکې د جنس له شیانو سره اړه لري نو د دې لپاره په پخې خښتې باندې هم تیمم وهل جائز دي اګر که ماته وي یا روغه۔

لما قال العلامة ابراهیم الحلبیؒ: و اما التیمم با لأجر فعند ابی حنیفةؒ یجوز مطلقاً دق او لا لانهٗ من اجزاء الارض و ان شوی و تصلب بمنزلة النورة. (کبیری ص۷۵، باب التیمم)

لما قال العلامة ابن نجیمؒ: و یجوز با لاجری و هو الصحیح لانهٗ طین مستجحر. (البحر الرائق ج۱، ص۱۴۸، باب التیمم) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۲۷، باب التیمم، الفصل الاول.

## د استنجا له کولو څخه وروسته د هوا په خروج باندې د استنجا حکم

**سوال:** که چیرته د یوه چا له استنجا څخه وروسته هوا ووځي نو آیا استنجا به بیا وهي او که نه؟ په د اسې حال کښې چه مقعد ئې تر اوسه پورې لوند دی؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د هوا په خروج سره اګر که اودس ماتیږي او بیا به اودس کوي لیکن استنجا نه پرې خرابیږي اګر که مقعد ئې لوند وي یا وچ۔ له دې وجهې په صورت مسئوله کښې په نوموړي سړي باندې دوهم ځل استنجا لازمه نه ده یوائې د اوداسه په کولو سره ئې لمونځ کیږي۔



لما قال العلامة ابن عابدینؒ: (فلا یسن من ریح) لان عینها طاهرة و انام نقضت لانبعاثها عن مواضع النجاسة آه لان بخروج الریح لا یکون علی السبیل شیء فلا یسن منه بل هو بدعة. (رد المحتار ج۱، ص۲۴۶، فصل فی الاستنجاء)

لما قال العلامة ابن نجیمؒ: و قد علم من تعریفه ان الاستنجاء لا یسن الا من حدث خارج من احد السبیلین غیر الریح لان بخروج الریح لایکون علی السبیل شیء فلا یسن منه بل هو بدعة. (البحر الرائق ج۱، ص۲۴۰، باب الانجاس)

## د هوا د خروج په شك باندې د اوداسه حکم

**سوال:** که چیرته د یوه سړي له اودس کولو څخه وروسته دا شك پیدا شي چه هوا ترې خارجه شوې ده او که نه؟ نو آیا یوائې د شك په بنا سره ئې اودس ماتیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کله چه د هوا د خارجیدو پوره یقین ئې نه وي نو یوائې د شك په بنا سره ئې اودس نه ماتیږي۔

لما قال العلامة ابن نجیم المصریؒ: الیقین لا یزول با لشك. (الاشباه و النظائر ج۱، ص۱۸۳)

لما قال العلامة مفتی عبد الرحیم لاجپوریؒ: چه کله د هوا د خارجیدو یقین نه وي نو یوائې د وهم او ګومان په کیدو سره اودس نه ماتیږي۔ د دې پروا باید و نه ساتی۔ (فتاوٰی رحیمیه ج۱، ص۱۱۰، کتاب الطهارة)

## د شخوند وهلو په دوران کـــــښې د څناورو له خولې څخـــــه وتونکي شیان ناپـــــاك دي

**سوال:** جناب مفتي صاحب! د شخوند وهلو په وخت کښې که چیرته د څناورو له خولې څخه څه شی ووځي او اوبو ته ور ولویږي آیا اوبو پرې مرد اریږي او که نه؟ په د اسې حال کښې چه دا مواد له معدې څخه بیرته خولې ته راځي او څناور پرې شخوند وهي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د شخوند وهلو په وخت کښې کوم شینا چه د څناورو له معدې څخه خولې ته را ووځي او څناور شخوند پرې وهي نو حکیمانو دې لره د ګندګۍ په حکم کښې ګڼلې دی۔ نو د دې لپاره که چیرته نوموړي شیان پاکو اوبو ته ور ولویږي نو مرد اروي ئې۔

لما قال مولانا محمد رشید: (مسئله) د هر څناور د خولې اوبو د هغه د متیازو په شان دي۔ او په شخوند وهلو کښې چه کوم شیان را ووځي هغه ئې د متیازو په برابر ناپاك دي۔

## د پنج سورې یا د اسې نورو مبارکو پاڼو سره بیت الخلاء ته د ننوتلو حکم

**سوال:** که چیرته د یوه سړي په جیب کښې پنج سوره یا سورت یاسین وي او بیت الخلاء ته د قضاء حاجت لپاره ننوځي۔ آیا د هغه لپاره د دغو مبارکو شیانو سره بیت الخلاء ته ننوتل جائز دي او که نه؟ په د اسې حال کښې چه هلته ئې د اینبودلو بل ځای هم نه وي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د متبرکو شیانو یا قرآني آیتونو بیت الخلا یا د اسې ځای ته له ځان سره وړل چه هلته ګندګي پرته وي صحیح نه دي۔ البته که چیرته ئې په جیب کښې اینبې وي

نو بیا پروا نه لري۔ لیکن بیا هم بهتره دا ده چه کوشش وکړي چه د اسې مبارك شیان له بیت الخلاء څخه د باندې په کوم محفوظ ځای کښې کښېږدي۔ او که چېرته دا هم ممکنه نه وي نو بیا د مجبورۍ له مخې جائز دی او پروا نه لري۔

لما قال العلامة کاشغریؒ: و یکره دخول المخرج لمن فی اصبعه خاتم فیه شیء من القرآن او من اسماء الله تعالٰی لما فیه من ترك التعظیم.

و قال العلامة ابراهیم الحلبی فی شرح المنیة: و قیل لا یکره ان جعل فصه الٰی باطن الکف و لو کان ما فیه شیء من القرآن او من اسماء الله تعالٰی فی جیبه لا بأس به و کذا و لو کان ملفوفاً و شیء و التحرز اولٰی. (کبیری ص۵۸)

لما قال الشیخ اشرف علی التهانویؒ: د اسې شی چه په هغه باندې د الله تعالٰی یا د کوم نبي یا د کومې ملائکې یا د کوم معظم شي نوم یا کوم آیت یا حدیث یا دُعا لیکلې وي له خپل ځان سره ساتل مکروه دي۔ البته که چېرته د اسې شی په جیب کښې وي یا تعویذ په جامه یا کوم بل شي کښې نغښتی وي نو بیا مکروه نه دي۔ (بهشتي زیور ص۸۳۹، کتاب الطهاره)

## د نفـــــاسه ښځې له لاسه د خوراك او څښاك حکم

**سوال:** ځینې خلك وایي چه د بچي له ولادت څخه وروسته چه ښځه کله د ناپاکۍ په حالت کښې وي نو تر هغومره ورځو پورې به د هغې په لاس د پاخه شوي شیانو خوراك جائز نه دي۔ آیا دا خبره د شریعت له مخې صحیح ده او که څنګه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** اسلام د ژوند یوه مکمله ضابطه ده او افراط او تفریط او د یهودو او هنودو د مفروضه خیالاتو او نظریاتو ګنجائش پکښې نشته۔ تر کومه ځایه پورې چه پورتنۍ پوښتنه اړه لري نو دا د یهودو عمل او نظریات دي۔ دا خلك په دغو مخصوصو ورځو کښې ښځې بالکل یوې خوا ته کوي او د دوی په لاس پاخه شوي شیان نه خوري او نه ورسره نور سماجي، معاشرتي او کورني تعلقات ساتي۔ اسلام د حیض او نفاس په حالت کښې یوازې جماع منع کړې ده او پاتې تول کارونه ئې ورته جائز ګرځولي دي۔ له دې وجهې د نفاسه ښځې په لاس د پاخه شوي شیانو خوراك او څښاك شرعا جائز دي۔

لما قال العلامة ابن عابدینؒ: و لا یکره طبخها و لا استعمال ما مسته من عجین او ماء او نحوهما. (رد المحتار ج۱، ص۲۹۲، باب الحیض)

## د متیـــــازو او ګندګۍ په وخت کښې سړی باید لـــــه کومو امورو څخه ځان وســـــاتي

**سوال:** جناب مفتي صاحب! د یوې پوښتنې د ځواب په تکلیف درکولو سره معذرت غواړم۔ او هغه دا چه د قضاء حاجت په وخت کښې له کومو امورو څخه سړی باید ځان وساتي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** اسلام د ژوند یوه مکمله ضابطه ده۔ اسلام د هر عمل لپاره څه آداب



او څه د ځان ساتنې کارونه ښوولي دي۔ آن تر دې پورې چه چه د قضاء حاجت په وخت کښې ئې هم له ځینو کارونو څخه د ځان ساتنې ښوونه کړې ده لکه له ضرورت پرته خبرې، توخې، د قرآنکریم د کوم آیت یا حدیث یا نورو متبرکو کلماتو لوستل یا یو د اسې شی له ځان سره وړل چه په هغه باندې د الله تعالٰی یا رسول الله ﷺ یا ملائکې نوم وي، یا پرته له شرعي عذر څخه په ولاړې یا ملاستې باندې قضاء حاجت کول، یا تولې جامې ایستل او ځان بربنډول، قبلې ته کښیناستل، په ښي لاس سره استنجا وهل، د خوراك او څښاك په شیانو باندې استنجا وهل، د څناورو د خوراك په شیانو سره استنجاء وهل او د اسې نور۔ له پورتني کارونو څخه د استنجا په وخت کښې سړی باید ځان وساتي۔ (هکذا في کبیري ص۳۹ او بهشتي زیور حصه ۱۱، ص۱۱)

## د بواسیرو په رطوبت سره د اودسه حکم

**سوال:** یو سړی بواسیر لري او د ولاړیدو او کښیناستو په وخت کښې ئې د بواسیرو رطوبت په جامو باندې لګیږي آیا د دې رطوبت له وجهې ئې اودس ماتیږي او که نه؟ په د اسې حال کښې چه دا لوند والی او رطوبت ئې د عامو اوبو غوندې بهیدونکي نه وي او دا هم وښایې چه آیا له دغو رطوباتو څخه ئې جامې مرد اریږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** فقهاء کرامو لیکلي دي چه اودس د هر هغه نجس شي په وتلو سره ماتیږي چه د انسان له بدن څخه ووځي او د اوبو غوندې بهیدونکی وي۔ او که چېرته بهیدونکی نه وي نو اودس ئې نه پرې ماتیږي۔ له دې وجهې په صورت مسئوله کښې که چېرته رطوبت د بواسیرو له زخم څخه وتلی وي او بهیدلی نه وي نو اودس ئې نه ماتیږي او نه ئې جامې پرې مرد اریږي ځکه چه د فقهاء کرامو کلي قاعده ده چه "ما لیس بحدث لیس بنجس" (یعنې چه کوم شی د اودس ماتوونکی نه وي هغه مردار هم نه دی).

لما قال العلامه المفتي عزیز الرحمٰن صاحبؒ: (الجواب) کوم رطوبت چه له زخم څخه د باندې و نه بهیږي او روان نه وي نو اودس نه پرې ماتیږي۔ کذا فی الکتب الفقه۔ او جامې هم نه مرداروي ځکه چه د فقهاوو کلي قاعده ده چه "ما لیس بحدث لیس بنجس"۔ پس کوم صورت چه تاسو لیکلی دی په د اسې صورت کښې د نوموړي سړي نه اودس ماتیږي او نه ئې جامې مرد اریږي۔ (فتاوٰی دار العلوم دیوبند ج۱، ص۱۲۶، ترتیب مفتي ظفیر الدین صاحب، کتاب الطهارة)

## د معـــــذور له وخت څخه مخکښې د اودس کولو حکم او په هغه اودسه باندې ئې د لمانځـــــه د ادا کولو حکم

**سوال:** یو سړی معذور دی او د سلسل البول په مرض اخته دی او د هر لمانځه لپاره ځانته اودس کوي۔ که چېرته نوموړی معذور د لمانځه د وخت له داخلیدو څخه مخکښې اودس وکړي نو آیا په دې اودس باندې راتلونکی لمونځ ادا کولی شي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د معذور سړي لپاره ضروري ده چه د لمانځه لپاره د لمانځه د وخت له د اخليدو څخه وروسته اودس وکړي- که چېرته ئې د وخت له د اخليدو څخه مخکښې اودس کړی وي نو دا اودس ئې صحيح نه دی ځکه چه هغه ئې له وخت څخه مخکښې کړی دی او له وخت څخه مخکښې په کړي اود اسه باندې راتلونکی لمونځ نه شي کولی-

لما قال العلامة الحصكفیؒ: حكمه الوضوء لكل فرض اللام للوقت ثم يصلى به فيه فرضاً او نفلاً فاذا خرج الوقت بطل. (الدر المختار على هامش رد المحتار ج ١، ص ٢٨٠، احكام المعذور)

لما قال العلامة المفتى عزيز الرحمٰنؒ: (الجواب) په داسې حال کښې چه هغه سړی معذور دی نو هغه ته له وخت څخه مخکښې اودس جائز نه دی- بس د وخت له د اخليدو څخه دې وروسته اودس کوي اګر که جماعت ترې پاتې شي- (فتاوی دار العلوم ديوبند ج ١، ص ٢٦٦، ترتيب مفتى ظفير الدين صاحب، كتاب الطهارة، فصل الرابع، په معذور پورې اړوندې مسئلې)

## د ښځې لـــــه رحم څخه دوتونكـــــي سپين رطوبت په صورت کښې د اوداســــه حکم

**سوال:** د يوې ښځې له رحم څخه هر وخت سپينې اوبه بهيږي- نو آيا د نوموړې ښځې اودس پرې ماتيږي او که نه؟ که چېرته ماتيږي نو دا ښځه به معذوره ګڼل کيږي او که نه؟ بينوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته د کومې ښځې له رحم څخه هر وخت سپينې اوبه ووځي نو اودس ئې پرې ماتيږي- البته کوم رطوبت چه له فرج څخه د باندې ځای څخه ووځي نو هغه خوله ده او په خولې سره اودس نه ماتيږي- او په صورت مسئوله کښې چونکه سپينې اوبه د ښځې له رحم څخه ووځي نو د دې لپاره هغه معذوره ګڼل کيږي او د هر لمانځه لپاره به نوی اودس کوي- (هكذا فى امداد الفتاوٰی ج ١، ص ٦٦)

# كتاب الصلوة

قال اللّٰہ تعالٰی

قُل ان صلوٰتی و نُسُکی و محیای

و مماتی للّٰہ رب العلمین



# کتاب الصلٰوة

## باب المواقيت

## (د لمانځه د وختونو احکام او مسئلې)

### لمونځ له خپل ټاکلي وخت څخه د وروسته کولو حکم

**سوال:** زمونږ د کلي په جومات کښې د جمعې د لمانځه وختونه ټاکلي دي ليکن کله کله امام صاحب له ټاکلي وخت څخه وروسته راځي چه له وجهې ئې ځينې خلك د لمانځه لپاره بل جومات ته ځي- آيا له ټاکل شويو وختونو څخه د لمانځه وروسته کول او ادا کول شرعاً جائز دي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د لمونځونو لپاره ټاکل شوي وختونه حتمي نه دي بلکه د لمونځ کوونکو آسانتياوو ته په نظر کولو سره وختونه ټاکل شوي دي- که چېرته په دغو وختونو کښې څه نا څه وړاندې والی يا وروسته والی وشي (په دې شرط چه په مکروه وخت کښې داخل نه شي) نو هيڅ پروا نه کوي- البته که چېرته امام تنخواه لرونکی وي نو بيا نورو دلائلو ته په کتو سره له ټاکلي وخت څخه وروسته والی له کراهيت څخه خالي نه دی، اګر که بهتره خو دا ده چه لمونځ په مستحب وخت کښې ادا شي-

قال العلامة الحصكفىؒ: (و يجلس بينهما) بقدر ما يحضر الملازمون مراعياً لوقت الندب. ( الا فى المغرب) (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۱، ص۳۸۹، باب الآذان)

و فى الهندية: و ينتظر المؤذن الناس و يقيم للضعيف المستعجل و لا ينتظر رئيس المحلة و كبيرها كذا فى معراج الدراية. ينبغى ان يؤذن فى اول الوقت و يقيم فى وسطه حتى يفرغ المتوضى من وضوئه و المصلّى من صلوٰته و المعتصر من قضاء حاجته كذا فى التاتارخانية. (الهندية ج۱، ص۵۷، باب الآذان) و مثله فى البحرا الرائق ج۱، ص۲۵۵، باب الآذان)

### د سهار د لمانځه وخت

**سوال:** د سهار د لمانځه وخت کله شروع کيږي؟ او د سهار د راختو او لمر د راختو تر منځ څومره وخت وي؟ بينوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د سهار د لمانځه وخت له صبح صادق څخه را واخله تر لمر ختو پورې وي چه اندازه ئې تقريباً پاو باندې يو ساعت راځي- البته کموالی او زياتوالی هم پکښې ممکن دی- او د صبح صادق نښه دا ده چه په هغه وخت کښې د آسمان په کنارې باندې سپينوالی غوندې ښکاره کيږي کوم چه د آسمان په کنارو کښې خپريږي-

قال العلامة الحصكفىؒ: وقت صلاة (الفجر) ...... (من) اول (طلوع الفجر الثانى) و هو البياض المنتشر المستطير لا المستطيل (الى) قُبيل (طلوع ذكاء) با لضم غير منصرف اسم الشمس. (الدر المختار على صدر رد

المحتار ج۱، ص۳۶۳، کتاب الصلوٰة)

و فی الهندية: وقت الفجر من الصبح الصادق و هو البياض المنتشر فی الافق الی طلوع الشمس و لا عبرة با لكاذب و هو البياض الذی يبدو طولا ثم يعقبه الظلام فبا لكاذب لا يدخل وقت الصلوٰة و لا يحرم الاكل على الصائم هٰكذا فی الكافی. (الهندية ج۱، ص۵۱، الباب الاول فی المواقيت) و مثله فی البحر الرائق ج۱، ص۲۴۴، كتاب الصلوٰة)

## د روژې په مبارکه میاشت کښې د سهار په تیاره کښې د لمانځه د اداکولو حکم

**سوال:** زمونږ په کلیو کښې د رمضان المبارك په میاشت کښې د سهار لمونځ په عمومي توګه په غِلس (تیاره) کښې ادا کیږي چه له وجهې ئې خلك د جمعې په لمانځه کښې ډیر وي، آیا د حنفي فقهې له مخې د اسې کول صحیح دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له جواز څخه ئې هیڅوك انکار نه کوي لیکن حنفي فقهې د اسفار په استحباب کښې د رمضان المبارك میاشت نه ده مستثنٰې کړې۔ د دې لپاره بنایي چه د وختي مصلحت له مخې بهتر وي لیکن په یقیني توګه سره اسفار (سپینوالی) مستحب دی۔

لما قال الشيخ الاسلام ابو بكر بن علی اليمنی: و يستحب الاسفار با لفجر...... قيل هو ان يصلی فی وقت لو صلّی بقرائة مسنونة مرة فاذا فرغ ظهر له فساد فی طهارته امكنه الوضوء و الاعادة قبل طلوع الشمس و هذا كله فی السفر و الحضر فی الازمنة كلها الا يوم النحر با لمزدلفة للحاج. (الجوهرة النيرة ج۱، ص ۵۰، كتاب الصلوٰة)

## د لمانځه لپاره مستحب وخت کوم یو دی؟

**سوال:** له روا والي څخه بغیر د لمونځونو د مستحبو وختونو حقیقت څه شی دی؟ آیا تعجیل افضل دی او که تاخیر؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** مطلقاً تعجیل یا تاخیر مستحب نه دی بلکه د فقهاوو د تصریحاتو په رڼا کښې دا ویل کیدلی شي چه د سهار مستحب وخت اسفار دی۔ او د اوړي (دوبي) په موسم کښې ماسپښین مؤخرول او د ژمي په موسم کښې ئې وړاندې والی افضل دی۔ د مازدیګر لمونځ په ګرمي او یخ دواړو کښې مؤخر کول افضل دي په دې شرط چه په لمر کښې تغیر نه وي راغلی او ماسخوتن تر دریمې حصې د شپې پورې مؤخر کول افضل دي۔ البته که چېرته په آسمان کښې وریځ وي نو په مازدیګر او ماسخوتن کښې وړاندې والی او په نورو کښې وروسته والی مستحب دی۔

قال الحصكفیؒ: و المستحب للرجل (الابتداء) فی الفجر (باسفار و الختم به) هو المختار بحيث يرتل اربعين آية. ثم يعيده بطهارة لو فسد و قيل يؤخر جدا لان الفساد موهوم (الالحاج بمزدلفة) فا لتغليس افضل كمرأة ملطقاً و فی غير الفجر الافضل لها انتظار فراغ الجماعة (و تاخير ظهر السيف) بحيث يمشي فی الظلّ (مطلقا) ...... و تاخير (عصر) صيفاً و شتاء توسعة للنوافل (ما لم يتغير ذكاء) بان لا تحار العين فيها فی الاصح (و) تاخير عشاء الی ثلث الليل الی آخره.



و المستحب تعجيل ظهر الشتاء يلحق به الربيع و با لصيف الخريف و تعجيل عصر و عشاء يوم غيم...... و تاخير غيرهما فيه. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۳۶۶ تا ۳۶۹، كتاب الصلوٰة)

و فی الهندية: يستحب تاخير الفجر و لا يؤخرها بحيث يقع الشك فی طلوع الشمس بل يسفر بها...... و يستحب تاخير الظهر فی الصيف و تعجيله فی الشتاء ...... و يستحب تاخير العصر فی كل زمان ما لم تتغير الشمس...... و يستحب تعجيل المغرب فی كل زمان كذا فی الكافی...... و كذا تاخير العشاء الی ثلث الليل و الوتر الی آخر الليل لمن يثق با لانتباه...... و فی يوم الغيم ينوّر الفجر كما فی حال الصحو و يؤخر الظهر لئلا يقع قبل الزوال و يعجل العصر خوفاً من ان يقع فی الوقت المكروه و يؤخر المغرب حذراً عن الوقوع قبل الغروب و يعجل العشاء كيلا يمنع مطر او ثلج عن الجماعة. (الهندية ج۱، ص۵۱ تا ۵۲، كتاب مواقيت الصلوٰة) و مثله فی شرح الوقاية ج۱، ص۴۸، كتاب الصلوٰة)

## د مازدیګر په لمانځه کښې د ځنډ (تاخیر) اندازه

**سوال:** د مازدیګر په لمانځه کښې فقهاوو ځنډ (تاخیر) مستحب بللی دی۔ لیکن د دې ځنډ اندازه به څومره وي؟ په دې باره کښې که معلومات راکړی نو ډیره مهرباني به مو وي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د مازدیګر په لمانځه کښې له شك او شبهې پرته ځنډ مستحب دی۔ لیکن دومره ځنډ کوم چه د لمر تر اصفرار (زیړ والي) پورې ورسیږي مکروه تحریمي دی۔ په لمر باندې د زیړوالي د آثارو له ښکاریدو مخکښې مخکښې باید د مازدیګر له لمانځه څخه فارغ شی۔

قال الحصكفیؒ: (و) آخر (العصر الی اصفرار ذكاء) فلو شرع فيل قبل التغير فمده اليه لا يكره. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۳۶۸، كتاب الصلوٰة)

قال ابن نجيمؒ: (قوله و العصر ما لم تتغير) اطلقه فشمل الصيف و لشتاء لما فی ذٰلك من تكثير النوافل لكراهتها بعد العصر و اراد با لتغير ان تكون الشمس بحال لا تحار فيها العيون علی الصحيح فان تاخيرها اليه مكروه لا الفعل لانه مامور بها منهی عن تركها فلا يكون الفعل مكروها كذا فی السراج. (البحر الرائق ج۱، ص۲۴۷، مواقيت الصلوٰة) و مثله فی الهندية ج۱، ص۵۳، مواقيت الصلوٰة)

## د ماسپښین د لمانځه وخت

**سوال:** په مثل ثاني (دوه چنده سیوري) کښې د ماسپښین د لمانځه اداکول په اداء کښې راځي او که په قضاء کښې؟ په د اسې حال کښې چه د ځینو خلکو ګومان دی چه امام صاحبؒ د مثلِ ثاني له قول څخه رجوع کړې وه۔ لهذا په مثل ثاني کښې ادا شوی لمونځ په ادا کښې نه حسابیږي بلکه قضاء دی۔ د دې خبرې حقیقت څرګند کړی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د محققینو احنافو له کتابونو څخه دا خبره ثابتیږي چه په مثلِ ثاني

کښې د ماسپښین د لمانځه ادا کول په اداء کښې حسابیږي او قضاء نه وي۔ او دا خبره کومه چه په خلکو کښې مشهوره ده چه امام صاحبؒ له خپل قول څخه رجوع کړې ده هیڅ حقیقت نه لري بلکه دا یوه افتراء ده۔ البته احتیاط په دې کښې دی چه لمونځ تر مثل ثاني مخکښې ادا شي۔

قال ابن عابدینؒ: (قوله الی بلوغ الظل مثلیه) هذا ظاهر الروایة عن الامام نهایة و هو الصحیح بدائع و محیط و ینابیع و هو المختار و غیاثیة و اختاره الامام المحبوبی و عول علیه النسفی و صدر الشریعة تصحیح قاسم و اختار اصحاب المتون و ارتضاه الشارحون قول الطحاوی و بقولهما ناخذ لا یدل علی انه المذهب و ما فی الفیض من انهٗ یفتی بقولهما فی العصر و العشاء مسلم فی العشاء فقط علی ما فیه و تمامه فی البحر. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۳۵۹، کتاب الصلٰوة)

قال ابن نجیمؒ: (قوله و الظهر من الزوال الی بلوغ الظل مثلیه سوی الفیء) ای وقت الظهر...... و الاولٰی قول ابی حنیفة قال فی البدائع انها المذکورة فی الاصل و هو الصحیح و فی النهایة انها ظاهر الروایة عن ابی حنیفة و فی غایة البیان و بها اخذ ابو حنیفة و هو المشهور عنه و فی المحیط و الصحیح قول ابی حنیفة و فی الینابیع و هو الصحیح عن ابی حنیفة و فی تصحیح القدوری للعلامة قاسم ان برهان الشریعة المحبوبی اختاره و عول علیه النسفی. (البحر الرائق ج۱، ص۲۴۵، کتاب الصلٰوة)

## د لمر نه ډوبیدو په حالت کښې د لمانځه حکم

**سوال:** کله کله د مغرب خوا ته د سفر کولو په وخت کښې د لمر ډوبیدل نه تر سترګو کیږي، په داسې حالت یا داسې ملکونو کښې چېرته چه لمر بالکل نه ډوبیږي د لمانځه د ادا کولو حکم څه دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په کومو ځایونو کښې چه د لمر د نه ډوبیدو له وجهې د شپې او د ورځې فرق نا ممکن وي نو د نژدې ملکونو وختونو ته په اعتبار ورکولو سره په څلور ویشتو ساعتونو کښې د پنځو لمونځونو د ادا کولو اهتمام ضروري دی۔ البته که چېرته د سفر په حالت کښې وخت ممتد نه وي او د لمر د ډوبیدلو امکان وي نو بیا د لمر په ډوبیدو کښې د ځنډ له وجهې د لمانځه په وخت باندې کوم اثر نه لویږي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: (وفاقد وقتهما) کبلغار فان فیها یطلع الفجر قبل غروب الشفق فی اربعینیة الشتاء. مکلف بهما فیقدر لهما و لا ینوی القضاء لفقد وقت الاداء به افتی البرهان الکبیر، و اختاره الکمال، و تبعه ابن الشحنه فی الغازه فصححه فزعم المصنف انه المذهب. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۳۶۲، کتاب الصلٰوة)

لما اخرجه الامام مسلم بن حجاج القشیری. عن النواس بن سمعان حدیثاً طویلاً...... ما لبثه فی الارض قال اربعون یوما. یوم کسنة و یوم کشهر و یوم کجمعة و سائر ایامه ما کایامکم قلنا یا رسول الله فذٰلك الیوم الذی کسنة اتکفینا فیه صلٰوة یوم قال لا اقدروا له قدرة.... الخ. (الصحیح المسلم ج۲، ص۴۰، باب ذکر الدجال



## د زوال وخت

**سوال:** زه یو طالب علم یم او د تعلیم په غرض سره یوه ښار ته راغلی یم، دلته یوه خبره ډیره مختلف فیه ده۔ او هغه دا چه زمونږ د جومات امام صاحب وایي چه د ماسپښین د لمانځه وخت په ۱۱:۵۵ بجو شروع کیږي په داسې حال کښې چه لمونځ په دولس نیمو بجو باندې کوي۔ آیا مونږ د دې مولوي صاحب د خبرې د منلو په صورت کښې په دولس نیمو بجو لمونځونه کولی شو او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د زوال وخت د موسم په بدلیدو سره بدلیږي او د ځای د اختلاف له وجهې د زوال په وخت کښې هم اختلاف پیدا کیږي۔ پلټنه وکړی او دا څرګنده کړی چه د زوال وخت په دې وخت کښې زمونږ په ښار کښې کوم یو دی؟

زمونږ په ښارونو کښې چه کوم د ماسپښین لمونځ ادا کیږي نو په مستحب وخت کښې ادا کیږي که چېرته ئې څوك د مستحب تر وخت مخکښې ادا کړي نو د زوال وخت چه معلوم کړي نو بیا ئې ادا کولی شي۔ البته د زوال په وخت کښې د ماسپښین د لمانځه ادا کول مکروه تحریمي دي۔

و الزوال ظهور زیادة الظل لکل شخص فی جانب المشرق کذا فی الکافی و طریق معرفة زوال الشمس و فیء الزوال ان تغرز خشبه مستویة فی ارض مستویة فما دام الظل فی الانتقاص فا لشمس فی حد الارتفاع و اذا اخذ الظل فی الازدیاد علم ان الشمس قد زالت فا جعل علی رأس الظل علامة فمن موضع العلامة الی الخشبه یکون فیء الزوال. (الهندیة ج۱، ص۵۱، الفصل الاول فی اوقات الصلٰوة)

ثلاث ساعات لا تجوز فیها المکتوبات...... و عند الانتصاف الی ان تزول. (الهندیة ج۱، ص۵۲، الفصل الثالث فی بیان الاوقات التی لا تجوز فیها الصلٰوة و تکره فیها)

قال ابن نجیمؒ: و فی معرفة الزوال روایات اصحها ان یغرز خشبه مستویة فی ارض مستویة و یجعل عند منتهی ظلها علامة فان کان الظل ینقص عن العلامة فالشمس لم تزل و ان کان الظل یطول و یجاوز الخط علی انها زالت و ان امتنع الظل من القصر و الطول فهو وقت الزوال کذا فی الظهیرة. (بحر الرائق ج۱، ص۲۴۵، باب کتاب الصلٰوة) و منع عن الصلٰوة و سجدة التلاوة الجنازة عند الطلوع و الاستواء. (ج۱، ص۲۴۹، باب الاوقات)

## د مکروه وختونو د اندازې حکم

**سوال:** د لمر د راختو او ډوبیدو په دوران کښې د مکروه وختونو اندازه څومره ده؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** فقهاء کرامو په دغو وختونو کښې د مکروه د وخت د پیژندګلوي دا علامه لیکلې ده چه د لمر د راختو یا ډوبیدو په وخت کښې چه کله لمر ته وکتل شي نو تر څنډه پورې ور کتلی شي او سترګو ته ئې کوم تکلیف محسوس نه شي په دې شرط چه آسمان بالکل صاف وي، وریځ او د اسې نور نه وي، نو دا د مکروه وخت دی، تخمیني اندازه ئې دا ده چه کله

کله لمر د یوه رمح (نیزه، کوم چه دولس لویشتې وي) په اندازې سره پورته شي نو له هغه وروسته لمونځ کول جائز دي- له دې څخه مخکښې وخت د مکروه وخت دی- او د لمر د ډوبیدو په دوران کښې چه کله تر یوه رمح (نیزې) څخه په کمې اندازې سره غره ته نژدې شي نو مکروه وخت شروع کیږي- په دې وخت کښې یواځې د هم هغې ورځ د مازدیګر د لمانځه ادا کول جائز دي نور لمونځونه جائز نه دي-

قال العلامة الحصكفيؒ: و تاخير عصر صيفا و شتاء توسعة للنوافل ما لم يتغير ذكاء بان لا تحار العين فيها فى الاصح. قال ابن عابدينؒ: (تحت قوله فى الاصح) صححه فى الهداية و فى الظهيرية ان امكنه الحالة النظر فقد تغيرت و عليه الفتوٰى و فى النصاب و غيره و به ناخذ و هو قول ائمتنا الثلاثة و مشائخ بلخ و غيرهم...... و قيل حد التغير ان يبقى للغروب اقل من رمح. (رد المحتار ج۱، ص۳۶۷، كتاب الصلوٰة، اوقات الصلوٰة)

قال ابن عابدينؒ: ايضاً (تحت قوله مع شروق) ما دامت العين لا تحار فيها فهى فى حكم الشروق كما تقدم فى الغروب انه الاصح كما فى البحر...... اقول ينبغى تصحيح ما نقلوه عن الاصل للامام محمد من انه ما لم ترتفع الشمس قدر رمح فهى فى حكم الطلوع لان اصحاب المتون مشوا عليه فى صلوٰة العيد حيث جعلوا اول وقتها من الارتفاع و لذا جزم به فى الفيض و نور الايضاح. (رد المحتار ج۱، ص۳۷۱، كتاب الصلوٰة، اوقات الصلوٰة)

قال ابن نجيمؒ: و ذكر فى الاصل ما لم ترتفع الشمس قدر رمح فهى فى خكم الطلوع و اختار الفضلى ان الانسان ما دام يقدر على النظر الى قرص الشمس فى الطلوع فلا تحل الصلوٰة فاذا عجز عن النظر حلت. (البحر الرائق ج۱، ص۲۵۰، كتاب الصلوٰة، باب المواقيت)

و فى الهندية: و عند احمرارها الى ان تغيب الا عصر يومه ذٰلك فانهٗ يجوز ادائه عند الغروب. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۵۲، الفصل الثالث فى بيان الاوقات التى لا تجوز فيها الصلوٰة)

## د لمر د استواء په وخت کښې د مکروه د وخت اندازه

**سوال:** د لمر د استواء په وخت کښې د مکروه وخت د اندازې په باره کښې خلک مختلفې رایې لري، ځینې خلک ئې دوه درې دقیقې او ځینې ئې شل پنځه ویشت دقیقې بولي- له دې څخه په زړه کښې شکونه او شبهې پیدا کیږي- نو په دې صورت کښې د مکروه د وخت صحیح اندازه د شرعې له مخې بیان کړی؟ بینوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په زوال کښې زیات وخت نه لګیږي او نه کوم تاکلی وخت لري، نو ځکه مناسبه دا ده چه له نصف النهار (د ورځې له نیمایي) څخه څو دقیقې مخکښې او څو دقیقې وروسته د لمانځه له ادا کولو څخه باید ډډه وکړی-

هكذا فى فتاوٰى محمودية (ج۲، ص۲۳۷)

قال الشيخ المحقق محمد يوسف الدهيانوىؒ: په زوال کښې له نهو دقیقو څخه زیات وخت نه لګیږي لیکن د احتیاط له مخې له نصف النهار څخه پنځه دقیقې مخکښې او پنځه دقیقې وروسته له لمانځه څخه باید ډډه وکړی- (ستاسو مسائل او د هغو حل ج۲، ص۱۰۵، باب اوقات نماز)



## په مکروه وختونو کښې د جنازې د لمانځه او د تلاوت د سجدې حکم

**سوال:** په مکروه وختونو یعنې د لمر د راختو، د لمر د ډوبیدو او د لمر د استواء په وختونو کښې د جنازې لمونځ او د تلاوت سجده جائزه ده او که نه؟ بینوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چیرته خاص په مکروه وختونو کښې د جنازې لمونځ تیار شي یا د تلاوت سجده په چا واجبه شي نو بیا په همدغو وختونو کښې د جنازې د لمانځه او د تلاوت د سجدې ادا کول له کراهیت پرته جائز دي- البته که چیرته جنازه له مخکښې څخه تیاره شوې وي یا سجدهٔ تلاوت له مخکښې څخه په چا واجبه شوې وي نو بیائې په همدغو مکروه وختونو کښې ادا کول مکروه تحریمي دي-

قال العلامة الحصكفىؒ: و كره صلوٰة مطلقاً و لو قضاء او واجبة او نفلاً او على جنازة و سجدة تلاوت و سهو لا شكر قنية مع شروق و استواء و غروب الا عصر يومه..... و سجدة تلاوة و صلوٰة جنازة تليت فى كامل و حضرت الجنازة قبل لوجوبه كاملاً فلا يتادى ناقصاً فلو وجبتا فيها لم يكره فعلها اى تحريماً و فى التحفة الافضل ان لا تؤخر الجنازة. قال ابن عابدينؒ: (تحت قوله فى التحفة الخ) فثبت كراهة التنزيهة فى سجدة التلاوة دون صلوٰة الجنازة. (رد المحتار ج۱، ص۳۷۰، تا ۳۷۴، كتاب الصلوٰة، الاوقات)

و فى الهندية: ثلاث ساعات لا تجوز فيها المكتوبة و لا صلوٰة الجنازة و لا سجدة التلاوة....... هٰذا اذا وجبت صلوٰة الجنازة و سجدة التلاوة فى وقت مباح و اخرتا الى هٰذا الوقت فانهٗ لا يجوز قطعا اما لو وجبتا فى هٰذا الوقت و اديتا فيه جاز لانها اديت ناقصة كما وجبت...... لكن الافضل فى سجدة التلاوة تاخيرها و فى صلوٰة الجنازة التاخير مكروه. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۵۲، الفصل الثالث فى بيان الاوقات التى لا تجوز فيها الصلوٰة و تكره فيها) و مثله فى البحر الرائق ج۱، ص۲۴۹، مواقيت الصلوٰة)

## د سهار او مازدیګر تر لمونځونو وروسته د قضاء د لمونځونو حکم

**سوال:** آیا د سهار له راختو وروسته د لمر تر ختو پورې او د مازدیګر تر لمانځه وروسته د لمر تر ډوبیدو پورې د قضایي لمونځونو ادا کول جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د سهار له راختو وروسته او د سهار تر لمانځه مخکښې یواځې دوه رکعته سنت دي- له دغو دوو رکعتو پرته نور نفلي لمونځونه جائز نه دي بلکه مکروه تحریمي دي او نه د مازدیګر تر لمانځه وروسته نفل لمونځونه جائز دي- البته د قضائي لمونځونو په ادا کولو کښې کومه بدي نشته-

لما قال العلامة الحصكفىؒ: و كره نفل قصداً و لو تحية مسجد و لو سنة الفجر بعد صلوٰة فجر و صلوٰة عصر و لو المجموعة بعرفة و لا يكره قضاء فائتة و لو وتراً. الخ. قال ابن عابدينؒ: (تحت قوله و كره نفل) و الكراهية هٰهنا تحريمية ايضاً كما صرح به فى الحلية. و لذا عبر فى الخانية و الخلاصة. بعدم الجواز و المراد عدم الحل لا عدم الصحة كما لا يخفٰى. (رد المحتار ج۱، ص۳۷۴، كتاب الصلوٰة، اوقات الصلوٰة)

قال العلامة ابراهيم الحلبیؒ: و اما الوقات الأخران....... فانه يكره فيهما التطوع فقط و لا يكره فيهما الفرض...... و هما اى الوقتان المذكوران ما بعد طلوع الفجر الى ان ترتفع الشمس فانه يكره فى هٰذا الوقت النوافل كلها الاّ سنة الفجر...... و ما بعد صلوٰة العصر الى غروب الشمس لحديث ابن عباسؓ. (كبيرى ص۲۳۸، كتاب الصلوٰة، الشرط الخامس) و مثله فى البحر الرائق ج۱، ص۲۵۱، اوقات الصلوٰة)

## په حرمين شريفينو كښې له مثلينو څخه مخكښې د مازديګر د لمانځه د ادا كولو حكم

**سوال:** خلك چه كله د حج يا عمرې لپاره حرمين شريفينو ته ځي نو هلته د مازديګر لمونځ تر مثلينو مخكښې ادا كيږي، نو آيا مونږ له هغو سره د جمعې په لمانځه كښې د شريكيدو په صورت كښې د مازديګر لمونځ ورسره ادا كولى شو او كه به تر مثلينو پورې به انتظار كوو؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د مازديګر لمونځ له مثلينو څخه وروسته ادا كول افضل دي اګر كه د جمعې د لمانځه د فوت كيدو انديښنه هم موجوده وي۔ ليكن دا حكم د نورو عامو ځايونو لپاره دى۔ د حرمين شريفينو د حرمت او فضيلت له وجهې بايد چه د جمعې په لمانځه كښې شريك شى او تر مثلينو پورې ځنډول ئې ضروري نه دي۔ بلكه په حرمين شريفينو كښې د جمعې د لمانځه ادا كول افضل دي۔

قال العلامة ابن عابدينؒ: (و عليه عمل الناس يوم) و انظر هل اذا لزم من تاخيره العصر الى المثلين فوت الجماعة يكون الاولى التاخير ام لا؟ و الظاهر الاول بل يلزم لمن اعتقد رجحان قول الامام. (رد المحتار ج۱، ص۳۵۹، كتاب الصلوة، اوقات الصلوٰة)

## د روژې د ماتولو له وجهې د ماښام په لمانځه كښې د ځنډ حكم

**سوال:** په رمضان المبار كښې د روژې د ماتولو له وجهې خلك د ماښام په لمانځه كښې تاخير كوي۔ آيا د افطاري له وجهې د ماښام په لمانځه كښې تاخير جائز دى؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د ماښام په لمانځه كښې د دوه ركعتونو لمانځه په اندازه تاخير كول په اتفاق سره جائز دي۔ له دې څخه زيات تاخير مكروه تنزيهي دى۔ البته په رمضان المبارك كښې چه كله لوږه زياته وي نو څو دقيقې ځنډ جائز دى۔ په دې شرط چه دا ځنډ د ستورو د تعداد په ډيروالي كښې تر ځليدو پورې و نه رسيږي۔ د دې لپاره چه د لوږې په حالت كښې لمونځ مكروه دى۔

قال العلامة الحصكفیؒ: كره اى التاخير لا الفعل لانه مامور به تحريماً الا بعذر كسفر و كونه على اكل. قال ابن عابدينؒ: (تحت قوله الا بعذرٍ) و عبارته الا من عذر كسفر و مرض و حضور مائدة او غيم. (رد المحتار ج۱، ص۳۶۹، كتاب الصلوٰة، اوقات الصلوٰة)



قال العلامة عالم بن العلاء الانصارىؒ: و اما المغرب فيكره تاخيرها اذا غربت الشمس و فى السراجية الا بعذر السفر او بان كان على المائدة. (فتاوىٰ تاتارخانية ج۱، ص۴۰۶، كتاب الصلوة. مواقيت الصلوٰة)

## د ماښام او د ماسخوتن تر منځ د وخت د تعين حكم

**سوال:** نن صبا په جوماتونو كښې د لمانځه لپاره دائمي جنترى وي او خلك د هغې په مطابق د لمونځونو وختونه بدلوي، له هغو څخه په ځينو جنتريو كښې د ماښام او ماسخوتن تر منځ وخت پاو كم دوه ساعتونه او په ځينو كښې يو نيم ساعت ليكلى وي۔ اوس پوښتنه دا ده چه د ماښام او ماسخوتن تر منځ صحيح وخت څومره دى؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د ماښام او ماسخوتن تر منځ كوم تاكلى وخت نه دى تاكل شوى، البته د مفتیٰ بهٖ قول له مخې د سره شفق له ډوبيدو وروسته د ماسخوتن وخت د اخليږي۔ په داسې حال كښې چه د استواء د خط په منځنى ځاى باندې په معتدلو ورځو كښې له پنځه څلويښتو دقيقو وروسته سور شفق ډوبيږي۔ او تر ۵۷ دقيقو وروسته سپينوالى ډوبيږي، په نورو ځايونو كښې له دې څخه زيات وخت هم كيداى شي چه واخلي۔ او د دې زياتوالي هيڅ حد نشته۔ البته د ماښام د آذان تر پاو باندې يوه ساعت وروسته بايد د ماسخوتن آذان وشي۔

قال العلامة الحصكفیؒ: و وقت المغرب منه الى غروب الشفق و هو الحمرة عندهما و به قالت الثلاثة و اليه رجع الامام كما فى شروح المجمع و غيرهما فكان هو المذهب. قال ابن عابدينؒ: (تحت قوله اليه رجع الامام) اى الى قولهما الذى هو رواية عنه ايضاً و صرح فى المجمع بان عليها الفتوىٰ. (رد المحتار ج۱، ص۳۶۱، اوقات الصلوٰة، مطلب فى الصلوٰة الوسطىٰ)

و فى الهندية: و وقت المغرب منه الى غيبوبة الشفق و هو الحمرة عندهما و به يفتى. (الفتاوىٰ الهندية ج۱، ص۵۱، الباب الاول فى المواقتى، الفصل الاول فى اوقات الصلوٰة) و مثله فى البحر الرائق ج۱، ص۲۴۶، مواقيت الصلوٰة)

## له نيمې شپې وروسته د ماسخوتن د لمانځه د ادا كولو حكم

**سوال:** مونږ په عامو كتابونو كښې ويلي دي چه د ماسخوتن د لمانځه وخت د شفق له ډوبيدو څخه د سهار تر راختو پورې دى يعني په دې دوران كښې د ماسخوتن د لمانځه ادا كول جائز دي ليكن په "مجموعه الفتاوىٰ اردو ج۱، ص۲۰۱ (ايچ ايم سعيد كراچي) له مطالعې څخه څرګنديږي چه له نيمې شپې وروسته د ماسخوتن د لمانځه ادا كول مكروه تحريمي دي او سهار ته ئې بيرته راګرځول واجب دي، ګواكه له نيمې شپې وروسته مونځ نه كيږي په داسې حال كښې چه دا وخت خو د لمانځه وخت دى؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د ماسخوتن لمونځ تر نيمې شپې پورې په ځنډولو كښې د علماوو اختلاف دى د ځينو په نزد تر نيمايي شپې پورې ئې مؤخر كول مكروه تحريمي دي، او كوم لمونځ چه له مكروه تحريمي سره ادا شي د هغه بيرته راګرځول واجب وي، او د ځينو په نزد

مکروه تنزیهي دی، د دې علت د جمعې د لمانځه تقلیل دی، د تنزیهي کراهت معاد خلاف اولٰی دی، او همدا رایه راجحه او مفتٰی بهٖ ده، د دې لپاره له نیمې شپې وروسته د ماسخوتن لمونځ کیدلی شي او بیرته راګرځول ئې واجب نه دی یوائخې د اولٰی خلاف دی.

لما قال العلامة الحصکفیؒ: فان اخرها ما زاد علی النصف کره لتقلیل الجماعة...... قال ابن عابدینؒ: (تحت قوله کره) ای تحریماً کما یأتی تقییده فی المتن او تنزیهاً و هو الاظهر کما نذکره عن الحلیة. (رد المحتار ج۱، ص۳۶۸، کتاب الصلٰوة، اوقات الصلٰوة)

ایضاً و قال ابن عابدینؒ: (تحت قوله الماتن ای تحریما) کذا فی البحر عن القنیة لکن فی الحلیة ان کلام الطحاوی یشیر الی ان الکراهة فی تاخیر العشاء تنزیهیة و هو الاظهر. (رد المحتار ج۱، ص۲۶۹، کتاب الصلٰوة، اوقات الصلٰوة)

قال العلامة عالم بن العلاء الانصاریؒ: و فی الغیاثیة الا اذا کان فیه تفرق الجماعة و بعده الی نصف اللیل مباح غیر مکروه. قال الطحاویؒ: و بعد نصف اللیل الی طلوع الفجر مکروه اذا کان التاخیر بغیر عذرٍ. (الفتاوی التاتارخانیة ج۱، ص۴۰۶، کتاب الصلٰوة، المواقیت)

## د تهجد وخت کله شروع کیږي

**سوال:** جناب مفتي صاحب! زه د تهجد لمانځه سره ډیر شوق لرم لیکن د خوب د غلبې له وجهې له صبح صادق څخه مخکښې پاڅیدل راته ډیر مشکل وي. که چېرته زه له نیمې شپې وروسته تهجد وکړم او ویده شم نو آیا زما د تهجد لمونځ کیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د تهجد د وخت په باره کښې اګر که مختلف روایتونه راغلي دي لیکن روایت دا دی چه له نیمې شپې وروسته د تهجدو وخت شروع کیږي، که چېرته څوك له نیمې شپې وروسته دوه یا څلور رکعتونه ادا کړي نو تهجد ئې ادا کیږي که بیرته ویده شي او که نه؟ البته له خوبه وروسته د تهجدو ادا کول افضل دي.

لما قال العلامة شاه عبد العزیز الدهلویؒ: اول وقت آن بعد از نصف شب است سواء سبقه النوم ام لا. (فتاوٰی عزیزی ص۵، کتاب الصلٰوة)

لما قال المفتی عبد الرحیم لاجپوری: غوره مذهب دا دی چه د تهجد وخت له نیمې شپې څخه وروسته شروع کیږي که له دې څخه مخکښې ویده وی او که نه. هو! له ویده کیدو وروسته په را پورته کیدو سره د تهجد ادا کول بهتر دي. (فتاوٰی رحیمیه ج۴، ص۲۸۳، باب اوقات الصلٰوه)

## د ماښام د وخت اندازه

**سوال:** د ماښام په لمانځه کښې د تعجیل افضل والي ته په کتو سره خلك په فریب کښې لویږي چه د ماښام وخت ډیر لنډ دی. نو آیا د ماښام د لمانځه د وخت اندازه باید څومره وي؟



**الجواب باسم ملهم الصواب:** د ماښام وخت د حنفي فقهې مطابق د لمر له ډوبیدو څخه شروع کیږي او د سره شفق تر ډوبیدو پورې دوام کوي. او د امام صاحبؒ په نزد د سپین شفق تر ډوبیدو پورې دوام کوي.

د ماښام وخت د موسم او علاقه جاتو د لرې والي او نژدې والي له وجهې متاثر کیږي، تر دې پورې چه په ځینو علاقو کښې یو ساعت، په ځینو کښې یو ساعت او درې دقیقې، په ځینو کښې یو ساعت او پنځلس دقیقې او په ځینو علاقو کښې یو ساعت او شل دقیقې وي. په عمومي توګه د ماښام او ماسخوتن تر منځ باید یو نیم ساعت وخت ورکړی شي.

البته د ماښام لمونځ باید د سره شفق تر ډوبیدو مخکښې ادا شي تر څو چه په اختلاف کښې څوك و نه لویږي، البته مسافر یا بل د عذر چښتن لپاره په سپین شفق کښې هم د ماښام لمونځ ادا کول مرخص دي.

قال العلامة الحصکفیؒ: (و) وقت (المغرب منه الی) غروب (الشفق و هو الحمرة) عندهما و به قالت الثلاثة و الیه رجع الامام کما فی شروح المجمع و غیرها فکان هو المذهب (و) وقت (العشاء و الوتر منه الی الصبح). (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۳۶۱، کتاب الصلٰوة)

و وقت المغرب منه الی غیبوبة الشفق و هو الحمرة عندهما و بهٖ یفتی هٰکذا فی شرح الوقایة و عند ابی حنیفة الشفق هو البیاض الذی یلی الحمرة هٰکذا فی القدوری و قولهما اوسع للناس و قول ابی حنیفة احوط لان الاصل فی باب الصلٰوة ان لا یثبت فیها رکن و لا شرط الا بما فیه یقین کذا فی ا لنهایة ناقلاً عن الاسرار و مبسوط شیخ الاسلام و وقت العشاء و الوتر من غروب الشفق الی الصبح کذا فی الکافی. (الهندیة ج۱، ص۵۱، الباب الاول فی المواقیت)

## باب الآذان و الاقـــامة

## (د آذان او اقامت احــکام او مسئلې)

### د آذان شرعي حــکم

**سوال:** د آذان شرعي حکم څه دی؟ او د کومو کومو لمونځو لپاره باید آذان وشي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** آذان ورکول د پنځه وخته لمونځونو او جُمعې د لمانځه لپاره سنت مؤکده دي۔ فقهاء کرامو لیکلي دي چه که چېرته ټول قوم په اتفاق سره آذان پرېږدي نو له هغو سره دې قتال (جنګ) وشي، البته له پنځو لمونځونو او جُمعې لمانځه څخه پرته د نورو لمونځونو لپاره لکه کسوف، خسوف، تراویح، جنازه او د اسې نورو لپاره آذان نه ورکول کیږي۔

لما قال العلامة الحصكفيؒ: و هو سنة للرجال فى مكان عال مؤكدة هى كا لواجب فى لحوق الاثم للفرائض الخمس فى وقتها و لو قضاء لانهٗ سنة للصلٰوة حتى يبرد به لا للوقت لا يسن لغيرها كعيد. قال ابن عابدينؒ: (تحت قوله كعيد) اى وتر و جنازة و كسوف و استسقاء و تراويح الخ. (رد المحتار ج ١، ص ٣٨٤، باب الآذان، مطلب فى المواضع التى يندب لها الآذان)

قال العلامة صدر الشريعة: و هو سنة للفرائض الخمس و الجمعة و ليس بسنة فى النوافل. قال العلامة عبد الحى الكهنوىؒ: (تحت قوله و ليس بسنّة فى النوافل) اراد با لنوافل ما سوى الفرائض فان كل ما وراء الفرائض نافلة اى زائدة عليها. (السعاية ج٢، ص٩، باب الآذان) و مثله فى مراقى الفلاح على صدر الطحطاوى ص ١٥٦، باب الآذان)

### په یوه وخت کښې د آذان تعدد

**سوال:** زمونږ په ښار کښې یو جومات د اسې دی چه په هغه کښې د ماسخوتن تر آذان وروسته له اقامت څخه مخکښې ټول لمونځ کوونکي له امام سره په لومړي صف کښې پخپلو ځایونو کښې درېږي او آذان ورکوي او د جومات په څلورو کونجونو کښې پوکی کوي، له هغه وروسته بیا اقامت وایي او په لمانځه باندې شروع کوي، آیا د شریعت له مخې د اسې کول جائز دي او کوم ثبوت ئې شته او که نه؟ او د اسې کولو حکم څه دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د ماسخوتن د آذان او اقامت تر منځ څو واره د آذان د کولو شرعاً کوم ثبوت نشته۔ د اله ځانه یو جوړ شوی رواج او بدعت دی۔ آذان یو اځې دَ فرض لمانځه لپاره روادی او له هغه پرته د آذان سنت والی ثابت نه دی۔

قال العلامة الحصكفيؒ: لانه سنة للصلٰوة حتى يبرد به لا للوقت (لا) يسن (لغيرها) كعيد. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج ١، ص ٢٨٤، باب الآذان، كتاب الصلٰوة)

و فى الهندية: الآذان سنة لاداء المكتوبات با لجماعة كذا فى فتاوىٰ قاضى خان و ليس لغير الصلٰوة الخمس و الجمعة نحو السنن و الوتر الى آخره. (الهندية ج ١، ص ٥٣، باب الآذان)



### د ظالم سړي د آذان حکم

**سوال:** یو سړی پخپله هم ظالم دی او زوی ئې هم د کوم جرم په بدل کښې نیول شوی دی۔ د هغه د خلاصون لپاره ئې رشوت ورکړی دی او هغه ئې خلاص کړی دی۔ د اسړی په مستقله توګه د یوه جومات مؤذن هم دی۔ هیڅوک ته اجازه نه ورکوي چه آذان وکړي، آیا د د اسې سړي آذان صحیح دی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** ظلم کول او رشوت ورکول د فسق کارونه دي۔ د د اسې سړي آذان مکروه تحریمي دی۔ البته د د اسې سړي په آذان باندې لمانځه کښې کوم فرق نه راځي او نه د لمانځه بیرته راګرځول واجب دي۔ په د اسې حال کښې چه په د اسې آذان باندې د جمعې لمونځ هم اداکیږي۔ البته د آذان بیرته راګرځول مستحب دي۔

قا العلامة الحصكفىؒ: و يكره اذان جنب و اقامته و اقامة محدث لا اذانه على المذهب (و) اذان (امرأة) و خنثى (و فاسق) و لو عالماً لكنه اولى بامامة و اذان من جاهل تسقى...... و يعاد اذان الجنب ندباً. قال ابن عابدين (يعاد اذان جنب زاد القهستانى و الفاجر و الراكب و القاعد...... الخ. (رد المحتار ج ١، ص ٣٩٢/٣٩٣، باب الآذان)

قال ابن نجيمؒ: تحت هٰذا القول (و كره آذان...... و الفاسق) و اما الفاسق فلان قوله لا يوثق به و لا يقبل فى الامور الدينية و لا يلزم احداً فلم يوجد الاعلام...... صرح بكراهة اذان الفاسق و لا يعاد فا لاعادة فيه ليقع على وجه السنة. (البحر الرائق ج ١، ص ٢٦٣، باب الآذان) و مثله فى فتح القدير ج ١، ص ٣٢٠، باب الاذان)

### د آذان په ځواب کښې د درود شریف د لوستلو حکم

**سوال:** ځینې خلك د آذان په ځواب کښې درود شریف لولي، آیا د درود شریف لوستل د آذان په ځواب کښې سنت دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د درود شریف لوستل یو ښه کار دی لیکن د آذان په ځواب کښې د درود شریف د لوستلو کوم ثبوت نشته۔ بلکه د آذان په ځواب کښې اجابت سنت دی یعنې کومه کلمه چه له آذان کوونکي څخه واوري هغه به اوریدونکی هم وایي۔ البته په څو کلمو کښې به اختلاف په نظر کښې نیسي او د آذان ځواب به ورکوي۔ او که چېرته چا درود شریف ولوستل نو پروا نه لري۔ هو! له آذان څخه وروسته او له دُعا څخه مخکښې د درود شریف لوستل سُنت دي۔

لما قال النبی ﷺ اذا سمعتم المؤذن فقولوا مثل ما يقول ثم صلّوا علىّ فانه من صلى على صلٰوة صلى الله عليه بها عشراً. (صحيح مسلم ج ١، ص ١٦٦)

و فى الهندية: يجب على السامعين عند الآذان الاجابة وهى ان يقول مثل ما قال المؤذن الا فى قوله حىّ على الصلٰوة حىّ على الفلاح فانه يقل مكان حىّ على الصلٰوة و الفلاح لا حول و لا قوة الا با للّٰه العلىّ العظيم. الى آخره (الفتاوىٰ الهندية ج ١، ص ٥٧، الفصل الثانى فى كلمات الاذان)

(و) صفه الاجابة ان یقول کما قال ای مثل الفاظ المؤذن (و) لکن (حوقل) ای قال لا حول و لا قوة الا با لله ای لا حول لنا عن معصیة و لا قوة لنا علی طاعة الا بفضل الله (فی) سماعه (الحیعلتین). (مراقی الفلاح علی الطحطاوی ص ۱۱۰) و مثله فی رد المحتار ج ۱، ص ۳۹۸، باب الآذان)

## د اشهدُ اَن لاَّ الٰهَ الاَّ اللّٰهُ په آخر کښې ها ها ویل

**سوال:** زمونږ په کلي کښې چه کله آذان ورکول کیږي نو ځینې خلك د اشهدُ اَن لاَّ الٰهَ الاَّ اللّٰهُ په آخر ها ها او د اسې نور الفاظ وایي نو د شریعت له مخې د د اسې الفاظو حکم څه دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته د کوم لفظ د زیاتوالي یا کموالي له وجهې په معنٰی کښې زیات تغیر راشي نو د شریعت له مخې د اسې کول ناجائز دي۔ که چېرته د معنٰی تغیر پکښې را نه شي نو جائز دي۔ له نوموړي غلطۍ څخه اګر که په معنٰی کښې فساد نه راځي لیکن بیا هم ځان ساتل ترې لازمي دي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: و منها القرائة بالالحان ان غیر المعنٰی و الا فی حرف مد و لین فلو فی اعراب او تخفیف مشدّد و عکسه بزیادة حرف فاکثر. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج ۱، ص ۶۳۰، باب ما یفسد الصلٰوة)

اما ان قرأ حرفاً مکان حرف او زاد حرفاً او قدم المؤخر او اخر المقدم و اما ان کان کلمة او زاد کلمة او نقص او قدم او اخر و اما ان قرأ آیة مکان آیة او نقص او زاد و قدم المؤخر او اخر المقدم اما اذا قرأ حرفاً مکان حرف و لم یغیر المعنی بان قرأ ان المسلمین ان المسلمون لا یفسد. (خلاصه الفتاوٰی ج ۱، ص ۱۰۶، الفصل الثانی عشر فی زلة القاری)

## په آذان کښې د کومې کلمې د هیریدلو حکم

**سوال:** که چېرته په آذان کښې کومه کلمه له چا څخه هیره شي او وروسته ور په زړه شي نو د دې به څه حکم وي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته کومه کلمه په هیره سره پاتې شي او یا وړاندې والی او وروسته والی ترې وشي نو د اذان له ختمیدو څخه مخکښې دې بیرته صحیح کړي او پاتې آذان دې په ترتیب سره وکړي۔ البته که چېرته ئې غلطي له آذان څخه وروسته ورته معلومه شي او د خبرې کولو له وجهې ئې هغه غلطي ورته څرګنده نه شي نو بیرته دې را وګرځوي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: و لو قدم فیهما مؤخراً اعاد ما قدم فقط (و لا یتکلم فیهما) اصلا و لو رد السلام فان تکلم استانفه. (در مختار ج ۱، ص ۲۸۶، باب الآذان)

اذا قدم فی آذانه و اقامته شیئاً بان قال اوّلا اشهد ان محمداً رسول اللهِ ثم قال اشهدُ ان لاَّ اِلٰهَ الاَّ الله فعلیه ان یقول بعد کلمة الشهادة اشهد ان محمد رّسول الله و اذا اذن و مکث ساعة ثم اخذ فی الاقامة فظن انها اذان و صنع فیها ما صنع فی الآذان فقیل له هٰذه اقامة فانه یستقبل الاقامة من اولها. (خلاصة الفتاوٰی ج ۱، ص ۴۹، الفصل الاول فی الآذان)



## د آذان او اقامت لپاره د ښي طرف ټاکنه

**سوال:** په آذان او اقامت کښې په عمومي توګه د ښي طرف رعایت کیږي۔ ډیر واري په کیڼ طرف باندې د آذان په ورکولو یا د اقامت په ویلو باندې رټنه هم کیږي، د شریعت له مخې آیا دا تعین صحیح دی او که څنګه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د آذان او اقامت لپاره د کوم ځانګړي طرف تعین ضروري نه دی، البته بهتره دا د چه آذان په د اسې ځای کښې ورکول شي له کوم ځای څخه چه خلك په کامله توګه آذان اوریدلی شي که د جومات په ښي طرف وي یا په کیڼ طرف۔

قال ابن عابدینؒ: (قوله و یستدیر فی المنارة) یعنی ان لم یتم الاعلام بتحویل وجهه مع ثبات قدمیه و لم تکن فی زمنهﷺ مئذنة (بحر) قلتُ و فی شرح الشیخ اسماعیل عن الاوائل للسیوطیؒ ان اول من رقٰی منارة مصر للآذان شرجیل بن عامر المرادی و بنی سلمة المنایر للآذان بامر معاویة و لم تکن قبل ذٰلك. و قال ابن ابن سعد با لسند الٰی ام زید بن ثابتؓ کان بیتی اطول بیت حول المسجد فکان بلال یؤذن فوقه من اوّل ما اذن الی ان بنی رسول اللهﷺ مسجده فکان یؤذن بعد علی ظهر المسجد و قد رفع لهٗ شیء فوق ظهره. (رد المختار علی در المختار ج ۱، ص ۳۸۵/۳۸۷، باب الآذان)

و فی الهندیة: و السنة ان یؤذن فی موضع عالٍ یکون اسمع لجیرانه و یرفع صوته و لا یجهد نفسه......... و یقیم علی الارض هٰکذا فی القنیة و فی المسجد هٰکذا فی البحر الرائق. (الهندیة ج ۱، ص ۵۵، باب الآذان) و مثلهٗ فی البحر الرائق ج ۱، ص ۲۵۵، باب الآذان)

## د آذان او اقامت اهمیت

**سوال:** د شریعت له مخې آذان او اقامت څه اهمیت لري؟ که چېرته د سنَتو په حوالې سره پرینښودل شي نو نتیجه به ئې څه وي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** آذان او اقامت د دین له اهمو کارونو څخه دي۔ د ځینو په نزد سنتِ مؤکده دي او د ځینو په نزد واجب دي۔ که چېرته ئې د کوم کلي خلك آذان او اقامت په دائمي توګه پریږدي نو له هغو سره د قتال د کولو حکم دی۔

قال ابن عابدینؒ: (هی کا لواجب) بل اطلق بعضهم اسم الواجب علیه لقول محمد لو اجتمع اهل بلدة علی ترکه قاتلهم علیه و لو ترکه واحد ضربته و حسبته و عامة المشائخ علی الاول و القتال علیه لما انه من اعلام الدین و فی ترکه استخفاف ظاهرٌ به. (رد المحتار ج ۱، ص ۳۸۴، باب الآذان)

قال ابن نجیمؒ: (قوله سن للفرائض) ای سن الآذان للصلٰوة الخمس و الجمعة سنة مؤکدة قویة قریبة من الواجب حتٰی اطلق بعضهم علیه الوجوب و لهذا قال محمد لو اجتمع اهل بلدٍ علی ترکه قاتلناهم علیه و عند ابی یوسف یحبسون و یضربون و هو یدل علی تاکده لا علی وجوبه لان المقاتلة لما یلزم من الاجتماع علی ترکه من استخفافهم با لدین بخفض اعلامه لان الآذان من اعلام الدین. (البحر الرائق ج ۱، ص ۲۵۵، باب الآذان) و مثله فی خلاصة ج ۱ ص ۴۸، باب الآذان)

## له وخت څخه مخکښې د آذان ورکولو حکم

**سوال:** په ځینو جوماتونو کښې لیدل شوي دي چه په هغو کښې د سهار آذان د سهار تر ختلو مخکښې ورکول کیږي، د داسې آذان حکم څه دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له وخت څخه مخکښې آذان د علماوو په اتفاق سره جائز نه دی، او بیرته را ګرځول ئې ضروري دي۔ البته که چېرته لمونځ پخپل وخت وشي نو بیا کوم فساد پکښې نه راځي۔

قال العلامة الحصكفيؒ: فيعاد اذان وقع بعضه (قبله) كا لاقامة خلافا للثاني في الفجر. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۱، ص۳۸۵، باب الآذان)

و في الهندية: تقديم الآذان على الوقت في غير الصبح لا يجوز اتفاقاً و كذا في الصبح عند ابي حنيفة و محمد رحمهما الله تعالى و ان قدم يعاد في الوقت هٰكذا في شرح مجمع البحرين لابن الملك و عليه الفتوىٰ هٰكذا في التتارخانية نافلاً عن الحجة. (الهندية ج۱، ص۵۳، باب الآذان) و مثله في بحر الرائق ج۱، ص۲۵۵، باب الآذان)

## په آذان کښې روان والی سُنت دی

**سوال:** په ځینو ځایونو کښې مؤذن د آذان هره کلمه جدا جدا وایي په داسې حال کښې چه مشهوره دا ده چه په آذان کښې باید دوه دوه کلمې سره ولګیږي او بیا وویل شي، که چېرته کوم سړی د آذان کلمې په دې ډول بیل بیل ووایي نو د آذان په صحیح والي باندې کوم اثر اچوي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په آذان کښې ترسیل سُنت دی۔ یعنې تکبیر به دوه دوه کلمې سره ګډوي او بیا به ئې وایي۔ البته که چېرته چا داسې و نه کړل بلکه هره کلمه بیله بیله ویله نو بیا هم جائز دي۔ لیکن بهتره دا ده چه آذان دې بیرته راوګرځول شي تر څو چه آذان د سنتو مطابق وشي۔

قال العلامة الحصكفيؒ: (و يترسل فيه) بسكتة بين كل كلمتين و يكره تركه و تندب اعادته ــــ قال ابن عابدينؒ: (قوله بسكتة) اى تسع الاجابة مدنى عن مُلا على قارى و هٰذه السكتة بعد كل تكبيرتين لا بينهما كما افاده فى الامداد اخذا من الحديث و به صرح في التتارخانية (قوله و تندب اعادته) او لو ترك الترسل. (رد المحتار على در المختار ج۱، ص۳۸۷، باب الآذان)

قال ابن نجيمؒ: (قوله و يترسل فيه و يحدر فيها) اى يتمهل في الآذان و يسرع في الاقامة وحده ان يفصل بين كلمتي الآذان بسكتة بخلاف الاقامة للتوارث........ و لو جعل الآذان اقامة يعيد الآذان و لو جعل الاقامة الآذان اذانا يعيد لان تكرار الآذان مشروع دون الاقامة ــــ قال ابن عابدينؒ في حاشيته ثم الاعادة انما هى الفضل. (بحر الرائق مع منح الخالق ج۱، ص۲۵۸/۲۵۷، باب الآذان) و مثله في طحطاوى حاشية مراقى الفلاح ص۱۶۱، باب الآذان)



## د نشې په حالت کښې د آذان حکم

**سوال:** زمونږ د جومات یو مؤذن دی کوم چه د اعمالو له مخې ډېر کمزوری دی۔ د مثال په ډول د تل لپاره افیون، چرس او د داسې نور شیان استعمالوي، په همدې حالت کښې آذان هم کوي او لمونځ هم کوي او د نشې په همدې حالت کښې په جومات کښې ویده کیږي هم۔ نو آیا د شریعت له مخې د داسې مؤذن آذان صحیح دی او که نه؟ همدارنګه د مؤذن لپاره د شرائطو یادونه هم وکړئ؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** فقهاء کرامو د مؤذن لپاره چه کوم شرطونه لیکلي دي له هغو څخه یو شرط دا دی چه مؤذن عاقل، نیک، متقي او په سنتو باندې عمل کوونکی وي، پوه او د خلکو د احوالو هم پیژندونکی وي او د جماعت په پرېښودونکي باندې زجر هم کولی شي، پخپله هم په آذان همیشه والی کولی شي او بهتره دا ده چه مؤذن د همدې کلي اوسیدونکی وي۔

و في الهندية: و ينبغى ان يكون المؤذن رجُلاً عاقلاً، صالحاً تقياً عالماً با لسنة كذا فى النهاية و ينبغى ان يكون مهيباً و يتفقد احوال الناس و يزجر المتخلفين عن الجماعات كذا فى القنية...... و ان يكون مواظباً على الآذان هٰكذا فى البدائع و التتارخانية و ان يكون محتسباً فى آذانه كذا فى النهر الفائق و الاحسن ان يكون اماماً فى الصلٰوة كذا فى معراج الدارية و الافضل ان يكون المؤذن هو المقيم كذا فى الكافى. (الهندية ج۱، ص۵۴، باب الآذان)

له دې وجهې چه کوم سړی چرسي یا پوډري وي نو د فسق د حکم له مخې د هغه آذان مکروه تحریمي دی۔ په لمانځه کښې کوم فرق نه راځي او نه ئې بیرته راګرځول واجب دي، البته د آذان بیرته راګرځول مستحب دي۔

قال الحصكفيؒ: ...... و يكره آذان جنب و اقامته و اقامة محدث لا آذانه على المذهب (و) آذان (امرأة) و خنثى (فاسق) و لو عالماً لكنه اولى بامامة و آذان من جاهل تقى، و يعاد آذان جنب ندباً. قال ابن عابدينؒ: تحت (قوله يعاد آذان الجنب) زاد القهستاني و الفاجر. (رد المحتار ج۱، ص۳۹۲/۳۹۳، باب الآذان)

قال ابن نجيمؒ: تحت هٰذا القول و كره آذان...... و الفاسق و اما الفاسق فلان قوله لا يوثق به و لا يقبل فى الامور الدينية و لا يلزم احداً فلم يوجد الاعلام. (بحر الرائق ج۱، ص۲۶۳، باب الآذان)

## د تهجد لپاره د آذان حکم

**سوال:** د تهجدو لپاره آذان ورکول څه حیثیت لري؟ په ځینو جوماتونو کښې حرمینو شریفینو ته په کتو سره د تهجد لپاره د آذان ورکولو اهتمام کیږي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د اسلام په ابتداء کښې د تهجدو لپاره آذان ورکول کیده لیکن وروسته صحابهٔ کرامو پرېښود۔ د دې لپاره د احنافو په نزد د تهجدو لپاره آذان منسوخ دی او ورکول ئې د سنتو خلاف دی۔

اخرج الامام الطحاوى عن ابراهيم قال شيَّعنَا علقمة الى مكة فخرج بليل فسمع مؤذنا يؤذّن بليل فقال امّا هذا

و آذان الصبیّ العاقل صحیح من غیر کراهة فی ظاهر الروایة و لکن آذان البالغ افضل و آذان الصّبیّ الذی لا یعقل لا یجوز و یعاد. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۵٤، باب الآذان) و مثله فی البحر الرائق ج۱، ص۲٦٤، باب الآذان)

## د حیَ علی الفلاح د ویلو په وخت کښې د دریدلو حکم

**سوال:** زمونږ د کلي په ځینو جوماتونو کښې خلك د اقامت په وخت کښې صفونو ته راځي او کښیني او کله چه مؤذن حیَ علی الفلاح ته ورسیږي نو په دې وخت کښې دریږي۔ د دې عمل د ثبوت لپاره د ډیرو کتابونو حوالې لکه عالمګیري، شرح وقایه او بحر الرائق حوالې ورکوي او دا کښیناستل ضروري ګڼي۔ په داسې حال کښې چه ځینې خلك ورته بدعت وایي او چه څوك داسې کوي هغو ته مبتدعین وایي، پوښتنه دا ده چه آیا د حی علی الفلاح په وخت یا له دې څخه مخکښې پورته کیدل سنت دي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د حی علی الفلاح په وخت کښې دریدل شرعاً مندوب دي۔ البته سنت مؤکده ګڼل یا لازمي ګڼل ئې بدعت دي۔

د فقهې په کتابونو کښې د لمانځه لپاره د دریدو لپاره مختلف روایتونه راغلي دي، د اقامت په وخت کښې، د اقامت په منځ کښې، له اقامت څخه د فارغیدو په وخت کښې۔ چه کله صفونه برابر شي نو په لمانځه باندې شروع کول بهتر دي۔ البته که چېرته له حی علی الفلاح څخه مخکښې جګ شي نو په دې کښې هیڅ کراهیت نشته او نه واجب العتاب دی بلکه د حی علی الفلاح په وخت کښې دریدونکي ته بدعتي ویل صحیح نه دي په داسې حال کښې چه هغه ئې سنت یا واجب نه بولي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: (لها آداب) ترکه لا یوجب اساء ة و لا عتاباً کترك سنة الزوائد لکن فعله افضل...... (و القیام) لامام و مؤتم (حین قیل حیّ علی الفلاح خلافاً للزفر فعنده عند حی علی الصلٰوة..... (و شروع الامام) فی الصلٰوة (مذ قیل قد قامت الصلٰوة) و لو اخر حتی اتمها لا بأس به اجماعاً و هو قول الثانی و الثلاثه و هو اعدل المذاهب کما فی شرح المجمع لمصنّفه و فی القهستانی مغریا للخلاصة انه الاصح. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص٤۷۷)

من الادب (شروع الامام) الی احرامه (مذ قیل) ای عند قول المقیم (قد قامت الصلٰوة) عندهما و قال ابو یوسف یشرع اذا فرغ من الاقامة فلو اخر حتٰی یفرغ من الاقامة لا بأس به فی قولهم جمیعاً. (مراقی الفلاح علی حاشیة الطحطاوی ص۱۵۱، آداب الصلٰوة) و مثله فی الفتاوی التاتارخانیة ج۱، ص۵۳۰، کتاب الصلٰوة، آداب)

## د مؤذن له اجازې پرته د اقامت ویلو حکم

**سوال:** د اقامت لپاره دا ضروري دی چه اقامت ویونکی به مؤذن هم وي او که کوم بل څوك هم اقامت ویلی شي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** بهتره دا ده چه مؤذن اقامت ووایي، که چېرته مؤذن موجود نه وي نو



د بل چا اقامت هم پرته له کراهیت څخه صحیح دی۔ که چېرته مؤذن موجود وي او د کوم بل چا اقامت ویل بد نه ګڼي نو اقامت له کراهیت پرته صحیح دی۔ که چېرته ئې بد ګڼي نو له کراهیت تنزیهي سره صحیح دی۔ البته په داسې کولو سره په لمانځه باندې کوم اثر نه لویږي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: فلا بأس بذٰلك جوهرة (اقام غیر من اذن بغیبته) ای المؤذن (لا یکره ملطقاً) و ان بحضوره کره ان لحقه وحشه، کما کره مشیه فی اقامته. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۳۹۵، باب الآذان)

## د جماعت ثانیه لپاره اقامت

**سوال:** د جماعتِ ثانیه لپاره د آذان او اقامت حکم څه دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته دوهم جماعت په یوه داسې جومات کښې وشي چه هلته قوم په باقاعده توګه خپل لمونځونه په آذان او اقامت باندې اداکړي وي۔ نو د رخصت د شرائطو له رعایتولو سره د دوهم جماعت لپاره آذان او اقامت مکروه دی۔ البته له جومات څخه د باندې یا د لارې په داسې جومات کښې چېرته چه قوم او امام دواړه نه وي د دوهم جماعت لپاره آذان او اقامت مسنون دی۔

لما قال العلامة الحصکفیؒ: بل یکره فعلهما و تکرار الجماعة الا فی مسجد علی طریق فلا بأس بذٰلك. قال ابن عابدینؒ: تحت قوله الا فی مسجد علی طریق) هو ما لیس له امام و مؤذن راتب فلا یکره التکرار فیه باذان و اقامة بل هو الافضل. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۳۹۵، مطلب فی کراهیة تکرار الجماعة)

قال العلامة ابراهیم الحلبیؒ: و اذا لم یکن للمسجد امام و مؤذن راتب فلا یکره تکرار الجماعة فیه بآذان و اقامة بل هو الافضل ذکره قاضی خان اما لو کان له امام و مؤذن معلوم فیکره تکرار الجماعة فیه بآذان و اقامة. (کبیری ص٦۱٤) و مثله فی البحر الرائق ج۱، ص۲٦٦، باب الامامة)

## د امام لپاره د اقامت ویلو حکم

**سوال:** آیا د جاهلو مقتدیانو په موجودوالي کښې امام پخپله اقامت ویلی شي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** داسې خو بهتره دا ده چه آذان او اقامت یو سړی ووایي او امامت کوم بل سړی وکړي لیکن د ضرورت په وخت کښې چه کله مقتدي په اقامت باندې نه پوهیږي نو د امام لپاره د اقامت په ویلو کښې کوم قباحت نشته۔ په فقهي ذخائرو کښې ئې مثالونه موجود دي۔ لکه څرنګه چه یو سړی پخپله آذان او اقامت وکړي او لمونځ اداکړي۔

قال ابن عابدینؒ: فی الخانیة لو لم یکن لمسجد منزله مؤذن فانه یذهب الیه و یؤذن فیه و یصلی و لو کان وحدهٗ لان له حقاً علیه فیؤد به. (رد المحتار علی الدر المختار ج۱، ص٦۵۹، احکام المساجد)

و فی الخلاصه: و ان لم یکن لمسجد منزله مؤذن فانه یؤذن و یصلی و ان هناك واحد فان کان لا یحضر احد کیف یصنع المؤذن قال یؤذن و یقیم و یصلی وحدة. (خلاصة الفتاوی ج۱، ص۲۲۸)

## په قد قامتِ الصلٰوه باندې وقف کول

**سوال:** د قد قامتِ الصلٰوة د ویلو کیفیت څنګه دی؟ په هرې کلمې باندې وقف (دریدل) ضروري دي او که لومړی کلمه به وصل کوي او په دویم باندې به وقف کوي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د آذان او اقامت د ویلو مسنونه طریقه دا ده چه هره کلمه به ساکنه وایي- په آذان کښې به حقیقتاً وقف کوي او په اقامت کښې به د وقف په نسبت سره ساکن وایي، همدارنګه په قد قامتِ الصلٰوة کښې به هم دوه وارې د وقف په نیت سره ساکن کوي او وایي به ئې- البته د آذان او اقامت په تکبیرونو کښې دواړه تکبیرونه یوه کلمه شمارېږي-

لما قال العلامة عالم بن علاء الانصاریؒ: یترسل فی الآذان و یحدر فی الاقامة...... الترسل ان یقول الله اکبر الله اکبر و یقف ثم یقول مرة اخرٰی مثله و کذٰلك یقف بین کلمتین الی اخر الآذان و الحدر الوصل و السرعة. (الفتاوی التاتارخانیة ج ۱، ص ۵۱۸، باب الآذان)

قال العلامة الشرنبلالیؒ: (یتمهل) یترسل فی الآذان با لفصل بسکتة بین کل کلمتین و یسرع ای یحدر فی الاقامة للامر بهما فی السنة قال السید احمد الطحطاوی (تحت قوله بین کلمتین) ای جملتین الا فی التکبیر الاوّل فان السکتة تکون بعد تکبیرتین. (الطحطاوی حاشیة مراقی الفلاح ص ۱۵۷/۱۵۸، باب الآذان) و مثله فی الهندیة ج ۱، ص ۵۶)

## د آذان په وخت کښې د دوو ګوتو د غوږونو په سوریو کښې د کېښودلو حکم

**سوال:** د آذان د ورکولو په وخت کښې په غوږونو کښې د ګوتو د اخلولو حکم څه دی؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د آذان د ورکولو په وخت په غوږونو کښې د ګوتو نیول سنت دي- د دې وجه دا ده چه له دې څخه د آذان په آواز کښې تیزوالی او لوړوالی پیدا کیږي- اګر که نن صبا د لاسپیکر له وجهې د دې سبب او علت د اختیارولو وجه له منځه تللې ده ځکه چه له دې پرته هم آواز جګیږي- لیکن د تواتر له وجهې نن هم دا عمل سُنت دی-

لما قال العلامة ابن نجیم المصریؒ: و انما کان ذٰلك ابلغ فی الاعلام لان الصوت یبدأ من مخارج النفس فاذا سد اُذنیه اجتمع النفس فی الفم فخرج الصوت عالیا من غیر ضرورة. (البحر الرائق ج ۱، ص ۲۶۰، باب الآذان)

قال العلامة ابن عابدینؒ: (تحت قوله و یجعل اصبعیه) لقولهﷺ لبلال رضی الله تعالی عنه اجعل اصبعیل فی اُذُنیك فانهٗ ارفع لصوتك و ان جعل یدیه علٰی اُذُنیه فحسن. (رد المحتار ج ۱، ص ۲۸۵، باب الآذان)

## له ریډیو او د اسې نورو څخه د آذان حکم

**سوال:** نن صبا په ریډیو کښې پنځه وخته آذان ورکول کیږي- آیا که څوك په دې آذان باندې اکتفاء وکړي او لمونځ ادا کړي نو لمونځ ئې کیږي او که نه؟ همدارنګه د ټیپ او د اسې نورو شیانو د کیسټو په ذریعې سره د ورکړ شوي آذان حکم څه دی؟ بینوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په مقدس شریعت کښې د آذان ورکوونکي عاقل والی ضروري دی-



همدا وجه ده چه د بې عقله هلك آذان لکه نه آذان د اسې دی- لکه څرنګه چه ریډیو، ټیپ ریکارډ او ټیلویزون کښې دا شرائط موجود نه دي د دې لپاره د ټیپ ریکارډ، ریډیو او د اسې نورو آذان آذان نه دی- له دې څخه د آذان سُنت والی نه ادا کیږي-

قال العلامة ابو بکر الکاسانیؒ: و اما آذان الصبی الذی لا یعقل فلا یجزئ و یعادلان ما یصدر لا عن عقل لا یعتد به کصوت الطیور. (بدائع الصنائع ج ۱، ص ۱۵۰، فصل بیان سنن الآذان)

قال العلامة ابن عابدینؒ: ان آذان الصبی الذی لا یعقل لا یجزی و یعاد لان ما یصدر لا عن عقل لا یعتد به کصوت الطیور. (رد المحتار ج ۱، ص ۳۹۰، باب الآذان)

## د جومات په منځ کښې د آذان ورکولو حکم

**سوال:** دلته په کلیو کښې د جوماتونو په منځ کښې آذانونه ورکول کیږي، آیا د جوماتونو په منځ کښې آذان ورکول جائز دي او کن نه؟ بینوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په جومات کښې د ننه آذان ورکول په اتفاق سره جائز دي- البته په کراهیت او نه کراهیت کښې د علماوو څه ناڅه اختلاف شته- ځینې ئې د جواز پرته له کراهیت څخه قائل دي- لیکن راجحه خبره دا ده چه په جومات کښې د ننه آذان ورکول جائز دي لیکن د تنزیهي کراهیت سره-

لما قال فخر الدین القاضی خانؒ: و ینبغی ان یؤذن علی المئذنة او خارج المسجد و لا یؤذن فی المسجد. (الفتاوٰی قاضی خان علی هامش الهندیة ج ۱، ص ۷۸، باب الآذان و مسائل الآذان)

لما فی الهندیة: و ینبغی ان یؤذن علی المأذنة او خارج المسجد و لا یؤذن فی المسجد. (الفتاوی الهندیة ج ۱، ص ۵۵، الفصل الثانی فی کلمات الآذان و الاقامة) و مثله فی کتاب الاصل ج ۱، ص ۱۴۱، باب الآذان)

## د قد قامتِ الصلٰوه د ځواب حکم

**سوال:** د آذان په ځواب کښې خو هم هغه کلمې ورسره ویل کیږي نو د اقامت په دوران کښې د قد قامت الصلٰوه په ځواب کښې به سړی څه وایي؟ بینوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په مبارکو احادیثو کښې راغلي دي چه نبي کریمﷺ د قد قامت الصلٰوه په ځواب کښې اقامها الله و ادامها ویل د دې لپاره په اقامت کښې د قد قامت الصلٰوه په ځواب کښې باید سړی اقامها الله و ادامها ووایي-

قال العلامة الحصکفیؒ: و یجیب الاقامة ندبا اجماعاً کا لآذان و یقول عند قد قامت الصلٰوة اقامها الله و ادامها.

قال العلامة ابن عابدینؒ: (تحت قوله و یقول الخ) ای کما رواه ابو داؤد بزیادة ما دامت السمٰوٰت و الارض و جعلنی من صالحی اهلها. (رد المحتار ج ۱، ص ۴۰۰، باب الآذان)

لما فی الهندیة: و اجابة الاقامة مستحبة هکذا فی فتح القدیر: و اذا بلغ قوله قد قامت الصلٰوة یقول السامع اقامها الله و ادامها ما دامت السمٰوٰت و الارض و فی سائر الکلمات یجیب کما یجیب فی الآذان. (الفتاوی الهندیة ج ۱،

ص ۵۷، الفصل الثانی فی کلمات الآذان و الاقامة)

## له آذان څخه وروسته په دعا کښې د "الدرجة الرفیعة" د الفاظو ثبوت

**سوال:** له اکثرو آذان کوونکو څخه مو اوریدلي دي چه هغوی له آذان څخه وروسته په دعا کښې د و الدرجة الرفیعة...... و ارزقنا شفاعته یوم القیامة انك لا تخلف المیعاد" الفاظ زیاتوي۔ آیا دا الفاظ په مبارکو احادیثو کښې راغلي دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د حدیثو په مستندو او معتبرو کتابونو کښې له آذان څخه وروسته دعا دې الفاظو سره راغلي ده چه: اللّٰهُمَّ ربَّ هٰذه الدعوة التامة و الصلٰوة القائمة ات محمد ن الوسیلة و الفضیلة و ابعثه مقاماً محمود ن الّذی وعدته. امام بیهقیؒ د انّك لا تخلف المیعاد د زیاتوالي نقل کړی دی۔ له دې پرته په دې دعا کښې د نورو الفاظو زیاتوالی بې اصله دی هغه باید و نه وایي۔

لما قال العلامة ابن عابدینؒ: و روی البخاری وغیره من قال حین یسمع النداء اللّٰهم ربَّ هٰذه الدعوة التامة و الصلٰوة القائمة ات محمد ن الوسیلة و الفضیلة و ابعثه مقاماً محمود ن الذی وعدته حلت لهٗ شفاعتی یوم القیامة. و زاد البیهقی اِنَّك لا تُخلف المیعاد و تمامه فی الاملاء و الفتح و قال ابن حجر فی شرح المنهاج و زیادة و الدرجة الرفیعة و ختمه بیا ارحم الراحمین لا اصل لهما. (رد المحتار ج ۱، ص ۳۹۵، باب الآذان)

قال الشیخ خلیل احمد السهارنفوریؒ: و اما زیادة و الدرجة الرفیعة المشتهرة علی الالسنة فقال السخاوی لم اراه فی شیء من الروایات و زاد البیهقی فی روایة انك لا تخلف المیعاد و اما زیادة ارحم الراحمین لا وجود لها فی کتب الحدیث. (بذل المجهود ج ۱، ص ۳۰۲، باب ما جاء فی الدعاء عند الآذان) و مثله فی اعلاء السنن ج ۲، ص ۱۲۸، باب الدعاء للنبی ﷺ بعد الآذان)

## د نوي پیدا شوي بچي په غوږونو کښې د آذان ورکولو طریقه

**سوال:** د نوي پیدا شوي بچي په غوږونو کښې د آذان ورکولو حکم څه دی او طریقه ئې څه ده؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د نوي پیدا شوي بچي په غوږونو کښې آذان او اقامت ویل سنت دي، طریقه ئې دا ده چه بچی به را پورته کړي او قبلې ته به مخامخ ودریږي په ښي غوږ کښې دې آذان ور وکړي او په کیڼ غوږ کښې دې اقامت ووایي۔ او د معمول مطابق د حی علی الصلٰوة د ویلو په وخت کښې به مخ ښي خوا ته او د حی علی الفلاح په وخت کښې به مخ کیڼې خوا ته اړوي۔

لما قال العلامة السندیؒ: فیرفع المولود عند الولادة علی یدیه مستقبل القبلة و یؤذن فی اُذنه الیمنٰی و یقیم فی الیسرٰی و یلتفت فیهما با لصلٰوة لجهة الیمین و با لفلاح لجهة الیسار و فائدة الآذان فی اُذنه انه یدفع ام الصبیان عنه. (تقریرات الرافعی ج ۱، ص ۴۵، باب الآذان)



## په آذان کښې د ګوتو د ښکلولو مسئله

**سوال:** د آذان په دوران کښې چه کله مؤذن اشهد اَن محمد رسول الله وایي نو د اوریدونکو لپاره په دې وخت کښې د ګوتو ښکلول څرنګه دي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** یوازې د آذان په وخت کښې چه کله آذان کیږي نو د اشهد انّ محمد رسول الله په اوریدو سره د سترګو د شفاء لپاره چه د ثواب، سنت او واجب په نیت سره نه وي د ګوتو ښکلول جائز دي۔ اګر که ځینو مستحب ورته ویلي دي لیکن یاد لری چه دا عمل یوازې له آذان سره خاص دی په نورو ځایونو کښې دا نشته۔

قال العلامة ابن عابدینؒ: (تحت قوله لو لم یجبه حتی فرغ لم اره) یستحب ان یقال عند سماع الاولی من الشهادة: صلی الله علیك یا رسول الله. و عند الثانیة منها قرت عینی بك یا رسول الله ثم یقول اللهم متعنی با لسمع و البصر بعد وضع ظفری الابهامین علی العینین فانه علی السلام یکون قائدا له الی الجنة. (رد المحتار ج ۱، ص ۳۹۸، باب الآذان)

قال العلامة الشیخ السید احمد الطحطاویؒ: یستحب ان یقول عند سماع الاولی من الشهادتین للنبی ﷺ صلی الله علیك یا رسول الله و عند سماع الثانیة قرّتْ عینی بك یا رسول الله. اللّٰهمّ متعنی با لسمع و البصر بعد وضع ابهامیه علی عینیه. (طحطاوی حاشیهٔ مراقی الفلاح ص ۱۶۵، باب الآذان) و مثله فی السعایة ج ۲، ص ۱۱۱، باب الآذان)

## په لاسپیکر کښې د آذان ورکولو حکم

**سوال:** نن صبا د آذان لپاره لاسپیکر استعمالیږي تر څو چه آواز تر لرې پورې ورسیږي۔ شرعاً په دې کښې کوم قباحت شته او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د آذان د روا والي مقصد د لمانځه لپاره د خلکو یو ځای کول دي تر څو چه له زیات څخه زیاتو خلکو ته د لمانځه اطلاع ورکړ شي۔ د دې لپاره فقهاء کرامو د جوماتو منارې ته په ور ختلو سره د آذان ورکولو ترغیب ورکړی دی او د حیَّ علی الصلٰوه او حیَّ علی الفلاح د ویلو په وخت کښې ښي او کیڼې خوا ته ئې مخ ګرځول سُنت ګرځولي دي۔ لکه څرنګه چه له نومورې آلې (لاسپیکر) څخه دا مقصد په ښه توګه لاس ته راوړل کیږي نو ځکه په لاسپیکر کښې آذان ورکول جائز دي۔

قال العلامة برهان الدین المرغینانیؒ: و یحول وجهه للصلٰوة و الفلاح یمنة و یسرة لانه خطاب للقوم فیواجههم و ان استدار فی صومعته فحسن و مراده اذا لم یستطع تحوّل الوجه یمیناً و شمالاً مع ثبات قدمیه مکانهما کما هو السنة بان کانت الصومعة منسبعة فاما من غیر حاجة فلا و الافضل للمؤذن ان یجعل اصبعیه فی اُذنیه بذٰلك امر النبی ﷺ بلالاً و لانه ابلغ فی الاعلام. (الهدایة ج ۱، ص ۷۲، باب الآذان)

قال العلامة حسن بن عمار الشرنبلالیؒ: و یستحب ان یجعل اصبعیه فی اُذنیه لقوله ﷺ لبلالؓ اجعل اصبعیکل فی اُذنیك فانه ارفع لصوتك. (مراقی الفلاح علی صدر الطحطاوی ص ۱۰۶، باب الآذان)

## د وبا د دفع کولو لپاره د آذان حکم

**سوال:** د وبایي مرضونو د دفع کولو لپاره د علاج په توګه آذان ورکول څرنګه دي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له لمانځه څخه پرته ځینې مواقع داسې دي چه په هغو کښې له سلف صالحینو څخه عملاً آذان ورکول راغلي دي۔ د مثال په توګه د جهاد په دوران کښې، غم او انتهایي پریشانۍ په وخت کښې، د غضب په وخت کښې، چه کله مسافر لاره غلطه کړي، مرګي راشي، د ځناور یا کوم انسان بد خُلقي ښکاره شي۔ همدارنګه د وبایي مرضونو د خپریدو په وخت کښې آذان ورکول هم منقول دي د دې لپاره په دغو مواقعو کښې في ذاته آذان ورکول جائز دي۔

لما قال العلامة ابن عابدينؒ: و فی حاشیة البحر للخیر الرملی: رأیت فی کتاب الشافعیة انه قد یسن الآذان لغیر الصلٰوة کما فی اُذُن المولود و الهموم و المصروع و الغضبان و من ساء خلقه من انسان او بهیمة و عند مزدحم الجیش و عند الحریق...... عند تغول الغیلان ای عند تمرد الجن لخبر صحیح فیه اقول: و لا بعد فیه عندنا. (رد المحتار ج۱، ص۳۸۵، باب الآذان، مطلب فی المواضع التی یندب لها الآذان)

قال العلامة لشیخ اشرف علی تهانویؒ: په دغو مواقعو کښې آذان ورکول سنت دي۔ د فرض لمانځه په وخت کښې، د بچي په غوږونو کښې د پیدا کیدو په وخت کښې، د اور لګیدو په وخت کښې، له کفارو سره د جنګ په وخت کښې، په مسافر پسې، چه کله شیطانان ښکاره شي او خلك ډاروي، د غم په وخت کښې، د غضب په وخت کښې، چه کله مسافر لاره ورکه کړي، چه کله چاته مرګي راشي، چه کله د کوم ځناور یا انسان بد خُلقي ښکاره شي، د رد المحتار مصنف پخپل کتاب کښې دا ذکر کړي دي او له ځینو بزرګانو څخه د امراضو د عام والي او غرقیدو د ویرې په وخت کښې دا عمل لیدل شوی دی۔ (امداد الفتاویٰ ج۱، ص۱۰۷، باب الآذان) و مثله فی کفایت المفتی ج۳، ص۱۱، باب الآذان)

## د آذان په کلماتو کښې د وقفې اندازه

**سوال:** جناب مفتي صاحب! مؤذن باید د آذان ورکولو په وخت کښې د آذان په کلماتو کښې څومره څنډه پورې وقفه وکړي؟ او که له وقفې پرته په مسلسله توګه آذان ورکوي؟ د مقدس شریعت په دې باره کښې څه حکم دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** دا د آذان له آدابو څخه دی چه مؤذن به د آذان د کلماتو تر منځ دومره وقفه کوي چه ځواب ورکوونکی ئې ځواب په آسانۍ سره ورکولی شي۔

قال العلامة عبد الحی الکهنویؒ: و یترسل فیه ای فی الآذان بان یفصل بین کل الکمتین و لا یجمع بینهما فانهٗ سنة. (السعایة ج۲، ص۱۳، باب الآذان)



قال العلامة حسن بن عمّار الشرنبلالیؒ: (و یتمهل) یترسل فی الآذان با لفصل بسکتة بین کل کلمتین. قال الشیخ السید احمد الطحطاویؒ: (تحت قوله بین کلمتین) ای جملتین الا فی التکبیر الاول فان السکتة تکون بعد تکبیرتین. (طحطاوی حاشیة مراقی الفلاح ص۱۵۸، باب الآذان) و مثله فی التاتارخانیة ج۱، ص۵۱۸، باب الآذان)

## د الصّلٰوةُ خیرٌ من النَّوم ځواب څه دی

**سوال:** د آذان په ځواب کښې خو د حی الصلوه او حی علی الفلاح په مقابله کښې لا حول و لا قوّة الا باللّه ویل کیږي لیکن د سهار د آذان د الصّلٰوةُ خیرٌ مّن النوم په ځواب کښې به سړی څه وایي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** فقهاء کرامو لیکلي دي چه کله مؤذن د سهار په آذان کښې الصّلٰوة خیرٌ من النوم ووایي نو ځواب ورکوونکی به د صَدَقتَ و بَرَرتَ یا ما شاء الله الفاظ وایي۔

قال العلامة حسن بن عمار الشرنبلالیؒ: فی آذان الفجر قال المجیب صَدَقتَ و بَرَرتَ بفتح الراء الاولی و کسرها او یقول ما شاء الله عند قول المؤذن فی آذان الفجر الصّلٰوة خیر من النوم. (مراقی الفلاح علی هامش طحطاوی ص۱۱۰، باب الآذان)

و فی الهندیة: و کذا قول المؤذن الصلٰوة خیرٌ من النوم لا یقول السامع مثله و لکن یقول صدقتَ و بررتَ کذا فی المحیط. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۵۷، الباب الثانی فی الآذان) و مثله فی السعایة ج۲، ص۵۱، باب الآذان)

## په آذان کښې قبلې ته د مخ ګرځولو حکم

**سوال:** آیا د آذان په وخت کښې قبلې ته مخامخ دریدل ضروري دي او که څنګه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** مؤذن بـــــاید د آذان ورکولو په وخت کښې قبلې ته مخامخ ودریږي۔ په اسلامي شریعت کښې دا طریقه په متوارثه توګه راغلې ده او د دې په خلاف دې آذان نه ورکوي۔

قال العلامة حسن بن عمار الشرنبلالیؒ: و یستحب ان یکون المؤذن صالحاً ای متقیاً لانهٗ امین فی الدین...... مستقبل القبلة کما فعله الملك النازل. (مراقی الفلاح علی صدر طحطاوی ص۱۵۸، باب الآذان)

قال العلامة عالم بن العلاءِ الانصاریؒ: و المستحب للمؤذن ان یستقبل القبلة استقبالاً هٰکذا روی عبد الله بن زید رضی الله تعالی عنه عن النازل من السماء. و فی شرح الطحاوی و لو ترك استقبال القبلة اجزاء و یکره. (الفتاوی التاتارخانیة ج۱، ص۵۱۵، باب الآذان)

## په آذان کښې د الله او اکبر د الفاظو الف پورته کول

**سوال:** جناب مفتي صاحب! ځینې مؤذنین په آذان کښې د الله د لفظ او اکبر د لفظ الف پورته کوي او آذان کوي۔ آیا د الله ا و اکبر د الفاظو الفان پورته کول صحیح دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په آذان کښې د الله د الف په پورته کولو سره د استفهام د همزې د پیدا کیدو ویره وي کوم چه د معنٰی د تغیر سبب دی۔ د دې لپاره فقهاء کرامو د الله او اکبر په الفاظو

کښې د الف له پورته کولو څخه منع فرمايلې ده او په دغو دواړو ځايونو کښې الف ته مد مه ورکوی۔

قال العلامة عبد الحی الکهنویؒ: لا يقول المؤذن آللّٰه اکبر بمد الالف فانهٗ استفهام و انه لحن شرعی الخ. (السعاية ج۲، ص۱۵، باب الآذان)

و فی الهندية: و المد فی اول التکبير کفر و فی آخر خطأ فاحش. (الفتاوی الهندية ج۱، ص۵۶، الفصل الثانی فی الآذان)

## د مؤذن د کلماتو له پوره کولو څخه مخکښې د ځواب ورکولو حکم

**سوال:** د آذان د کلماتو ځواب څه وخت ورکول کيږي؟ يعنې که چېرته يو څوك د مؤذن د کلماتو په پوره توګه له ويلو څخه مخکښې ځواب ورکړي نو د ځواب ورکوونکي ځواب ادا کيږي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د آذان د ځواب صحيح طريقه دا ده چه د مؤذن د کلماتو له ختمولو څخه وروسته ځواب ورکړل شي۔ او که چېرته کوم سړی د مؤذن د کلماتو له پوره ويلو څخه مخکښې ځواب ورکړي نو دا د آذان د ځواب د فسلفې خلاف دی۔

قال الشيخ الدکتور وهبة الزحيلی: ان يقول مثلماً يقول مثنٰی مثنٰی عقب کل جملة الا فی الحيعلتين فيحوقل الخ. (الفقه الاسلامی و ادلته ج۱، ص۵۵۳، باب الآذان)

و فی الهندية: يجب علی السامعين عند الآذان الاجابة و هی ان يقول مثل ما قال المؤذن الا فی قوله حیّ علی الصلٰوة، حیّ علی الفلاح فانهٗ يقول مکان حیّ علی الصلٰوة لا حول و لا قوّة الا با للّٰه العلی العظيم. (الفتاوی الهندية ج۱، ص۵۷، الباب الثانی فی الآذان، الفصل الثانی)

## د نوي پيدا شوي بچي په غوږونو کښې د آذان ورکولو په وخت کښې ښی او کيڼي خواته د مخ ګرځولو حکم

**سوال:** څه فرمايي علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چه د کوم نوي پيدا شوي بچي په غوږونو کښې د آذان ورکوونکي لپاره په حی علی الصلٰوه او حی علی الفلاح کښې ښی او کيڼې خواته د مخ ګرځول ضروري دي او که له مخ ګرځولو پرته هم دا سنت ادا کيږي؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د کوم نوي پيدا شوي بچي په ښي غوږ کښې آذان او په کيڼ غوږ کښې اقامت ويل سنت دي۔ البته په حی علی الصلٰوه او حی علی الفلاح کښې ښی او کيڼې خواته مخ ګرځول ضروري نه دي پرته له مخ ګرځولو څخه هم دا سنت ادا کيږي۔

قال العلامة ظفر احمد عثمانیؒ: قال جماعة من اصحابنا يستحب ان يؤذن فی اذنه اليمنٰی و يقيم الصلٰوة فی اذنه اليسرٰی و قد روينا فی کتاب ابن السنی عن الحسين بن علی رضی اللّٰه عنهما مرفوعاً من ولد له مولود فاذن فی اذنه اليمنی و اقام فی اذنه اليسری لم تضره ام الصبيان. قال المصنفؒ: تحته و ما ذکره بعض الفقهاء من تحويل الوجه فی هٰذا الآذان



يميناً و شمالاً لم اجد لهٗ اصلاً و لا يصح قياسه علی التحويل فی الآذان للصلٰوة لانهٗ للاعلام و لا حاجة الی مثل هٰذا الاعلام هٰهنا. (اعلاء السنن ج۱۷، ص۱۲۳، باب فضيلة ذبح الشاة فی العقيقة)

## ښځې هم بايد د آذان ځواب ورکړي

**سوال:** لکه څرنګه چه سړي د آذان ځواب ورکوي نو آيا د ښځو لپاره هم همدا ډول د آذان ځواب ورکول ضروري دي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د آذان ځواب لکه څرنګه سړي ورکوي همدا رنګه ښځې هم د آذان ځواب ورکولی شي بلکه د دوی هم دا ديني ذمه واري ده چه د آذان ځواب به ورکوي۔

عن ميمونة ان رسول اللّٰهﷺ قام بين صف الرجال و النساء فقال يا معشر النساء اذا سمعتن آذان هٰذا الحبشی و اقامته فقلن کما يقول فان لکن بکل حرف الف الف درجة قال عمرؓ فهٰذا للنساء يا رسول اللّٰه فما للرجال قال ضعفان يا عمرؓ. (الترغيب و الترهيب ج۱، ص۱۱۵، الترغيب فی اجابة المؤذن)

قال العلامة عبد الحی الکهنویؒ: قلتُ يستنبط منه ان الاجابة با للسان واجبة علی النساء الطاهرات ايضاً و هو ظاهر عبارات فقهائنا. (السعاية ج۲، ص۵۱، باب الآذان)

## حائضه ښځه به د آذان ځواب نه ورکوي

**سوال:** آيا ښځې د حيض په حالت کښې د آذان ځواب ورکولی شي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** علماء کرامو ليکلي دي چه ښځو ته د حيض او نفاس په حالت کښې د آذان ځواب ورکول صحيح نه دي۔

لما قال العلامة حسن بن عمار الشرنبلالیؒ: لا يجيب الجنب و لا الحائض لعجزهما عن الاجابة با لفعل. (مراقی الفلاح علی صدر طحطاوی ص۱۶۳، باب الآذان)

قال العلامة عبد الحی الکهنویؒ: لا يجيب الحائض و النفساء بعجزهما عن الاجابة با لفعل فکذا با لقول. (السعاية ج۲، ص۵۱، باب الآذان)

## په قد اقامت الصلٰوة کښې د الصلٰوة تاء په پيښ باندې د لوستلو حکم

**سوال:** د اقامت ويلو په وخت کښې اکثر اقامت ويونکي د قد قامت الصلٰوة د لومړۍ جملې تاء ته پيښ ورکوي او د دوهمې جملې تاء په سکون سره وايي۔ آيا شرعاً د اسې ويل صحيح دي او که څنګه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د اقامت په وخت کښې د دې خبرې خيال بايد وشي چه د هرې کلمې آخري تکی په جزم (سکون) سره وويل شي۔ که هغه د اللّٰه اکبر راء وي او که د قد قامت الصلٰوة تاء وي۔ د دې لپاره د الصلٰوه تا په پيښ باندې ويل صحيح نه دي بلکه په جزم سره بايد وويل شي۔

قال العلامة ابن عابدينؒ: و روی ذٰلك عن النخعی موقوفاً عليه و مرفوعاً الی النبیﷺ قال الآذان جزم و الاقامة جزم و التکبير جزم و فيه: و فی الامدار و يجزم الراء ای يسکنها فی التکبير الخ. (رد المحتار ج۱، ص۳۸۶، باب الآذان)

مطلب فی الکلام علی حدیث الآذان جزم)

قال العلامة ابن نجیمؒ: (تحت قوله یترسل فیه و یحدر فیها) و یسکن کلمات الآذان و الاقامة لکن فی الآذان ینوی الحقیقة و فی الاقامة ینوی الوقف ذکره الشارح و فی المبتغی و التکبیر جزم. (البحر الرائق ج۱، ص۲۵۸، باب الآذان) و مثله فی السعایة ج۲، ص۱۴، باب الآذان)

## له آذان څخه وروسته په دعا کښې د لاس پورته کولو حکم

**سوال:** جناب مفتي صاحب! ځيني خلك ليدل کيږي چه له آذان څخه وروسته په دعا کښې دواړه لاسونه پورته کوي او دعا غواړي۔ آيا شرعاً د اسې کول څنګه دي؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له آذان څخه وروسته د وسيلې دُعا (مسنونې دعا) د کولو په وخت کښې لاسونه مه پورته کوی بلکه پرته له لاس پورته کولو څخه دعا وغواړی۔ البته که چېرته څوك لاسونه پورته کړي او دعا وغواړي نو بيا هم څه پروا نه لري او نه د سنتو په خلاف عمل دی۔

قال الشيخ مولانا محمد اشرف علي التهانويؒ: په ځانګړې توګه د آذان په دعا کښې مې د لاسونو پورته کول نه دي ليدلي ليکن په مطلقې دعا کښې د لاسونو پورته کول له قولي، فعلي، مرفوعي، موقوفي، کثيرو او شهيرو حديثونو څخه ثابت دي۔ پرته له تخصيص څخه بدعاء بدونِ دعاء، پس د آذان په دعا کښې هم د لاسونو پورته کول به سنت وي۔ (امداد الفتاوٰی ج۱، ص۱۰۵، بابَ الآذان)

## آيا حضرت بلالؓ په آذان کښې د شين په ځای سين وايه

**سوال:** جناب مفتي صاحب! له يوه صاحب څخه مې اوريدلي دي چه حضرت بلالؓ د آذان ورکولو په وخت کښې د اشهدُ په ځای اسهدُ يعنې د شين په ځای به ئې سين وايه، دا خبره تر کومه ځايه پورې صحيح ده؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** اګر که دا خبره مشهوره ده چه حضرت بلالؓ په آذان کښې د شين په ځای سين وايه ليکن محققين علماوو ئې ترديد کړی دی او وايي چه حضرت بلالؓ فصيح اللسان او د تيز او ترېو آواز خاوند وو۔ او کومه خبره چه د هغه په باره کښې مشهوره شوې د هغې هيڅ اصل نشته۔

قال العلامة عبد الحی الکهنویؒ: اشتهر علی السنة العوام ان بلالاً کان يبدل الشين المعجمة سيناً مهملة و ليس کذلك قال المزنی علی ما نقله عنه البرهان السفاقسی انهٗ قد اشتهر علی الالسنة و لم نره فی شيءٍ من الکتب. و قال ابن کثير لا اصل لهٗ و لا يصح. (السعاية ج۲، ص۷، باب الآذان)



# باب شروط الصلوه و ارکانها
## (د لمانځه د شرطونو او رکنونو احکام او مسئلې)

## په ژبې سره د نيت کولو حکم

**سوال:** د لمانځه نيت که چېرته يو اځې په ژبې سره وشي نو شرعاً به ئې حکم څه وي؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د لمانځه لپاره نيت کول فرض دي کوم چه د زړه کار دی۔ البته متاخرينو فقهاووؒ په ژبې سره هم نيت کول ښه بللي دي۔ تر څو چه زړه او دماغ دواړه حاضر شي۔ نو که چېرته يو څوك يو اځې په ژبې سره نيت وکړي او په زړه کښې ئې نيت نه وي نو د ژبې نيت ئې هم لغو او بې فائدې دی۔

لما قال العلامة الحصکفیؒ: و التلفظ عند الارادة بها مستحب هو المختار. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۳۰۶، شروط الصلوٰة، بحث النية)

و فی الهندية: و لا عبرة للذکر با للسان فان فعله لتجتمع عزيمة قلبه فهو حسنٌ. (الفتاوی الهندية ج۱، ص۶۵، الفصل الرابع فی النية) و مثله فی السعاية فی حل شرح الوقاية ج۲، ص۹۹، باب شروط الصلوٰة)

## په ژبې سره د نيت په الفاظو کښې د غلطۍ حکم

**سوال:** مونږ د تل لپاره له د اسې واقعې سره مخامخ کيږو چه په ډيره بيړه په کوم لمانځه کښې له امام سره شامليږو او د بيړې له وجهې مو له خولې څخه د کوم بل وخت د لمانځه الفاظ را ووځي۔ شرعاً دې حکم څه دی آيا لمونځ مو کيږي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** نيت د زړه عمل دی، که چېرته مو په زړه کښې د هم هغه وخت د لمانځه اراده وي نو لمونځ مو کيږي اګر که مو له خولې څخه د بل وخت د لمانځه الفاظ را وتلي وي۔ د د اسې غلطۍ هيڅ اعتبار نه وي۔

لما قال العلامة الحصکفیؒ: و الخامس النية با لاجماع و هی الارادة المرجحة..... لا مطلق العلم فی الاصح....... و المعتبر فيها عمل القلب اللازم للارادة. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۳۰۵، باب شروط الصلوة، مطلب بحث النية)

و فی الهندية: النية ارادة الدخول فی الصلوٰة و الشرط ان يعلم بقلبه ای صلوٰة يصلی و ادناها ما لو سئل لامکنه ان يجيب علی البديهة...... و لا عبره للذکر با للسان. (الفتاوی الهندية ج۱، ص۶۵، الفصل الرابع فی النية)

و فيه ايضا عزم علی الظهر و جری علی لسانه العصر يجزيه. (الفتاوی الهندية ج۱، ص۶۶، الفصل الرابع فی النية)

## د امام د اقتداء د نیت مسئله

**سوال:** که چېرته کوم سړی په جمعې سره لمونځ وکړي لیکن د امام د اقتداء نیت ئې پکښې نه وي کړی نو آیا لمونځ ئې کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د امام د اقتداء نیت د لمانځه د صحت لپاره شرط نه دی بلکه د ثواب د لاس ته راوړو لپاره شرط دی۔ که چېرته چا د امام د اقتداء نیت و نه کړ او یواځې ئې د لمانځه په نیت سره په امام پسې لمونځ اداکړ نو لمونځ ئې کیږي لیکن له امام سره ئې د لمانځه د ادا کولو ثواب نه وي۔

لما قال العلامة الحصكفیؒ: و لا يشترط لصحة الاقتداء نية امامة المقتدى بل لنيل الثواب عند اقتداء احد به قبله. قال ابن عابدينؒ: (تحت قوله لنيل الثواب) معطوف على قوله لصحة الاقتداء اى بل يشترط نية امامة المقتدى لنيل الامام ثواب الجماعة. (رد المحتار ج۱، ص۴۲۴، شروط الصلوٰة، مطلب بحث النية)

قال العلامة الشيخ اشرف على التهانویؒ: که چېرته د امامت نیت و نه کړي نو د امامت ثواب نه ورکول کیږي۔ نو د امامت د ثواب د لاس ته راوړو لپاره د امامت نیت ضروري دی۔ (امداد الفتاویٰ ج۱، ص۱۳۳، باب شروط الصلوٰه)

## د رکعتونو د شمیر نیت ضروري نه دی

**سوال:** آیا په لمانځه کښې د رکعتونو د تعداد په معلومولو سره نیت کول ضروري دي او که بغیر د تعداد له معلومولو څخه هم لمونځ کیږي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د فرض لمونځونو د اداکولو لپاره د وخت ټاکنه ضروري ده۔ له دې پرته د رکعتونو شمیر ضروري نه دی۔ بغیر د رکعتونو د شمیر له نیت څخه هم لمونځ کیږي۔

لما قال العلامة الحصكفیؒ: و لا بد من التعيين عند النية ....... لفرض...... و لو قضاء لكنه يعين ظهر يوم كذا على المعتمد...... و واجب انه وتر او نذر او سجود تلاوة و كذا شكر بخلاف سهو دون تعيين عدد ركعاته لحصولها ضمناً فلا يضر الخطأ فى عددها. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۱، ص۴۱۸، باب شروط الصلوٰة)

قال العلامة ابن نجيمؒ: لان نية عدد الركعات ليست بشرط فى الفرض و الواجب لان قصد التعيين مغن عنه و لو نوى الظهر ثلاثاً و الفجر اربعاً جاز. (البحر الرائق ج۱، ص۲۸۲)

## په رکوع او سجدې کښې د ترتیب وجوب

**سوال:** که چېرته یو څوک د رکوع له کولو څخه پرته سجدې ته لاړ شي نو د رکوع د دوباره ادا کولو په صورت کښې د سجدې راګرځول ضروري دي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په رکوع او سجدې کښې ترتیب واجب دی نو ځکه که چېرته یو څوک له رکوع څخه مخکښې سجده وکړي نو سجده ئې نه کیږي بلکه بیرته به رکوع ته راګرځي او د رکوع له اداکولو څخه وروسته به بیا سجده کوي۔



قال ابن عابدينؒ: الترتيب بين الركوع و السجود مثلاً فانه فرض حتى لو سجد قبل الركوع لم يصح سجود هذه الركعة لان اصل السجود يشترط ترتبه على الركوع فى كل ركعة كترتب الركوع على القيام. (رد المحتار ج۱، ص۳۴۰، واجبات الصلوٰة)

فالترتيب فيها فرض حتى لو ركع قبل القيام او سجد قبل الركوع لا يجوز. (الهندية ج۱، ص۷۱، واجبات الصلوٰة) و مثله فى البحر الرائق ج۱، ص۲۹۶، واجبات الصلوٰة)

## په جیب کښې له نسوارو سره د لمانځه د ادا کولو حکم

**سوال:** که چېرته د چا په جیب کښې نسوار یا سګریټ وي نو لمونځ ئې ورسره کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د لمانځه لپاره د ځای، بدن او جامو پاکوالی شرط دی۔ نسوار پخپل ذات کښې یو پاک شی دی او د نجاست هیڅ اړخ پکښې نه پیدا کیږي۔ لهذا که چېرته د چا په جیب کښې نسوار یا سګریټ وي نو په لمانځه کښې ئې کوم فساد نه راځي۔

تطهير النجاسة من بدن المصلى و ثوبه و المكان الذى يصلى عليه واجب هكذا فى الزاهدى فى باب الانجاس. (الهندية ج۱، ص۵۸، الفصل الاول فى الطهارة)

قال العلامة الحصكفیؒ: (طهارة بدنه) اى جسدهٗ لدخول الاطراف فى الجسد دون البدن فليحفظ (من حدث) بنوعيه و قدّمه لانه اغلظ و خبث مانع كذٰلك و ثوبه. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۱، ص۴۰۲، باب شروط الصلوٰة) و مثله فى الاختيار ج۱، ص۴۵، باب ما يفعل قبل الصلوٰة)

## د تکبیر تحریمه فرضیت

**سوال:** د لمانځه لپاره تکبیر تحریمه شرط دی او که سُنت یا مستحب، که چېرته څوک تکبیر تحریمه و نه وایي نو د هغه د لمانځه حکم څه دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** تکبیر تحریمه د لمانځه له فرضونو څخه دی۔ بغیر له تکبیر تحریمه څخه لمونځ نه کیږي۔

قال العلامة الحصكفیؒ: من فرائضها التى لا تصح بدونها التحريمة قائماً و هى شرط فى غير جنازة على القادر به يفتى. قال ابن عابدينؒ: (تحت قوله على القادر) متعلق بشرط لتضمنه معنى الفرض اى و هى شرط مفترضٌ عليه. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۱، ص۴۴۲، باب صفة الصلوٰة)

منها التحريمة........ و هى شرط عندنا حتى ان من يحرم للفرائض كان له ان يؤدى بها التطوع هكذا فى الهداية. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۶۸، باب صفة الصلوٰة، الفصل الاول) و مثله فى البحر الرائق ج۱، ص۲۹۰، باب صفة الصلوٰة)

## د لمانځه د نیت حکم

**سوال:** زمونږ د علاقې خلک پښتو ژبه وايي او اکثره لمونځ کوونکي د نيت الفاظ په پښتو ژبې سره وايي۔ او همد ارنګه ځينې خلک په زړه کښې نيت ترې۔ آيا شرعا په زړه کښې نيت کول کافي دي او که په ژبې سره هم نيت ضروري دي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** نيت د لمانځه له فرائضو څخه دی۔ ليکن د نيت د ائره په بنيادي توګه تر زړه پورې محدوده ده۔ او عوام خلک له دې څخه غافل دي۔ له دې وجهې د هغو لپاره د زړه له نيت سره په ژبې باندې هم د نيت الفاظ بهتر دي تر څو چه په ژبې باندې له ويلو څخه ئې د زړه ارادې اظهار وشي۔

و لا عبرة للذكر با للسان فان فعله لتجتمع عزيمة قلبه فهو حسن كذا فى الكافى و من عجز عن احضار القلب يكفيه اللسان كذا فى الزاهدى. (الفتاوى الهندية ج١، ص٦٥، باب شروط الصلوٰة)

قال العلامة الحصكفىؒ: و المعتبر فيها عمل القلب اللازم للارادة فلا عبرة للذكر با للسان ان خالف القلب لانه كلام لا نية الا اذا عجز عن احضاره لهموم اصابته فيكفيه اللسان. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج١، ص٤١٥، شروط الصلوٰة) و مثله فى البحر الرائق ج١، ص٢٧٧، باب شروط الصلوٰة

## د شفاخانې په يونيفارم (جامو) کښې د لمانځه د ادا کولو حکم

**سوال:** يو سړی په شفاخانې کښې نوکر دی هر وخت زخميان پورته کوي، دوايي او د اسې نور شيان ورکوي کوم چه د زخميانو د خدمت له وجهې ئې کالي مرد اربږي۔ آيا د نوموړي لپاره په همد غو جامو کښې لمونځ جائز دی او که به لمانځه ته نورې جامې اغوندي؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د لمانځه د ادا کولو لپاره څو شرطونه دي چه له هغو څخه يو د جامو پاکوالی دی۔ د دې لپاره که چېرته د شفاخانې د نوکرۍ جامې د زخميانو په وينو يا زوو باندې ککړې شوې وي نو د ا جامې به بدلوي او په نورو جامو کښې به لمونځ کوي۔ ليکن که چېرته نورې پاکې جامې نه وې نو د مجبورۍ له وجهې په همد غو جامو کښې هم لمونځ ورته جائز دی۔

لما قال العلامة الحصكفىؒ: الشرط شرعاً ما يتوقف عليه الشىء و لا يدخل فيه هى ستة طهارة بدنه......... و كذا ما يتحرك بحركته او يعد حاملاً له كصبى عليه نجس..... الخ (الدر المختار على صدر رد المحتار ج١، ص٤٠٢، باب شروط الصلوٰة)

و فى الهندية: تطهير النجاسة من بدن المصلى و ثوبه و المكان الذى يُصلّى عليه واجب. (الفتاوى الهندية ج١، ص٥٨، الباب الثالث فى شروط الصلوٰة، الفصل الاول فى الطهارة)

## په دوکان کښې لمونځ کول جائز دي

**سوال:** زما د دوکان برسيره په دوهم چت باندې يو ميوزك سنتر (د سازونو او سروزونو دوکان) دی آيا زه پخپل دوکان کښې لمونځ کولی شم؟ په د اسې حال کښې چه ځينې خلک را ته وايي چه



ستا لمونځ نه کيږي ځکه چه په دوکان کښې لمونځ کول جائز نه دي۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د لمانځه لپاره د ځای پاکوالی ضروري دی که هغه هر ځای وي يعني که دوکان وي يا کور، جومات وي يا حُجره په دې شرط چه پاک وي۔ د دې لپاره په دوکان کښې لمونځ کول صحيح دي۔ البته بهتره د اده چه لمونځ په جومات کښې وشي۔

لما قال العلامة الحصكفىؒ: الشرط ........ شرعا ما يتوقف عليه الشىء و لا يدخل فيه هى ستة طهارة بدنه اى جسده لدخول الاطراف فى الجسد دون البدن من حدث بنوعيه و قدمه لانه اغلظ و خبث مانع كذلك ثوبه......... مكانه اى موضع قدميه او احداهما ان رفع الاخرى و موضع سجوده اتفاقاً فى الاصح. الخ. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج١، ص٤٠٢، باب شروط الصلوٰة)

و فى الهندية: تطهير النجاسة من بدن المصلى و ثوبه و المكان الذى يُصلّى عليه واجب. (الفتاوى الهندية ج١، ص٥٨، الباب الثالث فى شروط الصلوٰة، الفصل الاول فى الطهارة)

## د بندي خانې په مصلّی (جا نماز) باندې د لمانځه د ادا کولو حکم

**سوال:** ما ته يوه ملګري د پيښبور له سنټرل جيل څخه يوه مصلّی را ليږلې ده آيا زه په هغې باندې لمونځ ادا کولی شم په د اسې حال کښې چه هلته هر ډول خلک اوسيږي؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د لمانځه د ادا کولو لپاره د مصلّی پاکوالی ضروري دی۔ چونکه د ا پاکي يقيني وي او په شك سره له منځه نه ځي۔ د دې لپاره له بندي خانې څخه راغلی جانماز پاك او لمونځ پرې صحيح دی۔

لما قال العلامة الحصكفىؒ: لو شك فى نجاسة ماء او ثوب او طلاق او عتق لم يعتبر. قال ابن عابدينؒ: (تحت قوله و لو شك) فى التاتارخانية من شك فى انائه او ثوبه او بدنه اصابته نجاسة اولا فهو طاهر ما لم يستيقن. الخ. (رد المحتار ج١، ص١٥١، قبيل از مطلب فى ابحاث الغسل)

قال العلامة عالم بن علاء الانصارىؒ: من شك فى انائه او ثوبه او بدنه اصابته نجاسة ام لا فهو طاهر ما لم يستيقن. (الفتاوى التاتارخانية ج١، ص١٤٦، كتاب الطهارة الوضوء ما نوع مسائل الشك)

## د جومات په خولۍ باندې د لمانځه د ادا کولو حکم

**سوال:** نن صبا د خلکو يو رواج جوړ شوی دی چه د لمانځه د ادا کولو لپاره خپلې خولۍ يا رومال او د اسې نور له ځان سره جومات ته نه راوړي بلکه د جومات خولۍ په سروي او لمونځ ورسره کوي، په د اسې حال کښې چه بازار يا نورو ځايونو ته له دغو خوليو سره ورتګ عار او شرم ګڼي۔ نو آيا په جومات کښې له پرتو خوليو سره لمونځ کول صحيح دي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** لمونځ يو د اسې اهم عبادت دی چه په هغه کښې د الله تعالی دربار ته حاضري وي۔ د دې لپاره د لمانځه د ادا کولو لپاره ښه او بهترين لباس اغوستل افضل دي او که نه نو کم تر کمه د اسې لباس بايد و اغوستل شي چه له هغه سره نورو ځايونو ته تګ عار نه

ګنل کیږي۔ له دې وجهې فقهاء کرامو په ثیاب بذله (په خیرنو او د کار په جامو) کښې لمونځ مکروه بللی دی۔ لهذا بهتره دا ده چه هر لمونځ کوونکی له ځان سره خولۍ راوړي او که نه نو د جومات د خولیو استعمالول له کراهیت څخه خالي نه دي۔ لیکن لمونځ ئې ورسره کیږي۔

## په تکبیر تحریمه کښې لاسونه تر کومو ځایو پورې پورته کیږي

**سوال:** په تکبیر تحریمه کښې به سړی لاسونه تر کومو ځایونو پورې پورته کوي۔ په تفصیل سره ئې بیان کړئ؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له نبي کریم ﷺ څخه په دې باره کښې مختلف روایتونه راغلي دي۔ د حنفي فقهې د تحقیق مطابق تر غوږونو پورې د لاسونو پورته کول سنت دي۔

ځینو علماء کرامو ویلي دي چه د ګوتو سرونه دې د غوږونو له سرونو سره برابر کړي په داسې حال کښې چه ورغوي دې د اوږو سره برابر کړي نو بیا به په دواړو روایتونو عمل وشي۔

رواه ابو داؤد السجستانیؒ: عن وائل بن حجر قال رأیت رسول الله ﷺ یرفع ابهامیه فی الصلوٰة الی شحمة اذنیه (بذل المجهود شرح ابی داؤد ج۲، ص۱۸، باب افتتاح الصلوٰة)

عن مالك بن الحویرث رضی الله عنه ان رسول الله ﷺ کان اذا کبر رفع یدیه حتی یحاذی بهما اُذنیه و فی روایة حتی یحاذی بهما فرو اُذنیه. (اعلاء السنن ج۱، ص۱۰۸، باب افتراض التحریمة و سننها) و مثله فی صحیح مسلم ج۱، ص۱۶۸، باب استحباب رفع الیدین حذو المنکبین)

## له تکبیر تحریمه څخه وروسته د لاسونو زوړندول او که مخامخ تر نامه لاندې تړل

**سوال:** ځینې خلك مو لیدلي دي چه د تکبیر تحریمه له ویلو وروسته لاسونه زوړندوي او بیائې په نامه پورې تړي۔ آیا داسې کول صحیح دي او که څنګه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د تکبیر تحریمه له ویلو وروسته که لاسونه وزړوي بیائې په نامه پورې وتړي او که ئې مخامخ په نامه پورې وتړي دواړه صحیح دي۔ البته د امام ابو حنیفةؒ په نزد له تکبیر تحریمه څخه دې فوراً وروسته باید لاسونه تر نامه لاندې ځای پورې وتړي او وئې نه زړوي۔ همدا بهتر هم دی۔

لما قال العلامة الحصکفیؒ: و وضع الرجل یمینه علی یساره تحت سرته اخذاً رسغها بخنصره و ابهامه هو المختار تضع المرأة و الخنثیٰ الکف علی الکف تحت ثدیها (کما فرغ من التکبیر) بلا ارسال فی الاصح. قال ابن عابدینؒ: (تحت قوله بلا ارسال) هو ظاهر الروایة. (رد المحتار ج۱، ص۴۸۶، ارکان الصلوٰة، مطلب فی بیان المتواتر و الشاذ)

قال الشیخ عبد الحی الکهنویؒ: (تحت قوله تحت سرته) و عند ابی حنیفةؒ و ابی یوسفؒ یضع کما فرغ من التکبیر و لا یرسل و به جزم قاضیخان فی فتاواه و لم یذکر خلافاً الخ. (السعایة ج۲، ص۱۵۶، باب صفة الصلوٰة) و مثله فی امداد الاحکام ج۱، ص۴۷۶، باب صفة الصلوٰة)



## د مکې سړي لپاره د لمانځه په وخت کښې پخپله کعبې یا د کعبې خوا ته د مخ ګرځولو حکم

**سوال:** د حنفي فقهې په کتابونو کښې لیکلي دي چه د مکې لپاره پخپله کعبې او د شاو خوا خلکو لپاره د کعبې خوا ته مخ ګرځول ضروري دي لیکن نن صبا په مکې کښې لوی لوی عمارتونه د مسجد حرام او لمونځ کوونکي په منځ کښې حائل جوړ شوي دي۔ نو په دې صورت کښې به مکي د قبلې تعین څنګه کوي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** دا حکم د هغه مکي لپاره دی چه کعبه شریفه وینې نو په هغه باندې لازمه ده چه عین کعبې ته مخ وګرځوي او لمونځ ادا کړي او چاته چه کعبه نه معلومیږي د هغه لپاره د آفاقي غوندې د کعبې طرف کافي دی اګر که هغه په مکه مکرمه کښې اوسیږي هم۔

قال العلامة الحصکفیؒ: فللمکی اصابة عینها لیعم المعاین و غیره لکن فی البحر انه ضعیف و الاصح ان ما بینه و بینها حائل کا لغائب. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۴۲۷/۴۲۸، باب شروط الصلوٰة)

قال العلامة ابراهیم الحلبیؒ: و فی الدرایة من کان بینه و بین الکعبة حائل الاصح انهٗ کا لغائب. (کبیری ص۲۱۷، الشرط الرابع)

## د حطیم خوا ته د مخ په ګرځولو سره د لمانځه د ادا کولو مسئله

**سوال:** مونږ په کتابونو کښې لیدلي دي چه حطیم د بیت الله شریف برخه ده لهذا که چېرته کوم سړی د حطیم خوا ته مخ وګرځوي او لمونځ وکړي نو لمونځ ئې کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** اګر که له خبرِ احاد څخه ثرګندیږي چه حطیم د بیت الله شریف برخه ده لیکن دا یو ظني امر دی او قبلې ته مخامخ والی له قطعي الثبوت دلیل څخه ثابت دی۔ لکه څرنګه چه فقهاء کرامو لیکلي دي چه که چېرته کوم سړی حطیم ته مخامخ ودریږي او لمونځ وکړي نو لمونځ ئې نه کیږي۔

قال العلامة ابن عابدینؒ: (تحت قوله کاستقباله احتیاطاً) فانه اذا استقبله المصلّی لم تصح صلوٰته لان فرضیة استقبال القبلة ثبتت با لنص القطعی و کون الحطیم من الکعبة ثبتت با لآحاد فصار کانه من الکعبة من وجه دون وجه. (رد المحتار ج۱، ص۴۹۶، مبحث الطواف)

قال العلامة ابراهیم الحلبیؒ: الکعبة اسم العرصة...... و لو صلی الی الحطیم وحده لا یجوز. (کبیری ص۲۲۵، الشرط الرابع فروع فی شرح الطحاوی)

## د قبلې د سمت د ټاکلو لپاره د قبله نُما د استعمالولو حکم

**سوال:** په نن دور کښې خلك د قبلې د تعیین لپاره قبله نما استعمالوي۔ د دې شرعي حیثیت څه شی دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د لمانځه د ادا کولو لپاره یو اهم رُکن په ښارونو او کلیو کښې قبلې ته

مخ ګرځول او یا د قبلې طرف دی- فقهاء کرامو د دې د پیژندلو لپاره د پخوا زمانې جوماتونه او د هغو محرابونه دلیل نیولی دی- او په صحراوو کښې ئې ستورې د دلیل په توګه نیولي دي چه له هغو څخه غالب ګمان کیږي چه قبلې په دې خوا ده- چونکه د موجوده زمانې دا آله (قبله نما) د ظن غالب د حاصلولو لپاره ډیر د کار شی دی- د دې لپاره د قبلې په تعین کښې د دې آلې استعمالول شرعاً صحیح دی او د قبلې صحیح طرف پرې ټاکل کیږي-

لما قال فی الهندیة: وجهة الکعبة تعرف با لدلیل فی الامصار و القرٰی المحاریب التی نصبها الصحابة والتابعون فعلینا اتباعهم فان لم تکن فا لسؤال من اهل ذٰلک الموضع و اما فی البحار و المفاوز فدلیل القبلة النجوم. (الفتاوٰی الهندیة ج۱، ص۶۳، الفصل الثالث فی استقبال القبلة)

و تعرف با لدلیل و هو فی القرٰی و الامصار محاریب الصحابة و التابعین و فی المفاوز و البحار النجوم کا لقطب. قال ابن عابدینؒ: (تحت قوله کا لقطب)....... و علی ما وضعوه لها من الآلات کا لربع و الاصطرلاب فانها لم تفد الیقین تف غلبة الظن للعالم بها و غلبة الظن کافیة فی ذٰلک. (الدر المختار علٰی صدر رد المحتار ج۱، ص۴۳۰، کتاب الصلوٰة، ارکان الفرائض)

## په ریل ګاډي کښې د لمانځه په وخت استقبالِ قبله ضروري ده

**سوال:** په ریل ګاډي کښې د سفر په دوران کښې د لمانځه وخت هم راځي لیکن په هغه کښې د قبلې ډیره لویه مسئله وي ځکه چه د قبلې صحیح انداز نه لګیږي او که چېرته هم لګیږي نو ریل ګاډی کله کله د لمانځه په عین دوران کښې د قبلې له خوا څخه ګرځي نو په دې حالت کښې به د لمانځه حکم څه وي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** ځینې ریل ګاډي داسې جوړ شوي دي چه د مسلمان لپاره په لمانځه کښې قبلې ته مخامخ دریدل ممکن وي- لهذا د لمانځه له پیل څخه تر آخره پورې مخامخ قبلې ته باید لمونځ وکړي- که چېرته په ابتداء کښې قبلې ته مخامخ شي او لمونځ شروع کړي او په منځ کښې د ریل ګاډي مخ له قبلې څخه واوړي نو لمونځ کوونکی دې په لمانځه کښې خپل مخ قبلې ته واړوي- البته که چېرته په ریل ګاډي کښې دومره زیات هجوم وي چه مخ ګرځول ممکن نه وي نو د مجبوری له مخې ئې لمونځ کیږي- په فقهي ذخیرو کښې د دې مثال د لنګر اچوونکي بیړۍ غوندې دی-

قال العلامة الحصکفیؒ:......... و المربوطة بلجة البحر ان کان الریح یحرکها شدیداً فکا لسائرة و الا فکا لواقفة و یلزم استقبال القبلة عند الافتتاح و کلما دارت. (الدر المختار علٰی صدر رد المحتار ج۲، ص۱۰۱، باب صلوٰة المریض)

و قال الشیخ المفتی عزیز الرحمٰنؒ: اگر کسی در ریل نماز فرض خواند پس استقبال قبله و قیام و رکوع و سجود وغیره جمله ارکان صلوٰة ادا کردن ضروری است و محض از سواری ریل استقبال ساقط نمی شود چرا که باوجود تحویل الواح به قدری دقت و تکلف استقبال ممکن است، اگر بلا مجبوری ترِ استقبال کرد نماز جائز ادا نمی



شود و اگر مستقبل قبله بوده نماز شروع کرد و در حالتِ صلوٰة سمتِ قبله مبدل گردید پس مصلی را ضروری است که او هم متوجه قبله بوده نماز تمام کند که جمله ارکان صلوٰة ادا شوند و مصلی ریل را در نماز فرض قعود قطعاً جائز نیست و در صلوٰة نفل جائز است. البته اگر فی الحقیقت هجوم این قدر باشد که حرکت رکوع و سجود ممکن نیست و نیز بر صلوٰة از خارج ریل قادر نیست بلا استقبال و بلا قیام ادا کند و این صورت نادر است. (فتاوی دار العلوم دیوبند ج۲، ص۱۴۶، ارکان الصلوٰة، فصل ثالث، استقبال قبله)

## په ریل ګاډي کښې هم د لمانځه لپاره قیام فرض دی

**سوال:** مونږ له پیښور څخه کراچۍ ته سفر په ریل ګاډي کښې کوو- په ریل ګاډي کښې د ډیر هجوم له وجهې په ولاړې لمونځ کول مشکل وي- په داسې صورت کښې مونږ په ناستو سره لمونځ کولی شو او که نه؟ بینوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په لمانځه کښې قیام (دریدل) فرض دی بغیر له شرعي عذر څخه ئې پریښودل صحیح نه دي- د دې لپاره لومړی خپلو هم سفرو ملګرو ته عرض وکړی او د لمانځه لپاره ځای ترې وغواړی- که چېرته ځای درنه کړي نو بیا په ناستې سره لمونځ وکړی لیکن د دې لمانځه بیرته راګرځول ضروري دي- البته که چېرته د سر د ګرځیدو او یا د لویدو خطر وي نو پرته له راګرځولو څخه مو هم لمونځ جائز دی-

قال العلامة ابن نجیمؒ: الاسیر فی ید العدو اذا منعه الکافر عن الوضوء و الصلوٰة یتیمّم و یصلی با لایماء ثم یعید اذا خرج...... کا لمحبوس لان الطهارة التیمم تظهر فی منع وجوب الاعادة ثم قال فعلم منه ان العذر ان کان من قبل الله تعالٰی لا تجب الاعادة و ان کان من قبل العبد وجب الاعادة. (البحر الرائق ج۱، ص۱۴۹، باب التیمم)

## د لمانځه په دوران کښې د داړو پښو تر منځ د فاصلې حکم

**سوال:** د دریدو په حالت کښې به لمونځ کوونکی د داړو پښو تر منځ څومره فاصله پریږدي؟ ځینې خلک د داړو پښو تر منځ یوه لویشت پورې فاصله پریږدي، آیا شرعاً دا فاصله صحیح ده او که نه؟ بینوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** دا د لمانځه له آدابو څخه ده چه لمونځ کوونکی به د داړو پښو تر منځ د څلورو ګوتو په برابر فاصله پریږدي- دومره فاصله به نه پریږدي چه توازن ئې پرې خراب شي-

لما قال العلامة ابن عابدینؒ: (تحت قوله منها القیام) و ینبغی ان یکون بینهما مقدار اربع اصابع الید لانه اقرب الی الخشوع. (رد المحتار ج۱، ص۴۴۴، فرائض الصلوٰة)

قال العلامة عبد الحی الکهنویؒ: و یستحب ان یکون بین الرِّجلین عند القیام مقدار اربعة اصابع کما فی البزازیة و غیرها لکونه اقرب الی الخشوع. (السعایة ج۲، ص۱۱۱، باب صفة الصلوٰة) و مثله فی فتاوی دار العلوم دیوبند ج۲، ص۱۵۳، فصل اول، باب صفة الصلوٰة)

## له عذر څخه پرته په یوې پښې باندې دریدل او لمونځ کول

**سوال:** جناب مفتي صاحب! په لمانځه کښې پرته (بغیر) له کوم عذر څخه په یوې پښې باندې دریدل جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په لمانځه کښې باید په دواړو پښو باندې ودریږي۔ فقهاء کرامو په یوې پښې باندې دریدل مکروه بللي دي۔ د دې لپاره په داسې صورت کښې سُستي او کاهلي ظاهریږي۔

لما قال العلامة ابن عابدينؒ: (تحت قوله و منها القيام) و يكره القيام على احد القدمين فى الصلٰوة بلا عذر. (رد المحتار ج۱، ص۴۴۴، فرائض الصلٰوة)

و فى الهندية: و يكره القيام على احد القدمين من غير عذرٍ و تجوز الصلٰوة و للعذر لا يكره. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۶۹، الباب الرابع فى صفة الصلٰوة، الفصل الاول) و مثله فى الجوهرة النيرة ج۱، ص۵۸، باب صفة الصلٰوة)

## په لمانځه کښې د قرائت حکم

**سوال:** په لمانځه کښې د قرآنکریم د قرائت حکم څه دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په لمانځه کښې د قرآنکریم قرائت لا علیٰ تعیین فرض دی چه اندازه ئې یو آیت دی۔ همدومره قرائت په نفلو، وتر او د سنتو په ټولو رکعتونو کښې او د فرضو په دوو رکعتونو کښې فرض دی۔ البته درې آیتونه او سورت فاتحه لوستل فرض نه بلکه واجب دي۔

لما قال العلامة ابن عابدينؒ: (تحت قوله منها القراءة) اى قراءة آية من القرآن و هى فرض عملى فى جميع ركعات النفل و الوتر و فى ركعتين من الفرض كما سيأتى متناً فى باب الوتر و النوافل و اما تعيين القراءة فى الاوليين من الفرض فهو واجب و قيل سنة لا فرض كما سنحققه فى الواجبات و اما قراءة الفاتحة و السورة او ثلاث آيات فهى واجبة ايضاً. (رد المحتار ج۱، ص۴۴۶، فرائض الصلٰوة)

قال العلامة ابو البركات النسفيؒ: و فرض القراءة آية. (كنز الدقائق على هامش البحر الرائق ج۱، ص۳۳۸، باب صفة الصلٰوة)

## سجدې ته د تللو په وخت کښې په زمکې باندې لومړی د لاسونو د کیښودلو حکم

**سوال:** ځیني خلك سجدې د تګ په وخت کښې لومړی لاس په زمکه ږدي او بیا زنګنونه۔ په داسې حال کښې چه له علماء کرامو څخه مو اوریدلي دي چه سجدې ته د تللو په وخت کښې باید لومړی زنګنونه کیښودل شي او بیا لاسونه۔ که چېرته څوك په نومړي صورت سجدې ته لاړ شي نو لمونځ ئې کیږي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په مبارکو احادیثو کښې دواړه صورتونه راغلي دي۔ د حضرت وائل بن حجرؓ په روایت کښې وضع الرکبتین قبل الیدین (د زنګنونو له لاسونو څخه مخکښې د کیښودلو)



الفاظ راغلي دي او د حضرت ابو هريرةؓ په یوه روایت کښې وضع الیدین قبل الرکبتین ذکر راغلی دی۔ لیکن احنافو علماوو د حضرت وائل بن حجرؓ روایت لره د نورو مؤیداتو له وجهې راجح بللی دی۔ د دې لپاره سنت دا دی چه لومړی په زمکې باندې زنګنونه کیښودل شي او بیا لاسونه۔ البته که چېرته کوم عذر وي او بیا دې لومړی لاسونه کیښودل شي۔

قال العلامة الحصكفيؒ: و يسجد واضعا ركبتيه اولاً لقربهما من الارض ثم يديه الا لعذر. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۱، ص۴۹۷، فصل اذا اراد الشروع)

قال العلامة ابوا البركات النسفيؒ: ثم كبر و وضع ركبتيه ثم يديه ثم وجهه بين كفيه. قال ابن نجيم المصريؒ: (تحت قوله ثم كبر و وضع الخ) كما كان يفعله عليه السلام..... انهٗ اذا اراد السجود يضع اولاً ما كان اقرب الى الارض فيضع ركبتيه اولاً ثم يديه....... الخ. (البحر الرائق ج۱، ص۳۱۷، باب صفة الصلٰوة)

## د سجدې په حالت کښې د پښو د پورته کولو حکم

**سوال:** په لمانځه کښې د سجدې په دوران کښې ځیني خلك دواړه پښې له زمکې څخه پورته کوي۔ آیا په دې سره په لمانځه باندې کوم اثر لویږي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په سجدې کښې د پښو یوه برخه په زمکې باندې کیښودل ضروري دي اګر که یوه ګوته هم وي۔ که چېرته د پښو یوه برخه هم په زمکې باندې نه وي لګیدلې نو سجده ئې نه صحیح کیږي چه له وجهې ئې لمونځ فاسدیږي۔

قال الحصكفيؒ: و منها السجود بجبهته و قدميه و وضع اصبع واحدة منهما شرط. قال ابن عابدينؒ: (تحت قوله و قدميه) يجب اسقاطه لان وضع اصبع واحدة منهما يكفى كما ذكره بعد و افاد انه لو لم يضع شيئاً من القدمين لم يصح السجود و هو مقتضى ما قدمناه آنفا. (رد المحتار ج۱، ص۴۴۷، بحث الركوع و السجود)

و فى الهندية: و لو سجد و لم يضع قدميه على الارض لا يجوز و لو وضع احداهما دون الاخرى جاز مع الكراهة ان كان بغير عذر. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۷۰، الباب الرابع فى صفة الصلٰوة، الفصل الاول) و مثله فى كبيرى ص۲۸۴، الخامس السجدة.

## د پګړۍ په ول باندې د سجدې حکم

**سوال:** ځیني خلك کوم چه پګړۍ په سروي د پګړۍ په ول باندې سجده کوي چه له وجهې ئې نه پزه په زمکې باندې لګیږي او نه تندی۔ نو آیا په دې ډول سره لمونځ کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته د پګړۍ ول په تندي باندې وي نو په دې حالت کښې د پګړۍ په ول باندې سجده مکروه ده۔ او که چېرته د پګړۍ ول تر تندي پورته وي او سجده د پګړۍ په ول باندې وکړي نو په دې صورت کښې ئې سجده نه ادا کیږي۔ ځکه چه پزه یا تندی په زمکې باندې و نه لګیده۔ له دې وجهې په دې صورت کښې ئې لمونځ نه صحیح کیږي۔

قال العلامة الحصكفیؒ: كما يكره تنزيها بكور عمامة الا بعذر و ان صح عندنا بشرط كونه علی جبهته كلها او بعضها كما مر اما اذ كان الكور علی رأسه فقط و سجد عليه مقتصراً ای و لم تصب الارج جبهته و لا انفه علی القول به لا يصح لعدم السجود علی محله الخ. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص ۵۰۰، فصل اذا اراد الشروع)

قال العلامة ابو البركات النسفیؒ: و كره باحدهما او بكور عمامة آه. قال ابن نجيمؒ: (تحت قوله وكره باحدهما الخ) ان صحة السجود علی الكور اذا كان الكور علی الجبهة او بعضها اما اذا كان علی الرأس فقط و سجد عليه و لم تصب جبهته الارض علی القول بتعيينها و لا انفه علی القول بعدم تعيينها فان الصلوٰة لا تصح لعدم السجود علی محله و كثير من العوام يتساهل فی ذٰلك. (البحر الرائق ج۱، ص۳۱۹، باب صفة الصلوٰة) و مثله فی الطحطاوی حاشية مراقی الفلاح ص ۱۱٤، فصل شروط الصلوٰة و اركانها)

## په تخته پوښ باندې د لمانځه د اداکولو حکم

**سوال:** نن صبا د نجونو مور او پلار د واده په وخت کښې په جهيز کښې يا د هلك خپلوان د لمانځه لپاره يو تخت جوړوي چه په پښتو کښې ورته "تخته پوش" وايي. د شريعت له مخې په تخته پوش باندې لمونځ څنګه دی؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** كه چېرته د اسې تخت له لرګي څخه جوړ شوی وي چه د قيام په حالت يا ركوع او سجدې باندې كوم اثر نه اچوي نو په د اسې تخت باندې لمونځ جائز دی په دې شرط چه په زمكې باندې ايښی وي۔

قال العلامة الحصكفیؒ: لا يصح لعدم السجود علی محله و بشرط طهارة المكان و ان يجد حجم الارض. قال ابن عابدينؒ: (تحت قوله ان يجد حجم الارض) تفسيره ان الساجد لو بالغ لا يتسفل رأسه ابلغ من ذٰلك فصح علی طنسفة و حصير و حنطة و شعير و سرير و عجلة ان كانت علی الارض لا علی ظهر حيوان كبساط مشدود بين اشجار. (رد المحتار ج۱، ص ۵۰۰، فصل اذا اراد الشروع)

قال العلامة ابن نجيم المصریؒ: و الاصل كما انه يجوز السجود علی الارض علی ما هو بمعنی الارض مما تجد جبهته حجمه و تستقر عليه و تفسير وجد ان الحجم ان الساجد لو بالغ لا يسفل رأسه ابلغ من ذٰلك فيصح السجود علی الطنفسة و الحصير و الحنطة و الشعير و السرير و العجلة ان كانت علی الارض لانه يجد حجم الارض. (البحر الرائق ج۱، ص۳۱۹، باب صفة الصلوٰة) و مثله فی فتاوی دار العلوم ديوبند ج۲، ص ۱۵۲، فصل اول صفة الصلوٰة)

## د قالينې او فوم په فرشونو باندې د لمانځه حكم

**سوال:** زمونږ د كلي په جومات كښې يو د خير خاوند د لمونځ كوونكو لپاره قالينه ويره كړې ده چه ډيره نرمه ده۔ آيا په د اسې قالينې باندې لمونځ جائز دی او كه نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په لمانځه كښې په زمكې باندې سجده يعنې د زمكې د كلكوالي احساس ضروري دی۔ لهذا كه چېرته په قالينې باندې د سجدې په دوران كښې د زمكې د كلكوالي احساس كيدای شواې نو لمونځ پرې جائز دی او كه نه نو جائز نه دی۔ لكه څرنګه چه د



نن صبا په قالينونو كښې د زمكې د كلكوالي ادراك كيږي له دې وجهې په قالينې، كارپټ، درې او د اسې نورو باندې لمونځ كول جائز دي۔ البته په پړير او ډير نرم فوم باندې لمونځ جائز نه دی۔

لما قال العلامة الحصكفیؒ: لا يصح لعدم السجود علی محله و بشرط طهارة المكان و ان يجد حجم الارض.

قال ابن عابدينؒ: (تحت قوله ان يجد حجم الارض)...... او حشيش الا ان وجد حجمه و من هنا يعلم الجواز علی الطراحة القطن فان وجد الحجم جاز و الا فلا. (رد المحتار ج۱، ص۵۰۱، فصل اذا اراد الشروع)

قال العلامة ابن نجيمؒ: و الاصل كما انهٗ يجوز السجود علی الارض يجوز علی ما هو بمعنی الارض مما تجد جبهته حجمه و تستقر عليه و تفسير وجد ان الحجم ان الساجد لو بالغ لا يتسفل رأسه ابلغ من ذٰلك. (البحر الرائق ج۱، ص۳۱۹، باب صفة الصلوٰة)

## د آخرې قعدې حكم

**سوال:** په لمانځه كښې د آخرې قعدې حكم څه دی؟ يعنې فرض ده او كه واجبه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د آخرې قعدې په باره كښې مختلف اقوال دي۔ ځينې ئې واجبه بولي او ځينې فرض، ځينې ئې د لمانځه يو ركن بولي په د اسې حال كښې چه ځينې ئې بيا د لمانځه له شرائطو څخه بولي۔ راجحه خبره دا ده چه آخرې قعده فرض او شرط ده۔

قال العلامة الحصكفیؒ: و منها القعود الاخير و الذی يظهر انه شرط لانه شرع للخروج كا لتحريمة للشروع.

قال ابن عابدينؒ: (تحت قوله و الذی يظهر) اختلف فی القعدة الاخيرة قال بعضهم هی ركن اصلی. و فی كشف للبزودی: انها واجبة لا فرض لٰكن الواجب هنا فی قوة الفرض فی العمل كا لوتر وفی خزانة الروايات انها فرض و ليست بركن اصلی بل هی شرط للتحليل و جزم انها فرض فی الفتح و التبيين. (ر د المحتار ج۱، ص٤٤٨، فرائض الصلوٰة، فی بحث القعود الاخير)

قال العلامة بدر الدين العينی: و ذكر فی الايضاح اما القعدة الاخيرة فمن جملة الفروض و ليست من الاركان لان الشیء ما يفسر به ذٰلك الشیء و تفسير الصلوٰة لا يقع با لقعدة و انما يقع با لقيام و القرأة و الركوع و السجود و انما انعدمت الركنية فی القعدة لانها اعتدت لغيرها لا لعينها لان الصلوٰة لتعظيم و هو با لقيام و ذار با لركوع و يتناهی با لسجود و القعدة للخروج. (البناية ج۲، ص۱۶۸، باب صفة الصلوٰة) و مثله فی الطحطاوی حاشيه مراقی الفلاح ص۱۲۸، باب شروط الصلوٰة و اركانها.

## د آخرې قعدې له فرضيت څخه منكر كافر نه دی

**سوال:** زمونږ د كلي په جومات كښې د دوو كسانو تر منځ بحث كيده۔ يو وويل چه كوم سړی په لمانځه كښې له آخرې قعدې څخه منكر وي نو هغه كافر نه دی او بل وويل چه كافر دی۔ اوس پوښتنه دا ده چه په دغو دواړو كښې د كوم يوه خبره صحيح ده؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د آخرې قعدې په باره كښې له فقهاء كرامو څخه مختلف روايتونه راغلي دي۔ په كشف الاسرار للبزودي كښې دي چه آخرې قعده واجبه ده او فرض نه ده ليكن

دا وجوب د فرضيت په حكم كښې دى. او د خزانه الروايات مصنف وايي چه فرض ده. او د دې روايت لره ابن الهمامؒ او فخر الدين الزيلعيؒ راجح بللى دى.

بناء پر دې اختلاف كه څېرته څوك په لمانځه كښې د آخري قعدې له فرضيت څخه منكر وي نو كافر نه دى. البته د روا والي منكر ئې كافر دى. نو ځكه د لومړي سرې خبره صحيح ده.

قال العلامة ابن عابدينؒ: (تحت قوله لا يكفر منكر) الظاهر ان المراد منكر فرضيته لانه قيل بوجوبه كما فى القهستانى و اما منكر اصل مشروعيته فينبغى ان يكفر لثبوته با لاجماع بل معلوم من الدين با لضرورة افاده و يؤيده ما قالوا فى السنن الرواتب من لم يرها حقاً كفر. (رد المحتار ج۱، ص۴۴۸، فرائض الصلوٰة فى بحث القعود الاخير)

قال العلامة حسن بن عمّار الشرنبلالىؒ: و حكم الواجب استحقاق العقاب بتركه عمداً و عدم اكفار جاهده و الثواب بفعله و لزوم سجود السهو لنقص الصلوٰة بتركه سهواً. آه (مراقى الفلاح على صدر الطحطاوى ص۱۹۹/۲۰۰، فصل فى واجبات الصلوٰة) و مثله فى الفقه الاسلامى و ادلتهٗ ج۱، ص۶۲۴، الفصل الخامس اركان الصلوٰة)

## د هوا د خارجيدو په صورت كښې د سجدې د كولو حكم

**سوال:** يو سړى په لمانځه كښې د سجدې په وخت د هوا د خارجيدو بيماري لري ليكن د قيام او ركوع په حالت كښې روغ او جوړ وي نو آيا د دې سړي لپاره په لمانځه كښې سجده ضروري ده او كه به په اشارې سره سجده كوي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** نوموړې مسئله د شرعي عذر كيفيت لري. د دې لپاره دا سړى به په لمانځه كښې له قيام او ركوع څخه وروسته په اشارې سره سجده كوي. كه څېرته په ولاړې اشاره ورته آسانه وه نو په ولاړې دې اشاره كوي او كه نه نو په ناستې باندې په اشارې سره سجده كول ورته بهتر دي.

لما قال العلامة الشرنبلالىؒ: و ان تعذر الركوع و السجود و قدر على القعود و لو مستنداً صلى قاعداً با لايماء للركوع و السجود برأسه و لا يجزيه مضطجعا و جعل ايمائه برأسه للسجود اخفض من ايمائه برأسه للركوع. (مراقى الفلاح على صدر الطحطاوى ص۲۳۵، باب صلوٰة المريض)



# باب واجبات الصلوٰه

## (د لمانځه د واجباتو احكام او مسئلې)

## د جماعت په لمانځه كښې د امام يوازې پاتې كيدل

**سوال:** كه څېرته كله واړې د كوم امام مقتديان د جمعې په لمانځه كښې وتښتي او امام يوازې پريږدي نو امام به تكبيرونه په زوره وايي او كه په پټه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د مقتديانو په تښتيدلو باندې د امام په لمانځه هيڅ اثر نه لويږي، البته په دې صورت كښې به امام د يوازې لمونځ كوونكي غوندې ګرځي. لهذا په سرّي لمونځونو كښې به اخفاء كوي او په جهري لمونځونو كښې جهر هم ورته جائز دى.

و ان كان منفرداً ان كانت صلوٰة يخافت فيها حتما هو الصحيح و ان كانت صلوٰة يجهر فيها فهو با لخيار و الجهر افضل و لكن لا يبالغ مثل الامام لانه لا يسمع غيره كذا فى التبيين و لا يجهر الامام نفسه با لجهر كذا فى البحر الرائق. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۷۲، واجبات الصلوٰة، الفصل الثانى)

قال العلامة ابن عابدينؒ: و الاسرار يجب على الامام و المنفرد فيما يستر فيه و هو فى صلوٰة الظهر و العصر. (رد المحتار ج۱، ص۴۶۹، واجبات الصلوٰة) و مثله فى البحر الرائق ج۱، ص۳۰۲، واجبات الصلوٰة)

## اوله قعده واجبه ده

**سوال:** درې يا څلورو ركعاتو فرض لمانځه كښې خو اوله قعده واجبه ده، آيا په نفلو (صلوٰه التسبيح او د اسې نورو لمونځونو) كښې هم اوله قعده واجبه ده او كه څنګه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** اوله قعده لكه څرنګه چه په دريو يا څلورو ركعتونو فرضو كښې واجبه ده همدا رنګه په نفلو، سنتو او وترو كښې هم واجبه ده.

قال العلامة الحصكفىؒ: و لها واجبات....... و القعود الاول و لو فى نفل فى الاصح. (الدر المختار علىٰ صدر رد المحتار ج۱، ص۴۶۵، باب صفة الصلوٰة، مطلب واجبات الصلوٰة)

قال العلامة ابراهيم الحلبىؒ: و من الواجبات القعدة الاولىٰ لما مر مراراً. (كبيرى ص۲۹۶، واجبات الصلوٰة) و مثله فى البحر الرائق ج۱، ص۳۰۰، واجبات الصلوٰة، باب صفة الصلوٰة)

## د اركانو تعديل واجب دى

**سوال:** ځينې خلك د اسې لمونځ كوي لكه څرنګه چه چرګ دانه ټولوي. د د اسې لمانځه حكم څه دى؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** نوموړې صورت د لمانځه په واجباتو پورې تعلق لري. په لمانځه كښې د لمانځه د اركانو په آرام او اطمينان سره ادا كول واجب دي. كوم لمونځ چه د اركانو له تعديل سره ادا نه شي د هغه لمانځه بيرته راګرځول واجب دي. البته كه څېرته په سهو سره له چا څخه تعديل د اركانو پاتې شي نو په سجده سهو سره ئې لمونځ صحيح كيږي.

قال العلامة الحصكفیؒ: لها واجبات لا تفسد بتركها و تعاد وجوباً فی العمد و السهو ان لم یسجد له و ان لم یعدها یكون فاسقا اثماً...... و هی قرأة فاتحة الكتاب...... و تعدیل الاركان. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۴۵۶و۴۶۴، مطلب واجبات الصلٰوة)

قال العلامة ابراهیم الحلبیؒ: و عندهما تعدیل الاركان من الواجبات لا من الفرائض. (كبیری ص۲۹۴، باب صفة الصلٰوة) و مثله فی البحر الرائق ج۱، ص۲۹۹، باب صفة الصلٰوة)

## په لمانځه کښې د قومې او جلسې حکم

**سوال:** ځینې خلك لیدل كیږي چه په لمانځه کښې له ركوع څخه سیده نه دریږي بلكه له ركوع څخه مخامخ سجدې ته ځي، همدا ډول د دواړو سجدو په منځ کښې هم په پوره ډول نه کښیني بلكه له یوې سجدې څخه ئې لا پوره سر نه وي پورته كړی چه دوهمې سجدې ته لاړ شي، آیا دا ډول لمونځ جائز دی؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** قومه (له ركوع څخه وروسته سیده دریدل) او جلسه (د دوو سجدو په منځ کښې کښیناستل) دواړه واجب دي، كه چېرته په سهو سره پاتې شي نو سجده سهو ورته كافي ده او كه چېرته په قصد سره ئې ځوك پریږدي نو د لمانځه بیرته راګرځول پرې واجب دي۔

قال العلامة الحصكفیؒ: و لها واجبات......... و هی قرأة فاتحة الكتاب..... تعدیل الاركان ای تسكین الجوارح قدر تسبیحة فی الركوع و السجود و كذا فی الرفع منهما علی ما اختاره الكمال. قال ابن عابدینؒ: (تحت قوله و كذا الرفع) ای یجب التعدیل ایضاً فی القومة من الركوع و الجلسة بین السجدتین و تضمن كلامه وجوب نفس القومة و الجلسة ایضاً الخ........ حتی لو تركها او شیئاً منها ساهیاً یلزمه السهو و لو عمداً یكره اشد الكراهة و یلزمه ان یعید الصلٰوة. (رد المحتار ج۱، ص۴۶۴، باب صفة الصلٰوة، مطلب واجبات الصلٰوة)

قال العلامة ابراهیم الحلبیؒ: قال الشیخ كمال الدین بن الهمامؒ و ینبغی ان تكون القومة و الجلسة واجبتین للمواظبة. (كبیری ص۲۹۴، باب الثامن تعدیل اركان) و مثله فی البحر الرائق ج۱، ص۳۰۰، باب صفة الصلٰوة)

## په لمانځه کښې د التحیات د لوستلو حکم

**سوال:** په لمانځه کښې التحیات لوستل ضروري دي او كه نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د لمانځه په دواړو قعدو کښې تشهد لوستل واجب دي، كه چېرته په سهوې سره پاتې شي نو سجدهٔ سهو لازمیږي، او كه چېرته په قصد سره ئې ځوك پریږدي نو د لمانځه بیرته راګرځول پرې ضروري دي۔

قال العلامة ابراهیم الحلبیؒ: و منها قرأة التشهد فانها واجبة فی القعدتین الاولی و الاخیرة......... فاوجب السجود بترك التشهد فی القعدة الاولی كما فی القعدة الاخیرة و هو ظاهر الروایة. (كبیری ص۲۹۶، واجبات الصلٰوة)

قال العلامة ابن عابدینؒ: تحت قوله و لها واجبات..... (و التشهد) ای تشهد القعدة الاولی و تشهد الاخیر. (رد المحتار ج۱، ص۴۶۶، مطلب واجبات الصلٰوة)



## د وترو په لمانځه کښې د دُعاء قنوت حکم

**سوال:** په وترو کښې د دُعاء قنوت حکم څه دی؟ كه چېرته سهواً له چا څخه پاتې شي نو بیا ئې څه حکم دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په وترو کښې د دُعاء قنوت لوستل واجب دي۔ كه چېرته له چا څخه سهواً پاتې شي نو سجدهٔ سهو پرې لازمیږي۔

قال العلامة الحصكفیؒ: و قرأة قنوت الوتر و هو مطلق الدعاء. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۴۶۸، باب صفة الصلٰوة، مطلب واجبات الصلٰوة)

قال العلامة ابراهیم الحلبیؒ: و منها قرأة القنوت فی الوتر. (كبیری ص۲۹۶، واجبات الصلٰوة) و مثله فی البحر الرائق ج۱، ص۳۰۱، واجبات الصلٰوة، باب صفة الصلٰوة)

## د زوائدو تکبیرونو حکم

**سوال:** په اخترونو کښې څو زوائد تکبیرونه دي؟ او دا تکبیرونه سنت دي او كه واجب؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په كوچني او لوی اختر کښې زوائد تکبیرونه شپږ دي او دا تکبیرونه د لمانځه په واجباتو کښې داخل دي۔ كه چېرته په سهوې سره دا تکبیرونه پاتې شي نو سجدهٔ سهو واجبیږي۔

قال العلامة الحصكفیؒ: و تكبیرات العیدین و كذا احدها و تكبیر ركوع ركعة الثانیة كلفظ التكبیر فی افتتاحه لٰكن الاشبه وجوبه فی كل صلٰوة. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۴۶۹، مطلب واجبات الصلٰوة)

قال العلامة ابراهیم الحلبیؒ: و منها تكبیرات العیدین للمواظبة علیها من غیر ترك و المراد التكبیرات الزوائد لا جمیع. (كبیری ص۲۹۶، واجبات الصلٰوة) و مثله فی البحر الرائق ج۱، ص۳۰۱، واجبات الصلٰوة، باب صفة الصلٰوة)

# باب سنن الصلٰوه

## (د لمانځه د سنتونو په بیان کښې)

## په التحیاتو کښې په ګوتې سره اشاره سنت ده

**سوال:** د تشهد په حالت کښې په سبابه (د شهادت) په ګوتې باندې اشاره کول څنګه دي؟ ځینې خلك ئې په حراموالي قائل دي په داسې حال کښې چه روایتونه ئې په ثبوت، استحباب او سنت والي باندې دال دي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په تشهد کښې د اشهدُ ان لآ اله الاّ الله ویلو په وخت کښې د سبابه (د شهادت ګوته) په ګوتې باندې اشاره د احادیثو او فقهي ذخائرو له مخې ثابته ده۔ د دې لپاره په لمانځه کښې د اشهدُ ان لآ اِله الاّ الله ویلو په وخت په ګوتې باندې اشاره سنت ده۔ کوم خلك چه بدعت ورته وایي د هغو دا رأیه د صریحو حدیثو مخالفه ده۔

عن عبد الله بن الزبیر عن ابیه قال کان رسول الله اذا قعد یدعو وضع یده الیمنٰی علی فخذه الیمنٰی و یده الیسرٰی علی فخذه الیسرٰی و اشار باصبعه السبابة و وضع ابهامه علی اصبعه الوسطی و یلقم کفه الیسرٰی رکبته. (الصحیح المسلم ج۱، ص۲۱۶، باب صفة الجلوس فی الصلٰوة)

عن وائل بن حجر قال قلتُ لانظرن الی صلٰوة رسول الله ﷺ....... و حلق بشر الابهام و الوسطٰی و اشار با لسبابة. (سنن ابی داؤد ج۱، ص۱۰۵، باب رفع الیدین) و مثله فی الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۵۰۸، آداب الصلٰوة)

## د رفع الیدین تحقیق

**سوال:** د لمانځه په دوران کښې په رفع الیدین (له تکبیر اولٰی څخه پرته د لمانځه په نورو رکنونو کښې د لاسونو د پورته کولو) او نه رفع الیدین کښې کوم یو له صحیحو روایتونو سره موافق دی؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په احادیثو کښې د رفع الیدین او نه رفع الیدین دواړو روایتونه موجود دي۔ لیکن د احنافو د تحقیق مطابق رفع الیدین نه کول بهتر دي۔

عن براء بن عازب قال ان رسول الله ﷺ کان اذا افتتح الصلٰوة رفع یدیه الٰی قریب من اُذنیه ثمّ لا یعود. (ابی داؤد ج۱، ص۱۰۹)

عن علقمة قال قال لنا ابن مسعود الا اُصلّی بکم صلٰوة رسول الله ﷺ فصلّی و لم یرفع یدیه الا مرّة واحدة مع تکبیر الافتتاح. رواه الترمذی و ابو داؤد و النسائی. (مشکوٰة ج۱، ص۷۷، باب صفة الصلٰو

عن عبد الله بن عمر قال رأیت رسول الله ﷺ اذا افتتح الصلٰوة رفع یدیه حذو منکبیه و اذا اراد ان یرکع و بعد ما یرفع رأسه من الرکوع فلا یرفع و لا بین السجدتین. (مسند حمیدی ج۲، ص۲۷۷، رقم حدیث ٦١٤، احادیث عبد الله بن عمر بن الخطاب) و مثله فی الجامع الترمذی ج۱، ص۵۹، باب رفع الیدین عند الرکوع)



## د تکبیر تحریمه په وخت کښې د لاسونو پورته کول

**سوال:** په تکبیر تحریمه کښې د لاسونو د پورته کولو مسنون وخت کوم دی؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د تکبیر تحریمه په وخت کښې له تکبیر ویلو څخه مخکښې یا وروسته او یا د تکبیر ویلو سره یو ځای د لاسونو په پورته کولو سره د رفع یدین سنت ادا کیږي۔ البته بهتره دا ده چه له تکبیر څخه مخکښې لاسونه پورته شي او بیا تکبیر وویل شي۔

قال الحصکفیؒ: (و رفع یدیه) قبل التکبیر و قیل معه قال ابن عابدینؒ (قوله رفع الیدین) للتحریمة. (رد المحتار ج۱، ص٤٧٤، سنن الصلٰوة)

قال المرغینانیؒ: یرفع یدیه مع التکبیر و هو سنة لان النب علیه السلام واظب علیه و هذا اللفظ یشیر الی اشتراط المقارنة و هو المروی عن ابی یوسفؒ و المحکی عن الطحاوی و الاصح انه یرفع یدیه اولاً ثم یکبر لان فعله نفی الکبریاء عن غیر الله تعالی و النفی مقدم و یرفع یدیه. (الهدایة ج۱، ص۱۰۰، صفة الصلٰوة) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۷۲، الفصل الثالث فی سنن الصلٰوة)

## د قومې او جلسې اندازه

**سوال:** د قومې او جلسې اندازه او په لمانځه کښې ئې حیثیت څه دی؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** قومه او جلسه دواړه د لمانځه له سنتونو څخه دي چه اندازه ئې د یو ځل تسبیح ویلو سره برابره ده۔

قال العلامة الحصکفیؒ: (و) کذا (الرفع منه) بحیث یستوی قائماً..... (و الجلسة) بین السجدتین وضع یدیه فیها علی فخذیه. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص٤٧٦، سنن الصلٰوة)

د سنتو په پرېښودو سره لمونځ نه فاسدیږي البته پرېښودل ئې مناسب نه دي۔

(و سننها) ترك السنة لا یوجب فساداً و لا لهواً بل اساءة لو عامدا غیر مستخف و قالوا الاساءة ادون من الکراهة. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص٤٧٣، سنن الصلٰوة)

(سننها) و القومة و الجلسة کذا فی البحر الرائق و کذا الطمانیة فیها قدر تسبیحة. کذا فی شرح المنیة لابن امیر الحاج. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۷۲، الفصل الثالث فی سنن الصلٰوة) و مثله فی البحر الرائق ج۱، ص۳۲۱، باب صفة الصلٰوة)

## په لمانځه کښې د تسبیح اندازه

**سوال:** زمونږ د کلي امام په رکوع او سجدې کښې پنځه وارې تسبیح وایي۔ په داسې حال کښې چه ځینې مقتدیان ئې په دې اصرار کوي چه درې وارې دې وویل شي او په پنځه وارې ویلو باندې ډېر وخت تیرېږي، آیا د شریعت له مخې په درې وارې ویلو سره لمونځ کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته یو څوك په رکوع او سجدې کښې درې ځله تسبیح ووایي نو سنت ئې ادا کیږي او له دې څخه زیات ویل ئې د استحباب درجه لري۔

تکبیر الرکوع و تسبیحه ثلاثا. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۷۲، سنن الصلٰوة)

البته امام صاحب باید چه د مقتدیانو لحاظ وکړي او په درې ځله تسبیح ویلو باندې اکتفاء وکړي۔

عن ابی هریرة قال قال رسول اللهﷺ اذا صلّی احدکم للناس فلیخفف فان فیهم السقیم و الضعیف و الکبیر و اذا صلّی احدکم لنفسه فلیطول ما شاء. متفقٌ علیه. (مشکٰوة ج۱، ص۱۰۱، باب ما علی الامام)

و فی المسلم: عن ابی هریرة یقول قال رسول اللهﷺ اذا صلّی احدکم للناس فلیخفف فان فی الناس الضعیف و السقیم و ذا الحاجة. (مسلم ج۱، ص۱۸۸)

قال القدوری: یقول فی رکوعه سبحان ربی العظیم ثلٰثا ذٰلك ادناه. (مختصر القدوری ص۳۳، باب صفة الصلٰوة) و مثله فی البخاری ج۱، ص۹۷، باب اذا صلّی لنفسه فلیطول ما شاء. (الجوهرة النیرة ج۱، ص۶۲، باب صفة الصلٰوة)

## د سجدې په حالت کښې د ښځو لپاره مسنون کیفیت

**سوال:** په سجدې کښې ښځې باید کوم کیفیت غوره کړي؟ آیا ښځې به د سړیو غوندې سجده کوي او که د ښځو لپاره کوم ځانګړی کیفیت شته په خاصه توګه د پښو کیفیت به ئې څنګه وي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په سجدې کښې د ښځو کیفیت له سړیو څخه بیل دی۔ بهتره دا ده چه ښځې د سجدې په وخت کښې پښې نه پورته کوي، ګیډه به له ورنونو سره لګوي او سجده به کوي په داسې حال کښې چه څنګلې به له خپل جسم سره د لګولو په صورت کښې په زمکې باندې ږدي، یعني په کوم کیفیت کښې چه د دوی لپاره زیات ستر وي هغه دې غوره کوي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: (و المرأة تنخفض) فلا تبدئ عضدیها (و تلصق بطنها بفخذیها) لانه استر و حررنا فی الخزائن انها تخالف الرجل فی خمسة و عشرین.

ذکر فی البحر: انها لا تنصب اصابع القدمین کما ذکره فی المجتبیٰ. (رد المحتار ج۱، ص۵۰۴، باب صفة الصلٰوة)

و المرأة لا تجافی فی رکوعها و سجودها و تقعد علی رجلیها و فی السجدة تفترش بطنها علٰی فخذیها کذا فی الخلاصة. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۷۵، الفصل الثالث فی سنن الصلٰوة) و مثله فی البحر الرائق ج۱، ص۳۲۱، باب صفة الصلٰوة)

## په لمانځه کښې د قیام په حالت کښې د لاس د تړلو طریقه

**سوال:** په لمانځه کښې د قیام په حالت کښې د لاس د تړلو طریقه څنګه ده؟ کله کله د لاس د تړلو په وخت کښې د کیڼ لاس په بند کښې ګړی تړلې وي په دې سره خو به لمونځ مکروه کیږي نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په لمانځه کښې د لاس تړلو طریقه دا ده چه د ښي لاس ورغوی به د کیڼ لاس په شا باندې ږدي او د ښي لاس په خچې او بټې ګوتې باندې به د کیڼ لاس بند نیسي او د نامه لاندې به ئې تړي۔



البته ګړۍ کوم مقصود بالذات شی نه دی او نه د هغې په لاس کولو سره کوم ډول خنډ را منځ ته کیږي۔ لهٰذا د ګړۍ له وجهې هیڅ ډول کراهیت په لمانځه کښې نه راځي۔

قال الحصکفیؒ: (و وضع) الرجل (یمینه علٰی یساره تحت السرة اخذ رسغها بخنصره و ابهامه) هو المختار. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۴۸۶، صفة الصلٰوة)

ذٰلك بان یضع باطن کفه الیمنٰی علٰی ظاهر کفه الیسرٰی و یاخذ الرسغ با لخنصر و الابهام و یرسل الباقی علی الذراع. (الهندیة ج۱، ص۷۳، سنن الصلٰوة) و مثله فی البحر الرائق ج۱، ص۳۰۸، باب صفة الصلٰوة)

## په لمانځه کښې په جهر سره د آمین ویلو کیفیت

**سوال:** د جمعې په لمانځه کښې د آمین ویلو په وخت کښې به سړی کوم کیفیت اختیاروي؟ د احنافوؒ په جګ آواز سره د آمین په ویلو سره په لمانځه کوم اثر کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د آمین په اړه دوه ډوله روایتونه راغلي دي، د احنافوؒ د تحقیق مطابق په آمین کښې اخفاء سنت ده، البته که چېرته کوم حنفي سړی آمین په زوره ووایي نو بیا هم جائز دی او لمونځ ئې پرې نه فاسدیږي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: (و امّن الامام سراً کماموم و منفرد) و لو فی السریة اذا سمعه و لو من مثله فی نحو جمعة و عید اما حدیث اذا امّن الامام فامنوا فمن التعلیق بمعلوم الوجود فلا یتوقف علی سماعه عنه بل یحصل بتمام الفاتحة بدلیل اذا قال الامام و لا الضآلین فقولوا آمین. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۴۹۲، آداب الصلٰوة)

اذا فرغ من الفاتحة قال آمین و السنة فیه الاخفاء کذا فی المحیط المنفرد و الامام سواء و کذا المأموم اذا سمع هٰکذا فی الزاهدی. (الهندیة ج۱، ص۷۴، الفصل الثالث فی سنن الصلٰوة) و مثله فی البحر الرائق ج۱، ص۳۱۳، باب صفة الصلٰوة)

## په لمانځه کښې د صفونو د برابرولو حکم

**سوال:** په لمانځه کښې د صفونو د برابرولو حکم څه دی؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د جمعې په لمانځه کښې د صفونو سیده کول سنت مؤکد دي، رسول اللهﷺ ئې ډیر اهتمام کړی دی، او په کږو ورو صفونو باندې سخت وعیدونه راغلي دي۔

عن النعمان بن بشیر قال کان رسول اللهﷺ یُسَوّی صفوفنا حتٰی کانّما یسوّی بها القداح حتی رای انا قد عقلنا عنه ثم خرج یوماً فقام حتی کاد ان یکبر فرای رجلاً بادیاً صدره من الصف فقال عباد الله لتسوُّنَّ صفوفکم او لیخالفنّ الله بین وجوهکم. (مشکوٰة ج۱، ص۹۷، باب تسویة الصفوف)

قال العلامة ظفر احمد العثمانیؒ: و فی حاشیة البخاری عن العینی و هی (ای تسویة الصفوف) سنة الصلٰوة عند ابی حنیفة و الشافعی و مالك. (ج۱، ص۱۰۰) قلتُ: و الظاهر من کلام اصحابنا انها سنة مؤکدة لاطلاقهم الکراهة علی ضدها و الکراهة المطلقة هی التحریمیة الخ. (اعلاء السنن ج۴، ص۳۱۳، باب سنیة تسویة الصف الخ) و مثله فی معارف السنن ج۲، ص۲۹۷، باب ما جاء فی اقامة الصفوف)

## د تکبیر تحریمه په وخت کښې په سرې د ورغوي مخونه کومې خوا ته کړغوي

**سوال:** ځینې خلك لیدل کیږي چه د تکبیر تحریمه په وخت کښې د خپلو ورغوو مخونه د خپل مخ خوا ته کړغوي، آیا د اسې کول صحیح دي او که څنګه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د تکبیر تحریمه په وخت کښې ورغوي د قبلې خوا ته کړغول هم جائز دي او د خپل مخ خوا ته هم۔ البته د قبلې خوا ته کړغول ئې ډیر بهتر دي۔

لما قال العلامة الحصكفىؒ: و يستقبل بكفيه القبلة و قبل خديه. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۱، ص۴۸۲، باب صفة الصلوٰة، قبل مطلب الفارسية)

قال العلامة ابراهيم الحلبىؒ: و يوجه حالة الرفع بطن كفيه نحو القبلة اكمالا عليها. و فى الحاوى و قال يجعل بطن كل كف الى الكف الاخرىٰ. (كبيرى ص ۳۰۰، صفة الصلوٰة)

## د نامه لاندې د لاسونو تړل سنت دي

**سوال:** له تکبیر تحریمه نه وروسته لاسونه په کوم ځای باندې تړل کیږي؟ ځینې حضرات ئې په سینې پورې د تړلو تاکید کوي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د احنافو علماوؒ د تحقیق مطابق نارینه دې باید له تکبیر تحریمه وروسته خپل لاسونه تر نامه لاندې ونیسي ځکه چه همدا سُنت دی، البته ښځې او خُنثٰی مشکل دې په سینې پورې خپل لاسونه تړي۔

لما قال العلامة الحصكفىؒ: و وضع الرجل يمينه على يساره تحت سرته اخذ رسغها بخنصره و ابهاميه هو المختار تضع المرأة و الخنثى الكف على الكف تحت ثديها. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۱، ص۴۸۶، باب صفة الصلوٰة، مطلب فى بيان المتواتر و الشاذ)

و فى الهندية: و وضع يده اليمنى على اليُسرىٰ تحت السرة كما فرغ من التكبير و المرأة تضعها تحت ثديها. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۷۲، الفصل الثالث فى سنن الصلوٰة) و مثله فى كبيرى ص ۳۰۱، صفة الصلوٰة)

## له ثناء څخه مخکښې او له تکبیر تحریمه څخه وروسته د دعاګانو مسئله

**سوال:** د حدیثو په کتابونو کښې له نبي کریم ﷺ څخه تر تکبیر تحریمه وروسته ځینې دعاګانې مروي دي، آیا دا دُعاګانې په فرائضو، سنتو او نفلو لمونځونو کښې ویل کیږي او که یوازې په نفلو کښې ویل کیږي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** اګر که په مبارکو حدیثونو کښې له نبي کریم ﷺ څخه په مختلفو مقاماتو کښې مختلفې دعاګانې منقولې دي لیکن احنافو علماوؒ دا روایتونه په نفلو باندې محمول کړي دي او د دوی په نزد دا دُعاګانې یوازې په نفلو کښې ویل کیږي۔

لما قال العلامة الحصكفىؒ: و قرأ كما كبر سبحانك اللّٰهم تاركاً و جلّ ثنائك الا فى الجنازة مقتصراً عليه فلا



يضم و جهت وجهى الا فى النافلة. قال ابن عابدينؒ: (تحت قوله الا فى النافلة) لحمل ما ورد فى الاخبار عليها ....... و فى الخزائن و ما ورد محمول على النافلة بعد الثناء فى الاصح و قال فى هامشه صححه فى الزاهدى و غيره. (رد المحتار ج۱، ص۴۸۸، باب صفة الصلوٰة، مطلب بيان المتواتر و الشاذ)

قال الشيخ المفتى عزيز الرحمٰنؒ: احنافوؒ دا دعاګانې په نفلو باندې محمولې کړې دي لهذا دا به یوازې په نفلو کښې ویل کیږي۔ (فتاوىٰ دار العلوم دیوبند ج۲، ص۱۷۴، فصل سنن الصلوٰه)

## د کعبینو د الحاق (د ښنګرو د لګولو) مسئله

**سوال:** جناب مفتي صاحب! ما په الدر المختار کښې لیدلي دي چه "و ان يلحق كعبيه" په رکوع کښې د کعبینو الحاق یعني لګول مسنون دي، آیا په ربښتیا هم په رکوع کښې د ښنګرو لګول مسنون دي؟ په داسې حال کښې چه په شامي کښې راغلي دي چه د قیام په حالت کښې به د دوو پښو تر منځ د څلورو ګوتو په برابر فاصله باید موجوده وي؟ د دې ځواب راکړې ډیره مهرباني به مو وي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د کعبینو د الحاق مسئله اګر که د متاخرینو په کتابونو کښې پیدا کیږي لیکن له متقدمینو علماء کرامو څخه په دې باره کښې څه ثبوت نشته۔ د دې لپاره د متاخرینو د دې تصریح محل او مقام دا دی چه د جماعت په لمانځه کښې دې هر سړی له بل سړي سره خپل ښنګرې لګوي تر څو چه صفونه سیده شي، لکه څرنګه چه په حدیث شریف کښې راغلي چه "سوو صفوفكم و تواصوا و سدوا الخلل. (مشكوٰة، ج، ص، باب تسوية الصفوف)حكم راغلي دی۔ لهذا د رکوع په حالت کښې له بل سره د خپل ښنګري لګول مسنون نه دي البته که چېرته څوك د اسې وکړي نو څه پروا هم نه لري۔

لما قال الشيخ المحقق عبد الحى الكهنوىؒ: و منها الصاق الكعبين ذكره جمع من المتاخرين و جمهور الفقهاء لم يذكروه و لا اثر لهٗ فى الكتب المعتبرة كا لهداية و شروحها النهاية و العناية و البناية و الكفاية و فتح القدير و غيرها و الكنز و شرحه العينى و شرح النقاية لالياس زاده و البرجندى و الشمني و فتاوىٰ قاضى خان و البزازية و غيرها و امام الدين اورده فى ذكره الزاهدى حيث قال فى المجتبىٰ برمز بط يسن فى الركوع الصاق الكعبين و استقبال الاصابع القبلة....... قال خير المتاخرين شيخ مشائخنا محمد عابد السندى المدنىؒ فى طوالع الانوار شرح الدر المختار قوله و الصاق كعبيه اى حالة الركوع. قال الشيخ الرحمتى مع بقاء تفريج ما بين القدمين قلتُ لعلة اراد من الصاق المحاذاة و ذلك بان يحاذى كلّ من كعبيه لأخر فلا يتقدّم احدهما على الآخر. (السعاية ج۲، ص۱۸۰، باب صفة الصلوٰة)

قال العلامة عبد القادر الرافعى الفاروقى الحنفىؒ: على قول الحصكفىؒ قول الشارح و يسن ان يلصق كعبيه قال الشيخ ابو الحسن السندى الصغير فى تعليقته الدر هٰذه السنة انما ذكرها من ذكرها من المتاخرين تبعاً للمجتبىٰ و ليس لها ذكر فى الكتب المتقدمة كا لهداية و شروحها و كان بعض مشائخنا يرىٰ انها من اوهام صاحب المجتبىٰ و لم ترد فى السنة على ما وقفنا عليه و كانهم توهموا ذٰلك مما ورد ان الصحابة كانوا يهتمون سدّ الخلل فى الصفوف حتىٰ يضمون

الكعاب و المناكب و لا يخفى ان المراد هنا الحاق كعبه بكعب صاحبه لا كعبه مع كعبه الأخر. (تقريرات الرافعى ج۱، ص ۶۰، باب صفة الصلوة) و مثله فى فتاوىٰ دار العلوم ديوبند ج۲، ص ۲۰۳، فصل سنن الصلوة)

## كه چېرته له چا څخه تكبيرات انتقالات پاتې شي نو بيا به څه كوي؟

**سوال:** له تكبير تحريمه څخه پرته د نورو تكبيراتو حكم څه دى؟ كه چېرته له كومې وجهې څخه له چا پاتې شي نو په لمانځه كښې ئې څه فرق راځي او كه نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** تكبير تحريمه فرض دى او د انتقالاتو نور تكبيرونه سنت دي. لهذا كه چېرته بغير له عذر څخه هم له چا څخه پاتې شي نو په لمانځه كښې ئې كوم فرق نه راځي.

لما قال العلامة محمد يوسف البنورىؒ: تكبيرات الانتقالات سنة عند الجمهور قال ابن المنذرؒ و به قال ابو بكر الصديقؓ و عمرؓ و جابرؓ و قيس بن عبادةؓ و لشعبيؒ و الاوزاعىؒ و سعيد بن عبد العزيزؒ و مالك و الشافعى و ابو حنيفةؒ الخ. (معارف السنن ج۲، ص۴۴۶، باب ما جاء فى التكبير عند الركوع و السجود)

قال الشيخ ظفر احمد العثمانىؒ: باب كون التكبير سنة عند كل رفع و خفض. عن عبد الله ابن مسعود رضى الله تعالى عنه قال كان رسول اللهﷺ يكبر فى كل خفض و رفع و قيام و قعود......... (اى التكبير) عام فى جميع الانتقالات فى الصلوة. (اعلاء السنن ج۳، ص۳، باب كون التكبير سنة عند كل رفع و خفض)

## د شهادت د ګوتې پورته كول بدعت نه دي

**سوال:** لمونځ كوونكى چه كله اشهد ان لآ اله الآ الله ته ورسيږي نو آيا د سبابه ګوته به پورته كوي او كه نه؟ په د اسې حال كښې چه ځينې خلك بدعت ورته وايي.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په تشهد كښې د اشهد ان لآ اِله الآ الله ويلو په وخت كښې د شهادت په ګوتې باندې اشاره كول سنت دي. له رسول اللهﷺ څخه په تشهد كښې اشاره كول ثابت دي. كوم خلك چه بدعت ورته وايي د هغو قول د روايت او درايت خلاف دى.

لما قال العلامة الحصكفىؒ: و فى الشرنبلالية عن البرهان الصحيح انهٗ يشير بمسبحته وحدها يرفعها عند النفى و يضعها عند الاثبات و احترز با لصحيح عما قيل لا يشير لانه خلاف الدراية و الرواية الخ. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۱، ص۵۰۹، باب صفة الصلوة، قبل مطلب مهم فى عقد الاصابع عند التشهد)

قال العلامة حسن بن عمار الشرنبلالىؒ: و تسن الاشارة فى الصحيح لانهٗﷺ رفع اصبعه السبابة و قد احناها و من قال انهٗ لا يشير اصلاً فهو خلاف الرواية و الدراية. (مراقى الفلاح على صدر الطحطاوى ص۲۱۸، فصل فى سُنن الصلوة) و مثله فى كبيرى ص۳۲۸، باب صفة الصلوة)

## په التحياتو كښې به د ښي لاس ګوته پورته كوي

**سوال:** په التحياتو (قعده) كښې د اشهد ان لآ اِله الآ اللّه ويلو په وخت كښې به د كوم لاس ګوته پورته كوي؟ يو سړى مې وليده چه د كيڼ لاس ګوته ئې پورته كړه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په التحياتو كښې د اشهد ان لآ اِله الآ الله ويلو په وخت كښې د ښي



لاس د شهادت د ګوتې پورته كول سُنت دي او د كيڼ لاس د ګوتې پورته كول صحيح نه دي.

قال العلامة ابن عابدينؒ: (تحت قوله بل فى متن درر البحار الخ)......... و صفتها ان يحلق من يده اليمنى عند الشهادة الابهام و الوسطى و يقبض البنصر و الخنصر و يشير با لمسبحة الخ. (رد المحتار ج۱، ص۹۰۸، باب صفة الصلوة، قبل مطلب مهم فى عقد الاصابع عند التشهد)

قال العلامة حنس بن عمار الشرنبلالىؒ: و تسن الاشارة فى الصحيح لانهٗﷺ رفع اصبعه السبابة و قد احناها شينا و من قال انهٗ لا يشير اصلاً فهو خلاف الرواية و الدراية و تكون با لمسبحة اى السبابة من اليمنى فقط يشير بها......... يرفعها اى المسبحة عند النفى......... و يضعها عند الاثبات. (مراقى الفلاح على صدر الطحطاوى ص۲۱۸، فصل فى سنن الصلوة)

## په تشهد كښې د وحده لاشريك له الفاظو زياتول

**سوال:** كه چېرته يو څوك په تشهد كښې تر اشهد ان لا اِله الآ الله څخه وروسته د وحده لا شريك له الفاظ زيات كړي نو د لمانځه حكم به ئې څه وي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له رسول اللهﷺ څخه التحيات په مختلفو طريقو باندې ثابت دى. په ځينو روايتونو كښې د وحده لاشريك له الخ ويل هم راغلي دي ليكن حنفيه وو د حضرت عبد الله بن مسعود رضى الله عنه تشهد غوره كړى دى او نوموړي الفاظ په هغه كښې نشته. د دې لپاره د دې الفاظو لوستل مناسب هم نه دي، البته كه چا دا الفاظ ورسره زيات كړل نو په لمانځه كښې ئې كوم فرق نه راځي.

لما اخرجه ابو داؤد: عن حطان بن عبد الله الرقاشى بهٰذا الحديث زاد فاذا قرأ و انصتوا قال فى التشهد بعد اشهد ان لا اِلٰهَ الاَّ الله زاد وحدهٗ لا شريك لهٗ. (ابو داؤد شريف ج۱، ص۱۴۰، باب لتشهد)

عن ابن عمر عن النبىﷺ فى التشهد......... اشهدُ ان لآ اِلٰهَ الاَّ الله قال ابن عمر زدت فيها وحده لا شريك لهٗ و اشهد ان محمداً عبدهٗ و رسولهٗ: (التلخيص الخبير ج۱، ص۲۶۶، باب صفة الصلوة) و مثله فى دار القطنى ج۱، ص۳۵۲، باب صفة التشهد و وجوبهٖ و اختلاف الروايات فيه.

## په آخره قعده كښې د درود شريف د لوستلو حكم

**سوال:** په آخري ناستې كښې د درود شريف د لوستلو حكم څه دى؟ كه چېرته يو څوك درود شريف و نه وايي نو لمونځ ئې كيږي او كه نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د لمانځه په آخري ناستې كښې درود شريف لوستل سنت دي كه چېرته د كومې مجبورۍ له مخې درود شريف پاتې شي نو لمونځ ئې له كراهيت پرته صحيح كيږي په د اسې حال كښې چه په قصد سره د پرېښودلو په صورت كښې ئې لمونځ له كراهت څخه خالي نه وي چه بيرته را اګرځول ئې مستحب دى.

قال العلامة الحصكفىؒ: و سننها......... و الصلوة على النبىﷺ فى القعدة الاخيرة. (الدر المختار على

صدر رد المحتار ج١، ص ٤٧٧، باب صفة الصلوٰة)

و قال ايضاً ترك السنة لا يوجب فساداً و لا سهواً بل اساءة لو عامداً غير مستخف و قالوا الاساءة ادون من الكراهة. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج١، ص ٤٧٤، باب صفة الصلوٰة، مطلب فى قولهم الاساءة ادون)

قال العلامة حسن بن عمار لشرنبلالیؒ: و تسن الصلوٰة على النبیﷺ فى الجلوس الاخير الخ. (مراقى الفلاح على صدر الطحطاوى ص ٢١٩، فصل فى بيان سننها)

قال الشيخ السيد احمد الطحطاویؒ: ترك السنة لا يوجب فساداً و لا سهوا بل اسائة لو عامداً غير مسخف و قالوا الاساءة ادون من الكراهة. (طحطاوى حاشية مراقى الفلاح ص ٢٠٧، فصل فى بيان سننها)

## په درود شریف کښې د "سیّدنا" د لفظ د زیاتولو حکم

**سوال:** په لمانځه کښې چه کوم درود شریف لوستل کیږي که چېرته څوك په هغه کښې د "سیدنا" لفظ ور زیات کړي نو حکم به ئې څه وي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په درود شریف کښې د "سیدنا" د لفظ په زیاتولو کښې هیڅ پروا نشته۔ البته د لمانځه په قعده کښې درود شریف د سیدنا له لفظ څخه پرته لوستل بهتر دي۔

لما قال العلامة الحصكفیؒ: و ندب السيادة لان زيادة الاخبار با لواقع عين سلوك الادب فهو افضل من تركه ذكره الرملى الشافعى وغيره. قال العلامة ابن عابدينؒ: (تحت قوله ذكره الرملى الشافعى) اى فى شرحه على منهاج النووى و نصه و الافضل الاتيان بلفظ السيادة. كما قاله ابن ظهيرية و صرح به جمع و به افتى الشارح لان فيه الاتيان بما امرنا به و زيادة الاخبار با لواقع الذى هو ادب فهو افضل من تركه و ان تردّد فى افضليته الاسنوى و اما حديث لا تسيدونى فى الصلوٰة فباطل لا اصل لهٗ كما قال بعض متاخرى الحفاظ الخ. (رد المحتار ج١، ص ٥١٣/٥١٢، باب صفة الصلوٰة، مطلب فى جواز الترحم على النبى ابتداء)

قال العلامة الشيخ المفتى عزيز الرحمٰنؒ: د "سیدنا" د لفظ په زیاتولو کښې هیڅ پروا نشته لیکن په تشهد کښې لکه څرنګه چه تشهد وارد شوی دی هم هغسې ویل ئې صحیح دي یعنې پرته د سیدنا له لفظ څخه ویل ئې بهتر دي۔ (فتاوٰی دار العلوم دیوبند ج٢، ص ١٦٩، فصل فى سُنن الصلوٰة)

## په آخري قعده کښې د دُعا د پرېښودلو حکم

**سوال:** جناب مفتي صاحب! زمونږ د کلي د جومات امام په لمانځه کښې التحیات دومره په تیزي سره وایي چه مونږ (مقتدیان) له درود شریف څخه لا فارغ شوي نه وو چه امام صاحب سلام اړوي نو آیا مونږ به د امام په اتباع کښې سلام ګرځوو او که د درود شریف له پوره کولو څخه وروسته سلام وګرځوو؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په آخري قعدې کښې د درود شریف او دُعا لوستل سُنت دي او د امام اتباع واجبه ده۔ لهذا کله چه امام د مقتدیانو د دعا له ختمولو څخه مخکښې سلام وګرځوي نو باید چه دوی هم د امام په اتباع کښې سلام وګرځوي او دعا پرېږدي۔



لما قال العلامة الحصكفیؒ: و لو سلم الامام و المؤتم فى ادعية التشهد تابعه لانها سنة و الناس عنه غافلون. قال ابن عابدينؒ: (تحت قوله فى ادعية التشهد) يشمل الصلوٰة على النبیﷺ. (رد المحتار ج١، ص ٤٩٦، باب صفة الصلوٰة، فصل اراد الشروع)

قال العلامة حسن بن عمار الشرنبلالیؒ: لو سلّم الامام او تكلم قبل فراغ المقتدى من قرأة التشهد يتمه لانهٗ من الواجبات ثم يسلم لبقاء حرمة الصلوٰة و امكن الجمع با لاتيان بهما و ان بقيت الصلوٰة و الدعوات يتركها و يسلم مع الامام لان ترك السنة دون ترك الواجب. (مراقى الفلاح على صدر الطحطاوى ص ٢٥٠، فصل فيما يفعله المقتدى بعد الخ) و مثله فى فتاوٰى دار العلوم ديوبند ج٢، ص ١٦٥، فصل فى سنن الصلوٰة)

## د امام د متابعت له وجهې د تسبیحاتو د پوره نه ویلو حکم

**سوال:** زمونږ د کلي امام صاحب رکوع او سجده دومره په تیزي سره ادا کوي چه مقتدیان ئې درې وارې تسبیح هم نه شي پوره کولی نو آیا مقتدي به درې وارې تسبیح پوره کوي او که به د امام متابعت کوي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** لومړی خو باید امام داسې و نه کړي بلکه په رکوع او سجدې کښې دې دومره ځنډ وکړي چه مقتدیان ئې درې وارې تسبیحات وویلی شي لیکن که چېرته مقتدي د امام متابعت وکړي او درې وارې تسبیحات و نه شي ویلی نو لمونځ ئې کیږي۔

لما قال العلامة الحصكفیؒ: لو رفع الامام رأسه من الركوع و السجود قبل ان يتم الماموم التسبيحات الثلاث وجب متابعته آه. قال علامة ابن عابدينؒ: (تحت قوله و اعلم) يسبح فيه ثلاثاً فانه سنة على المعتمد المشهور فى المذهب لا فرض و لا واجب كما مر فلا يترك المتابعة الواجبة لاجلها. (رد المحتار ج١، ص ٤٩٥/٤٦٣، باب صفة الصلوٰة، فصل اذا اراد الشروع)

قال العلامة حسن بن عمار الشرنبلالیؒ: و يسن تسبيحه اى الركوع ثلاثاً لقول النبیﷺ اذا ركع احدكم فليقل ثلاث مرات........ و الامر للاستحباب فيكره ان ينقص عنها و لو رفع الامام قبل اتمام المقتدى فا لصحيح انه يتابعه آه. (مراقى الفلاح على صدر الطحطاوى ص ٢١٥، فصل فى سنن الصلوٰة)

## ښځه به څنګه سجده کوي؟

**سوال:** که چېرته کومه ښځه د سړیو غوندې سجده وکړي نو لمونځ ئې کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د ښځو لپاره ضروري ده چه د خپل بدن غړي د سجدې په وخت کښې ښه سره ولګوي او د سړیو غوندې به خپل اندامونه له یو بل څخه نه جدا کوي۔ د سړیو غوندې سجده د ښځو لپاره مکروه ده۔ البته که چېرته د عذر له مخې د سړیو غوندې سجده وکړي نو بیا ئې لمونځ له کراهت پرته جائز دی۔

لما قال العلامة الحصكفیؒ: تنخفض فلا تبدى عضديها و تلصق بطنها بفخذيها لانه استر. قال ابن عابدينؒ:

(تحت قوله و حررنا فی الخزائن)....... و تضع یدیها علی رکبتیها و لا تحنی رکبتیها و تنضم فی رکوعها و سجودها و تفترش ذراعیها. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج ۱، ص ۵۰۴، باب صفة الصلٰوة، فصل اذا اراد لشروع)

قال العلامة حسن بن عمار الشرنبلالیؒ: و المرأة تخفض فتضم عضدیها علی فخذیها و تلزق بطنها بفخذیها لانه استر لها. (مراقی الفلاح علی صدر الطحطاوی ص ۲۲۹، فصل فی کیفیة ترکیب افعال الصلٰوة) و مثله فی الهدایة ج ۱، ص ۱۰۱، باب صفة الصلٰوة)

## له فرض لمانځه وروسته په سر باندې د لاس ایښودلو حکم

**سوال:** ځینې خلك مو لیدلي دي چه تر فرض لمانځه وروسته خپل ښي لاسونه په سرونو باندې ږدي او څه وایي۔ د دې عمل شرعي حکم څه دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په روایتونو کښې له رسول اللهﷺ راغلي دي چه دی مبارکﷺ به چه کله له لمانځه څخه فارغ شو نو خپل ښی لاس به ئې پخپل سر مبارك باندې کیښود او دا دُعا به ئې ویله: بسم الله الذی لا اله الاّ هو الرحمٰن الرحیم، اللّٰهمّ اذهب عنی الهمّ و الحزن. د دې لپاره بهتره دا ده بلکه سُنت دي چه تر لمانځه وروسته که فرض وي او که نفل یا سُنت او د اسې نور ښی لاس په سر باندې کیښودل شي او دا دُعا ولوستل شي۔

کان رسول اللهﷺ اذا صلّی و فرغ من صلٰوته یمسح یمینه علی رأسه و قال بسم اللّٰه الذی لا اله الا هو الرحمٰن الرحیم، اللّٰهمّ اذهب عنّی الهمّ و الحزن. (حصن حصین)

لما قال الشیخ المفتی عزیز الرحمٰن: تر فرض لمونځونو وروسته باید هر څوك خپل ښی لاس په خپل سر باندې کیږدي او دا دُعا ولولي۔ بسم الله الذی للا اله الا هو الرحمٰن الرحیم اللّٰهم اذهب عنّی الهم و الحزن. (فتاوٰی دار العلوم دیوبند ج ۲، ص ۲۱۱، فصل سُنن الصلٰوة)

## د نیت له ترلو څخه مخکښې د اِنِّیْ وَجَّهْتُ وَجْهِیَ الخ لوستلو حکم

**سوال:** مونږ له نیت څخه مخکښې چه کله امام د لمانځه لپاره دریږي نو اِنِّیْ وَجَّهْتُ وَجْهِیَ لِلَّذِیْ فَطَرَ السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرض الخ وایو نو ځینې خلك وایي چه داسې مه کوی۔ د مهربانۍ له مخې د دې مسئلې توضیح وکړی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** اِنِّیْ وَجَّهْتُ وَجْهِیَ لِلَّذِیْ الخ د لوستلو په باره کښې د احنافو علماوو مفتٰی بهٖ رأیه دا ده چه دا کلمات د نیت او تکبیر تحریمه په منځ کښې مه وایی۔ اګرکه له قاضي ابو یوسفؒ څخه په یوه روایت کښې تر سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ الخ څخه وروسته لوستل راغلي دي، او فقیه ابو اللیثؒ له تکبیر څخه مخکښې ئې د ویلو روایت کړی دی۔ لیکن صحیح دا دی چه په دغو ځایونو کښې دا کلمات مه وایی۔ البته که چیرته له نیت څخه ئې مخکښې ووایی نو پروانه لري۔

لما قال العلامة برهان الدین المرغینانیؒ: و الاولٰی ان لا یأتی با لتوجه قبل التکبیر لیتصل النیة به هو الصحیح. (الهدایة ج ۱، ص ۸۶، باب صفة الصلٰوة)



قال العلامة صدر الشریعةؒ: و لا یوجه اراد با لثناء سُبحانك اللّٰهم و بحمدك الخ و با لتوجه قرأة انی وجهت وجهی بعد التحریمة...... قال الشیخ عبد الحی الکهنویؒ: مختار المتاخرین اولویة قرأته قبله. قال فی الهدایةؒ الاولٰی ان لا یأتی با لتوجیه قبل التکبیر لتتصل النیة با لتکبیر هو الصحیح. (السعایة فی حل شرح الوقایة ج ۲، ص ۱۶۵، باب صفة الصلٰوة) و مثله فی فتاوٰی دار العلوم دیوبند ج ۲، ص ۲۰۹، فصل سنن الصلٰوة)

## کینې خوا ته د سلام ګرځولو په وخت کښې د آواز ټیټولو حکم

**سوال:** د سلام ګرځولو په وخت کښې دواړو خواوو ته به د امام آواز یو شی وي او که به څه فرق پکښې کوي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** سُنت او افضل دا دي چه په دوهم سلام کښې به له لومړني سلام څخه څه نا څه په خپل آواز کښې ټیټوالی غوره کوي۔ که چیرته څوك دواړو خواوو ته په یو ډول آواز سلام وګرځوي نو بیا هم په لمانځه کښې کوم کراهت نه راځي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: و سن جعل الثانی اخفظ من الاول خصه فی المنیة با لامام و اقره المصنف. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج ۱، ص ۵۲۶، باب صفة الصلٰوة)

و السنة فی السلام ان تکون التسلیمة الثانیة اخفض من الاوّل کذا فی المحیط و هو الاحسن کذا فی التبیین. (الهندیة ج ۱، ص ۷۶، سنن الصلٰوة) و مثله فی البحر الرائق ج ۱، ص ۳۵۳، باب صفة الصلٰوة)

# باب آداب الصلوٰة

## (د لمانځه د آدابو احکام او مسئلې)

### د ولاړې په حالت کښې سرې چېرته ګوري؟

**سوال:** د لمانځه په دوران کښې به د قیام په حالت کښې سړی باید کوم ځای ته وګوري؟ که چېرته یو څوك د سجدې ځای ته و نه ګوري نو په لمانځه کښې ئې فساد یا کراهت راځي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د قیام په حالت کښې د سجدې ځای ته کتل مستحب دي۔ البته که چېرته یو څوك داسې و نه کړي نو په لمانځه کښې ئې کوم فساد نه راځي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: نظره الٰی موضع سجوده حال قیامه. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۴۷۷، آداب الصلوٰة)

و منها (نظر المصلی) سواء کان رجلا او امرأة (الٰی موضع سجوده قائماً) حفظاً لهٗ عن النظر الی ما یشغله عن الخشوع. (مراقی الفلاح علی هامش الطحطاوی ص۱۵۱، فصل من آدابها) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۷۲، سنن الصلوٰة و آدابها)

### په لمانځه کښې د اسویلي د راتلو په وخت کښې د خولې د پټولو حکم

**سوال:** که چېرته چا ته د لمانځه په دوران کښې اسویلي ورشي نو څه به کوي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته چا ته د لمانځه په دوران کښې اسویلي ورشي نو تر حتی الامکان پورې دې اسویلي منع کړي او که چېرته ئې په منع کولو قادر نه شي نو د ښي لاس په شا باندې دې خوله پټه کړي۔ اګر که یو قول دا هم دی چه د قیام په حالت کښې دې له ښي لاس څخه کار واخلي او په نورو رکنونو کښې دې له چپ لاس څخه د خولې په پټولو کښې کار واخلي۔

لما قال العلامة الحصکفیؒ: و امساك فمه عند التثاؤب فائدة لدفع التثاؤب مجربة و لو باخذ شفتیه بسنه فان لم یقدر غطاه بظهر یده الیسرٰی و قیل با لیمنٰی لو قائماً و الا فیسراه. (الدر المختار علٰی صدر رد المحتار ج۱، ص۴۷۸، باب صفة الصلوٰة)

قال العلامة حسن بن عمار الشرنبلالیؒ: و من الادب کظم فمه عند التثاؤب فان لم یدر غطاه بیده او کمه لقولهﷺ التثاؤب فی الصلوٰة من الشیطان فاذا تثاؤب احکم فلیکظم ما استطاع. (مراقی الفلاح علی صدر الطحطاوی ص ۲۲۴، فصل آداب الصلوٰة)



### د لمانځه د آدابو د پاتې کیدلو حکم

**سوال:** که چېرته له چا څخه د لمانځه آداب یعنې مستحبات پاتې شي نو په لمانځه باندې ئې څه اثر لوېږي؟ د لمانځه بیرته راګرځول ورته ضروري دي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د لمانځه د ننه د آدابو لحاظ ساتل افضل او بهتر دي۔ البته که چېره له کومې وجهې آداب پاتې شي نو لمونځ ئې له کراهت پرته جائز دی او د بیا راګرځولو ضرورت ئې نشته۔

قال العلامة الحصکفیؒ: و لها آداب ترکه لا یوجب اساء ة و لا عتاباً کترك السنة الزوائد لکن فعله افضل. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۴۷۷، باب صفة الصلوٰة)

قال العلامة السید احمد الطحطاویؒ: (تحت قوله الادب ما فعله الرسولﷺ مرّة او مرّتین و لم یواظب علیه) و ترکه لا یوجب اساء ة و لا عتاباً لکن فعله افضل. آه (طحطاوی حاشیة مراقی الفلاح ص۲۲۴، فصل آدابها)

### امام او مقتدي به څه وخت د لمانځه لپاره درېږي؟

**سوال:** څه فرمایي علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چه امام او مقتدیان باید کله د لمانځه لپاره ودرېږي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د امام او مقتدیانو لپاره مستحبه دا ده چه مقیم کله حی علی الفلاح ووایي نو د لمانځه لپاره ودرېږي، اګر که ځینو علماء کرامو د حی علی الصلٰوه په وخت کښې دریدل مستحب ګرځولي دي۔

لما قال العلامة الحصکفیؒ: و القیام لامام و مؤتم حین قیل حیّ علی الفلاح خلافا لزفر فعنده عند حیّ علی الصلٰوة. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۴۷۹، باب صفة الصلٰوة)

قال العلامة حسن بن عمار الشرنبلالیؒ: من الآداب القیام ای قیام القوم و الامام ان کان حاضراً بقرب المحراب حین قیل ای وقت قول المقیم حیّ علی الفلاح. قال السید احمد الطحطاوی (تحت قوله حیّ علی الفلاح) قال الحسن و زفر عند حیّ علی الصلٰوة. (طحطاوی حاشیة مراقی الفلاح ص۲۲۵، فصل آدابها)

### امام به لمونځ په کوم وخت کښې شروع کوي؟

**سوال:** امام باید لمونځ په کوم وخت کښې شروع کړي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** مستحبه دا ده چه امام لمونځ د قد قامت الصلٰوه د ویلو په وخت کښې شروع کړي۔ اګر که امام ابو یوسفؒ فرمایي چه امام دې د مقیم (اقامت ویونکي) تر فارغیدو پورې انتظار وکړي۔ لیکن دا اختلاف یوازې په استحباب کښې دی۔

قال العلامة حسن بن عمار الشرنبلالیؒ: و من الآداب شروع الامام الٰی احرامه مذ قیل ای عند قول المقیم قد قامت الصلٰوة عندهما. و قال ابو یوسفؒ اذا فرغ من الاقامة فلو اخر حتی یفرغ من الاقامة لا بأس به فی قولهم جمیعا. (مراقی الفلاح علی صدر الطحطاوی ص۲۲۵، فصل آداب الصلٰوة)

قال العلامة الحصكفي: و شروع الامام فی الصلوة مذ قيل قد قامت الصلوة و لو اخر حتی اتمها لا بأس به اجماعاً وهو قول الثانی و الثالثة و هو اعدل المذاهب كما فی شرح المجمع لمصنفه و فی القهستانی معزيا للخلاصة انه الاصح. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج ۱، ص ۴۷۹، قبل فصل اذا اراد الشروع)

## مقتدي به څه وخت سلام اړوي

**سوال:** مقتدي بايد څه وخت سلام واړوي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د مقتدي لپاره بهتره دا ده چه امام كله بنې خوا ته سلام واړوي نو مقتدي به هم بنې خوا ته سلام اړوي او چه كله امام د بنې خوا له سلام څخه فارغ شي او كيڼي خوا ته سلام واړوي نو مقتدي دې هم د امام د سلام اړولو څخه وروسته كيڼي خوا ته سلام واړوي يعني له امام څخه به مخكښې سلام نه اړوي.

لما قال فخر الدين قاضی خان: قال الفقيه ابو جعفر المختار ان ينتظر اذا سلم الامام عن يمينه فيسلم المقتدی عن يمينه و اذا فرغ الامام عن يساره يسلم المقتدی عن يساره. (فتاوی قاضی خان علی هامش الهندية ج ۱، ص ۸۸، فصل فيمن يصح الاقتداء به فيمن لا يصلح)

قال الفقيه ابو جعفر رحمه الله: ان ينتظر اذا سلم الامام عن يمينه يسلم المقتدی عن يمينه و اذا فرغ عن يساره يسلم المقتدی عن يساره آه. (الفتاوی الهندية ج ۱، ص ۷۷، الفصل الثالث فی سنن الصلوة و ادابها الخ)

## د سلام په دوران كښې د امام او ملائكه وو نيت

**سوال:** لمونځ كوونكى به د سلام په دوران كښې څه نيت كوي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** لمونځ كوونكي په درې ډوله دي- (۱)امام (۲)مقتدي (۳)منفرد (يواځې لمونځ كوونكى). كه چېرته لمونځ كوونكى مقتدي وي نو د سلام په دوران كښې كه چېرته امام په بنې خوا كښې وي نو بنې خوا ته د سلام اړولو په وخت كښې به د ملائكه وو او د همدغې خوا د مقتديانو او امام نيت به كوي- او كه چېرته امام په كيڼې خوا كښې وي نو په كيڼې خوا كښې به د ملائكه او مقتديانو برسېره د امام نيت به هم كوي- او كه چېرته مقتدي د صف په منځ كښې د امام شا ته ولاړ وي نو دواړو خواوو ته به د امام نيت كوي- او كه چېرته لمونځ كوونكى امام وي نو د دواړو خواوو د مقتديانو نيت به كوي- او كه چېرته منفرد وي نو په سلام اړولو كښې د حفظه ملائكه وو نيت به كوي-

لما فی الهندية: و ينوی من عنده من الحفظة و المسلمين فی جانبيه....... و المقتدی يحتاج الی نية الامام مع نيت من ذكرنا فان كان الامام فی الجانب الايمن نواه فيهم و ان كــــان فی الجانب الايسر نواه فيهم و ان كان بحذائه نواه فی الجانب الايمن عن ابی يوسف و عند محمد ينويه فيهما و هو رواية عن ابی حنيفة و فی الفتاوی هو الصحيح و المنفرد ينوی الحفظة لا غير و لا ينوی فی الملٰئكـــة عدداً محصوراً. (الفتاوی الهندية ج ۱، ص ۷۷، الفصل الثالث فی سنن الصلوة و ادابها)



قال العلامة عبد الرحمٰن الجزائري: يسن ان ينوی المصلی بسلامه الاول من علی يمينه و بسلامه الثانی من علی يساره. (كتاب الفقه علی مذاهب الاربعة ج ۱، ص ۲۶۶) و مثله فی طحطاوی حاشية مراقی الفلاح ص ۲۲۲، فصل سننها نية المصلی من علی يمينه و يساره با لسلام.

## تر فرض لمانځه وروسته د امام لپاره د زر پورته كېدلو حكم

**سوال:** تر كومو لمونځونو وروسته چه سُنت لمونځونه شته نو امام به د داسې فرض لمونځونو وروسته بايد څه وكړي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په پنځو وختو لمونځونو كښې د څېنو لمونځونو وروسته سُنت لمونځونه شته چه له هغو څخه تر فارغېدو وروسته د امام لپاره بهتر دا دي چه زر پورته شي او پاتې سُنت لمونځونه ادا كړي، په اوږدو دُعاګانو كښې مشغولېدل د اولٰی خلاف دي.

لما قال العلامة عالم بن العلاء: و فی الحجة الامام اذا فرغ من الظهر و المغرب و العشاء يشرع فی السنة و لا يشتغل بادعية طويلة. (الفتاوی التاتارخانية ج ۱، ص ۵۵۷، الفصل الثالث فی بيان ما يفعله المصلی فی صلاته بعد الافتتاح)

و فی الهندية: و فی الحجة الامام اذا فرغ من الظهر و المغرب و العشاء يشرع فی السنة و لا يشتغل بادعية طويلة. (الفتاوی الهندية ج ۱، ص ۷۷، الفصل الثالث فی سنن الصلوة الخ)

## په لمانځه كښې تر ثنـــاء مخكښې د تسميه د نه ويلو وجه

**سوال:** په لمانځه كښې تر ثناء مخكښې تسميه ولې نه ويل كېږي؟ آيا دا د "كل امر ذی بال لم يبدأ بسم الله الخ په خلاف نه دی؟ د دلائلو له مخې ئې ځواب راكړی؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په لمانځه كښې تر ثناء (سُبحٰنَكَ اللّٰهُمّ) مخكښې د تسميه (بسم الله الخ)ويل ثابت نه دي بلكه تر تكبير افتتاح وروسته د لاس له تړلو سره تر (سُبحٰنك اللّٰهمّ) وروسته د بسم الله الرحمٰن الرحيم ويل په احاديثو كښې راغلي او د فقهې په كتابونو كښې ليكلي دي.

لما ورد فی الحديث: (۱) عن عائشة رضی الله تعالی عنها قالت كان النبی ﷺ اذا افتتح الصلوة قال سبحٰنك اللّٰهمّ و بحمدك و تبارك اسمك و تعالی جدك و لا اِله غيرُكَ الخ. (جامع الترمذی ج ۱، ص ۵۷، ابواب الصلوة، باب ما يقول عند افتتاح الصلوة)

قال العلامة ابن نجيم المصری رحمه الله: و وضع يمينه علی يساره تحت سرته مستفتحاً (قوله مستفتحاً) هو حال من الوضع ای يضع قائلاً سبحٰنك اللّٰهمّ و بحمدك و تبارك اسمك و تعالی جدّك و لا اِله غيرُك. و قد تقدم انه سنة لرواية الجماعة انه كان ﷺ يقول اذا افتتح الصلوة. (البحر الرائق شرح كنز الدقائق ج ۱، ص ۳۰۹)

## په لمانځه كښې به سړی كوم ځای ته ګوري

**سوال:** جناب مفتي صاحب! يو لمونځ كوونكى چه كله لمونځ كوي نو د لمانځه په منځ كښې به كوم ځای ته ګوري؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د لمانځه په مختلفو حالاتو كښې د لمونځ كوونكي مختلفو ځايونو ته

کتل مستحب دي۔ د قیام په حالت کښې به د سجدې ځای ته، په رکوع کښې به د پښو ګوتو ته، په سجدې کښې به د پزې څوکې، په قعدې کښې به خپل اړخ ته ګوري، .همدارنګه د سلام اړولو په وخت کښې به په اول سلام کښې د ښۍ اوږې سر او په دوهم سلام کښې به کیڼې اوږې سر ته ګوري۔

لما قال العلامة الحصكفیؒ: نظره الٰی موضع سجوده حال قیامه و الٰی ظهر قدمیه حال رکوعه و الٰی ارنبة انفه حال سجوده و الٰی حجره حال قعوده و الٰی منكبه الایمن و الایسر عند التسلیمة الاولٰی و الثانیة تحصیل الخشوع. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۴۷۷/۴۷۸، ادب الصلٰوة)

## په التحیاتو کښې اشاره سنت ده

**سوال:** ځینې خلك په تشهد کښې اشارې ته حرام وایي او د اشارې کوونکی د حرامو مرتکب بولي۔ دا مسئله د امام ابو حنیفه رحمه الله د اقوالو په رڼا کښې روښانه کړی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د شهادت په ګوتې باندې په تشهد کښې اشاره یو سنت عمل دی، د نبي کریمﷺ ډیر حدیثونه په دې باره کښې راغلي دي، د څلورو مذهبونو امامان په دې باندې متفق دي۔ په احادیثو کښې له نبي کریمﷺ څخه په دریو طریقو باندې اشاره ثابته ده۔

﴿۱﴾ دا چه د خنصر، بنصر او وسطٰی ګوتې غوټه کړي ابهامه ګوته دې د سبابۀ مرسله ګوتې له بیخ سره ولګوي او په سبابه باندې اشاره وکړي۔ دې عقد ته د عربو په اسطلاح کښې د درې پنځوسو (۵۳) عقد ویل کیږي۔ د حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنه په روایت کښې همدا طریقه مذکوره ده۔

عن ابن عمرؓ قال كان رسول اللهﷺ اذا قعد فی التشهد وضع یده الیسرٰی علی ركبته الیسرٰی و وضع یده الیمنٰی علی ركبته الیمنٰی و عقد ثلٰثة و خمسین و اشار با لسبابة. (مشكوٰة علی صدر مرقاة ج۲، ص۶۲۳، باب التشهد)

ملا علي قاري حنفيؒ د ثلٰثه و خمسین د عقد په تفسیر کښې لیکي چه: هو ان یعقد الخنصر و البنصر و الوسطٰی و یرسل المسبحة و یضم الابهام الٰی اصل المسبحة. (مرقات ج۲، ص۶۲۳، باب التشهد)

﴿۲﴾ دوهمه طریقه دا ده چه د شهادت له ګوتې پرته د دریواړو ګوتو عقد جوړ کړي ابهامه ګوته د مقبوضه وسطی ګوتې د پاسه کښیږدي۔ دې عقد ته د ثلاثه و عشرین (۲۳) عقد وایي۔ دا طریقه د عبد الله بن زبیر رضی الله عنه له روایت څخه منقوله ده۔

عن عبد الله بن الزبیرؓ قال كان رسول اللهﷺ اذا قعد یدعوا وضع یده الیمنٰی علی فخذه الیمنٰی و یده الیسرٰی علی فخذه الیسرٰی و اشار باصبعه السبابة و وضع ابهامه علی اصبعه الوسطٰی رواه مسلم. (مشكوٰة ص۹۱)

﴿۳﴾ دریمه طریقه دا ده چه خنصر او بنصر دې غوټه کړي او له وسطٰې او ابهامې څخه حلقه جوړه کړي۔ دا طریقه د وائل ابن حجر په روایت کښې راغلې ده۔

عن وائل بن حجر عن رسول اللهﷺ قال ثم جلس فافترش رجله الیسرٰی و وضع یده الیسرٰی علی فخذه



الیسرٰی و مد مرفقه الیمنٰی علی فخذه الیمنٰی و قبض ثنتین و حلق حلقةً ثم رفع اصبعهٗ یدعوا بها. رواه ابو داؤد. (مشكوٰة ص۹۱، باب التشهد)

پورتنۍ درې واړه طریقې فقهاء کرامو په خپلو خپلو کتابونو کښې ذکر کړې دي او په درې واړو طریقو سره ئې اشاره سُنت او جائزه بللې ده لیکن زمونږ په نزد غوره شوې طریقه دریمه طریقه ده۔ لکه څرنګه چه ملا علي قاري لیکي:

قال الطیبیؒ و للفقهاء فی كیفیة عقدها وجوه احدها ما ذكرناه فی الطریق الاولٰی و هو عقد ثلٰثة و خمسین. و الثانی ان یضم الابهام الی الوسطٰی المقبوضة كا لقابض ثلٰثاً و عشرین فان زبیرؓ رواه كذٰلك. و الثالث ان یقبض الخنصر و البنصر و یرسل المسبحة و یحلق الوسطٰی و الابهام كما رواه وائل بن حجر و الاخیر هو المختار عندها قال الرافعیؒ الاخبار وردت بها جمیعاً فكانهﷺ كان یصنع مرة هٰكذا و مرة هٰكذا. آه. (مرقات شرح مشكوٰة)

پاتې شوه دا خبره چه د اشارې په کولو کښې به ګوته د شهادت په ختمولو باندې پورته نیسي! نو په دې اړه عرض دا دی چه تقریباً ټول فقهاء کرام پرې متفق دي چه د اشهدُ ان لآ اِلٰه اِلاَّ الله په نفی کښې به ګوته پورته کوي او په اِلاَّ الله به ئې بېرته ښکته کوي لیوافق الرفع النفی و الوضع الاثبات. البته ځینې فقهاء کرامؒ د ترمذي شریف د یوه حدیث له مخې د پورته نیولو حکم ورکړی دی۔ او مولانا ګنګوهيؒ هم همدغه قول اختیار کړی دی۔ ملا علي قاريؒ هم په مرقات شرح مشکات کښې دا لیکلي دي چه انه اذا رفعها یستمر علی الرفع و العقد الٰی آخر الصلٰوة.

اوس تاسو چه څرنګه غواړی هغسې اشاره کولی شی، په پورتنیو دریواړو طریقو سره اشاره مسنونه ده او په کوم کیفیت سره چه اشاره وکړی کوم چه په احادیثو کښې راغلي دي نو جائزه ده۔

امام محمد بن حسنؒ په "موطا" کښې د اشارې روایت نقل کوي او لیکي: و بصنع رسول الله ناخذ و هو قول ابی حنیفةؒ. (مرقات شرح مشكوٰة ص۸۵) فقط و الله اعلم.

## تر تکبیر تحریمه وروسته او تر ثناء مخکښې د تسمیه د ویلو مسئله

**سوال:** په لمانځه کښې تر ثناء مخکښې د تسمیه (بسم الله الخ) ویل له کوم حدیث یا د فقهاوو له قول څخه ثابت دي او که نه؟ آیا تر ثناء مخکښې د تسمیه د ویلو لپاره د دلیل په توګه د "كل امر ذی بال لم یبدأ ببسم الله الخ حدیث وړاندې کول درست دي او که نه؟ ځکه چه په عامو درسي کتابونو کښې دا لیکلي دي چه تر ثناء وروسته تعوذ او تسمیه ویل کیږي۔ د نبي کریمﷺ احادیث، د صحابه وؓ اقوال او فقهاء کرام په دې مسئلې کښې څه وایي؟ د مهربانۍ له مخې له تفصیل سره ځواب راکړی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په صورت مسئوله کښې تر ثناء (سبحٰنك اللّٰهم الخ) مخکښې د تسمیه ویل ثابت نه دي بلکه له تکبیر افتتاح وروسته د لاس په تړلو سره د (سبحٰنك اللّٰهم الخ) ویل او له هغه وروسته د تسمیه ویل په احادیثو کښې راغلي او د فقهې په ټولو کتابونو کښې محفوظ دي۔

عن عائشه رضی الله تعالی عنها قالت كان النبیﷺ اذا افتتح الصلٰوة قال سُبحانك اللّٰهم و بحمدِك و تبارك اسمك و تعالٰی جدّك و لا الهَ غیرُك الخ (جامع الترمذی ج۱، ص۵۷، باب ما یقول عند افتتاح الصلٰوة)

عن انس رضی الله عنه قال كان رسول اللهﷺ اذا افتتح الصلٰوة كبّر ثم رفع یدیه حتی یحاذی بابهامیه اُذنیه ثُمّ قال یقول سبحٰنك اللّٰهمّ الخ. (الدار القطنی ص۸۸/۸۹، كتاب الصلٰوة، باب دعاء الاستفتاح بعد التكبیر)

لما قال العلامة ابن نجیمؒ: و وضع یمینه علی یساره تحت سرته مستفتحا (قوله مستفتحا) هو حال من الوضع ای یضع قائلا سبحٰنك اللّٰهم و بحمدك و تبارك اسمك و تعالی جدُّك و لا اله غیرك و قدم انه سنة لروایة الجماعة انه كانﷺ یقول اذا افتتح الصلٰوة. (البحر الرائق شرح كنز الدقائق ج۱، ص۳۰۹، باب صفة الصلٰوة)



# د لمانځه آد اب او خاصیتونه

حضرت العلامه مولانا عبد الحلیم زروبوي صاحبؒ صدر مدرس د ار العلوم حقانیه اکوړه ختك۔

ستاسو په مخکښې مقاله حضرت مرحوم صاحبؒ د یوې سوالنامې په ځواب کښې لیکلې ده۔ پوښتنه دا وه چه د لمانځه د کولو تر څنګ د لمانځه اثرات او خاصیتونه ولې نه لیدل کیږي؟ چه د دې په ځواب کښې حضرت علامه مرحوم دا قیمتي مضمون ولیکه کوم چه د الحق د میاشتنی ګینړه جوړه شوې ده۔ د فتاوٰی له کتاب الصلٰوه سره د مناسبت له مخې د عامې فائدې لپاره په فتاوٰی حقانیه کښې هم شاملیږي۔

(مرتب)

قال الله تعالی: اِنَّ الصَّلٰوةَ تَنْهٰی عَنِ الفحشآء وَ المُنكَرِ. (الآیة)

"بیشکه لمونځ له بې حیایي او بدې خبرې څخه سړی منع کوي"

﴿۱﴾ لمونځ یو شرعي حقیقت دی کوم چه له هر عاقل او بالغ سړی وي او که ښځه په هر حالت کښې مطلوب دی۔ که د صحت حالت وي او که د بیماري، د سفر حالت وي او که د حضر، د جنګ حالت وي او که د امن، سرکاري نوکر وي او که قومي نوکر، که په شخصي مزدوري یا زراعت (کرنې) کښې مصروف وي او که په تجارت او حرفت کښې۔ لنډه دا چه تر څو پورې په انسان کښې هوش او حواس روغ وي د پنځوني لمونځونو پابندي پرې فرض عین دی۔ په هیڅ یوه حالت کښې هم لمونځ ترې نه ساقطیږي۔ البته په هر سړي باندې د هغه د طاقت او استطاعت موافق فرض دی۔ د دې لپاره د حضر او سفر په لمانځه کښې فرق دی او د صحت او بیماري په لمانځه کښې فرق دی۔ همدارنګه د جنګ د حالت په لمانځه او د امن د حالت په لمانځه کښې فرق دی۔ او په دې کښې شك نشته د لمانځه پابندي لمونځ کوونکی له بې حیایي او بدو خبرو څخه منع کوي۔

لیکن څرګنده دې وي چه لمونځ یو څو ځلې پورته کیدلو او ښکته کیدلو ته نه وایي بلکه دا یو شرعي حقیقت دی چه ترکیبي اجزاء لري کوم چه ارکان او فرائض ورته وایي۔ همدارنګه د صحت په شرائطو کښې له دغو دواړو پرته د لمانځه حقیقت خو پریږده د لمانځه ظاهري صورت هم نه شي متصور کیدلی۔ له دغو ارکانو او شرائطو څخه چه یو هم پاتې شي نو لمونځ به له سره را ګرځول کیږي۔ له دې برسیره واجبات، سنن او آداب دي۔ د واجباتو په پاتې کیدو سره د لمانځه بیرته راګرځول واجبیږي او د سنتو په پاتې کیدو سره د لمانځه بیرته راګرځول سُنت دي۔ د مستحباتو او آدابو په پاتې کیدو سره د لمانځه بیرته راګرځول مستحب دي۔

خلاّد بن رافع رضی الله عنه یو بدري صحابي دی یو ځل جومات ته داخل شو او لمونځ ئې وکړ۔ نبي کریمﷺ دا وخت په جومات کښې وو۔ نوموړی صحابي چه لمانځه څخه فارغ شو نو د

سلام په غرض سره د نبي کریمﷺ په خدمت کښې حاضر شو- نبي کریمﷺ د سلام ځواب ورکړ او ورته وئې فرمایل چه ارجع فصلّ فانك لم تصلّ (الحدیث) (بیرته لاړ شه او لمونځ وکړه ځکه چه تا لمونځ نه دی کړی)- همدارنګه نبي کریمﷺ هغه لره درې وارې بیرته ولیږه او له سره ئې د لمانځه د اداکولو حکم ورکړ- د یوه بدري صحابي له شان سره دا لرې خبره ده چه هغه به د لمانځه شروط، ارکان او یا واجبات پریښې وي- غالب ګمان دا دی چه هغه به په ځینو سنتونو کښې کوتاهي کړي وي- په هغه باندې به د نبي کریمﷺ له خوا د لمانځه د بیرته راګرځولو حکم شوی وي- له دې څخه ثرګنده شوه چه لمونځ پرته د سنتو او مستحباتو له اداکولو څخه د تکمیل درجې ته نه شي رسیدلی-

"د صحت شرائط، د لمانځه له فرائضو، واجباتو، سنتو او مستحباتو څخه د لمانځه ظاهري صورت د تکمیل درجې ته رسیږي لیکن د لمانځه د مقبولیدو لپاره هم شرطونه شته- یعنې د زړه استحضار، خشوع او خضوع، انابت او د عبودیت اظهار په دې ډول چه له تکبیر تحریمه څخه را واخله تر سلامه پورې هره ادا یعنې قرأت، تکبیر، تسبیح، تشهد، قیام، تعوذ، رکوع، سجود، د قلب له حضور سره وي او په غافل او بې پروا زړه سره نه وي- ظاهري او باطني عجز او نیاز او د بندګۍ له اظهار سره وي- د قلب دا حضور او باطني انقیاد دلمانځه د روح په درجه کښې دي- له دې پرته د لمانځه د حقیقت تکمیل نه شي کیدلی- په مذکوره آیت کښې نهی عن الفحشآء و المنکر همدې حقیقت له پابندۍ سره په اداکولو باندې مرتب دی- له روح څخه پرته په کامل یا ناقص صورت باندې آثار او نتائج نه شي مرتب کیدلی- د دې مثال د اسې دی لکه د یوه آس له نقش او عکس (کوم چه په دیوال او یا کاغذ باندې وي) څخه د سورلۍ، بار وړلو څوك توقع او هیله ولري- کوم چه د دې حقیقت احکام دي یا له بې ځان بدن یا باډۍ څخه څوك د جاندار د آثارو تقاضا وکړي"-

د دې لنډ تمهید او ګذارش څخه وروسته لږ غور وکړی چه د نن صبا د مسلمانانو لمونځونه د دې معیار مطابق دي- د لمانځه هغه حقیقت چه پنځه وخته ئې اداکول مطلوب دي- په خارج کښې ئې وقوع شته- که چېرته وي نو خامخا په همیشه اداکولو سره ئې دا آثار مرتب کیږي- او که نه وي یوائې له ناقص صورت څخه د آثارو او احکامو توقع عبث او بې فائدې دی-

په نننۍ زمانې کښې اکثره مسلمانان نه خو د لمانځه د صحت او نه د مقبولیت له شرائطو څخه خبر دي او نه د لمانځه له ارکانو، واجباتو، سنتونو او د اسې نورو څخه خبر دي- په د اسې حالت کښې د هغو د لمونځونو صورت که چېرته د حقیقي لمانځه له صورت سره موافق وي نو یوه ناڅاپي حادثه به وي- او که نه وي نو دا څنګه کیدلای شي چه یو څوك د کوم شي د ترکیبي، تکمیلي او تحسیني اجزاوو او د هغو له ترتیب څخه خبر نه وي بیا د هغه شي صحیح ترتیب او ترکیب برابر کړای شي- مګر که چېرته په اتفاقي توګه د اسې وشي-



د نن صبا غیر تعلیم یافته مسلمانان خو پریږده اکثره د مکتبونو او پوهنتونو تعلیم یافته کوم چه له اسلامي تعلیم څخه بې خبره دي، د بسم الله، اعوذ بالله او توحید د کلمې په صحیح تلفظ باندې قادر نه دي نو د هغو له صحیحو معناوو څخه به څنګه خبریږي؟

﴿۲﴾ دوهم ځواب دا چه د لمانځه له بې حیایي او بدي څخه د منع کولو دوه معناوې کیدلی شي- یوه دا چه په لمانځه کښې الله تعالی د منع کولو خاصیت ایښی دی- لکه ثرنګه چه په ځینو دواګانو کښې د ځینو مرضونو د دفع کولو خاصیت ایښودل شوی دی- لیکن لکه ثرنګه چه دوایي په هر حال کښې د مرضونو دافع نه شي جوړیدلی بلکه تاثیر ئې تر څو امورو پورې مشروط وي- چه خاص ترکیب وي، د استعمال خاصه طریقه وي، په خاصه اندازه وي، تر یوې مخصوصې مودې پورې د خوراك همیشه والی او دوام وي، په منځ کښې فاصله جدا والی نه وي، د دواله تاثیر سره د تکر کیدو له شیانو څخه پرهیز وي- د دغو شروطو د تحقق او د موانعو له لرې کولو څخه وروسته دواګانې د مرضونو په لرې کولو کښې مؤثرې کیدلی شي- همدارنګه لمونځ هم چه کله د تاثیر شروط موجود وي او موانع له منځه تللي وي مؤثر بالخاصه جوړیدلی شي-

دوهمه معنی دا چه د لمانځه له بدیو څخه منع کول د تقاضا او مطالبې (غوښتنې) په طریقې سره وي- یعنې لمونځ کوونکی چه کله له خشوع او خضوع سره د الله تعالی د الوهیت اقرار وکړي او د هغه د خالقیت او ربوبیت اظهار وکړي او له ډیر عجز او نیاز سره د خپلې بندګۍ او د الله تعالی د مالکیت او معبودیت اعتراف وکړي- نو د لمانځه دا مخصوص هیئت، هره ادا او هر ذکر له هغه څخه د حال په ژبه غوښتنه کوي چه ای بندګي او غلامي دعوٰی کوونکیهٔ د هغه چه تا ئې د خالقیت او معبودیت اقرار هم کړی دی د هغه له مخالفت څخه منع شه- او له فواحشو او منکراتو څخه بند شه! او خپل عهد او وعده مه ماتوه! اوس که چېرته څوك منع شي یا نه شي لیکن د لمانځه په دې اقتضاء او مطالبې کښې کوم فرق نه راځي- لکه ثرنګه چه پخپله الله تعالی بندوي او منع کوي-

اِنَّ اللّٰهَ یَاْمُرُ بِالْعَدْلِ وَ الاِحْسَانِ وَ اِیْتَآءِ ذِی الْقُرْبٰی وَ یَنْهٰی عَنِ الْفَحْشَآءِ وَ الْمُنْکَرِ (الآیة)

پس چه کوم سړی د الله تعالی په دې منع کولو باندې نه منع کیږي نو د لمانځه په منع کولو باندې د هغه نه منع کیدل کومه د تعجب او حیرانتیا خبره نه ده-

﴿۳﴾ له لمانځه څخه د غفلت اسباب له نوموړي سوال څخه پرته په لاندې ډول دي:

﴿۱﴾ تر څو پورې چه خپل ځان د کوم عمل په اړه د یوه لوړ حاکم (کوم چه په عذاب ورکولو قادر وي) په مخکښې ځواب ورکوونکی و نه بولي نو له هغه څخه غفلت کیږي-

﴿۲﴾ تر څو پورې چه انسان کوم کار د خپلې دنیوي یا اخروي کامیابي لپاره ضروري و نه بولي نو د هغه عمل د کولو پروا نه ساتي-

﴿۳﴾ تر څو پورې چه انسان د کوم عمل روحاني یا جسماني فوائدو، شخصي، انفرادي یا قومي

او اجتماعي منافعو، د دنیوي یا اخروي مصالحو څخه ناخبره وي نو د داسې عمل د کولو غوښتنه د هغه په نزد عبث وي بلکه ډیر واري د اسې عمل ته د کراهت په سترګو ګوري.

﴿٤﴾ تر څو پورې چه انسان د کوم عمل د پرېښودو له بدو نتائجو څخه بې خبره وي، له انفرادي، اجتماعي نقصاناتو څخه ئې ناخبره وي، له دنیوي او اخروي عذابونو څخه ناخبره وي نو بیا هیڅ بله وجه نشته چه د هغه کار خوا ته توجه وکړي.

﴿٥﴾ ترڅو پورې چه د انسان په روحانیت باندې بهیمیت، سُبعیت، شیطنت غالب شوي وي نو انسانیت او روحانیت مفلوج شي او د انسانیت او روحانیت تقاضاوې د اعتداء او پوهې قابل نه جوړیږي. لمونځ او د اسې نورې فریضې ایماني تقاضاوې دي او پخپله ایمان د انساني فطرت تقاضا ده.

﴿٦﴾ د لمانځه ډیر پرېښودونکي د شیطان د دې دوکې ورکولو په هیله د لمانځه د پرېښودلو مرتکب کیږي چه نبي کریم ﷺ د قیامت په ورځ د دوی شفاعت کوي او له عذاب څخه نجات پیدا کوي. شفاعتی لاهل الکبائر (الحدیث)

﴿٧﴾ اکثره عوام کوم چه د لمانځه د پرېښودلو او د اسې نورو کبیره ګناهونو کښې مبتلا دي نو نفس هغوی د الله تعالی وسیع او پراخه رحمت او ناپیدا کنار مغفرت ور ښایي او دوکه ورکوي چه د هغه د دې پراخ رحمت او کامل مغفرت په مخکښې ستاسو ګناهونه هیڅ دي او دا رحمت او مغفرت به خامخا ټولو مسلمانانو ته ورسیږي.

﴿٨﴾ له چا څخه مو اوریدلي دي چه رسول اکرم ﷺ ویلي دي چه "من قال لا اله الاّ الله دخل الجنّة" (الحدیث) لهذا کلمه ویونکي به خامخا جنت ته داخلیږي که عمل وکړي او که نه.

﴿٩﴾ ډیر اهم سبب د دین له حقیقت څخه بې خبري، د اسلام له فروعو او اصولو څخه ناخبري او له اسلامي لارښوونو څخه بیزاري ده. په ننني زمانې کښې جهل تر دې ځایه پورې رسیدلی دی چه د دیني علومو عالم ته تعلیم یافته نه ویل کیږي، په مکتبونو او پوهنتونونو کښې درس او تدریس تعلیم او د علم تحصیل ګڼي. او همدغه زده کوونکو او ښوونکو ته تعلیم یافته وایي. په داسې حال کښې چه په شرعي اصطلاح کښې قرآنکریم، د نبي کریم ﷺ احادیث او د دیني احکامو له علومو پرته ټولو فنونو ته کسب، صنعت، حرفت او فن ویل کیږي. د انجینري فن، د ډاکټري فن، د زراعت او داسې نورو فن. هو! د لغت په اعتبار سره علم ویل ورته صحیح دي ځکه چه په لغتو کښې علم په معنی د پوهیدلو راځي. قال رسول الله ﷺ ثلاثة آیات محکمة و سنةٌ قائمة و فریضة عادلة. (الحدیث) علمونه درې دي. علم القرآن، علم سُنت ثابته، علم الفرائض یا د اجتهادي احکامو علم.

﴿٤﴾ نوموړي کارونه د لمانځه په پرېښودلو کښې کافي دخل لري. له دغو برسیره د لمانځه په پرېښودلو ډیرې خرابۍ دي چه په تفصیل سره ئې بیانول مشکل دي. په لنډه توګه ئې یو څو خرابۍ په لاندې ډول بیانیږي.



﴿١﴾ **روحاني خرابۍ:** لمونځ په حقیقت کښې په مخصوصو هیئتونو کښې خاصو اذکارو ته وایي. یعنې د الله تعالی حمد او ثناء، د قرآن تلاوت، تکبیرات، تسبیحات، تشهد، درود، مناجات له خشوع او خضوع سره. او انساني روح لکه څرنګه ملکي دی نو غذائې هم همدغه ذکر دی چه استکمال، ترقي او ژوند ئې په همدې پورې اړه لري. د لمانځه پرېښودونکی خپل روح له خپلې غذا څخه په محرومولو سره له جاوداني ژوند او انساني کمال څخه بې برخې کړی دی.

﴿٢﴾ روح ته چه کوم نژدې والی له خدای سره له فرائضو او نوافلو څخه لاس ته راوړل کیږي او په هغه باندې چه کومې مهربانۍ او رباني الطاف مرتب کیږي د لمانځه پرېښودونکی خپل روح له هغو څخه محروم کړی دی.

﴿٣﴾ په حدیثو کښې راغلي دي چه "الصلٰوة نور" یعنې لمونځ په دنیا کښې د انساني روح ته لکه د نور غوندې د حق او صواب خوا ته لارښوونه کوي. د الٰهي معارفو د کشف سبب دی. د قبر د تیارو په له منځه وړلو سره د روح لپاره د انشراح او خوشحالۍ سبب دی، د قیامت په تیارو کښې د کشف او رڼا سامان دی. د لمانځه پرېښودونکی د انوارو له دغو ټولو ډولونو څخه خپل روح بند کړی دی او په برزخ او د قیامت په تیارو کښې ئې پریشانه او نامراده کړی دی.

﴿٤﴾ له حدیثو څخه ثابت دي چه پنځګوني لمونځونه له ګناهونو او خطاګانو څخه د پاکوالي لپاره داسې دي لکه د ویالې اوبه د نجاست لپاره. بیلمازه سړی د لمانځه په پرېښودلو سره له ګناهونو څخه روحاني پاکوالی لاس ته نه شوای راوړلی.

## جسماني او مادي نقصانات

﴿١﴾ الله تعالی فرمایي: سِيمَاهُمْ فِي وُجُوهِهِم مِّنْ أَثَرِ السُّجُودِ. (الآیة) د مخونو نورانیت کوم چه د لمانځه د اداکولو اثر دی. بیلمازه سړي ته دا نور او د سجود اثر نه حاصلیږي.

﴿٢﴾ جسم له نجاستونو او بې اودسیو څخه پاکول د لمونځ کوونکي لپاره د استنجاء، اودس او غسل په ذریعې سره ضروري دي. بیلمازه سړي ته چه کله د لمانځه د اداکولو پروا نه وي نو د اودسه او پاکوالي به څه خیال وساتي. لهذا جسم ئې د نجاستونو له تلوّث (ککړوالي) څخه محفوظ نه شي پاتې کیدلی.

﴿٣﴾ لمونځ کوونکی د پنځګوني لمونځونو لپاره پنځه وخته اودسونه کوي چه له مخې ئې د هغه په بدن باندې خیرې، ګرد او غبار نه پاتې کیږي. بیلمازه سړی د داسې جسماني پاکوالي څخه بې برخې وي.

﴿٤﴾ په کسب او ګټې کښې ئې برکت نه پاتې کیږي. بلکه هغه مال کوم چه د لمانځه په وخت کښې ئې د لمانځه د پرېښودلو په صورت کښې لاس ته راوړی دی خبیث مال دی. په نورو پاکو مالونو کښې د ګډیدو په صورت کښې په هغو کښې هم خبث پیدا کوي.

﴿٥﴾ طبعي نشاط (خوښي) او جسماني چُستي کوم چه د بدني عبادتونو له مختلفو حرکاتو

حق په پرېښودو سره له د غو دواړو څخه هم څخه لاس ته راوړل کېږي، بیلمازه سړی د بندګي د حق په پرېښودو سره له د غو دواړو څخه هم بې برخې شوی دی۔ د هرې ذهني پریشانۍ روحاني علاج په لمانځه کښې مشغولیدل دي۔ لکه څرنګه چه اِسۡتَعِيۡنُوۡا بِالصَّبۡرِ وَالصَّلٰوةِ او کان رسول اللّٰه ﷺ اذا فزعه امر نزع الی الصلوٰة. یعنې په مشکلو او سختو کارونو کښې له صبر او صلوٰه څخه امداد تر لاسه کړی، رسول اللّٰه ﷺ به چه په کوم کار کښې پریشانه کیده نو زر تر زره به د لمانځه خوا ته متوجه شو۔ په دې کښې حکمت دا دی چه په لمانځه کښې د مشغولیدو په صورت کښې له هر غم او خفګان څخه بلکه له ماسوی اللّٰه څخه توجه ګرځي او یواځې حقیقي معبود ملحوظ وي۔ همدارنګه له هرې پریشانۍ او فکرونو څخه ذهن فارغیږي او لمونځ کوونکی د خپلو نیازمندانه مناجاتو، ثناء او دعاګانو، تسبیح او تکبیرونو، قرأت او تهلیلونو، عاجزانه رکوع او سجدې په ذریعې د کریم او رحیم معبود رحمت د ځان خوا ته را جذبوي۔ چه په نتیجه کښې ئې مشکل حل کېږي او پریشانۍ ئې له منځه ځي۔ دا دولت یواځې لمونځ کوونکي ته حاصلیدلی شي۔ د لمانځه په برکت سره له تر ټولو لوی هلاکت څخه بچ کېږي کوم چه په قصد سره د لمانځه له پرېښودلو څخه پیدا کېږي او هغه دا چه د ځینو امامانو په نزد که چېرته توبه و نه باسي نو د اسلام له حدودو څخه د اسې سړی ووځي او په نتیجه کښې به ئې دا سړی ارتداداً قتلیږي۔ ځکه چه اللّٰه تعالی فرمایي اَقِيۡمُوا الصَّلٰوةَ وَلَا تَكُوۡنُوۡا مِنَ الۡمُشۡرِكِيۡنَ یعنې په پابندي سره لمونځونه کوی او له مشرکانو څخه مه کېږي۔ د دې ښکاره مطلب دا دی چه په قصد سره لمونځ نه کول په مشرکانو کښې شاملیدل دي۔ همدارنګه په حدیث شریف کښې راغلي دي چه اِنَّ بین العبد و الکفر و الشرك ترك الصلوٰة (رواه مسلم) یعنې بیشکه د بنده او کفر، شرك ترمنځه رابطه د لمانځه پرېښودل دي۔ یعنې د بنده او کفر تر منځه لمونځ پرده او مانع وو۔ چه کله ئې لمونځ پرېښود نو اوس د بنده او کفر تر منځ هیڅ یوه پرده پاتې نه شوه۔ همدارنګه راغلي دي چه قال رسول اللّٰه ﷺ العهد الذی بیننا و بینهم الصلوٰة فمن ترکها فقد کفر. (مشکوٰة شریف) رسول اللّٰه ﷺ وفرمایل چه زمونږ او د هغوی یعنې کفارو تر منځ عهد لمونځ دی۔ نو چا چه لمونځ پرېښود نو هغه کفر وکړ۔ په دې مضمون باندې ډیر حدیثونه راغلي دي چه له وجهې ئې امام احمد صاحبؒ په قصد سره د لمانځه پرېښوذونکي لره د کفر په حدودو کښې داخل ګڼلی دی او د مرتد حکم ئې پرې لګولی دی۔ یعنې نور امامان اګر که په فوري توګه هغه ته کافر نه وایي لیکن دا خو خامخا وایي چه کفر ته نږدې شو۔ که چېرته توبه و نه باسي نو په آخر کښې به د ایمان له حدودو څخه د باندې ووځي۔ لکه څرنګه چه یو څوك په وچ ډاګ یا بیابان کښې سفر کوي او د چینلو اوبه ورسره ختمې شي نو د هغه په اړه ویل کېږي چه فلانی هلاك شو اګر که هغه لا هلاك شوی نه دی۔ لیکن چونکه د هلاکت اسباب ئې پیدا شوي دي نو په آخر کښې به هلاکیږي۔



# باب تسویه الصفوف

## (د صفونو د سیده کولو احکام او مسئلې)

### د ضرورت په وخت کښې د لومړي صف خالي پرېښودل

**سوال:** زمونږ د کلي د جومات د قبلې خوا ته د شمال او مشرق په طرف یو دیوال دی په داسې حال کښې چه د جنوب خوا خالي ده۔ لیکن چه کله جمع درېږي نو ځینې خلك د ګرمي د سختوالي له وجهې د جنوب د برخې خوا ته نه درېږي او د جومات امام صاحب خلك مجبوروي چه لومړی صف پوره کړی ځکه چه ثواب ئې ډیر زیات دی۔ د پوښتنې خبره دا ده چه اول صف کوم چه د باندې په حصې کښې دی او د جومات دننه چه کوم دوهم یا دریم صفونه دي نو آیا دا صفونه په ثواب کښې سره برابر دي او که کوم فرق پکښې شته؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** اول صف له نورو صفونو څخه بهتر دی که دا نور صفونه د جومات په انګړ کښې د ننه وي او که د باندې، چونکه د شریعت له مخې په سختې ګرمۍ کښې د جماعت پرېښودل پروا نه لري نو د لومړي صف پرېښودل خو په طریقه اولٰی سره جائز وي۔ البته لومړي صف ته د نورو صفوفو په مقابله کښې بهتري په احادیثو کښې ضرور ثابته ده۔

عن ابی هریرةؓ قال قال رسول اللّٰه ﷺ خیر صفوف الرجال اولها و شرها آخرها و خیر صفوف النسآء آخرها و شرها اولها. (صحیح مسلم ج۱، ص۱۸۲، باب تسویة الصفوف)

و عن ابی هریرةؓ قال قال رسول اللّٰه ﷺ خیر صفوف الرجال اولها و شرها آخرها و خیر صفوف النسآء آخرها و شرها اولها. (مشکوٰة المصابیح ج۱، ص۱۰۵، باب تسویة الصفوف) و مثله فی معارف السنن ج۲، ص۲۹٤، باب ما جاء فی فضل الصف الاول)

### په صف کښې د درېدلو طریقه

**سوال:** د لمانځه لپاره د صفونو د جوړولو په وخت کښې باید صفونه له کوم ځای څخه شروع شي؟ ځینې وایي چه له ښۍ خوا څخه په داسې حال کښې چه ځینې وایي چه له منځ څخه، که چېرته څوك له کیڼې خوا څخه صف شروع کړي نو حکم به ئې څه وي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته امام او مقتدي یو یو وي نو بهتره دا ده چه مقتدي د امام په ښۍ خوا کښې ودرېږي او کیڼې خوا ته درېدل د اولٰی خلاف دی۔ البته که چېرته مقتدیان زیات وي نو بیا باید چه له منځ څخه صفونه شروع کړي، له ښۍ او کیڼې خوا څخه د صفونو جوړول جائز دي لیکن د اولٰی خلاف دي۔

قال الحصکفیؒ: (و یقف الواحد) و لو صبیًا اما الواحدة فتتاخر (محاذیا) ای مساویا (لیمین امامه) علی المذهب و لا عبرة با لرأس بل با لقدم...... (و الزائد) یقف (خلفه) قال ابن عابدینؒ: (و الزائد خلفه) عدل تبعاً للوقایة عن قول الکنز و الاثنان خلفه لانه غیر خاص با لاثنین بل المراد ما زاد علی الواحد اثنان فاکثر نعم یفهم حکم الاکثر با لاولٰی و

فی القهستانی و کیفیته ان یقف احدهما بحذائه و الآخر بیمینه اذا کان الزائد اثنین، و لو جاء ثالث وقف عن یسار الاوّل و الرابع عن یمین الثانی و الخامس عن یسار الثالث و هکذا. (رد المحتار علی در المختار ج۱، ص۵۶۶، باب الامامة)

و فی الهندیة: اذا کان مع الامام رجل واحد او صبی یعقل الصلٰوة قام عن یمینه و هو المختار و لا یتاخر عن الامام فی ظاهر الروایة هکذا فی المحیط و لو وقف علی یساره جاز و قد اساء کذا فی محیط السرخسی.... و الفضل مکان الماموم حیث یکون اقرب الی الامام فان تساوت المواضع ففی یمین الامام و هو الاحسن هکذا فی المحیط. (الهندیة ج۱، ص۸۸/۸۹، باب الامامة) و مثله فی البحر الرائق ج۱، ص۳۵۳، باب الامامة)

## د نابالغو هلکانو د لویانو په صف کښې د دریدلو حکم

**سوال:** د اوه یا اتو کلونو هلک که چېرته د بالغانو په صف کښې ودریږي نو لمونځ پرې فاسدیږي او که نه؟ کله کله داسې کیږي چه هلک یو وي او په لومړي صف کښې ځای هم ډیر وي او دا هلک په دوهم صف کښې د یواځې دریدو په ځای په لومړي صف کښې دریږي. نو آیا شرعاً داسې کول جائز دي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** بهتره دا ده چه هلک د بالغانو په صف کښې د دریدو په ځای د ځان لپاره ځانته صف جوړ کړي، البته که چېرته هلک یو وي یا ډیر وي لیکن له هغو څخه کوم یو په مخکښې صف کښې ودریږي نو لمونځ پرې نه فاسدیږي لیکن د اسې کول بهتر نه دي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: (ثم الصبیان) ظاهره تعددهم فلو واحداً دخل الصف. قال ابن عابدینؒ: (قوله فلو واحد دخل الصف) ذکره فی البحر بحثاً قال و کذا لو کان المقتدی رجلاً و صبیاً یصفهما خلفه لحدیث انس فصففت انا و الیتیم وراءه و العجوز من ورائنا و لهذا بخلاف المرأة الواحدة فانها تتاخر مطلقاً کا لمتعددات للحدیث المذکور. (رد المحتار علی الدر المختار ج۱، ص۵۷۱، باب الامامة)

و فی الهندیة: اذا کان مع الامام رجل واحد او صبی یعقل الصلٰوة قام عن یمینه و هو المختار....... و اذا کان معه اثنان قاما خلفه و کذٰلک اذا کان احدهما صبیاً..... و لو اجتمع الرجال و الصبیان و الخناثی و الاناث و الصبیات المراهقات یقوم الرجال اقصی ما یلی الامام ثم الصبیان الخ. (الهندیة ج۱، ص۸۸/۸۹، باب الامامة) و مثله فی البحر الرائق ج۱، ص۳۵۳، باب الامامة)

## له امام څخه بغیر له ضرورت نه د لرې دریدلو حکم

**سوال:** یو سړی جومات ته راځي او په امام پسې اقتداء کوي لیکن په صف کښې نه دریږي بلکه کله کله امام په کوټې کښې وي او مقتدي په برنډه کښې په امام پسې دریږي او لمونځ کوي۔ نو د داسې سړي د لمانځه حکم څه دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته دا سړی صفونه پریږدي او یواځې په امام پسې اقتدا کوي نو لمونځ ئې جائز دی لیکن د اولٰی خلاف دی۔

و فی الهندیة: و لو اقتدٰی با لامام فی اقصی المسجد و الامام فی المحراب فانه یجوز کذا شرح الطحاوی



(الهندیة ج۱، ص۸۸، باب الامامة)

قال ابن عابدینؒ: فان المسجد مکان واحد و لذا لم یعتبر فیه الفصل با لخلاء الا اذا کان المسجد کبیراً جداً. (رد المحتار علی در المختار ج۱، ص۵۸۶، باب الامامة) و مثله فی فتاوٰی قاضیخان علی هامش فتاوٰی هندیة ج۱، ص۹۴)

## په لمانځه کښې د ښنگرو او اوږو د لګولو حکم

**سوال:** په لمانځه کښې باید خلک ښنگري او اوږې ولګوي او ودریږي او که پرته یعنې بغیر د اوږو له لګولو څخه هم خپل صفونه جوړولی شي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په لمانځه کښې اصل د صف سیده والی مطلوب وي او له کومو ځینو روایتونو څخه چه د ښنگرو له ښنگرو سره د لګولو حکم راغلی دی نو له هغه څخه مراد برابري ده او حقیقي معنٰی ترې مراد نه ده۔ ځکه چه په یو ځل د ښنگرو او اوږو سره لګول مشکل دي۔

لما قال العلامة الحصکفیؒ: ینبغی ان یامرهم بان یتراصوا و یسدوا الخلل و یسووا مناکبهم و یقف وسطاً. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۵۶۸، باب الامامة)

قال ابن نجیم المصریؒ: و ینبغی للقوم اذا قاموا الی الصلٰوة ان یتراصوا و یسدوا الخلل و یسووا بین مناکبهم فی الصفوف و لا بأس ان یامرهم الامام بذٰلک. (البحر الرائق ج۱، ص۳۵۳، باب الامامة) و مثله فی الفتاوی الهندیة ج۱، ص۸۹، باب الامامة)

## په صف کښې د یواځې دریدلو حکم

**سوال:** په ځینو وختونو کښې داسې کیږي چه کله مونږ د لمانځه په غرض سره جومات ته راځو نو جمع ولاړه وي او په لومړي صف کښې ځای نه وي نو اوس وروسته راتلونکی سړی به آیا په دوهم صف کښې یواځې نیت تړي او که کوم بل سړی به له لومړي صف څخه راکش کوي او خپل خنګ ته به ئې دروي او اقتدا به کوي۔ په داسې حال کښې چه په دې دور کښې داسې کول ډیر مشکل دي۔ نو آیا په دې صورت کښې په دوهم صف کښې یواځې دریدل جائز دي او که څنګه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** بهتره خو دا ده چه یواځې لمونځ و نه کړي بلکه له لومړي صف څخه دې یو بل څوک راکش کړي او له ځان سره دې ودروي او بیا دې د جمعې په لمانځه کښې شامل شي۔ لکه څرنګه چه په ننني دور کښې له دین څخه بې رغبتي او بې شوقي زیاته ده او د جهل له وجهې د لمانځه د فاسدیدلو قوي احتمال وي۔ نو ځکه په د اسې حالت کښې په دوهم صف کښې یواځې دریدل او اقتداء کول څه پروا نه کوي۔

قال الحصکفیؒ: و قدمنا کراهة القیام فی صف خلف صف فیه فرجة للنهی و کذا القیام منفرداً و ان لم یجد فرجة بل یجذب احداً من الصف ذکره ابن الکمال لکن قالوا فی زماننا ترکه اولٰی فلذا قال فی البحر یکره وحده الا اذا لم یجد فرجة. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۶۶۷، باب مکروهات الصلٰوة)

و فی الهندیة: و کذا للمقتدی ان یقوم خلف الصفوف وحدهٗ اذا وجد فرجة فی الصفوف و ان لم یجد فرجةً فی

انه لا یکره فان جرّاء احد من الصف الی نفسه و قام معه الصفوف روی محمد بن شجاع و حسن بن زیاد عن ابی حنیفةؒ فذلك اولی کذا فی المحیط. و ینبغی ان یکون عالماً حتی لا تفسد الصلوٰة علی نفسه کذا فی خزانة الفتاویٰ. (الهندیة ج۱، ص۱۰۷، مکروهات الصلوٰة) و مثله فی مراقی الفلاح علی حاشیة الطحاوی ص۱۹۶، فصل فی المکروهات)

## په لومړي صف کښې دریدل د چا حق دی

**سوال:** د سپین ږیرو په موجودوالي کښې ځوانان په لومړي صف کښې دریدلی شي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د جماعت د لمانځه لپاره په لومړي صف کښې دریدل افضل دي، په دې کښې عمر ته اعتبار نشته. البته د امام با لکل شا ته به داسې سړی باید ودریږي چه د امامت صلاحیت ولري ترڅو چه د ضرورت په وخت کښې خلیفه جوړیدلی شي، په داسې حالت کښې د بې علمه سپین ږیرو په ځای امام ته نژدې د داسې ځوان دریدل بهتر دي چه لمونځ ورکولی شي۔

و کل من یصلح اماماً للامام الذی سبقه الحدث فی الابتداء یصلح خلیفة له و من لا یصلح اماماً له فی الابتداء لا یصلح خلیفة لهٗ کذا فی المحیط. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۹۵، فصل فی الاستخلاف)

عن عبد الله بن مسعود قال قال رسول اللهﷺ لیلنی منکم اولو الاحلام و النهٰی ثم الذی یلونهم ثلثا و ایاکم و هیئات الاسواق. (المسلم ج۱، ص۱۸۱، باب تسویة الصفوف) و مثله فی مشکوٰة المصابیح ج۱، ص۹۸، باب تسویة الصفوف)

## په لومړي صف کښې د ځای د شتون ترڅنګ په دوهم صف کښې د دریدلو حکم

**سوال:** زمونږ په جومات کښې اکثره داسې کیږي چه په لومړي صف کښې بنه ډیر ځای وي لیکن ځینې خلک سره له دې چه په لومړي صف کښې ځای هم وي په دوهم صف کښې دریږي۔ آیا شرعاً داسې کول جائز دي او که مکروه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د صفونو ډکول د جمعې د لمانځه له آدابو څخه دي، که چېرته یو څوك سره له دې چه په لومړي صف کښې ځای وي او په دوهم صف کښې دریږي نو له حدیث سره د مخالفت له وجهې داسې کول مکروه دي۔

عن انس قال قال رسول اللهﷺ اتمّو الصّف المقدم ثم الذی یلیه فما کان من نقصٍ فلیکن فی الصف المؤخر. رواه ابو داؤد. (مشکوٰة المصابیح ج۱، ص۱۰۵، باب تسویة الصفوف)

عن ابی سعید الخدری قال رأی رسول اللهﷺ فی اصحابه تاخرا فقال لهم تقدمو فأتموا بی و لیاتم بکم من بعدکم لا یزال قوم یتاخرون حتی یؤخرهم الله. (رواه مسلم ج۱، ص۱۸۲)

و لما قال ابن عابدینؒ: و علیه فلو وقف فی الصف الثانی داخلها قبل استکمال الصف الاوّل من خارجها یکون مکروها. (رد المحتار ج۱، ص۵۶۹، مطلب فی جواز الایثار با لقُرب)



# باب الجماعة

## (د جماعت د لمانځه احکام او مسئلې)

## د عُذر له وجهې د جماعت د پرېښودلو حکم

**سوال:** مونږ په سعودي عربستان کښې د یوه شرکت کار کوونکي یو لیکن چه کله آذان کیږي نو مونږ غواړو چه کار پرېږدو او جومات ته لاړ شو او په جمعې سره لمونځ وکړو، نو که چېرته داسې وکړو نو د شرکت مالك خفه کیږي. همدارنګه کله کله داسې کیږي هم چه مونږ کله کار پرېږدو نو د مالك ته ترې سخت تکلیف رسیږي او زمونږ تر وهلو پورې خبرې ته هم تیاریږي. په داسې حالت کښې به مونږ څه کوو؟ آیا همدلته به لمونځ کوو او که جومات ته تګ ضروري دی؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په کوم ځای کښې چه د مال د ضائع کیدو او د هلاکیدو خطروي او یاد مالك له خوا د ځان خطر وي نو د ظلم له وجهې تاسو د جمعې لمونځ پرېښودلی شی لیکن چېرته چه تاسو ته موقع په لاس درځي نو خامخا به یا په انفرادي توګه او یا له جمعې سره لمونځ کوی۔

لما قال الحصکفیؒ: و لا علی حال من بینهٖ و بینها مطر و طین...... و ظلمة..... قال ابن عابدینؒ تحت هٰذا القول و لا علی..... ظلمة) یخاف علی نفسه او ماله. (رد المحتار علی الدر المختار ج۱، ص۵۵۵/۵۵۶، باب الامامة)

و فی الهندیة: تسقط الجماعة با لاعذار........ او کان اذا خرج یخاف ان یحبسه غریمه فی الدین...... او یخاف ضیاع ماله. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۸۳، باب الامامة) و مثله فی البحر الرائق ج۱، ص۳۶۷، باب الامامة)

## د دوهم جماعت حکم

**سوال:** د کوم کلي په جومات کښې چه کله خلك یو ځل له جمعې سره لمونځ ادا کړي او لاړ شي نو ځینې کلیوال د دوهم ځل لپاره خلك جمع کوي او له جمعې سره لمونځ ادا کوي۔ آیا د شریعت له مخې د کلي په جومات کښې د دوهم جماعت کوم جواز شته او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د احنافو فقهاوو په نزد د کلي په هغه جومات کښې چه ټاکلی مؤذن او امام ولري دوهم جَماعت مکروه دی. البته په داسې جومات کښې چه ټاکلی امام او مؤذن و نه لري او یا د لارې جومات وي نو په هغه کښې دوهمه جمع جائزه ده، لیکن که چېرته له جومات سره نژدې کومه حجره یا مدرسه وي نو بهتره دا ده چه دوهمه جمعې دې هم هلته وشي۔

قال ابن عابدینؒ: یکره تکرار الجماعة فی مسجد محلة باذان و اقامة الا اذا صلی بهما فیه اولاً غیره اهله او اهله لکن بمخافتة الآذان و لو کرر اهله بدونهما او کان مسجد طریق جاز اجماعاً کما فی مسجد لیس لهٗ امام و لا مؤذن و یصلی الناس فیه فوجاً فوجاً فان الافضل ان یصلّی کل فریق بآذان او اقامة علی حدة کما فی امالی قاضی خان. (رد المحتار علی الدر المختار ج۱، ص۵۵۲، باب الامامة، مطلب فی تکرار الجماعة فی المسجد)

و فی الهندیة: المسجد اذا کان له امام معلوم و جماعة معلومة فی محلة فصلی اهله فیه با لجماعة لا یباح تکرارها فیه بأذان ثان اما اذا صلوا بغیر آذان یباح اجماعاً و کذا فی مسجد قارعة الطریق کذا فی شرح المجمع للمصنف. (فتاوی هندیة ج۱، ص۸۳، باب الامامة) و مثله فی البحر الرائق ج۱، ص۳۴۶، باب الامامة)

## د امام د "رَبَّنَا لَكَ الحَمد" ویلو حکم

**سوال:** امام به له تسبیح وروسته "رَبَّنَا لَكَ الحَمد" وایي او که نه؟ که چېرته ئې ووایي نو په لمانځه کښې څو به کوم فرق نه راځي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** دا مسئله مختلف فیه ده او په دې کښې آسانتیا ده، که چېرته ئې ووایي نو په لمانځه کښې کوم زیاتوالی نه راځي۔ د ډیرو علماوو همدا مسلك دی۔ که چېرته ئې نه وایي نو په لمانځه کښې کوم کمی نه راځي۔ البته ویل ئې بهتر دي۔

قال الحصکفیؒ: (ثم یرفع رأسه من رکوعه مسمعاً) فی الاولو الوالجیة لو ابدل النون لا ما تفسد و هل یقف بجزم او تحریك قولان (و یکتفی به الامام) و قالا یضمّ التحمید سراً. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۴۹۷، باب صفة الصلوٰة)

و فی الهندیة: فان کان اماماً یقول سمع الله لمن حمدهٗ با لاجماع و ان کان مقتدیاً یأتی با لتحمید و لا یأتی با لتسمیع بلا خلاف و ان کان منفرداً الاصح انهٗ یأتی بهما کذا فی المحیط و علیه الاعتماد کذا فی التتارخانیة و هو الاصح هٰکذا فی الهدایة ثم فی الروایة التی تجمع یأتی با لتسمیع حال الارتفاع و اذا استوٰی قائماً قال ربّنا لك الحمد کذا فی الزاهدی و هو الصحیح کذا فی القنیة. (فتاوی هندیة ج۱، ص۷۴، سنن الصلوٰة و آدابها)

## د کور د حفاظت په خاطر د جماعت د پرېښودلو حکم

**سوال:** آیا د کور د حفاظت په خاطر د جمعې د لمانځه پرېښودل جائز دي او که څنګه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** یوازې د تردد او شك له مخې د جماعت پرېښودل جائز نه دي، البته که چېرته د چا دا یقین وي چې د نه موجودوالي په صورت کښې به مې کور ته کوم ظالم تاوان ورسوي او د کور پرده او عزت به مې خراب کړي، یا د مریض مرض به زیات شي نو په دغو صورتونو کښې بیا د جماعت د پرېښودلو ګنجائش شته۔

قال ابن عابدینؒ: تحت هٰذا القول و لا علٰی...... و خوف علی ماله او من غریم او ظالم، یخاف علی نفسه او ماله (قیامه بمریض) ای یصحل بغیبته المشقه و الوحشه کذا فی الامداد. (رد المحتار ج۱، ص۵۵۶، باب الامامة)

و فی الهندیة: تسقط الجماعة با لاعذار...... او کان فیما لمریض او یخاف ضیاع ماله. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۸۳، باب الامامة) و مثله فی البحر الرائق ج۱، ص۳۶۷، باب الامامة)

## له شرعي عذر پرته د جماعت د پرېښودلو حکم

**سوال:** که چېرته یو څوك ځان د نسبت خاوند ښکاره کړي او د ارادت حلقه ئې هم ډېره پراخه وي، د ذکرونو او نفلونو هم ډېر اهتمام کوي لیکن د دې تر څنګ د جمعې د لمانځه پابند نه دی



او اکثره وخت د جمعې لمونځ ترې پاتې وي۔ نو آیا پرته له شرعي عذر څخه د جمعې د لمانځه پرېښودل جائز دي؟ او همد ارنګه له د اسې سړي څخه بیعت کول څنګه دي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته یو څوك پرته له کوم شرعي عذر څخه جماعت پرېږدي او په جمعې باندې د لمانځه اد اکول ښه و نه بولي نو د اسې سړی به فاسق ګڼل کیږي۔ ځکه د فسق له وجهې له د اسې سړي څخه له بیعت کولو اجتناب وکړی ځکه چه په دې باندې د بیعت د منصب سپکاوی راځي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: قال فی البحر هو الراجح عن اهل المذهب (فتسن او تجب ثمرته تظهر فی الاثم بترکها مرة (علی الرجال العقلاء البالغین الاحرار القادرین علی الصلوٰة با لجماعة من غیر حرج)

قال ابن عابدینؒ: تحت (قوله فی البحر) قال فی النهر هو اعدل الاقوال و اقواها و لذا قال فی الاجناس لا تقبل شهادته اذا ترکها استخفافاً و مجانة. (رد المحتار ج۱، ص۵۵۴، باب الامامة)

قال ابن نجیمؒ: و ذکر فی غایة البیان معزیاً الی الاجناس ان تارك الجماعة یستوجب اسائة و لا تقبل شهادته اذا ترکها استخفافاً بذٰلك و مجانة اما اذا ترکها سهواً او ترکها بتاویل بان یکون الامام من اهل الاهواء او مخالفاً لمذهب المقتدی لا یراعی مذهبه فلا یستوجب الاسائة و تقبل شهادته. (البحر الرائق ج۱، ص۳۴۵، باب الامامة) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۸۳، باب الامامة)

## د تکبیر اولٰی د نیولو وخت څومره دی؟

**سوال:** د تکبیر اولٰی د نیولو وخت څومره دی؟ او تر کوم وخت پورې چه مقتدي په امام پسې اقتد اء وکړي نو د تکبیر اولٰی ثواب ورکول کیږي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د تکبیر اولٰی څو صورتونه دي۔ (۱) له امام سره یو ځای په نیت تړلو سره د اقتدا کولو په صورت کښې د تولو په نزد د تکبیر اولٰی ثواب ورکول کیږي۔ (۲) البته تر ثناء وروسته یا تر سورت فاتحه وروسته او له رکوع مخکښې د اقتد اء کولو په صورت کښې نو دا صورتونه اختلافي دي۔ اوسع او صحیح قول دا دی چه د لومړي رکعت په را نیولو سره د تکبیر اولٰی ثواب ورکول کیږي۔

قال ابن عابدینؒ: تظهر فائدة الخلاف فی وقت ادراك فضیلة تکبیرة الافتتاح فعنده با لمقارنة و عندهما اذ کبر فی وقت الثناء و قیل لشروع قبل قرأة ثلاث آیات لو کان المقتدی حاضراً و قبل سبع لو غائباً و قیل بادراك الرکعة و هٰذا اوسع و هو الصحیح. و قیل بادراك الفاتحة و هو المختار. (رد المحتار ج۱، ص۵۲۶، باب صفة الصلوٰة، مطلب فی وقت ادراك فضیلة الافتتاح)

فضیلة تکبیرة الافتتاح فتکلموا فی وقت ادراکها و الصحیح ان من ادراك الرکعة الاولٰی فقد ادرك فضیلة تکبیرة الافتتاح کذا فی الحصر فی باب ابی یوسفؒ. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۶۹، الباب الرابع فی صفة الصلوٰة)

## د مقتدي د التحیاتو له پوره کولو څخه مخکښې د امام سلام ګرځول

**سوال:** په ځینو جوماتونو کښې د لمانځه د اد اکولو اتفاق منځ ته راځي۔ ډیر واري د اسې شوي دي چه مقتدي لا په تشهد، درود یا په دعا کښې وي چه امام سلام اړوي۔ اوس د مقتدي لپاره

څه حکم دی؟ آیا له امام سره به سلام ګرځوي او که خپل تشهد پوره کوي او بیا به سلام ګرځوي؟
بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته امام د مقتدي د تشهد له پوره کولو څخه وروسته سلام واړوي نو مقتدي هم باید سلام وګرځوي ځکه چه د امام متابعت ضروري دی۔ البته که چېرته مقتدي لاتشهد نه وو پوره کړی نو بیا به تشهد پوره کوي او بیا به سلام ګرځوي۔

لما قال العلامة فخر الدين الشهير بقاضی خانؒ: و كذا لو سلم الامام قبل ان يفرغ المقتدى من التشهد فانه يتم التشهد. (الفتاوی القاضی خان علی هامش الهندية ج۱، ص۹۶، فصل فيمن يصح الاقتداء بهٖ و فيمن لا يصح)

## د جومات د موجودوالي تر څنګ په بل ځای کښې د جمعې د لمانځه اداکول

**سوال:** زمونږ د مکتب د شاګردانو تعداد ۷۲۰ دی، او سکول ته په نژدې ښار کښې په دریو جوماتونو کښې د ماسپښین لمونځونه کوي۔ ځیني شاګردان د ماسپښین تر آذان مخکښې د ماسپښین لمونځ کوي او بیا مکتب ته راځي۔ لکه څرنګه چه د مکتب جومات ډېر کوچنی دی لیکن د مکتب صحن ډېر پراخه دی۔ نو آیا په شریعت کښې د مجبورۍ له مخې د مکتب په صحن یا سرای کښې د جماعت د لمانځه اداکول صحیح دي؟ او کوم شاګردان چه د ماسپښین تر آذان مخکښې لمونځونه کوي د هغو د لمونځونو حکم څه دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** ﴿۱﴾ د ماسپښین آذان زمونږ په ښارونو کښې په مستحب وخت باندې کېږي او د ماسپښین وخت له زوال څخه وروسته شروع کېږي۔ که چېرته یو څوک له آذان څخه مخکښې او له زوال څخه وروسته د ماسپښین لمونځ اداکړي نو لمونځ ئې کېږي۔
﴿۲﴾ په جماعت سره د لمانځه اداکولو لپاره شرعي جومات ډېر مناسب او بهتر دی۔ البته که چېرته د مجبورۍ له مخې د مکتب په صحن یا سرای یا په کوم بل ځای کښې د جمعې لمونځ اداشي نو شرعاً به په دې کښې کومه بدي نه وي۔

كما فى الحديث عن ابى ذر جعلت لى الارض طهوراً و مسجدا (رواه ابو داؤد ج۱، ص۷۵)

عن ابى سعيد قال قال رسول اللهﷺ الارض كلها مسجد الا المقبرة و الحمّام. (رواه ابو داؤد و الترمذى و الدارمى). (مشكوٰة ج۱، ص۷۰، باب المسجد)

اخرج الامام ابو عيسىٰ الترمذى عن ابى سعيد الخدرى قال قال رسول اللهﷺ الارض كلها مسجدا الا المقبرة و الحمام. (رواه الترمذى ج۱، ص۴۳) و مثله فى ابى داؤد ج۱، ص۷۰، باب فى المواضع التى لا تجوز فيها الصلوٰة)

## د ډېرلړګو والي په صورت کښې د جمعې د پرېښودلو حکم

**سوال:** که چېرته کوم سړی ډېرلړ غوندې ګډ وي نو آیا هغه ته د جماعت د لمانځه لپاره جومات ته راتلل ضروري دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته په آسانۍ سره جومات ته راتلی شوای نو د هغه لپاره بهتره



دا ده چه جومات ته راشي او په جمعې سره لمونځ اداکړي۔ البته که چېرته ډېر معذور وي او جومات ته راتلل ورته ډېر تکلیف وي نو بیا جومات ته راتګ ورته ضروري نه دی۔

قال ابن عابدينؒ: الاعرج الذى لا يستطيع المشى. (رد المحتار ج۱، ص۵۵۴، باب الامامت)

و تسقط الجماعة با لاعذار...... و المفلوج الذى لا يستطيع المشى. (الفتاوی الهندية ج۱، ص۸۳، الفصل الاول فى الجماعة)

## په لمانځه کښې د کلي مشر ته د انتظار کولو حکم

**سوال:** زمونږ په کلي کښې یو مشر اوسیږي او تر څو پورې چه هغه نه وي راغلی تر هغه وخته پورې امام لمونځ نه راکوي او د هغه انتظار کوي کوم چه په عمومي توګه د هغه د راتګ یقین هم نه وي۔ آیا د شریعت له مخې د جماعت د لمانځه لپاره د چا انتظار کول جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته کوم ضعیف او کمزوری وي او د تل لپاره جومات ته د جمعې د لمانځه لپاره حاضرېږي نو د هغه لپاره انتظار کېدلی شي لیکن د کلي کوم مشر او رئیس ته د انتظار کولو اجازه نشته۔ البته که چېرته له هغه څخه د کوم شر یا بدي خطر وي نو د وخت په لحاظ کولو سره انتظار ورته کیدلی شي۔

قال العلامة الحصكفیؒ: رئيس المحلة لا ينتظر ما لم يكن شريراً و الوقت متسع. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۱، ص۴۰۰، باب الآذان)

ينتظر المؤذن الناس و يقيم للضعيف المستعجل و لا ينتظر رئيس المحلة و كبيرها كذا فى معراج الدراية. (فتاوٰى هندية ج۱، ص۵۷، باب الآذان) و مثله فى طحطاوى على مراقى الفلاح ص۱۰۷، باب الآذان)

## د شیعه امام د اقتداء حکم

**سوال:** د شیعه عقائدو لرونکي امام پسې د اقتداء حکم څه دی؟ که چېرته کوم دائمي امام موجود نه وي نو آیا د ضرورت په وخت کښې د هغه اقتداء جائزه ده او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** زمونږ د ملک اکثره شیعه ګان هغه عقائد لري کوم چه د غالي یعنې پخو شیعه ګانو عقائد دي چه د حضرت علي رضی الله عنه الوهیت، شیخینو رد بد ویل، د قرآن تحریف او په عائشه رضی الله عنها پسې د تهمت غونډې عقائد پکښې شامل دي۔ لهذا د اسې عقیدې لرونکي پسې اقتداء د نه مسلمان والي له وجهې په هیڅ صورت کښې جائزه نه ده۔ البته کوم شیعه ګان چه پاخه شیعه ګان نه وي هغوی د مبتدع په حکم کښې راځي او د هغو په اقتداء کښې لمونځ مکروه تحریمي دی۔

قال ابن عابدينؒ: فى كتب الفتاوٰى نعم لا شك فى تكفير من قذف السيّدة عائشه رضى الله تعالى عنها او انكر صحبة الصديقؓ او اعتقد الالوهية فى علیؓ او ان جبريل غلط فى الوحى او نحو ذٰلك من الكفر الصريح المخالف للقرآن و لٰكن لو تاب تقبل توبة هٰذا خلاصة ما حررناه فى كتابنا الولاة و الحكام. (رد المحتار على الدر المختار ج۳، ص۲۹۴، كتاب الجهاد)

قال العلامة الحصكفیؒ: (و مبتدع) ای صاحب بدعة و هی اعتقاد خلاف المعروف عن الرسول لا بمعاندة بل بنوع شبهة و كل من كان من قبلتنا..... الخ. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص ۵۶۰، باب الامامة)

قال العلامة ابن نجیم المصری رحمه الله: تحت هٰذا القول (و اما المبتدع) و عرفها الشمنی بانها ما احدث علی خلاف الحق المتلقی، عن رسول اللهﷺ من علم او عمل او حال بنوع شبهة و استحسان و جعل دیناً قویماً و صراطاً مستقیماً. آه. (البحر الرائق ج۱، ص ۳۴۹، باب الامامة)

و لما قال العلامة طاهر بن عبد الرشید البخاریؒ: الرافضی ان كان یسُبُّ الشیخینؓ و یلعنهما فهو كافر و ان كان یفضل علیاً علی ابی بكر و عمر رضی الله عنهم لا یكون كافراً لٰكنه مبتدعٌ. (خلاصة الفتاوٰی ج۴، ص ۳۸۱، كتاب الفاظ الكفر)

## په مبتدع پسې د اقتداء حكم

**سوال:** یو سړی د یوه جومات امام دی لیكن د داسې اعمالو مرتكب دی چه په شریعت كښې ئې هیڅ ثبوت نشته. او داسې اعمال د ثوابو په نیت سره تر سره كوي. آیا د داسې ډول بدعاتو كښې په ككړ سړي پسې اقتداء جائزه ده او كه نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** كه چېرته كوم امام د داسې امورو مرتكب وي چه په شریعت كښې ئې كوم ثبوت نه وي او دی ئې د دین امور ګڼي او كوي ئې او خلكو ته هم ترغیب پرې وركوي نو د مبتدع كیدلو له وجهې په داسې سړي پسې اقتداء مكروه ده.

لیكن دا خبره دې څرګنده وي چه په كوم سړي باندې پرته له تحقیق څخه د مبتدع فتوٰی لګول د پوهې خبره نه ده او نه هر یوه كار ته بدعت ویل صحیح دي.

قال العلامة الحصكفیؒ: (و یكره) مبتدع ای صاحبِ بدعة و هی اعتقاد خلاف المعروف عن الرسول لا بمعاندة بل بنوع شبهة و كل من كان من قبلتنا. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص ۵۶۰، باب الامامة)

قال ابن نجیمؒ: تحت هٰذا القول (و المبتدع) و عرفها الشمني بانها ما احدث علٰی خلاف الحق المتلقی عن رسول اللهﷺ من علم او عمل او حال بنوع شبهة و استحسان و جعل دیناً قویماً و صراطاً مستقیماً. (البحر الرائق ج۱، ص ۳۴۹، باب الامامة)

## په جادو كوونكي سړي پسې د اقتداء حكم

**سوال:** یو څوك د جادو او منتر په ذریعې سره مال جمع كوي، ډیر واري د دې عمل له وجهې له غیر الله څخه د استعانت (امداد غوښتنې) غوندې د بدو فعلونو هم مرتكب كیږي، آیا په داسې سړي پسې اقتداء جائزه ده؟ په داسې حال كښې چه كله نوموړی د دې دعوٰی هم كوي چه زه په غیبو باندې پوهیږم؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** پخپله تعویذ كول د شریعت له مخې منع نه دي. البته جادو، له غیر الله څخه د استعانت غوندې له مشركانه الفاظو څخه تعویذ جوړول او منتر لوستل ناجائز او حرام دي.



قال ابن عابدینؒ: قال فی الخانیة امرأة تضع آیات التعویذ لیحبّها زوجها بعد ما كان یبغضها ذكر فی الجامع الصغیر ان ذٰلك حرام و لا یحل آه. و ذكر ابن وصبان فی توجیهه انه ضرب من السحر و السحر حرام آه. و مقتضاه انهٗ لیس مجرد كتابة آیات بل فیه شیء زائد. قال الزیلعی و عن ابن مسعود رضی الله تعالی عنه انهٗ قال سمعت رسول اللهﷺ یقول ان الرقی و التمائم و التولة شرك. رواه ابو داؤد و ابن ماجة. (رد المحتار علی الدر المختار ج۵، ص۲۷۵، كتاب الخطر و الاباحة)

همدارنګه په غیبو باندې د پوهیدلو دعوٰی كول بې بنیاده او باطله عقیده ده. د داسې عقائدو او نظریاتو په درلودونكي سړي پسې اقتداء مه كوی، ځكه داسې خبرې د عقیدې د نه جوړولو ترڅنګ هم حرامې او ناجائزې دي.

قال العلامة الحصكفیؒ: تحت هٰذا القول و یكره امامة...... مبتدع ای صاحبِ بدعة و هی اعتقاد خلاف المعروف عن الرسول لا بمعاندة بل بنوع شبهة و كل من كان من قبلتنا. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص ۵۶۰، باب الامامة)

و فی الهندیة: قال المرغینانیؒ تجوز الصلٰوة خلف صاحب هوٰی و بدعة و فیه و حاصله ان كان هوی لا یكفر به صاحبه تجوز الصلٰوة خلفه مع الكراهة و الا فلا هٰكذا فی التبیین و الخلاصة. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۸۴، باب الامامة)

قال ابن نجیمؒ: هٰذا القول (و المبتدع) و عرفها الشمنی بانها ما احدث علی خلاف الحق المتلقی عن رسول اللهﷺ من علم او عمل او حال بنوع شبهة و استحسان و جعل دیناً قویماً و صراطاً مستقیماً. (البحر الرائق ج۱، ص۳۴۹، باب الامامة)

## د خنثٰی مشكل (نربنځي) د امامت حكم

**سوال:** یو سړی په علم او كمال كښې تر تولو لوړ دی لیكن د جنس له مخې خنثٰی مشكل (نربنځی) دی آیا په نربنځي پسې اقتداء جائز ده او كه نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** كه چېرته یو څوك د علم، فضل او كمال له لحاظه هر څومره لوړ او اعلی وي لیكن چه د جنس له لحاظه خنثٰی مشكل وي نو په هغه پسې اقتداء ناجائزه ده.

قال العلامة الحصكفیؒ: (و لا یصح اقتداء رجل بامرأة) و خنثٰی (و صبی مطلقاً). (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۵۷۶، باب الامامة)

و فی الهندیة: و امامة الخنثٰی المشكل للنساء جائزة ان تقدمهن و ان قام وسطهن فسدت صلٰوته لوجود المحاذات ان كان الامام رجلاً كذا فی محیط السرخسی و للرجال و الخنثٰی مثله لا یجوز. (هندیة ج۱، ص۸۵، باب الامامة) و مثله فی خلاصة الفتاوٰی ج۱، ص۱۴۷، باب الامامة)

## د حنفي مذهبه سړي لپاره د بل مذهب په امام پسې د اقتداء حكم

**سوال:** یو سړی حنفي مسلكه دی لیكن په یوه داسې ملك كښې اوسیږي چېرته چه د امام شافعيؒ، امام احمد بن حنبل او امام مالكؒ مقلدین او یا غیر مقلدین اوسیږي نو په داسې صورت كښې د حنفي مسلكه مقتدي په غیر حنفي پسې لمونځ جائز دی او كه نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته غیر حنفي مسلکه امام د اختلافي مسائلو په رعایتولو کښې مشهور وي یا د مقتدي د هغه په اړه د اختلافي مسائلو د رعایتولو په باره کښې غالب ګومان وي لکه د وینې په بهیدلو او د قی په کولو سره ئې بیا اودس کاوه نو بیا ئې اقتداء پسې جائزه ده او که نه نو نه ده جائزه۔

و فی الهندیة: و الاقتداء بشافعی المذهب انما یصح اذا کان الامام یتحامٰی مواضع الخلاف بان یتوضاء من الخارج النجس من غیر السبیلین کا لفصد و ان لا ینحرف عن القبلة انحرافاً فاحشاً هٰکذا فی النهایة و الکفایة فی باب الوتر. (الهندیة ج۱، ص ۸٤، باب الامامة)

قال ابن عابدینؒ: اما للاقتداء با لمخالف فی الفروع کا لشافعی فیجوز ما لم یعلم منه ما یفسد الصلٰوة علی اعتقاد المقتدی علیه الاجماع انما الاختلاف فی الکراهة. (رد المحتار علی الدر المختار المعروف بشامی ج۱، ص۵٦۳، باب الامامة) و مثله فی فتاوٰی غیاثیة ص ۳۱، باب الامامة و الاقتداء)

## د امامت په منصب کښې د ارث او وصیت حکم

**سوال:** یو سړی کوم چه د یوه جومات باقاعده امام دی۔ له وفات څخه وروسته پخپل ځای کښې د امامت د منصب لپاره له خپلو وارثانو څخه یو څوك تاکلی شي او که نه؟ په د اسې صورت کښې که چېرته هغه د کوم ځانګړي سړي په باره کښې وصیت کړی وي نو د وصیت لحاظ به ئې تر کومه ځایه کیږي۔ او پرته له وصیت څخه هم که چېرته یو څوك په دې کښې د ارث دعوٰی وکړي نو آیا دعوه به ئې صحیح وي او که څنګه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د امامت منصب کوم جائداد او مال نه دی چه په هغه کښې وراثت جاري شي یا د مورث د وصیت رعایت پکښې وشي۔ د امامت د منصب د امام په اهلیت، ذاتي رویه او له علم او عمل پرته د کلیوالو په رضامندي پورې اړه لري۔ د امام له مړینې وروسته چه کلي والي چاته هم امامت وسپاري هغه به د کلي امام ګڼل کیږي۔

قال الحصکفیؒ: (و الاحق با لامامة) تقدیماً بل نصباً مجمع الانهر (الاعلم باحکام الصلٰوة) فقط صحة و فسادا بشرط اجتنابه للفواحش الظاهرة و حفظه قدر فرض و قیل واجب و قیل سنة ثم الاحسن تلاوة للقرأة ثم الاورع ثم الاسن ثم الاحسن خلقاً ثم الاحسن وجهاً ثم الاشرف نسباً. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۵۵۷، کتاب الامامة)

و فی الهندیة: اولٰی با لامامة اعلمهم باحکام الصلٰوة هٰکذا فی المضمرات و هو الظاهر هٰکذا فی البحر الرائق هٰذا اذا علم من القرأة قدر ما تقوم به سنة القرأة هٰکذا فی التبیین و لم یطعن فی دینه کذا فی الکفایة و هٰکذا فی النهایة و یجتنب الفواحش الظاهرة و ان کان غیره اورع منه کذا فی المحیط و هٰکذا فی الزاهدی و ان کا متبحراً فی علم الصلٰوة لٰکن لم یکن له حظ فی غیره من العلوم فهو اولٰی کذا فی الخلاصة. (فتاوٰی هندیة ج۱، ص۸۳، باب الامامة، الفصل الثانی) و مثلی فی البحر الرائق ج۱، ص۳٦۷)



## په بد عمله او مفعول پسې د اقتداء حکم

**سوال:** یو سړی د یوه جومات امام دی لیکن د خپل کردار له مخې ډیر بدنامه دی۔ لکه په مفعولیت کښې مشهور دي نو په د اسې سړي پسې د اقتداء حکم څه دی؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د نوموړي بدنامي که چېرته له امامت څخه مخکښې وي او وروسته ئې پرې توبه ایستلې وي نو اقتداء پسې جائزه ده ځکه چه له ګناه څخه تر توبه کولو وروسته ئې حیثیت زخمي نه پاتې کیږي۔ لیکن که چېرته ئې بدنامي د د اسې فعل له وجهې وي چه اوس هم پکښې مبتلا وي نو د فسق له وجهې په د اسې سړي پسې اقتداء مکروه تحریمي ده۔

قال ابن عابدینؒ: تحت هٰذا القول (و یکره امامة عبد و اعرابی و فاسق) ای من الفسق و هو الخروج عن الاستقامة و لعل المراد به من یرتکب الکبائر کشارب الخمر و الزانی و آکل الربا و نحو ذٰلك. (رد المحتار علی الدر المختار ج۱، ص ۵٦۰، باب الامامة)

و فی الهندیة: تجوز امامة الاعرابی و الاعمٰی و العبد و ولد الزنا و الفاسق کذا فی الخلاصة الا انها تکره هٰکذا فی المتون. (الهندیة ج۱، ص۸۵، باب الامامة) و مثله فی البحر الرائق ج۱، ص۳٤۸، باب الامامة)

## د نکاح شوې ښځې په نکاح لوستونکي امام پسې د اقتداء حکم

**سوال:** یوه سړي خپله نکاح شوې لور میړه ته د ورکولو په ځای له بل سړي سره نکاح وتړله په د اسې حال کښې چه د ا فعل په معاشرې کښې هم ډیر بد ګڼل کیږي نو په د اسې سړي پسې د اقتداء حکم څه دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د منکوحې ښځې له بل چا سره نکاح لوستل د شریعت له مخې ناجائز او حرام دي۔ په نکاح باندې نکاح کا لعدم ګڼل کیږي او د دوهمې نکاح هیڅ حیثیت نه پاتې کیږي۔ که چېرته نوموړي امام په قصد سره د ا کار کړی وي نو د فاسق والي له وجهې اقتداء ورپسې مکروه تحریمي ده۔

قال الحصکفیؒ: (لو ام قوماً و هم لهٗ کارهون، ان) الکراهة (لفساد فیه او لانهم احق با لامامة منه کره) له ذٰلك تحریماً لحدیث ابی داؤد لا یقبل الله صلٰوة من تقدم و هم له کارهون. (رد المحتار علی الدر المختار المعروف بشامی ج۱، ص۵۵۹، باب الامامة)

رجل ام قوما و هم له کارهون فان کانت الکراهة لفساد فیه او لانهم احق با لامامة منه کره لهٗ ذٰلك و ان کان هو احق با لامامة لا یکره لان الجاهل و الفاسق یکره العلام و الصالح. (الفتاوٰی قاضی خان علی هامش الهندیة ج۱، ص۹۲، باب ما یصح الاقتداء فی ما لا یصح) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۸۷، باب الامامة)

## د پټکي په نه په سر کوونکي پسې د اقتداء حکم

**سوال:** آیا چه څوك پټکی نه په سروي په هغه پسې اقتداء جائزه ده؟ زمونږ په ځای کښې ځینې خلك د پګړی په باره کښې ډیر سخت دي۔ تر دې پورې چه د چا په سر باندې پټکی نه وي نو په

هغه پسې اقتداء روا نه بولي او د پټکي نه په سرول د لمانځه فاسدوونکی ګڼي. آیا د قرآن، حدیثو او فقهاوو د اقوالو له مخې دا ګومان درست دی او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په دې کښې هیڅ شك نشته چه د پګړۍ په سرول د جناب نبي کریم ﷺ له سنتونو څخه یو سنت دی لیکن دا سُنت د عادتي سنتونو له جملې څخه دی. یعنې پګړۍ هغه عُمده او ښه جامه ده چه رسول الله ﷺ استعمال کړې او خوښه کړې ئې ده.

قال صدر الشهیدؒ: فسنن الهدیٰ و ان کانت علی سبیل العادة فسنن الزوائد کلبس الثیاب و الاکل با لیمین و تقدیم الرجل الیسرٰی فی الدخول و نحو ذٰلك کلامنا فی الاول الی آخره. (شرح الوقایة ج۱، ص٦۹، کتاب الطهارت)

لکه څرنګه چه د اوږدو او سپینو جامو اغوستل له لمانځه سره خاص نه دي همدارنګه د پټکي په سرول هم له لمانځه سره خاص نه دي ځکه چه د رسول الله ﷺ لباس او جامه د عزت لباس ګڼل کیږي. د دې لپاره د الله تعالی دربار ته د تللو په وخت کښې د عزت لباس اغوستل ډیر بهتر دي. بناء پر دې فقهاء کرام له پټکي سره د لمانځه د اداکولو ترغیب ورکوي. البته که چېرته چا ته پټکی میسر نه شي نو پرته له پټکي سره هم د لمانځه په کولو کښې څه حرج نشته.

قال طاهر بن عبد الرشیدؒ: و فی الاصل لا بأس بان یصلی الرجل فی ثوب واحد متوشحاً و یؤم کذٰلك و المستحب ان یصلی الرجل فی ثلاثة اثواب قمیص و ازار و عمامة اما لو صلی فی ثوب واحد متوشحاً به جمیع بدنه کازار المیت یجوز صلٰوته من غیر کراهة. (خلاصة الفتاوٰی ج۱، ص۷۳، الفصل السادس فی ستر العورة)

قال ابن نجیمؒ: و المستحب ان یصلی فی ثلاثة اثواب قمیص و ازار و عمامة. (البحز الرائق ج۱، ص۲٦۹، باب شروط الصلٰوة)

و فی الهندیة: و المستحب ان یصلّی الرجل فی ثلاثة اثواب قمیص و ازار و عمامة اما لو صلی فی ثوب واحدٍ متوشحاً به تجوز صلٰوته من غیر کراهةٍ. (ج۱ ص۵۹، الباب الثالث فی شروط الصلٰوة)

لیکن دا حکم له امام سره خاص نه دی بلکه د هر لمونځ کوونکي لپاره دی. د پټکي د دې حقیقت له څرګندونې نه وروسته یو ائې د امامت له منصب سره ځانګړې کول په شریعت کښې له زیاتوالي سره برابره ده او نه په سرول ئې د لمانځه له مفسداتو څخه ګڼل له فقهي ذخیرې څخه د ناخبرۍ دلیل دی.

البته که چېرته یو څوك پټکی د عزت او شرافت لباس وګڼي، کوم لوی محفل او مجلس ته د تګ په وخت کښې پټکی استعمالوي لیکن د لمانځه د اداکولو په وخت ئې نه په سروي نو په دې صورت کښې د بذله د جامو په حکم کښې راځي او د هر لمونځ کوونکي لپاره مکروه دی او چه کوم سړی ئې پابند نه وي او نه ئې پټکی عادت ګرځیدلی وي نو په دې صورت کښې د پټکي نه لرونکي امام پسې په اقتداء کښې هیڅ حرج نشته.

هو! په کومو ځایونو کښې چه د پټکي نه په سرول د فتنې او فساد سبب ګرځي نو په داسې ځایونو کښې له پټکي پرته لمونځ مه ورکوی ځکه چه د پټکي د فضیلت په باره کښې



ډیر روایتونه راغلي دي او د فتنې او فساد بندول هم ضروري دي.

## په قاتل پسې د اقتداء حکم

**سوال:** آیا په تائب قاتل پسې اقتداء جائزه ده په داسې حال کښې چه د مقتول وارثانو معاف کړی نه وي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کوم مسلمان په ناحقه قتل کول کبیره ګناه ده، داسې ګناه یوائې په توبې سره نه معاف کیږي بلکه د مقتول د وارثانو خوشحاله کول هم ضروري دي. په نوموړي صورت کښې د ژبني توبه ایستلو تر څنګ د دې سړي فسق او فجور باقي پاتې دی چه د فسق له وجهې اقتداء ور پسې مکروه تحریمي ده. لهذا داسې سړی مستقل امام مه جوړوی.

قال ابن عابدینؒ: (و فاسق) من الفسق و هو الخروج عن الاستقامة و لعل المراد به من یرتکب الکبائر کشارب الخمر و الزانی و آکل الربٰو و نحو ذٰلك. (رد المحتار علی الدر المختار ج۱، ص۵٦۰، باب الامامة)

قال ابن عابدینؒ: تحت هٰذا القول لا تصح توبة القاتل حتٰی یسلم نفسه للقود وهبانیة ای لا تکفیه التوبة وحدها قال فی تبیین المحارم و اعلم ان توبة القاتل لا تکون با لاستغفار و الندامة فقط بل یتوقف علی رضاء اولیآء المقتول. (رد المحتار علی الدر المختار ج٦، ص۵۴۸، کتاب الجنایات)

و فی الهندیة: تجوز امامة الاعرابی و الاعمٰی و العبد و ولد الزنا و الفاسق کذا فی الخلاصة الا انها تکره هٰکذا فی المتون. (ج۱، ص۸۵، باب الامامة)

قال العلامة الشیخ محمد کامل الطرابلسی: لا تصح توبة القاتل حتٰی یسلم نفسه للقود. (الفتاوٰی الکاملیة ص۲۵۲، کتاب الجنایات)

## په نابالغ هلك پسې د اقتداء حکم

**سوال:** د نابالغ امام پسې اقتداء جائزه ده او که نه؟ که چېرته جائزه نه وي نو د فرضو او تراویحو حکم یو دی او که فرق پکښې شته؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په نابالغ پسې مطلقاً اقتداء که په فرضو کښې وي یا په نفلو کښې مکروه تحریمي ده، د نابالغ په ځای یو بالغ سړی امام جوړ کړی.

و فی الهندیة: امامة الصبیّ المراهق لصبیان مثله یجوز کذا فی الخلاصة و علی قول ائمة بلخ یصح الاقتداء با لصبیان فی التراویح و السنن المطلقة کذا فی فتاوی قاضی خان. المختار انه لا یجوز فی الصلوة کلها کذا فی الهدایة و هو الاصح هٰکذا فی المحیط و هو قول العامة وهو ظاهر الروایة. هٰکذا فی البحر الرائق ج۱، ص۸۵، باب الامامة، الفصل الثالث فی بیان من یصح اماماً لغیره)

قال العلامة الحصکفیؒ: (لا یصح اقتداء رجل بأمرأة) و خنثی (و صبیّ مطلقا) و لو فی جنازة و نفل علی الاصح. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۵۷٦، باب الامامة) و مثله فی البحر الرائق ج۱، ص۳۵۹، باب الامامة)

## چه د نسبت خاوند نه وي (بیعت ئې نه وي کړی) په هغه پسې د اقتداء حکم

**سوال:** یوه سړي چه له کوم متبع شریعت پیر څخه بیعت کړی وي د هغه اقتداء په داسي امام پسې چه پخپله نیك او متقي وي لیکن بیعت ئې له چا څخه نه وي کړی جائزه ده او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** مروجه بیعت مقصود بالذات شی نه دی بلکه د نفس د اصلاح یوه ذریعه ده۔ اګر که د فتنې او فساد په دې دور کښې د نفس د اصلاح لپاره له کوم د شریعت تابع پیر څخه له بیعت کولو پرته کومه بله بهترینه او اکسیره نسخه نشته لیکن د متقي والي تر څنګ چه څوك د نسبت خاوند نه وي د هغه لپاره د تفسیق موجب نه دی۔ د دې لپاره د نسبت خاوند مقتدي اقتداء پرته له کوم کراهت څخه په هغه امام پسې چه بیعت ئې نه وي کړی جائزه ده۔ فقهاء کرامو د ترجیح په وجوهاتو کښې بیعت کول نه دي لیکلي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: و الاحق بالامامة الاعلم باحکام الصلٰوة ثم الاحسن تلاوة للقرأة ثم الاورع ای الاکثر اتقاء للشبهات و التقوٰی اتقاء المحرمات ثم الاسن ثم الاحسن خلقاً ثم الاحسن وجهاً ثم الاشرف نسباً ثم الانظف ثوباً. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۵۵۷، باب الامامة

و فی الهندیة: اولٰی بالامامة اعلمهم باحکام الصلٰوة هکذا فی المضمرات و هو الظاهر هکذا فی التبیین هذا اذا علم من القرأة قدر ما تقوم به سنة القرأة هکذا فی البحر الرائق هذا اذا علم من القرأة. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۸۳، باب الامامة، الفصل الثانی فی بیان من هو احق بالامامة)

## د معذور سړي د امامت حکم

**سوال:** یو سړی د اوداسه د نه ساتنې له وجهې شرعي معذور دی او په حاضرینو کښې داسې څوك نشته چه متشرع وي او د جمعې لمونځ خلکو ته ورکړي۔ آیا په داسې صورت کښې په معذور امام پسې اقتداء جائزه ده او که د هغه په ځای به د ډیرې کوم لنډوونکی د جمعې لمانځه لپاره مخکښې کیږي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** معذور امام روغو او غیر معذورو مقتدیانو ته لمونځ نه شي ورکولی۔ په داسې حالت کښې د ضرورت له مخې د فاسق او فاجر اقتداء جائزه ده۔ د دې لپاره د ډیرې کوم لنډوونکی د لمانځه لپاره مخکښې کولی شی۔

قال ابن نجیمؒ: و فی المجتبٰی و هٰذه الکراهة تنزیهة لقوله فی الاصل امامة غیرهم احبّ الیّ و هکذا فی معراج الدرایة و فی الفتاوٰی لو صلی خلف فاسق او مبتدع ینال فضل الجماعة لٰکن لا ینال کما ینال خلف تقی ورع لقولهﷺ من صلی خلف عالم تقی فکانما صلی خلف نبی.

و فیه: و فی السراج الوهاج: فان قلت فما الافضلیة ان یصلی خلف هٰؤلاء او الانفراد قیل اما فی حق الفاسق فالصلٰوة خلفه اولٰی لما ذکر فی الفتاوٰی. (البحر الرائق ج۱، ص۳۴۹، باب الامامة)

قال الحصکفیؒ: (و لا طاهر بمعذور) هذا (ان قارن الوضوء الحدث او طرأ علیه) بعده. (الدر المختار علی



صدر رد المحتار ج۱، ص۵۷۸، باب الامامة)

قال ابن نجیمؒ: تحت هٰذا القول (و طاهر بمعذور) ای و فسد اقتداء طاهر بصاحب العذر المفوت للطهارة لان الصحیح اقوی، حالاً من المعذور و الشیء لا یتضمّن ما هو فوقه و الامام ضامن بمعنی تضمن صلاته صلاة المقتدی. (البحر الرائق ج۱، ص۳۶۰، باب الامامة) و مثله فی الفتاوی الهندیة ج۱، ص۸۴، الفصل الثالث فی بیان من یصلح اماماً لغیره)

## د ساز اوریدونکي امام پسې د اقتداء حکم

**سوال:** یو امام پخپله ساز اوري او له حد څخه تجاوز کوي ډیر وارې د ښځو سندرې ویلو ته جواز ورکوي او په دلیل کښې د واده په یوې موقعې باندې د دف له جواز څخه استدلال کوي او دا هم وایي چه زړه مې غواړي چه زه هم له دغو ښځو سره یو ځای سندرې وبولم۔ دا ښځې ډیرې ښې سندرې وایي۔ د شریعت له مخې د داسې سړي د امامت حکم څه دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په واده کښې له مشروط تغني څخه د سندرو په اوریدو باندې استدلال نیول له شرعي قواعدو څخه د ناخبرۍ دلیل دی۔ په ننني دور کښې د بې حیایی او بې دینی له واقعاتو څخه ډك سازونه که په واده کښې هم وي بیا هم ناروا دي۔ د موجوده زمانې مروجې سندرې له دې وجهې چه د ډیرو مفاسدو مقدمه دي اوریدل ئې ناجائز دي۔ په داسې صورت کښې د امام سندرې اوریدل او بیا ئې د جواز لپاره مواد پیدا کول له فسقیه امورو څخه دي۔ لهذا په داسې فاسق او فاجر پسې اقتداء مکروه تحریمي ده۔

لما قال العلامة ابن نجیمؒ: تحت قوله و من یلعب بالطنبور او یغنی للناس لانة یجمع الناس علی ارتکاب کبیرة کذا فی الهدایة و ظاهره ان الغناء کبیرة........ و فی المعراج: الملاهی نوعان محرم و هو الآلات المطربة من غیر الغناء کالمزمار سواء کان من عود او قصب کالشبابة او غیره کالعود و الطنبور. لما روی ابو امامة انه علیه الصلوة و السلام قال ان الله تعالي بعثنی رحمة للعالمین و امرنی بمحق المعازف و المزامیر و لانه مطرب مصدّ عن ذکر الله تعالي النوع الثانی مباح و هو الدف فی النکاح. (البحر الرائق ج۷، ص۸۸، باب من تقبل شهادته و من تقبل الشهادة)

قال العلامة التور پُشتيؒ: انه حرام علی قول اکثر المشائخ و ما ورع من ضرب الدّف فی العرس کنایة علی الاعلان. (امداد الفتاوٰی ج۲، ص۲۸۳، کتاب النکاح) و مثله فی الهندیة ج۳، ص۴۵۳)

## د تاکلي امام له اجازې پرته د لمانځه د ورکولو حکم

**سوال:** یو سړی د کوم جومات باقاعده امام دی۔ کوم بل سړی چه د هغه په موجود والي کښې د هغه له اجازې پرته د لمانځه د ورکولو لپاره په محراب کښې ودریږي نو په داسې سړي پسې د اقتداء حکم څه دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د تاکلي امام له اجازې پرته بل ته د لمانځه ورکول مکروه دي۔ په داسې صورت کښې په تاکلي امام پسې اقتداء بهتره ده اګر که هغه مفضول وي۔ البته که چېرته د کوم جومات تاکلی امام حاضر نه وي او نه ئې کوم نائب وي نو بیا د تاکلي امام له اجازې

پرته هم یو ځوك د جمعې لمونځ ورکولی شي۔

قال ابن عابدینؒ: تحت هٰذا القول صاحب البیت و مثله امام المسجد الراتب (اولٰی با لامامة من غیره) مطلقاً ای و ان کان غیره من الحاضرین من هو اعلم و اقرأ منه. (رد المحتار ج۱، ص۵۵۹، باب الامامة)

قال ابن نجیمؒ: و امام الامام الراتب فهو احق من غیره و ان کان غیره افقه منه. (البحر الرائق ج۱، ص۳۴۷، باب الامامة) و مثله فی الفتاوی الهندیة ج۱، ص۸۳، باب الامامة)

## د ګروپ په شکل کښې د عکسونو ایستونکي امام پسې د اقتداء حکم

**سوال:** یو سړی د کوم جومات امام دی او د ځو ملګرو په منځ کښې کښیني او د شوق له مخې عکسونه باسي او بیا د اګروپ عکسونه د یادګار په توګه له ځان سره د کیښودلو برسیره په نورو ملګرو هم تقسیموي چه دا خبره ترې ځرګندیږي چه ګوا که دا عمل د ده په نزد جائز دی۔ آیا د اسې امام په امامت کښې پرېښودل کېدلی شي او که باید معزول کړی شي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له ضرورت پرته د کوم روح لرونکي عکس که په کیمرې سره وي او یا په قلم سره جوړول د شریعت په نزد ناجائز دي۔ البته د ضرورت ځایونه له دې څخه مستثنٰی دي۔ پرته له ضرورت څخه د عکسونو اخیستل له فسقي امورو څخه دي، په ځانګړي توګه چه کله یو امام په ښکاره توګه د داسې فسقي امورو ارتکاب کوي۔ په دغو ګناهونو باندې د اصرار تر څنګ ئې که چېرته په معزولولو باندې د فتنې او فساد اندېښنه نه وي نو بیا ئې د مجبورۍ له وجهې کولی شی چه پرې ئې ږدی۔ لیکن بهتره به دا وي چه په کوم نیك امام پسې اقتداء وکړی۔ رسول اللهﷺ یو ائې د قبلې خوا ته د لاړې د تو کولو له وجهې یو سړی له امامت څخه منع کړی وو۔ هو! نوموړی امام که چېرته توبه وباسي او دا کار ګناه وبولي او اصرار پرې و نه کړي نو بیا ئې په اقتداء کښې کوم حرج نشته۔

عن عبد الله بن مسعود قال سمعت رسول اللهﷺ یقول اشد الناس عذاباً عند الله المصوّرون. (مشکٰوة ص۳۸۵، باب التصاویر، الفصل الاول)

قال ابن عابدینؒ: (قوله و فاسق) من الفسق و هو الخروج عن الاستقامة و لعل المراد به من یرتکب الکبائر کشارب الخمر و الزانی و آکل الربا و نحو ذٰلك کذا فی البرجندی. (رد المحتار علی الدر المختار ج۱، ص ۵٦۰، باب الامامة)

و فی الهندیة: تجوز امامة الاعرابی و الاعمٰی و العبد و ولد الزنا و الفاسق کذا فی الخلاصة الا انها تکره هٰکذا فی المتون. (فتاوی هندیة ج۱، ص۸۵، باب الامامة) و مثله فی الخلاصة ج۱، ص۱۴۵، الفصل الخامس عشر فی الامامة و الاقتداء)

## د امام لپاره په محراب کښې د درېدلو حکم

**سوال:** آیا د امام لپاره د جمعې د ورکولو په وخت کښې په محراب کښې درېدل ضروري دي او که څنګه؟ که چېرته کوم امام د جومات په سرای کښې له محراب څخه لرې ودرېږي نو د امامت



حکم ئې څه دی؟ زمونږ په ځای کښې ځینې خلك د سختۍ دې درجې ته رسیدلي دي چه که چېرته امام له محراب څخه لرې ودرېږي او لمونځ ورکړي نو هغه ملامتوي۔ د شریعت له مخې د دې مسئلې حکم څه دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د امامت لپاره په محراب کښې درېدل کوم مستقل سنت نه دي چه له هغه پرته امامت ضائع شي۔ په حقیقت کښې د امام لپاره دا سُنت دی چه د صف مخې ته په منځ کښې ودرېږي۔ چونکه له محراب څخه په عمومي توګه د صف منځنۍ برخه په ګوته کېږي د دې لپاره محراب د دې سُنت د ادا کولو په لاره کښې د معاون توب له وجهې په جوماتونو کښې محرابونه جوړېږي۔ همدا وجه ده چه په محراب کښې طاق جوړول ضروري نه دي۔ لیکن که چېرته امام له محراب څخه پرته د صف مخې ته په منځ کښې ودرېږي نو په هغه پسې اقتداء هیڅ پروا نه لري۔ په داسې صورت کښې محراب پرېښودونکی امام ملامتول په شریعت کښې له زیاتوالي سره برابر دی۔

قال ابن عابدینؒ: یفهم من قوله او الی ساریة کراهة قیام الامام فی غیر المحراب و یؤیده قوله قبله السنة ان یقوم فی المحراب و کذا قوله فی موضع آخر السنّة ان یقوم الامام ازاء وسط الصف الا تری ان المحاریب ما نصبت الا وسط المساجد و هی قد عینت لمقام الامام. و الظاهر ان هٰذا فی الامام الراتب لجماعة کثیرة لئلا یلزم عدم قیامه فی الوسط فلو لم یلزم ذٰلك لا یکره تأمل. (رد المحتار ج۱، ص۵٦۸، مطلب فی کراهیة الامام فی غیر المحراب)

قال العلامة الحصکفیؒ: (یصف) ای یصفهم الامام بان یامرهم بذٰلك قال الشمني و ینبغی ان یامرهم بان یتراصوا و یسدوا الخلل و یسووا مناکبهم یقف وسطاً و خیر صفوف الرجال اوّلها. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۵٦۸، باب الامامة)

و فی الهندیة: ینبغی للامام ان یقف بازاء الوسط فان وقف فی میمنه الوسط او فی میسرته فقد اساء لمخالفة السنة هٰکذا فی التبیین. (ج۱، ص۸۹، باب الامامة) و مثله فی الطحطاوی ج۱، ص۱٦۷، باب الامامة)

## په امامت باندې د اجرت اخیستونکي پسې د اقتداء حکم

**سوال:** آیا یو مالدار سړی په امامت باندې اجرت اخیستلی شي؟ په داسې صورت کښې که چېرته په داسې امام پسې اقتداء میسره نه شي چه هغه اجرت نه اخلي نو په کوم امام پسې به اقتداء بهتره وي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** متاخرینو فقهاوو په امامت باندې اُجرت اخیستل جائز کړي دي۔ لهذا مالدار او فقیر دواړه د امامت په منصب باندې اجرت اخیستلی شي۔ د اجرت د جواز په صورت کښې د اُجرت نه اخیستونکي امام ته کومه ترجیح حاصله نه ده۔ لهذا په دواړو پسې اقتداء یو حکم لري۔

قال ابن عابدینؒ: و یعنی الیوم بصحتها لتعلیم القرآن و الفقه و الامامة و الآذان و یجبر الاجر علی دفع ما قیل. (رد المحتار ج۵، ص ۳۴، باب اجارة الفاسدة)

قال صاحب الهداية: و بعض مشائخنا استحسنوا الاستيجار على تعليم القرآن اليوم لانه ظهر التوانى فى الامور الدينية ففى الامتناع يضيع حفظ القرآن و عليه الفتوىٰ. (باب اجارة الفاسدة ج۳، ص۳۰۱) و مثله فى فتاوى الهندية ج۴، ص۴۴۸، الفصل الرابع فى فساد الاجارة)

## په ړانده سړي پسې د اقتداء حکم

**سوال:** یو سړی مخکښې بینا وو لیکن د کومې بیمارۍ له وجهې د سترګو له لیدنې څخه بې برخې شو. له دې وروسته هغه ځان په پوره پاکوالي کښې نه شي ساتلی. اکثره وخت ئې جامې د بې خبرۍ له وجهې ناپاکې وي او همدارنګه د قبلې تمیز هم نه شي کولی. د قبلې په تعین کښې ورته د بل سړي د مدد ضرورت وي. آیا په داسې سړي پسې لمونځ صحیح دی او د امامت په منصب باندې پاتې کیدلی شي؟ په داسې حال کښې چه له ده نه بل بهتر عالم هم پیدا کیږي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** ړوند سړی که چېرته له نجاست څخه په ځان ساتنې باندې قادر نه وي نو په هغه پسې لمونځ مکروه تحریمي دی لیکن هر ړانده سړی غیر محتاطه بلل د عقلمندي خبره نه ده. کوم ړوند سړی چه له نجاست څخه د ځان ساتنې اهتمام کولی شي نو بیا په هغه پسې د لمانځه په اداکولو کښې هیڅ کراهیت نشته. ځکه چه نبي کریم ﷺ حضرت ابن ام مکتوم رضی الله عنه د مدینې منورې امام جوړ کړی وو او په داسې حال کښې چه هغه ړوند وو. بلکه که چېرته کوم ړوند سړی له نورو څخه ښه عالم او ښه قاري وي نو بیا ئې امامت له نورو څخه افضل دی.

و قال ابن نجيمؒ: و قيد كراهة امامة الاعمىٰ فى المحيط و غيره بان لا يكون افضل القوم فان كان افضلهم فهو اولىٰ. (البحر الرائق ج۱، ص۳۴۸، باب الامامة)

قال ابن عابدينؒ: قال فيه كراهة الاعمىٰ فى المحيط و غيره بان لا يكون افضل القوم فان كان افضلهم فهو اولىٰ. (رد المحتار ج۱، ص۵۶۰، باب الامامة) و مثله فى الهندية ج۱، ص۸۵، باب الامامة، الفصل الثالث فى بيان من يصح اماماً لغيره)

## په ژبې کښې د لکنت لرونکي امام پسې د اقتداء حکم

**سوال:** زمونږ د جومات د امام په ژبې کښې لُکنت دی او په صحیح طریقې سره الفاظ نه شي ادا کولی او اکثره الفاظ غلط وایي. آیا په داسې امام پسې اقتداء صحیح ده او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د کوم سړي په ژبې کښې چه لُکنت وي او له کوشش سره سره الفاظ صحیح نه شي ادا کولی نو د هغه لمونځ پخپل حق کښې صحیح دی لیکن د نورو خلکو لپاره چه په ژبو کښې ئې لُکنت نه وي امام نه شي جوړیدلی. البته که چېرته امام صاحب سره له دې



چه په ژبې کښې ئې لُکنت وي الفاظ صحیح ادا کولی شي اګر کهلړ بند بند ئې وایي نو په هغه پسې اقتداء صحیح ده.

و لا يجوز امامة الالثغ الذى لا يقدر على التكلم ببعض الحروف الا لمثله اذا لم يكن فى القوم من يقدر على التكلم بتلك الحروف فاما اذا كان فى القوم من يقدر على التكلم بها فسدت صلٰوته و صلٰوة القوم. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۸۶، باب الامامة، الفصل الثالث فى بيان من يصح اماماً لغيره)

امامة الالثغ لغير ذكر الامام الفضلى انه يجوز لان ما يقول صار لغة لهٗ و قال غير صحيح. (خلاصة الفتاوى ج۱، ص۱۴۸، باب الامامة، الفصل الخامس عشر) و مثله فى الدر المختار على صدر رد المحتار ج۱، ص۵۸، باب الامامة)

## د قاري په موجودوالي کښې په غیر قاري پسې د اقتداء حکم

**سوال:** په کوم ځای کښې سره له دې چه عالم، فاضل او قاري موجود وي او جاهل سړی لمونځ ورکړي په داسې حال کښې چه په قرائت باندې هم قادر نه وي نو آیا په داسې صورت کښې د جاهل سړي لپاره د لمانځه ورکول څه حکم لري؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په عرف کښې د قاري اطلاق په مجوّد (چه تجوید ئې کړی وي) باندې کیږي لیکن د فقهاوو په اصطلاح کښې ترې دا مراد نه دی. که چېرته د قرائت له فن څخه خبر قاري په یوه داسې سړي پسې اقتداء وکړي کوم چه په عام قرائت باندې قادر وي لیکن د قرائت له فن څخه کما حقه خبرتیا و نه لري نو له دې څخه د قاري په لمانځه باندې هیڅ اثر نه پریووزي. په داسې حالت کښې که چېرته له مروّج قاري پرته کوم غیر قاري امام وي نو مجوّد قاري د امام له اجازې پرته لمونځ نه شي ورکولی. البته که چېرته کوم سړی د دومره آیتونو چه لمونځ پرې روا کیږي په قرائت باندې قادر نه وي نو د قاري په موجودوالي کښې په داسې سړي پسې اقتداء جائزه نه ده.

امامة الامى قوماً اُمّيين جائزة كذا فى السراجية اذا ام امى اميا و قارئاً فصلٰوة الجميع فاسدة عند ابى حنيفةؒ و قال لا صلٰوة القارى وحده و اما اذا صلّوا وحدانا فقيل انه على الخلاف و قيل يصح و هو الصحيح. هكذا فى شرح مجمع البحرين للمصنف. (الهندية ج۱، ص۸۵، باب الامامة، الفصل الثالث فى بيان من يصح اماماً لغيره)

و لا يصح اقتداء القارى با لاُمّى. (خلاصة الفتاوى ج۱، ص۱۴۶، الفصل الخامس عشر فى الامامة) و مثله فى الدر المختار على صدر رد المحتار ج۱، ص۵۷۹، باب الامامة.

## په یوه جومات کښې د ګڼو امامانو حکم

**سوال:** زمونږ په کلي کښې یو جومات دی چه درې امامان ئې دي. له هغو څخه یو ئې د پنځلسو امامانو د ثابتولو کوشش کړی دی. په داسې حال کښې چه حضرت تهانوي صاحبؒ د بهشتي زیور په یوولسمې برخې ۸۰۳/۵۳ کښې لیکلي دي چه په یوه جومات کښې د یوه امام په موجودوالي کښې دوهم امام پرته له اجازې د جمعې د ورکولو حق نه لري او حواله ئې په دُر

مختار باندې ورکړې ده۔ اوس پوښتنه دا ده چه د یوه جومات څو امامان کیدلی شي او که چېرته نه شي کیدلی نو څه وجوهات لري؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** بهتره دا ده چه په یوه جومات کښې یو امام وي او په هغه باندې ټول کلي وال اتفاق وکړي او په همدې باندې د اُمت تواتر راغلی دی۔ او تر څو پورې چه تاکل شوی امام موجود وي نو د هغه له اجازې پرته بل څوك د امامت د کولو حق نه لري۔

قال العلامة الحصکفیؒ: و اعلم ان صاحب البیت و مثله امام المسجد الراتب (اولٰی با لامامة من غیره) مطلقاً. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۵۵۹، باب الامامة)

قال ابن نجیمؒ: امام الامام الراتب فهو احق من غیره و ان کان غیره افقه منه. (البحر الرائق ج۱، ص۳۴۷، باب الامامة) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۸۳، باب الامامة)

که چېرته د کلي خلکو له مخکې څخه کوم امام نه وي مقرر کړی او دا اراده ولري چه دوه یا درې یا تر دې زیات امامان نیسي نو د شریعت له مخې جائز دي لیکن د دې خبرې خیال ساتل ضروري دي چه په یوه وخت کښې دوه یا تر دوو زیاتې جمعې و نه شي او که نه نو ټول خلك به ګنهګار وي۔

## د بل مذهب په مطابق د لمانځه د ورکولو حکم

**سوال:** زه په یوه داسې ځای کښې چه هلته ټول خلك د شافعي او مالکي مذهب پیروان دي، آیا زه د خپل مسلك په پرېښودلو سره په بل مسلك باندې لمونځ ورکولی شم او که نه؟ د مثال په توګه رفع الیدین، په زوره آمین ویل او د سهار په لمانځه کښې دعا ویلی شم او که نه؟ د شریعت له مخې به د دې حکم څه وي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** خپل مذهب د سپك او کمزوري په ګڼلو سره پرته له کوم دلیل سره ئې پرېښودل د شریعت له مخې جائز نه دي بلکه فقهاء کرامو په داسې سړي باندې د تعزیر حکم لګولی دی۔ لهذا په داسې ځای کښې خپل حنفي مسلك د حرص او طمعې په خاطر پرېښودل او په بل مذهب باندې لمونځ ورکول یو بد عمل دی۔

لما قال العلامة الحصکفیؒ: ارتحل الی مذهب الشافعیؒ یعزر قال ابن عابدینؒ: ای اذا کان ارتحاله لا لغرض محمود شرعا اما انتقال غیره من غیر دلیل بل لما یرغب من عرض الدُّنیا و شهوتها فهو المذموم الاثم المستوجب للتادیب و التعزیر لارتکابه المنکر فی الدین و استخفافه بدینه و مذهبه آه ملخصاً. و فیها عن الفتاوی النسفیة الثبات علی مذهب ابی حنیفة خیر و اولٰی قال و هٰذه الکلمة اقرب الی الالفة. (رد المحتار ج۳، ص۲۰۹، باب التعزیر)

حنفی ارتحل الی مذهب الشافعی رحمه الله تعالی یعزر کذا فی جواهر الاخلاطی قال الصحیح قوله ارتحل الی مذهب الشافعی یعزر ای اذا کان ارتحاله لا لغرض محمود شرعاً کما افاده فی التاتارخانیة. (الفتاوی الهندیة ج۲، ص۱۶۹، فصل فی التعزیر)



## په اودسه کښې د شك په حالت کښې د لمانځه د ورکولو حکم

**سوال:** د اودسه له کولو وروسته ما ته په اودسه کښې شك پیدا کیږي او په دې خبرې مې یقین نه پاتې کیږي چه زما اودس باقي پاتې دی او که له منځه تللی دی۔ او خلك مې لمانځه په مخکښې کیدو باندې مجبوروي۔ آیا د داسې شك په حالت کښې زه د جمعې لمونځ ورکولی شم او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** معذور سړی د امامت لائق نه دی، هغه ته په کار دی چه له امامت څخه ځان وساتي۔ لیکن یوازې د شك په بنیاد سره د امامت پرېښودل هم مناسب نه دي۔ البته چه کله ئې یقین وشي او قرائن هم موجود وي چه اودس مې مات شوی دی نو بیا په داسې صورت کښې امامت جائز نه دی۔ البته د شك او تردّد په صورت کښې د امامت په کولو کښې کومه مضائقه نشته۔

عن ابی هریرةؓ قال قال رسول اللهﷺ اذا وجد احدکم فی بطنه شیئاً فا شکل علیه اخرج منه نسی ام لا فلا یخرجن المسجد حتّٰی یسمع صوتا او یجد ریحاً. رواه مسلم. (مشکٰوة ج۱، ص۴۵، باب ما یوجب الوضوء)

عن عباد بن تمیم عن عمه انه شکی ان رسول اللهﷺ الرجل الذی یخیل الیه انه یجد فی الصلٰوة فقال لا ینفتل او لا ینصرف حتی یسمع صوتاً او یجد ریحاً. (بخاری ج۱، ص۲۵، کتاب الوضوء، باب لا یتوضؤ من شك حتی ) و مثله فی المسلم ج۱، ص۱۵۸، باب طهارة جلود المیتة)

## د مور زاده کوسه (هغه څوك چه ږیره ئې نه وي) د امامت حکم

**سوال:** یو سړی د کوم جومات امام دی او تقریباً ۲۲ کلن دی لیکن مورزاده کوسه (ږیره نه لري) دی آیا په داسې امام پسې اقتداء صحیح ده او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته د بلوغ د مودې د تیریدو تر څنګ هم د چا ږیره را نه شي نو اقتداء ورپسې جائزه ده۔ البته که چېرته صبیح الوجه (ښائسته مخی) وي نو بیا اقتداء ورپسې مکروه ده۔

قال ابن عابدینؒ: (قوله و کذا تکره خلف امرد) الظاهر انها تنزیهیة ایضاً و الظاهر ایضاً کما قال الرحمتی ان المراد به الصبیح الوجه لانه محل الفتنة و هل یقال هُنا ایضاً اذا کان اعلم القوم تنتفی الکراهة فان کانت علة الکراهة خشیه الشهوة و هو الاظهر فلا و ان کانت غلبة الجهل او نفرة الناس من الصلٰوة خلفه فنعم تامل. و الظاهر اذا العذار الصبیح المشتهي کا لامرد تامل. هذا و فی حاشیة المدنی عن الفتاوی العفیفة. سئل العلامة الشیخ عبد الرحمٰن ابن عیسی المرشدی عن شخص بلغ من السّنّ عشرین سنة و تجاوز حد الانبات و لم ینبت عذاره فهل یخرج بذٰلك عن حد الامردیة و خصوصاً قد نبت له شعرات فی ذقنه تؤذن بانه کهس من مستدیری اللحی فهل حکمه فی الامامة کا لرجال الکاملین ام لا اجاب سئل العلامة الشیخ احمد بن یونس المعروف بابن الشبلي من متاخری علماء الحنفیة عن هٰذه المسئلة فاجاب با لجواز من غیر کراهة و ناهیك به قدوة. و الله اعلم. (رد المحتار علی الدر المختار ج۱، ص۵۶۲، باب الامامة)

قال فی الخلاصة و فی شرح القدوری یجوز امامة الامرد و اذا کان بالغاً و یکره اذا کان صبیح الوجه. (خلاصة الفتاوٰی ج۱، ص۱۴۸، الفصل الخامس عشر فی الامامة و الاقتداء)

## د امام لپاره ضروري صفتونه

**سوال:** یو امام بايد کوم کوم صفتونه ولري چه که چېرته نه وي پکښې نو د داسې عظیم منصب اهل به نه وي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** امام چه د علم او تقوٰی په صفتونو باندې ښومره ښائسته وي نو دا به د هغه خصوصیت ګڼل کیږي۔ البته په عمومي توګه د امام لپاره په لاندیني صفاتو متصف کیدل ضروري دي۔ (۱) اسلام (۲) بلوغ (۳) عقل (٤) نارینتوب (٥) علم او قرائت (٦) له عذرونو څخه روغوالی۔

قال ابن عابدینؒ: و شروط الامامة للرجال الاصحاء ستة اشياء الاسلام و البلوغ و العقل و الذكورة و القراءة و السلامة من الاعذار كالرعاف و الفافاة و التمتمة و اللثغ. (رد المحتار ج۱، ص ۵۵۰، باب الامامة)

قال الشرنبلالیؒ: شروط صحة الامامة للرجال الاصحاء ستة اشياء الاسلام و هو شرط عام فلا تصح امامة منكر البعث او خلافة الصديق او صحبته او يسبّ الشيخين او ينكر الشفاعة الى آخره. (مراقی الفلاح على حاشية الطحطاوی ص ۱۵٦، باب الامامة)

## د سود له روپو څخه د تنخواه اخیستونکي امام پسې د اقتداء حکم

**سوال:** د یوه ښار د سټیټ بانك په شاوخوا کښې یو جومات دی کوم چه د سټیټ بانك په ملکیت کښې دی۔ که چېرته یو څوك د بانك نوکر وي یا یو اځې د همدې جومات امام وي په داسې حال کښې چه د سټیټ بانك کاروبار له هرې وجهې څخه په سود باندې ولاړ دی۔ او امام صاحب ته هم د سود له همدغو روپو څخه تنخواه ورکول کیږي۔ آیا په داسې امام پسې لمونځ کول صحیح دي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د جومات په امامت کښې پخپل ذات کښې کوم ناښائسته کار نشته۔ البته د داسې جومات امامت په اجرت سره کول چه اُجرت ئې د سود له کاروبار څخه ورکول کیږي چه د حرام خوري له وجهې فسق دی۔ او د فسق له وجهې په داسې امام پسې اقتداء مکروه ده۔

قال ابن عابدینؒ: تحت هذا القول (يكره امامة عبد و اعرابی و فاسق و اعمٰی) (قوله فاسق) ای من الفسق و هو الخروج عن الاستقامة و لعل المراد به من يرتكب الكبائر كشارب الخمر و الزانی و آكل الرباء و نحو ذٰلك. (رد المحتار ج۱، ص ۵٦۰، باب الامامة)

و فی الهندية: تجوز امامة الاعرابی و الاعمٰی و العبد و ولد الزنا و الفاسق كذا فی الخلاصة الا انها تكره هٰكذا فی المتون. (فتاوی هندية ج۱، ص۸۵، الفصل الثالث، باب الامامة) و مثله فی خلاصة الفتاوی ج۱، ص۱٤۵، الفصل الخامس عشر فی الامامة)

البته که چېرته امام ته اُجرت د بانك له روپو څخه نه ورکول کیده بلکه له کومې بلې



ذریعې څخه تنخواه ورکول کیدله لکه نژدې کلیوالو له خپل ځانه تنخواه ورکوله نو بیا پرته له کراهیت څخه اقتداء ورپسې جائزه ده۔

## د سرو جامو په اغوستونکي امام پسې د اقتداء حکم

**سوال:** د یوه جومات امام سرې جامې اغوندي او په همدغو جامو کښې لمونځ هم ورکوي نو آیا په همدغو جامو کښې په نوموړي امام پسې اقتداء جائزه ده او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د سرو جامو په اغوستلو کښې د علماوو اختلاف دی ځینې ئې د جواز قائل دي او ځینې ئې د نه جواز قائل دي۔ او په احنافو کښې هم دا اختلاف پیدا کیږي لیکن راجح قول دا دی چه د سرو جامو اغوستل مکروه تنزیهي دي۔ لهذا په دې بنیاد باندې لمونځ به هم مکروه تنزیهي وي۔ د دې لپاره په داسې سرې پسې اقتداء جائزه ده۔ هو! که چېرته د سرو جامو له اغوستلو څخه له کومې بې دینې ډلې سره د تړون ښکارول مقصود وي نو د الله تعالی په دربار کښې د داسې امتیازي حیثیت درلودونکي سړي پسې له اقتداء څخه باید پرهیز وشي۔

عن براء قال ما رأيت عن ذی لمة فی حلّة حمراء احسن من رسول اللهﷺ له شعر يضرب منكبيه بعدی ما بين المنكبين لم يكن با لقصير و لا با لطويل. (ترمذی ج۱، ص۳۰۲، ابواب اللباس، باب ما جاء فی الرخصة فی الثوب الاحمر.

قال شمس الائمة السرخسی و فيه دليل انه لا بأس بلبس الثوب الاحمر. (شرح سير الكبير ج۱، ص۱۱۵، باب السلام و العُروسية)

قال العلامة الحصكفیؒ: (و لا بأس بسائر الالوان) و فی المجتبیٰ و القهستانی و شرح النقاية لابی المكارم لا بأس بلبس الثوب الاحمر و مفاده ان الكراهية تنزيهية لكن صرح فی التحفة با لحرمة فافاد انها تحريمية و هی المحمل عند الاطلاق. (رد المحتار ج٦، ص۳۵۸، كتاب الكراهية، فصل فی اللبس) و مثله فی فتاوی هندية ج۵، ص۳۳۲)

## د پلار د جنازې نه کوونکي امام پسې د اقتداء حکم

**سوال:** د یوه جومات امام له خپلو والدینو څخه د دنیاوي معلاملاتو په سره خفه دی۔ او د دې خفګان په بناء باندې ئې نور ورونه او خویندې هم کوم تعلق نه ورسره ساتي۔ بیا نوموړي امام د خپل پلار د وفات په مرض کښې نه د هغه عیادت او پوښتنه وکړه او نه د نورو ورونو د ویرې له وجهې د هغه د جنازې په لمانځه کښې شریك شو۔ نو آیا په داسې امام پسې به د اقتداء حکم څه وي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له والدینو څخه خفه کیدل ډیر بد کار دی۔ بیا د هغو په عیادت او جنازې کښې نه شریکیدل اقبح القبائح دی۔ لیکن که چېرته د کوم شرعي او جائز کار له وجهې زوی له خپل پلار څخه ناراض وي نو بیا اقتداء ورپسې صحیح ده۔ البته که چېرته په کوم غیر شرعي کار یا په شرعي امورو کښې له حد څخه د تجاوز په کولو سره د پلار په حق کښې

کوتاهي کوي نو د فسق له وجهې په هغه پسې اقتداء مکروه ده۔

قال ابن عابدينؒ: تحت هذا القول (يكره امامة عبد و اعرابى و فاسق و اعمٰى) اى من الفسق و هو الخروج عن الاستقامة و لعل المراد به من يرتكب الكبائر كشارب الخمر و الزانى و آكل الربٰو و نحو ذٰلك. (رد المحتار ج۱، ص ۵۶۰)

و فى الهندية: تجوز امامة الاعرابى و الاعمٰى و العبد و ولد الزناء و الفاسق كذا فى الخلاصة الا انها تكره هٰكذا فى المتون. (فتاوٰى هندية ج۱، ص۷۵، باب الامامة، الفصل الثالث) و مثله فى خلاصة الفتاوٰى ج۱، ص۱۴۵)

## د کافر په اقتداء کښې د ادا شویو لمونځونو حکم

**سوال:** یو سړی له ډیرې مودې راهیسې د کوم جومات امام پاتې شوی دی۔ وروسته څرګنده شوه چه د خپلو عقائدو له لحاظه کافر او د اسلام له دائرې څخه وتلی دی۔ آیا په د اسې سړي پسې د ادا شویو لمونځونو بیرته راګرځول واجب دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته په کوم سړي پسې د اقتداء د کولو په وخت کښې د هغه د عقائدو په باره کښې صحیح معلومات نه وي او وروسته د هغه د کفر په باره کښې مو یقین وشي نو د ادا شویولمونځونو په باره کښې احتیاط دادی چه بیرته را وګرځول شي۔

و فى الهندية: رجل ام قوماً شهراً ثم قال كنتُ مجوسياً فانه يجبر على الاسلام و لا يقبل قوله و صلٰوتهم جائزة و يضرب ضرباً شديداً و كذا لو قال صلّيت بكم المدة على غير وضوء و هو ماجن لا يقبل قوله و ان لم يكن كذٰلك و احتمل انه قال على وجه التورع و الاحتياط اعادوا صلٰوتهم و كذا اذا قال كان فى ثوبى قذر كذا فى الخلاصة و كذا اذا بان ان الامام كافر او مجنون او امرأة او خنثٰى الى آخره. (الفتاوٰى الهندية ج۱، ص۵۷)

قال العلامة الحصكفىؒ: (و اذا ظهر حدث امامه) و كذا كل مفسد فى رأى مقتد (بطلت فيلزم اعادتها) لتضمنها صلٰوة المؤتم صحة و فساداً (كما يلزم الامام اخبار القوم اذا امهم و هو محدث او جنب) او فاقد شرط او ركن و هل عليهم اعادتها ان عدلا نعم و الا ندبت و قيل لا لفسقة باعترافه و لو زعم انه كافر لم يقبل منه لان الصلٰوة دليل الاسلام و اجبر عليه (با لقدر الممكن) بلسانه او (بكتاب او رسول عل الاصح). (الدر المختار على هامش رد المحتار ج۱، ص۴۳۷، باب الامامة) و مثله فى الخلاصة ج۱، ص۱۴۵، الفصل الخامس عشر)

## د علم د خاوند په موجود والي کښې د څو سیپارو په حافظ پسې د اقتداء حکم

**سوال:** یو سړی یوائې د څو سیپارو حافظ دی۔ د کوم عالم په موجودوالي کښې دی د امامت حق لري او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د امامت لپاره له مستقلو دیني علومو څخه فراغت ضروري نه دی۔ چه کله یو څوک په قرائت باندې د قدرت له درلودلو څخه وروسته د لمانځه له مسائلو څخه خبر وي نو د کوم عالم په موجودوالي کښې هم د هغه په اقتداء کښې کوم حرج نشته۔ البته بهتره دا ده چه عالم امامت وکړي په دې شرط چه حافظ د جومات مستقل امام نه وي۔



قال ابن عابدينؒ: و شروط الامامة للرجال الاصحاء ستة اشياء الاسلام و البلوغ و العقل و الذكورة و القراءة و السلامة من الاعذار كا لرعاف و الفافاة و التمتمة و اللثغ. (رد المحتار على الدر المختار ج۱، ص۵۵۰، باب الامامة)

قال الشرنبلالىؒ: شروط صحة الامامة للرجال الاصحاء ستة اشياء الاسلام و هو شرط عام فلا تصح امامة منكر البعث او خلافة الصديقؓ او صحبته او يسبّ الشيخينؓ او ينكر الشفاعة او نحو ذٰلك من يظهر الاسلام مع ظهور صفة المكفرة له (و البلوغ) لان صلٰوة الصبى نفل و نفله لا يلزمه (و العقل) لعدم صحة صلٰوته بعدمه كا لسكران (و الذكورة) خرج به المرأة للامر بتاخيرهن و الخنثٰى امرأة فلا يقتدى به غيرها (و القراءة) بحفظ آية تصح بها الصلٰوة على الخلاف (و) السادس (السلامة من الاعذار) فان المعذور صلٰوته ضرورية فلا يصح اقتداء غيره به. (مراقى الفلاح على حاشية الطحطاوى ص۱۵۷، باب الامامة)

## د ښځو د جماعت حکم

**سوال:** د ښځو د مستقل جماعت حکم څه دی؟ که چېرته په ناڅاپي توګه د دوی جماعت برابر شي نو امامت کوونکې ښځه به چېرته دریږي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** یوائې د ښځو ځانګړی جماعت مکروه تحریمي دی۔ د دې ترڅنګ که چېرته ښځې وغواړي چه په جمعې سره لمونځ وکړي نو امامت کوونکې ښځه به د صف په منځ کښې دریږي او د نارینه وو غوندې به مخ ته نه دریږي۔ او که چېرته ښځه د نارینه امام غوندې د صف په مخکښې ودریږي نو دا ګناه ده۔ البته د علامه عینيؒ، ابن الهمامؒ او شیخ عبد الحی صاحبؒ او د اسې نورو د تحقیق مطابق د ښځو جماعت د اولٰی خلاف دی۔

قال العلامة الحصكفىؒ: (و) يكره تحريماً (جماعة النساء) و لو فى التراويح فى غير صلٰوة جنازة لانها لم تشرع مكررة (فان فعلن تقف الامام وسطهن) فلو قدمت اثمت. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۱، ص۵۶۵، باب الامامة)

و لما قال الشيخ ابن الهمامؒ و لا يخفٰى ما فيه و بتقدير التسليم فانما يفسد نسخ السنية و هو لا يستلزم ثبوت كراهة التحريم فى الفعل بل التنزيه مرجعها الى خلاف الاولٰى. (فتح القدير ج۱، ص۳۰۷، باب الامامة)

و فى الهندية: و يكره امامة الامرأة للنساء فى الصلٰوة كلها من الفرائض و النوافل الا فى صلٰوة الجنازة هٰكذا فى النهاية. فان فعلن وقفت الامام وسطهن و بقيامها وسطهن لا تزول الكراهة و ان تقدمت عليهن امامهن لم تفسد صلٰوتهن هٰكذا فى الجوهرة النيرة و صلٰوتهن فرادٰى افضل هٰكذا فى الخلاصة ج۱، ص۸۵، باب الامامة) و مثله فى البحر الرائق ج۱، ص۳۵۱، باب الامامة)

قال العلامة العينىؒ: فا لاولٰى ان يصلين وحدهن و ان صلين بجماعة قامت امامهن وسطهن و ان تقدمت جاز. (البناية شرح الهداية ج۲، ص۳۹۲)

## په ضعيف امام پسې د اقتداء حکم

**سوال:** یو سړی د ضعف او کمزورۍ له وجهې د لمانځه په تېیتدو او جګیدو کښې ډېر تکلیف محسوسوي تر دې پورې چه ډیر وارې ئې آواز هم نه اوریدل کیږي۔ آیا د شریعت له مخې په

د اسې ضعیف امام پسې اقتداء جائزه ده او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته ضعف او کمزوري د لمانځه د کوم رُکن لپاره تاواني نه وي نو یوائې د کمزورۍ له وجهې په د اسې امام پسې اقتداء پروا نه لري۔ البته که چېرته د تکبیرونو او سلام په اورېدو کښې خلکو ته تکلیف وي نو د تکبیر ویونکي په ټاکنې باندې د دې ازاله ممکنه ده۔ هو! پخپله امام باید د ا ذمه واري کوم بل د اسې صلاحیت لرونکي شخصیت ته ور وسپاري چه د کلیوالو په مخکښې د اعتماد وړ وي۔

قال ابن نجیمؒ و اشار الی ان اقتداء القاعد خلف مثله جائزا اتفاقاً و کذا الاقتداء با لاعرج او من بقدمه عوج و ان کان غیره اولی. (البحر الرائق ج۱، ص۳۸۷، باب الامامة)

قال العلامة الحصکفیؒ: (قائم باحدب) و ان بلغ حدباه الرکوع علی المعتمد و کذا باعرج و غیره اولی. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۱، ص۴۳۶، باب الامامة) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۸۵، باب الامامة)

## له پښنو څخه په معذور امام پسې د اقتداء حکم

**سوال:** زمونږ د کلي د جومات امام له دواړو پښنو څخه معذوره دی۔ په جګېدو او تیتېدو کښې ورته د بل سړي امداد ته ضرورت وي نو په د اسې سړي پسې د اقتداء حکم څه دی؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** امام چه قاعد (ناست) وي او مقتدي ولاړ وي نو په د اسې صورت کښې لمونځ جائز دی لیکن د اولٰی خلاف دی۔ البته که چېرته کوم روغ او جوړ سړی د امامت لپاره پیدا نه شي نو په د اسې امام پسې تر یوائې لمونځ کولو څخه اقتداء بهتره ده۔

کما فی الهندیة: و یصح اقتداء القائم با لقاعد الذی یرکع و یسجد لا اقتداء الراکع و الساجد با لمومی هکذا فی فتاوٰی قاضیخان و فیه ایضاً و لو کان لقدم الامام عوج و قام علی بعضها یجوز و غیره اولی. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۸۵، باب الامامة)

قال العلامة الحصکفیؒ: (و قائم بقاعد) یرکع و یسجد لانه ﷺ صلی آخر صلٰوته قاعداً و هم قیام. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۱، ص۴۳۵، باب الامامة و فیه غیر اولی) و مثله فی البحر الرائق ج۱، ص۳۸۶، باب الامامة)

## په پښنو باندې په صحیح توګه نه درېدونکي امام پسې د اقتداء حکم

**سوال:** د کوم سړي په پښنو کښې کوم تکلیف وي چه له وجهې ئې په صحیح توګه په درېدو باندې قادر نه وي نو آیا په د اسې سړي پسې اقتداء جائزه ده او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته د پښنو معذوري او تکلیف دومره وي چه د درېدو قدرت پرې و نه لري بلکه په ناستې سره لمونځ کوي نو په د اسې سړي پسې د هغو خلکو اقتداء جائزه ده چه د ده غوندې وي۔ البته په درېدو باندې د قادرو خلکو لپاره په ناستې باندې له اشارې سره په لمونځ کوونکي پسې اقتداء جائزه نه ده۔ البته که چېرته په پښنو کښې د عذر له وجهې پوره درېدل ممکن نه وي لیکن بیا هم د پښنو په کومې برخې یا په یوې پښې باندې درېدلی شوای نو



اقتداء ورپسې صحیح ده۔ په دې شرط چه په رکوع او سجدې باندې قدرت ولري۔ هو! د ده په ځای په کوم روغ او صحیح امام پسې اقتداء بهتره ده۔

کما فی الهندیة: و یصح اقتداء القائم با لقاعد الذی یرکع و یسجد لا اقتداء الراکع و الساجد با لمومی هکذا فی فتاوٰی قاضیخان و فیه ایضاً و لو کان لقدم الامام عوج و قام علی بعضها یجوز و غیره اولی. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۸۵، باب الامامة)

قال العلامة الحصکفیؒ: (و قائم بقاعد) یرکع و یسجد لانه ﷺ صلی آخر صلٰوته قاعداً و هم قیام. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۱، ص۴۳۵، باب الامامة و فیه غیره اولی) و مثله فی البحر الرائق ج۱، ص۳۶۴، باب الامامة)

## د کوم امام په کور کښې چه شرعي پرده نه وي په هغه پسې د اقتداء حکم

**سوال:** یو سړی د کوم جومات امام دی لیکن د هغه په کور کښې د پردې له رعایتولو پرته عامو خلکو په آزاده توګه تګ او راتګ وي۔ د قدرت د درلودلو تر څنګ نوموړی دا خلک نه منع کوي۔ نو په شریعت کښې په د اسې سړي پسې اقتداء څه حکم لري؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته د قدرت د درلودلو تر څنګ د خپل کور ښځې په شرعي حجاب او پردې باندې مجبورې نه کړي او ښځې ئې په بې پردګۍ سره ګرځي را ګرځي او نوموړی سره له دې چه علم او قدرت پرې لري او نه ئې منع کوي نو د اسې سړی د دیوث او فاسق په حکم کښې دی چه اقتداء ورپسې مکروه تحریمي ده۔

قال العلامة الحصکفیؒ: (یا دیوث) هو من لا یغار علی امرأته و محرمه. (الدر المختار علی هامش رد المحتار ج۳، ص۲۰۲، باب التعزیر)

قال ابن عابدینؒ: تحت هٰذا القول (و یکره امامة عبد و اعرابی و فاسق)ای من الفسق و هو الخروج عن الاستقامة و لعل المراد به من یرتکب الکبائر کشارب الخمر و الزانی وآکل الربا و نحو ذٰلک. (رد المحتار علی الدر المختار ج۱، ص۵۶۰، باب الامامة)

و فی الهندیة: تجوز امامة الاعرابی و الاعمٰی و العبد و ولد الزناء و الفاسق کذا فی الخلاصة الا انها تکره کذا فی المتون. (ج۱، ص۸۵، باب الامامة) و مثله فی خلاصة الفتاوٰی ج۱، ص۱۴۵)

## د دیوث د امامت حکم

**سوال:** یو سړی چه ښځه یا لور ئې له کوم نامحرم سړي سره په ناجائزو تعلقاتو کښې مبتلا وي او دی سره له علمه پرې خاموشي غوره کړي او ډېر واري بالذات یا بالواسطه د هغو له یوه او بل سره په ملاویدو کښې معاونت هم وکړي، په د اسې سړي پسې د شرعي له مخې اقتداء څه حکم لري؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په د اسې بې غیرته کارونو باندې سره له دې چه قدرت ولري غلی او چُپ اوسیدل یا تعاون ورسره کول له فسقي امورو څخه دی چه په د اسې سړي پسې د فسق له

وجهې اقتداء مکروه تحريمي ده. د دې لپاره د اسې سړي ته د امامت منصب ور سپارل د دې عظيم منصب تقدس تر پښو لاندې کولو سره برابر دی.

قال العلامة الحصكفىؒ: (يا ديُوث) هو من لا يغار على امرأته او محرمه. (الدر المختار على هامش رد المحتار ج۳، ص۲۰۲، باب التعزير)

قال ابن عابدينؒ: تحت هٰذا القول (و يكره امامة عبد و اعرابى و فاسق) اى من الفسق و هو الخروج من الاستقامة و لعل المراد به من يرتكب الكبائر كشارب الخمر و الزانى و آكل الرباء و نحو ذٰلك. (رد المحتار ج۱، ص۵۶۰، باب الامامة)

و فى الهندية: تجوز امامة الاعرابى و العبد و ولد الزناء و الفاسق كذا فى الخلاصة الا انها تكره هٰكذا فى المتون. (فتاوىٰ هندية ج۱، ص۸۵، باب الامامة) و مثله فى خلاصة الفتاوىٰ ج۱، ص۱۴۵)

## مړو ته د غسل ورکوونکي امام پسې د اقتداء حکم

**سوال:** مړو ته د غسل ورکوونکي امام پسې اقتداء د شريعت په نزد څه حکم لري؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** مړو ته غسل ورکول د مسلمانانو د حقوقو يوه شعبه ده. پخپل ذات کښې په دې عمل کښې هيڅ تذليل او تحقير نه ليدل کيږي ليکن که په کومې علاقې کښې غسل ورکوونکو ته د حقارت په نظر کتل کيدل او د هغه په مخکښې کولو کښې له جماعت څخه د نفرت سبب جوړيده نو بيا په د اسې سړي پسې اقتداء مکروه تحريمي ده. البته که چېرته يو څوک غسل ورکول د مسلمانانو حقوق وبولي او پرته له کوم اجرت څخه کوم مړي ته غسل ورکړي يا پرته له اجرت څخه غسل ورکوونکي ته په سپك نظر نه کتل کيدل نو له دې څخه د هغه شرعي حيثيت نه متاثر کيږي. په د اسې صورت کښې بيا په د اسې سړي پسې اقتداء جائزه ده.

قال العلامة الحصكفىؒ: و الافضل ان يغسل الميت (مجانا فان ابتغى الغاسل الاجر جاز ان كان ثمة غيره و الا لا. (الدر المختار على هامش رد المحتار ج۱، ص۶۳۴، كتاب الجنائز)

قال المرغينانىؒ: و يكره تقديم العبد.... و لان فى تقديم هٰؤلاء تنفير الجماعة فيكره. (الهداية ج۱، ص۱۲۲، باب الامامة)

## د احمد رضا خان په معتقد سړي پسې د اقتداء حکم

**سوال:** يو سړی د يوه جومات امام دی ليکن د عقائدو او نظرياتو له لحاظه د احمد رضا خان بريلوي له مسلك سره تعلق لري. آيا د دغو عقائدو د لرلو تر څنګ په د اسې سړي پسې اقتداء جائزه ده او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د اکثرو بريلوي مسلکو عقائد د اسې نه دي چه د کفر درجې ته رسيدلي وي. که چېرته د ځينو د اسې عقائد هم وي نو په هغو کښې تاويل هم کيدلی شي. ځکه چه په کفر باندې د ايمان وجوهاتو ته ترجيح ورکول کيږي. البته د دغو عقائدو له وجهې



هغه مبتدع ګڼل کيږي. لهذا د مبتدع والي له وجهې به په هغه پسې لمونځ مکروه وي. هو! په احتراز کښې احتياط زيات دی.

قال العلامة الحصكفىؒ: (و يكره مبتدع) اى صاحب بدعة و هى اعتقاد خلاف المعروف عن الرسول لا بمعاندة بل بنوع شبهة و كل من كان من قبلتنا (لا يكفر بها) (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۱، ص۵۶۰، باب الامامة)

قال ابن نجيمؒ: تحت هٰذا القول و (اما المبتدع) و عرفها الشمني بانها ما احدث على خلاف الحق المتلقى عن رسول الله ﷺ من علم او عمل او حال بنوع شبهة و استحسان و جعل دينا قويماً و سراطاً مستقيماً و اطلق المصنف فى المبتدع فشمل كل مبتدع هو من اهل قبلتنا و قيده فى المحيط و الخلاصة و المجتبىٰ و غيرها بان لا تكون بدعتهٗ تكفره فان كانت تكفره فا لصلٰوة خلفه لا تجوز. (البحر الرائق ج۱، ص۳۴۹، باب الامامة) و مثله فى الهندية ج۱، ص۸۴، باب الامامة)

## د غير شرعي افعالو په مرتکب سړي پسې د اقتداء حکم

**سوال:** آيا په د اسې سړي پسې به اقتداء جائزه وي چه د يو څو د اسې غير شرعي افعالو په ښکاره توګه ارتکاب کوي چه تعلق ئې يوائځې د ده تر ذاته پورې وي لکه غلا، د چا حق غصب کول، دروغ ويل، له نامحرمو ښځو سره ناسته ولاړه، له بې پړيرو هلکانو سره له ضرورت پرته ګډون او د اسې نور. او همد ارنګه د شرعي احکامو د تقدس او عظمت لحاظ هم و نه لري، په بې حيا مجلسونو کښې ئې تګ او راتګ وي، سينماګانو ته ځي او راځي، تر دې پورې چه کله په سينماګانو کښې په رسمي توګه سره د قرآنکريم ختمونه هم کوي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** دا ټول کارونه په فسقي امورو کښې داخل دي. تر څو پورې چه نوموړی دا افعال کوي يا پکښې موجود وي نو په هغه پسې اقتداء مکروه تحريمي ده. د ده په ځای بايد په کوم نيك سړي پسې اقتداء وکړی، البته که چېرته توبه وباسي نو له هغه وروسته اقتداء ورپسې جائزه ده.

قال ابن عابدينؒ: تحت هٰذا القول (و يكره امامة عبد و اعرابى و فاسق) اى من الفسق و هو الخروج عن الاستقامة و لعل المراد به من يرتكب الكبائر كشارب الخمر و الزانى و آكل الرباء و نحو ذٰلك. (رد المحتار على الدر المختار ج۱، ص۵۶۰، باب الامامة)

و فى الهندية: تجوز امامة الاعرابى و الاعمىٰ و العبد و ولد الزناء و الفاسق كذا فى الخلاصة الا انها تكره هكذا فى المتون. (فتاوىٰ هندية ج۱، ص۸۵، باب الامامة)

## د ږيرې په لنډوونکي پسې د اقتداء حکم

**سوال:** د قرآن کريم يو حافظ په ټول کال کښې ږيره لنډه وي يوائځې د روژې مبارکې په راتلو سره په تراويحو کښې د قرآن د اورولو لپاره ږيره پريږدي. د خپلې ږيرې د لنډولو لپاره دا عذر وړاندې کوي چه تر اوسه پورې زما په مخ باندې په پوره توګه ږيره نه ده راغلې چه کله پوره ږيره مې راشي نو بيا ئې پريږدم. اوس دا ږيره بده ښکاريږي. د دې عذر په بناء باندې مې ږيره لنډوم. آيا

اقتدا ء جائزه ده او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** ډیره که پوره راغلي وي او که کمه راغلې وي په هر صورت کښې ئې د شریعت په نزد په داسې سړي پسې لنډول ناجائز او حرام دي۔ د ډیرې د لنډوونکي لپاره نوموړی عذر وړاندې کول د نبي کریم ﷺ د سُنتو په مقابل کښې د خپل خواهش له تابعداري سره برابره ده۔ په داسې امام پسې اقتداء د نورو فساقو او فجارو په حکم کښې د راتلو له وجهې مکروه تحریمي ده۔ چه کله له رمضان شریف کښې د ډیرې له حجامت څخه مخکښې او وروسته ډیره نه پرېږدي، یوازې په رمضان شریف کښې د ډیرې پرېښودل نه وایي۔ هو! که چېرته له رمضان شریف څخه مخکښې څخه منع کیدلو ته د ډیرې پرېښودل نه وایي۔ هو! که چېرته له رمضان شریف څخه مخکښې په مستقله توګه توبه وباسي او د راتلونکي لپاره ډیره پرېږدي او بیا ئې هیڅکله هم د نه لنډولو عزم او اراده وکړي نو بیا اقتداء ورپسې جائزه ده۔

قال ابن عابدينؒ: و اما الفاسق فقد عللوا كراهة تقديمه بانهٗ لا يهتم لامر دينه و بان فى تقديمه للامامة تعظيمه و قد وجب عليهم اهانته شرعا. (رد المحتار ج۱، ص۵۶۰، باب الامامة)

و فى الهندية: تجوز امامة الاعرابى و الاعمٰى و العبد و ولد الزناء و الفاسق كذا فى الخلاصة الا انها تكره هكذا فى المتون. (فتاوٰى هندية ج۱، ص۸۵، الفصل الثالث فى بيان من يصلح اماماً لغيره) و مثله فى البحر الرائق ج۱، ص۳۴۸، باب الامامة)

## د یوه جومات امام د ماسخوتن له وترو پرته د سهار د لمانځه د ورکولو حکم

**سوال:** زمونږ د جومات امام صاحب د ماسخوتن وتر لمونځ و نه کړ او سهار ئې د دې خبرې له علم سره چه ما وتر نه دي کړي د سهار د لمانځه برسیره د نورو لمونځونو امامت هم وکړ، نو د دغو لمونځونو حکم به څه وي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د نوموړي صورت حکم دا دی چه د قضاء شوي وتر د ور په زړه کیدو تر څنګ چه امام صاحب کوم لمونځونه ورکړي دي هغه ټول فاسدیږي چه کله د قضاء شوي وتر د پنځو لمونځونو د وخت له ختم کیدو څخه مخکښې قضائي را اګرځولي وي، که چېرته ئې د پنځو لمونځونو د وخت له ختم کیدو وروسته ئې د قضاء شوي وتر قضایي را اګرځولي وي نو بیا د المونځونه نه فاسدیږي۔

قال العلامة الحصكفىؒ: (فله يجز) تفريع على اللزوم (فجر من تذكر انهٗ لم يؤتر. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۱، ص۴۸۸، باب قضاء الفوائت، مطلب فى تعريف الاعادة)

قال العلامة ابن عابدينؒ: و فساد اصل الصلٰوة موقوف عند ابى حنيفةؒ سواء ظن وجوب الترتيب اولا فان كثرت و صارت الفوائت مع الفائتة ستاً ظهر صحتها بخروج وقت الخامسة التى هى سادسة الفوائت الخ. و فى رد المحتار: قولهٗ (فان كثرت) اى الصلٰوة التى صلاها تاركاً فيها الترتيب بان صلاها قبل قضاء الفائتة ذاكراً لها و هذا التفريع لبيان قولهٗ موقوف و توضيحة انهٗ اذا فاتتهٗ صلٰوة و لو وتراً فكلما صلى بعدها و قتية و هو ذاكر لتلك الفائتة فان قضاها بعد ان يصلى بعدها خمس صلٰوة صار الفساد باتاً و انقلبت الصلٰوة التى صلّاها قبل قضاء المقضية نفلاً و ان لم يقضها حتى خرج وقت



الخامسة و صارت الفواسد مع الفائتة ستاً انقلبت صحيحة لانهٗ ظهرت كثرتها و دخلت فى حد التكرار المسقط للترتيب و بيان وجه ذٰلك فى البحر وغيره. (رد المحتار على الدر المختار ج۱، ص۴۹۱، باب قضاء الفوائت، تحت مطلب فى تعريف الاعادة)

و فى الهندية: فا لاصل ان عند ابى حنيفةؒ مراعاة الترتيب بين الفائتة و الوقتية كما تسقط بكثرة الفوائت تسقط بكثرة الؤدى كذا فى المحيط. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۱۲۴، الباب الحادى عشر فى قضاء الفوائت)

## په چا باندې د بهتان لګوونکي امام پسې د اقتداء حکم

**سوال:** یوه سړي په چا باندې بهتان ولګاوه چه تا د خپل ورور له ښځې سره بد فعلي کړې ده په داسې حال کښې چه دا خبره بالکل بې بنیاده ده۔ د شریعت له مخې په داسې سړي پسې لمونځ کول څنګه دي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د سوال د صحت په شرط سره که چېرته په ربښتیا سره هم دا بهتان وي او نوموړي سړي توبه نه وي ایستلې نو بیا د بهتان لګولو پسې دا سړی فاسق شو۔ او د صالحینو خلکو په داسې سړي پسې اقتداء مکروه تحریمي ده۔ لیکن دا خبره یاده لرئ چه له یوازې لمونځ کولو څخه د کوم فاسق په اقتداء کښې لمونځ کول بهتر دي۔

لما فى الهندية: و لو صلّٰى خلف مبتدع او فاسق فهو محرز ثواب الجماعة لٰكن لا ينال مثل ما ينال خلف تقى كذا فى الخلاصة. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۸۴، الفصل الثالث فى بيان من يصلح اماما لغيره)

قال العلامة طاهر بن عبد الرشيد البخارىؒ: و لو صلّٰى خلف مبتدع او فاسق فهو محرز ثواب الجماعة لٰكن لا ينال مثل ما ينال خلف تقى. (خلاصة الفتاوٰى ج۱، ص۱۵۰، الفصل الخامس عشر فى الامامة و الاقتداء)

## په پټۍ باندې د مسح کوونکي امام پسې د اقتداء حکم

**سوال:** که چېرته د چا لاس زخمي وي او پټۍ ئې پرې تړلې وي او د اوداسه په وخت کښې پرې مسح کوي نو آیا په داسې سړي پسې لمونځ کول جائز دي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د شریعت له مخې عذرونه مقبول دي۔ که چېرته یو څوک د شرعي عذر په بناء سره په پټۍ باندې مسح وکړي او لمونځ ورکړي او له خم څخه پخپله وینې او زوې نه بهیدلې نو د فقهي ذخائرو له تصریحاتو څخه معلومیږي چه اقتداء ورپسې صحیح ده او په لمانځه باندې کوم اثر نه لویږي۔

لما فى الهندية: و يجوز اقتداء الغاسل بماسح الخف و با لماسح على الجبيرة و كذا امامة المفتصد لغيره من الاصحاء اذا كان يأمن خروج الدم. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۸۴، فصل فى من يصلح اماماً لغيره)

قال العلامة حسن بن عمارؒ: و صح اقتداء غاسل بماسح على الخف و الجبيرة او خرقة قرحت لا يسيل منها شىء. (مراقى الفلاح مع طحطاوى ص۱۶۱، باب الامامة)

## د سرسایې په زوره په وصول کوونکي او خلك له جوماته په منع کوونکي امام پسې د اقتداء حکم

**سوال:** څه فرمايي د دين علماء کرام او د شرع متين مفتيان عظام د دې مسئلې په باره کښې چه يوه پيش امام يو مولوي صاحب له جومات څخه په دې سبب منع کړ چه هغه هلکانو ته د قرآن مجيد درس ورکاوه. امام د مولوي صاحب د قرآن درس له خپل جومات څخه ځکه بند کړ چه هغه ته دا ويره وه چه له زما امامت به را څخه ونيسي. په دې باندې خلك ترې ناراضه شو. دوهم دا چه مقتديان ئې وايي چه دا امام په زړه کښې له خلکو سره ډير بغض ساتي. دريم دا چه د ده عادت دی چه که څوك غريب وي او که امير له تولو څخه په زوره سرسايه اخلي. که چېرته ئې څوك ور نه کړي نو هغه له جوماته منع کوي. اوس د ده د دې سختې رويې له وجهې تول مقتديان ترې تللي دي او يو اځې دوه درې کسان ورپسې لمونځونه کوي. آيا په د اسې پيش امام پسې لمونځ جائز دی او که نه؟ او که چېرته جائز وي نو له کراهيت سره به وي او که بغير له کراهيت څخه؟ او خلك د خپل امام د دې سختې رويې له وجهې خپل جومات پرينښی دی او له دريو مياشتو راهيسې د بل کلي په جومات کښې لمونځونه کوي. نو آيا دوی به گنهگار وي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د شريع له مخې امام په دوه قسمه وي. يو هغه امام چه د اوقافو محکمې يا پخپله د جومات واقف د امامت په منصب باندې تاکلی وي او د وقف له آمدني څخه د هغه لپاره د تنخواه په شکل کښې وظيفه مقرره کړې وي. د اسې اماما فقهاوو په اهل وظائف کښې شمار کړی دی او د امام الحمل او منصوب الواقف په نومونو ئې ياد کړی دی. او کله کله ذو وظيفه هم ورته وايي. د د اسې پيش امام په باره کښې فقهاوو ليکلي دي چه دی له نااهلي او شرعي جُرم پرته څوك نه شي معزولولی. لکه څرنگه چه علامه ابن نجيم المصري رحمه الله فرمايي: فلا يحل للقاضي عزل صاحب وظيفة بغير جنحةٍ و عدم اهلية و لو لم يصح. (البحر الرائق ج۵، ص۲۲۷)

دوهم ډول پيش امام هغه دی چه کليوالي مقرر کړی وي او يو اځې کليوال هغه ته له خپلو آمدنيو څخه د تنخواه په صورت کښې د امامت اجرت ورکوي. نو د اسې امام نه په اهل وظائفو کښې شماريږي او نه ئې د معزولولو هغه حکم دی کوم چه د مخکښيني امام وو چه پورته ئې يادونه وشوه بلکه د دې ډول امام حيثيت يو اځې د اجيرِ خاص حيثيت دی. او له قوم سره ئې د امامت عقد د اجارې يو عقد دی. لهذا په د اسې امام باندې د اجير خاص او په امامت باندې ئې د اجارې د عقد احکام جاري کيږي چه تفصيل ئې په لاندې ډول دی.

**ابتدائي تاکنه:** فقهاء کرامو د د اسې امام د ابتدايي انتخاب او تاکنې په باره کښې دا تصريحات کړي دي چه که چېرته قوم او کليوال تول ئې په امامت متفق شي نو پرته له کوم نزاع او اختلاف څخه به دی منتخب کيږي. او که چېرته په قوم کښې د هغه د انتخاب په باره کښې



اختلاف پيدا شي نو اکثريت به اعتبار ورکول کيږي.

په در مخار ج۱، ص۵۲۳ کښې چېرته چه د امامت په حقيقت باندې بحث شوی دی هلته دا ليکل شوي دي چه: الاحق با لامامة تقديماً بل نصباً الاعلم باحكام الصلٰوة الخ فان استووا فيقرع او الخيار الى القوم فان اختلفوا اعتبر اكثرهم. په دې عبارت کښې په صراحت سره دا يادونه شته چه د امام په درولو کښې که چېرته په قوم کښې اختلاف پيدا شي نو د اکثريت په رأيې باندې به عمل کيږي او اعتبار به ورکول کيږي. يعنې که اکثريت ئې په تاکنې او انتخاب باندې متفق وي نو امام به منتخب وي او که نه وي نو نه. پاتې شوه د هغه د عزل مسئله نو په دې باره کښې د مسلّمو قواعدو په رڼا کښې شرعي حکم دا څرگنديږي چه لکه څرنگه د هغه په ابتدايي تاکنې او انتخاب کښې د اکثريت رأيه معتبره ده نو هيڅ وجه به نه وي چه که چېرته د هغه په عزل کښې اختلاف پيدا شي نو د اکثريت رأيه معتبره و نه گڼله شي. په دې کښې هم که چېرته د هغه په عزل باندې متفق شول نو هغه به معزول کيږي او که نه نو نه به معزول کيږي. ليکن د دې مطلب دا نه دی چه د قوم لپاره په هر حالت کښې د پيش امام معزولول جائز دي او په هغه کښې شرعا کومه گناه نه وي. بلکه د دې مطلب يو اځې دا دی چه که چېرته د کوم شرعي نقص او عيب له وجهې هغه معزول شي نو د عزل فيصله به نافذه وي. او که کوم شرعي عيب پکښې نه وي او يو اځې د ذاتي عناد يا کومې دنيوي معاملې په بنياد باندې معزول کړی شو نو د قوم دا اقدام به جرم او د شريعت له مخې به گناه وي ليکن د عزل فيصله به بيا هم نافذه وي او پيش امام به معزول گڼل کيږي. او د کوم له جُرم والي او گناه والي څخه دا نه لازميږي چه له بل څخه نافذ او په کومې درجې کښې معتبر نه وي. د دې لپاره د فقهاء کرامو په مسلّماتو کښې د دې ډير مثالونه موجود دي. (۱)د قاضي د کوم فاسق په گواهي باندې فيصله کول. (۲)د افيونو بيعه (۳)د قرباني د څرمنو بيعه. پس همد ارنگه د شرعي جرم او نقص څخه پرته که چېرته قوم د پيش امام د عزل کولو فيصله وکړي نو اگر که قوم د دې فيصلې له وجهې گنهگاريږي ليکن د عزل فيصله به په هر حال کښې نافذه وي او پيش امام به معزول گڼل کيږي. د فقهاوو د مسلّماتو په رڼا کښې د دې لاندينې وجوهات دي:

**اوله وجه:** د امامت عقد يو ډول د اجارې عقد دی او چه کله تول قوم يا ئې اکثريت په دې عقد باندې امضاء کولو ته تيار نه شي او په هيڅ يوه صورت کښې هم و نه غواړي چه هغه امام جوړ کړي نو په د اسې صورت کښې ښکاره خبره ده چه د امامت د عقد اصل مقصد نه شي حاصليدلی. خلك د جمعې لمونځ يا اکثره پريږدي او يا په يوه جومات کښې په يوه وخت دوه دوه جمعې په مختلفو امامانو باندې کوي او دا طرزِ عمل د امامت د اصل مقصد، غرض او غايت منافي او د بنياد را ايستونکی دی. او په د اسې مواقعو کښې ډير ځله د اسې ليدل شوي هم دي او د فساد قوي ذريعه هم ده.

**دوهمه وجه:** او چه کله د دې اجارې اصل مقصد په دې صورت کښې نه حاصلیږي بلکه له منځه ځي نو باید چه دا اجاره فسخ شي او مذکوره امام معزول کړی شي او کوم بل صالح او دیندار غوره کړی شي په چا چه ټول قوم متفق شي- تر څو چه د امامت اصل مقصد کوم چه د جمعې د لمانځه برپا کول دي فوت نه شي- په داسې صورتونو کښې فقهاء کرامو د اجارې د فسخ کولو تصریحات کړي دي چه مثالونه ئې د فقهې د کتابونو د ''کتاب الاجاره'' تر عنوان لاندې موجود دي- هلته کولی شی چه وئې ګوری-

**دریمه وجه:** عزل په ابتدايي تقرري باندې په قیاس کولو سره دا ویل کیدلی شي چه ټول قوم یا ئې اکثریت د اختلاف په صورت کښې د معزولولو مجاز دي او رأیه به ئې معتبره وي- همدا وجه ده چه امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمايي چه که چېرته د قوم اکثریت د پیش امام مخالف وي او د لمانځه ادا کول ورپسې پریږدي نو امام ته د امامت کولو حق باقي نه پاتې کیږي- قال احمدؒ اذا کرهه واحد او اثنان او ثلاثة فلهٗ ان یصلّی بهم حتّی یکرهه اکثر الجماعة الخ. (مرقات)

احنافو علماوو د امام احمد بن حنبل رحمه الله د دې قول له نقل کولو څخه وروسته هیڅ اختلاف پکښې نه دی ښکاره کړی چه دا ترې معلومیږي چه مونږ احناف هم د دې قول مخالف نه یو- همدارنګه د احنافو فقهاوو هم د دې خبرې تصریح کړې ده چه که چېرته په پیش امام کښې کوم شرعي عیب وي او له دې وجهې خلک ورپسې لمونځونه نه کوي نو ګناه ئې په امام باندې دی او که چېرته په امام کښې کوم شرعي عیب نه وي او مقتدي پرته له کومې وجهې څخه ترې ناراض وي او په بل ځای کښې لمونځ کوي نو ګناه ئې په مقتدي باندې ده.

و لو امّ قوماً و هم لهٗ کارهون. ان الکراهة بفساد فیه او لانهم احق بالامامة منه کره لهٗ ذٰلک تحریماً لحدیث ابی داؤد لا یقبل الله صلٰوة من تقدم قوما و هم لهٗ کارهون (و ان هو احق) لا و الکراهة علیهم. (الدر المختار بهامش رد المحتار ج۱، ص۵۲۲)

دې تمهید ته په کتو سره په صورت مسئوله باندې چه نظر واچول شي نو څرګندیږي چه د پیش امام صاحب حیثیت د دوهم ډول پیش امام حیثیت دی کوم چه د اجیر خاص په حکم کښې دی او د لومړي ډول حیثیت ئې نه دی چه د وظائفو له اهل څخه وګڼل شي- او مسئوله عنه د پیش امام هغه نقصانات چه له وجهې ټول قوم ترې ناراضه شوی او په نورو جوماتونو کښې لمونځونه کوي، چه له همدې وجهې څخه د امامت د عقد اصلي مقصد فوت شوی دی- دا هغه نقصانات دي چه شرعا معتبر دي، لهذا که چېرته ټول قوم یا ئې اکثریت دا عقد فسخ کړي او نوموړی امام معزول کړي او په ځای ئې بل صالح او دیندار سړی امام وټاکي چه ټول قوم پرې متفق وي نو د قوم به دا عزل نافذ وي او په دې ډول سره به د امامت اصلي مقصد به هم له منځه نه ځي او قوم به هم ګنهګار نه وي- ځکه چه دا عزل به د شرعي نقص له وجهې وي، او که چېرته مذکوره امام د دې ترڅنګ چه ټول قوم یا ئې اکثریت ترې ناراضه دی ضد کوي او باقاعده لمونځونه ورکوي او خلک ئې ورپسې نه کوي بلکه په نورو جوماتونو کښې ئې کوي نو ګناه ئې په امام باندې ده په قوم باندې نه ده. فقط و الله اعلم بالصواب



# باب القرأة

## (د قرائت احکام او مسئلې)

### په "الرحمٰن الرحیم" کښې اتصال دی او که انفصال

**سوال:** په سورت فاتحه کښې د الرّحمٰن الرحیم تر منځ په وصل او فصل کښې کومه طریقه بهتره چه سړی ئې باید وکړي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په الرّحمٰن الرحیم کښې اتصال او انفصال دواړه طریقې جائزې دي، له دې څخه په لمانځه کښې هیڅ کراهیت او فساد نه لازمیږي- البته په قرائت کښې د اتصال او انفصال تفسیر او تفصیل باید له قراوو حضراتو څخه پوښتنه وشي-

وصل حرف من کلمة بحرف من کلمة اخرٰی ان وصل حرفاً من کلمة بحرف من کلمة اُخرٰی نحو ان قرأ ایّاکنعبد و وصل الکاف با لنون او غیر المغضوب علیهم و وصل الباء با لعین او سمع الله لمن حمده و وصل الهاء من الله للام فا لصحیح انه لا یفسد و لو تعمد ذٰلک. (خلاصة الفتاوٰی ج۱، ص۱۱۲، باب فی زلة القاری)

فی الهندیة: ان وصل حرفاً من کلمة بحرف من کلمة اخرٰی نحو ان قرأ ایّاك نعبد و وصل الکاف با لنون او غیر المغضوب علیهم و وصل الباء با لعین او سمع الله لمن حمده و وصل الهاء من الله با للام فا لصحیح انه لا یفسد و کذا لو تعمد ذٰلک. (الهندیة ج۱، ص۷۹، الفصل الخامس فی زلة القاری)

### اِنّا په اِنّ سره او ارسلنا په ارسلن سره د لوستلو حکم

**سوال:** زمونږ د کلي د جومات امام صاحب د تل لپاره په قرائت کښې غلطي کوي لکه د قرائت په وخت کښې په کومو ځایونو کښې چه د اِنّا لفظ راغلی وي نو زمونږ مولوي صاحب ئې اِن لولي، همدارنګه د ارسلنا په ځای ارسلن لولي- له دې برسیره نورې غلطیانې هم کوي- آیا د دغو غلطیانو له وجهې په لمانځه کښې کوم فساد راځي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته د قرآنکریم په الفاظو کښې له کموالي او زیاتوالي څخه په معنٰی کښې تغیر را نه شي نو لمونځ پرې نه فاسدیږي- البته قاري باید دا کوشش وکړي چه خپل قرائت صحیح کړي-

لکه څرنګه چه په صورت مسئوله کښې د جمع متکلم له صیغې څخه جمع مؤنث غائب صیغه جوړه شوې ده چه د معنٰی د خرابوالي مستلزمه ده چه له مخې ئې لمونځ فاسدیږي- لیکن که چېرته د اورېدونکي په اوریدو کښې د جمع مؤنث صیغه راغلې وي او قاري صاحب د جمع متکلم صیغه لوستلې وي نو په دې صورت کښې لمونځ له کراهیت پرته صحیح دی- هو! قرائت باید په وضاحت سره وشي-

قال العلامة الحصکفیؒ: و منها القرآن با لالحان ان غیر المعنٰی و الا لا فی حرف مد و لین...... فلو فی

اعراب او تخفيف مشدد و عكسه او بزيادة حرف. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج ١، ص ٦٣٠، باب ما يفسد الصلوٰة)

اما ان قرأ حرفاً مكان حرف او زاد حرفاً او نقص او قدم المؤخر او اخر المقدم و اما ان كان كلمة مكان كلمة او زاد كلمة او نقص او قدم او اخر و اما ان قرأ آية مكان آية او نقص او زاد مقدم المؤخر او اخر المقدم اما اذا قرأ حرفاً مكان حرف و لم يغير المعنىٰ بان قرأ ان المسلمون لا يفسد. (خلاصة الفتاوىٰ ج ١، ص ١٠٦، الفصل الثانى عشر زلة القارى) و مثله فى الفتاوى الهندية ج ١، ص ٧٩، الفصل الخامس فى زلة القارى)

## د فرضو په لمانځه کښې د سورت د تکرار حکم

**سوال:** د يوه جومات امام صاحب د فرض لمانځه په دواړو رکعتونو کښې سورت اخلاص ووايه، آيا په داسې کولو سره په لمانځه باندې کوم اثر لوېږي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په نفلو کښې د سورت تکرار جائز دى ليکن غير اولىٰ دى البته په فرائضو کښې د سورت تکرار مکروه تنزيهي دى او په لمانځه کښې کوم فساد نه راځي۔

قال العلامة الحصكفىؒ: لا بأس ان يقرأ سورة و يعيدها فى الثانية.

قال ابن عابدينؒ: افاد انه يكره تنزيهاً و عليه يحمل جزم المقنية با لكراهة و يحمل فعله عليه الصلوٰة و السلام لذٰلك على بيان الجواز هٰذا اذا لم يضطر. (رد المحتار ج ١، ص ٥٤٦، باب القرائت)

و فى الاصل اذا قرأ سورة واحدة فى ركعتين اختلف المشائخ رحمهم الله فيه و الاصح انه لا يكره و لكن لا ينبغى ان يفعل و لو فعل لا بأس به. (خلاصة الفتاوىٰ ج ١، ص ٩٦، الفصل الحادى عشر فى القرأة)

## د ماښام په لمانځه کښې د سورت الاعلىٰ د لوستلو حکم

**سوال:** زمونږ د جومات امام صاحب اکثره وخت د ماښام په لمانځه کښې سورت الاعلىٰ لولي په داسې حال کښې چه په عامو کتابونو کښې د ماښام په لمانځه کښې د کوچنيو سورتونو د لوستلو ترغيب ورکړ شوى دى۔ آيا د ماښام په لمانځه کښې د سورت الاعلىٰ په لوستلو سره په لمانځه باندې کوم اثر لوېږي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په لمانځه کښې بهتره دا ده چه امام صاحب د مقتديانو رعايت په زړه کښې ونيسي او قرائت وکړي ځکه چه په مقتديانو کښې ځينې بيمار او کمزوري هم وي۔ د دې لپاره فقهاء کرامو په لمانځه کښې د قرائت اوږدول مکروه بللي دي۔ البته اوږد قرائت په لمانځه باندې کوم اثر نه اچوي۔ پخپله نبي کريمﷺ د ماښام په لمانځه کښې ځو ځو واري سورت الطور او سورت المرسلٰت لوستلي دي۔

لما قال العلامة حماد بن الحسن الشرنبلالىؒ: و كره للامام تطويل الصلوٰة لما فيه من تنفير الجماعة لقوله عليه الصلوٰة و السلام من امّ فليخفف...... قال العلامة احمد الطحطاوى تحت قول تطويل الصلوٰة بقرأة او تسبيح او غيرهما. (الطحطاوى ص ٢٤٦، باب الامامة)



قال العلامة الحصكفىؒ: و يكره تحريماً تطويل الصلوٰة على القوم زائدا على قدر السنة فى قرأة و اذكار رضى القوم ام لا لاطلاق الامر با لتخفيف. (رد المحتار ج ١، ص ٥٦٤، باب الامامة)

عن جبير ابن مطعم عن ابيه قال سمعت رسول اللهﷺ يقرأ فى المغرب با لطور.

عن ام الفضل بنت الحارث قالت سمعت رسول اللهﷺ يقرأ با لمغرب با لمرسلٰت. (الصحيح المسلم ج ١، ص ١٨٧، باب القرأة فى المغرب)

عن جبير ابن مطعم عن ابيه قال سمعت رسول اللهﷺ يقرأ فى المغرب با لطور.

عن ام الفضل بنت الحارث قالت سمعت رسول اللهﷺ يقرأ فى المغرب با لمرسلٰت. (الصحيح المسلم ج ١، ص ١٨٧، باب الجهر فى المغرب) و مثله فى المشكٰوة ج ١، ص ٧٩، باب القرأة فى الصلوٰة) و مثله فى الجوهرة النيرة ج ١، ص ٧٠)

## په سورت او تکبير کښې د وصل حکم

**سوال:** زمونږ د جومات امام صاحب له آخري لسو سورتونو څخه يو په لمانځه کښې لولي نو رکوع ته د تللو په وخت کښې تکبير له سورت سره يو ځاى کوي او بيا ئې وايي۔ يو مولوي صاحب فرمايي چه داسې کول ښه نه دي بلکه چه کله د سورت آخري ته ورسيږي نو د سورت د آخر او د تکبير تر منځ د وقايه "ن" بايد زيات شي۔ پرته د "ن" له زياتوالي څخه لوستل صحيح نه دي۔ په داسې حال کښې چه زمونږ امام صاحب ئې د جواز قائل دى۔ آيا د وصل په وخت کښې د "ن" لوستل ضروري دي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** يوه کلمه له بلې کلمې سره په داسې توګه لګول او لوستل چه په معنىٰ کښې ئې فساد پيدا شي صحيح نه دي او که چېرته د فساد انديښنه نه وي نو بيا جائز دى. لهذا الله اکبر د سورت له آخري لفظ سره لګول او لوستل د معنىٰ د نه فساد له وجهې جائز دي۔ البته د وصل په صورت کښې د وقايه نُون د قرائت د قواعدو په بناء لوستل کيږي۔ هو! لکه څرنګه چه په دې صورت کښې الله اکبر د سورت د جزء ګرځيدو انديښنه ده د دې لپاره پرته له لګولو څخه ئې لوستل افضل دي۔

لما قال العلامة طاهر بن عبد الرشيد البخارىؒ: ان وصل حرف من كلمة بحرف من كلمة اخرى ان وصل حرفاً من كلمة بحرف من كلمة اخرى نحو ان قرأ اياك نعبد و وصل الكاف با لنون او غير المغضوب و وصل الباء با لعين او سمع الله لمن حمده و وصل الهاء من الله با للام فا لصحيح انه لا يفسد و كذا او تعمد ذٰلك. (خلاصة الفتاوىٰ ج ١، ص ١١٢، زلة القارى)

و فى الهندية: ان وصل حرفا من كلمة بحرف من كلمة اخرى نحو ان قرأ اياكنعبد و وصل الكاف با لنون اق غير المغضوب عليهم و وصل الباء با لعين او سمع الله لمن حمده و وصل الهاء من الله با للام فا لصحيح انه لا تفسد و لو تعمد ذٰلك. (الفتاوى الهندية ج ١، ص ٧٩، الفصل الخامس فى زلة القارى)

## د قرائت ړومبی والی او وروسته والی

**سوال:** یو مولوي صاحب د جُمعې په لمانځه کښې په لومړي رکعت کښې د سورت مریم څه آیتونه تلاوت کړل په داسې حال کښې چه په دوهم رکعت کښې ئې د سورت بقره څو آیتونه تلاوت کړل۔ آیا د اسې کول شرعا جائز دي چه په آیاتو کښې ړومبی والی وشي یا په ځینو کښې تاخیر وشي او ولوستل شي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د قرآن مجید په ترتیب سره تلاوت کول د تلاوت له آدابو څخه دی۔ د دې لپاره د محققینو فقهاوو په نزد د قرآنکریم معکوس (سرچپه) تلاوت مطلقاً مکروه دی۔ یواځې د هلکانو د تعلیم لپاره معکوس تلاوت بغیر له کراهیت څخه جائز دی۔

اګر که ځینو فقهاوو په فرضو او نفلو لمونځونو کښې د منکوس تلاوت کوم فرق نه دی کړی لیکن د محققینو په نزد مطلق منکوس تلاوت که په لمانځه کښې وي او که پرته له لمانځه څخه وي له کراهیت څخه خالي نه دی۔

لما قال العلامة عمار بن حسن الشرنبلالیؒ: و یکره قراۃ سورۃ فوق التی قرأها..... قال ابن مسعودؓ: من قرأ القرآن منکوسا فهو منکوس و ما شرع لتعلیم الاطفال لا کتیسیر الحفظ بقصر السور. (مراقی الفلاح علی صدر الطحطاوی ص۲۸۶، باب مکروهات الصلٰوۃ)

لما قال العلامة الحصکفیؒ: و یکره الفصل سورۃ قصیرۃ و ان یقرأ منکوساً.... قال العلامة ابن عابدینؒ: (تحت قوله و ان یقرأ منکوسا) بان یقرأ فی الثانیة سورۃ الاعلی مما قرأ فی الاولی لان ترتیب السورۃ فی القرأۃ من واجبات التلاوۃ و انما جواز الصغار تسهیلاً لضرورۃ التعلیم. (رد المحتار ج۱، ص۵۴۶، فصل فی القرأۃ، مطلب الاستماع للقرآن غرض کفایة) و مثله فی فتح القدیر ج۱، ص۲۹۹، باب صفة الصلٰوۃ)

## د سهار په لمانځه کښې د کوچني سورتونو ویل

**سوال:** په کلیو کښې د کم علم لرونکي ځیني امامانو د قرآنکریم څو لنډ لنډ سورتونه یاد کړي وي او لوی او اوږده سورتونه ئې یاد نه وي۔ نو آیا د سهار په لمانځه کښې کوچني سورتونه ویل کیدلی شي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د سهار په لمانځه کښې مستحبه دا ده چه په اسفار کښې لمونځ شروع کړي که چېرته لمونځ فاسد شي نو د سُنتو له رعایتولو سره فرض لمونځ را ګرځول کیدلی شي او کم تر کمه د څلویښتو آیتونو په اندازې سره تلاوت باید پکښې وشي۔ که چېرته دومره تاخیر پکښې وشي چه لمونځ فاسد شي نو د دوهم ځل لپاره په مستحبه طریقه لمونځ نه شوای راګرځیدلی نو دا ښه نه دي ګڼل شوي۔

البته که چېرته څوك کوچني سورتونه پکښې وايي او دوام هم پرې کوي نو په لمانځه کښې کوم کراهیت نه راځي ځکه چه پخپله رسول اللهﷺ په معوذتینو باندې د سهار لمونځ ادا کړی دی۔



لما قال العلامة ابن عابدینؒ: فی الجامع الصغیر: یقرأ فی الفجر فی الرکعتین سورۃ الفاتحة و قدر اربعین او خمسین و اختصر فی الاصل علی الاربعین الخ. (رد المحتار ج۱، ص۵۴۰، فصل فی القرأۃ)

و قال العلامة ابن عابدینؒ: کما ذکر انهﷺ قرأ با لمعوّذتین فی الفجر. (رد المحتار ج۱، ص۵۶۵، باب الامامة، مطلب اذا صلی الشافعی قبل الحنفی الخ)

قال العلامة السید احمد الطحطاوی: و اختلف الآثار فی حدر ما یقرأ فی کل صلٰوۃ و فی الجامع الصغیر انه یقرأ فی الفجر فی الرکعتین جمیعاً اربعین او خمسین او ستّین آیة سورۃ الفاتحة. و روی الحسن ما بین ستین الی مائة فا لمائة اکثر ما یقرأ فیها و الاربعون اقل الخ. (طحطاوی حاشیة مراقی ص۲۱۳، فصل فی بیان سننها)

قال یؤیده ما فی الصحیحین انهﷺ قرأ با لمعوّذتین فی الفجر فلما فرغ قالوا له او جرت قال سمعت بکاء صبیٍ. (طحطاوی حاشیة مراقی ص۲۴۶، فصل فی بیان احق با لامامة) و مثله فی البحر الرائق ج۱، ص۳۵۱، باب الامامة و الفتاوی الهندیة ج۱، ص۷۷، الفصل الرابع فی القرأۃ)

## قرآن مجید ډیر تیز ویل

**سوال:** په ځینو جوماتونو کښې لیدل کیږي چه امام صاحب په فرض لمانځه کښې او خصوصاً په تراویحو کښې، همدارنګه ځیني خلك په انفرادي توګه ډیر په تیزي سره قرائت وايي او ډیر زر له لمانځه څخه د فارغیدلو کوشش کوي۔ آیا شرعا د اسې کول جائز دي او که څنګه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** قرآنکریم که چېرته تیز تلاوت شي په دې شرط چه تلفظ صحیح وي او په حروفو کښې کوم کموالی را نه شي نو لمونځ نه پرې فاسدیږي۔ البته که چېرته دومره تیز تلاوت شي چه په الفاظو کښې غلطي یا کموالی او زیاتوالی پیدا شي نو بیا جائز نه دی۔

قال العلامة الحصکفیؒ: و یجتنب المنکرات هٰذا الامة القرأۃ.

قال ابن عابدینؒ: ای سرعة الکلام و القرأۃ. (رد المحتار ج۲، ص۴۷، فصل فی التراویح)

و یکره الاسراع فی القرأۃ و فی اداء الارکان کذا فی السراجیة. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۱۸، فصل فی التراویح)

## د ماسپښین او مازدیګر په فرضو کښې د مقتدي د سورت فاتحه د ویلو حکم

**سوال:** د ماسپښین او مازدیګر په فرضو کښې په داسې حال کښې چه امام قرائت کوي که چېرته مقتدي سورت فاتحه ولولي نو حکم به ئې څه وي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په حنفي فقهې کښې د مقتدي لپاره که امام په پټه قرائت کوي او که په زوره غلی دریدل ضروري دي۔ او د مقتدي لپاره په امام پسې قرائت مکروه تحریمي دی۔ البته لمونځ پرې نه فاسدیږي۔

قال العلامة الحصكفيؒ: (المؤتم لا يقرأ مطلقا) و لا الفاتحة في السرّية اتفاقا و ما نسب لمحمد ضعيف كما بسطه الكمال (فان قرأ كره تحريما.....) (بل يستمع) اذا جهر (و ينصت) اذا اسر لقول ابي هريرة رضي الله تعالى عنه كنا نقرأ خلف الامام فنزل و اذا قرئ القرآن فاستمعوا له و انصتوا. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج ۱، ص ۵۴۴، فصل في القراة)

قال الامام محمد بن الحسن الشيبانيؒ لا قراءة خلف الامام فيما جهر فيه و لا فيما لم يجهر بذلك جاءت عامة الآثار و هو قول ابي حنيفة. (مؤطا امام محمد ص۹۷، باب قراءة الامام) و مثله في فتح القدير ج۱، ص۲۹۷، فصل في القراة

## په قرائت کښې د امام له حد څخه د تجاوز کولو حکم

**سوال:** زمونږ د جومات امام صاحب په جهري لمونځونو کښې په دومره لوړ آواز سره تلاوت کوي چه تر ډیر لرې ځایونو پورې اوریدل کیږي په د اسې حال کښې چه په جومات کښې یو اځې یو څو کسان وي- که چېرته امام صاحب په ورو آواز سره قرائت وکړي نو بیا ئې هم ټول په آسانۍ سره اوریدلی شي- آیا په جهري لمونځونو کښې له حد څخه په زیات لوړ آواز باندې قرائت کول شرعا جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په جهري لمونځونو کښې په لوړ آواز سره قرائت د امام لپاره واجب دی- البته دومره په لوړ آواز سره قرائت کول چه خلک هم ترې تنګ شي او له خپل بشري طاقت څخه هم د باندې وي مکروه تنزیهي دی- ښه خبره دا ده چه د اسې و نه کړي، که چېرته ئې څوک کوي نو په لمانځه کښې کوم فساد نه راځي-

و لا يجهد الامام نفسه با لجهر كذا في البحر الرائق و اذا جهر الامام فوق حاجة الناس فقد اساء لان الامام انما يجهر لاسماع القوم ليدبروا في قرأته ليحصل احضار القلب كذا في سراج الوهاج. (الهندية ج ۱، ص ۷۲، واجبات الصلوٰة)

قال السيد احمد الطحطاوي: و للاولى ان لا يجهد نفسه با لجهر بل بقدر الطاقة لان اسماع بعض القوم يكفي و المستحب ان يجهر بحسب الجماعة فان زاد فوق حاجة الجماعة فقد اساء كما لو جهر المصلى با لاذكار قهستاني عن كشف الاصول. (طحطاوي على مراقي الفلاح ص ۲۰۴، فصل في واجبات الصلوٰة) و مثله في رد المحتار ج۱، ص۵۸۹، باب الامامة، مطلب في رفع المبلغ صوته زيادة على الحاجة

## په لمانځه کښې د یو اوږد آیت د تلاوت کولو حکم

**سوال:** زمونږ د جومات امام صاحب یو ځل د جهري لمانځه په لومړي رکعت کښې له لِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ څخه تر اَلْمَصِيْر پورې تلاوت وکړ کوم چه دوه آیتونه راځي- او په دوهم رکعت کښې ئې لَا يُكَلِّفُ اللّٰهُ نَفْسًا الى آخره پورې تلاوت کړ کوم چه یو آیت دی- چا اعتراض وکړ چه دا لمونځ و نه شو ځکه چه په لومړي رکعت کښې دوه آیتونه تلاوت شول او په دوهم رکعت کښې یو آیت تلاوت شو په د اسې حال کښې چه قرائت لپاره درې آیتونه شرط دي- اعتراض کوونکي خپل



لمونځ را وګرځاوه په د اسې حال کښې چه د امام موقف دا دی چه لمونځ وشو ځکه چه په لمانځه کښې یو اوږد آیت چه د دریو لنډو آیتونو په برابر وي تلاوت شي نو لمونځ کیږي-

پوښتنه دا ده چه د یو اوږد آیت (کوم چه د دریو لنډو آیتونو سره برابر دی) په تلاوت سره لمونځ کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په لمانځه کښې د قرائت اند ازه یو اوږد آیت یا درې لنډ آیتونه دي او د لنډو آیتونو اند ازه د سورت الکوثر او سورت عبس لومړي درې آیتونه دي-

په نوموړي صورت کښې لکه څرنګه چه امام صاحب یو اوږد آیت تلاوت کړی دی چه اند ازه ئې له دغو دوارو څخه زیاتیږي له دې وجهې په دې سره لمونځ نه فاسدیږي او نه بیرته د دې لمانځه راګرځول واجب دي-

اما الجواز ان قرأ في كل ركعة من صلوته بآية اجزاء قصيرة كانت الآية او طويلة و هو مسيء و هذا عند ابي حنيفة و عندهما لا يجزيه ما لم يقرأ في كل ركعة ثلاث آيات قصار او آية طوية و هذا قول ابي حنيفة اولى. (خلاصة الفتاوىٰ ج ۱، ص ۹۳، فصل في القراة)

قال العلامة الحصكفيؒ: قرأ المصلى لو اماماً او منفردا الفاتحة و قرأ بعدها وجوباً (سورة او ثلاث آيات) و لو كانت الآية او الآيتان تعدل ثلاث آيات قصارا انتفت كراهة التحريم ذكره الحلبي و لا تنتفي التنزيهية الا با لمسنون. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج ۱، ص ۴۹۱، صفة الصلوٰة) و مثله في كبيرى ص۲۷۸، باب القراة

## د ضاد د حرف صحیح تلفظ

**سوال:** زمونږ په علاقې کښې د ضاد د لفظ په تلفظ باندې د علماوو تر منځ سخت اختلاف دی تر دې پورې چه د کفر او اسلام فرق ئې د ضاد ویل ټاکلی دی- ځیني دا حرف د دال مشابه لولي او ځیني ئې د ظاء مشابه لولي او ځیني ئې د ذال او زا مشابه لولي- البته که چېرته د صفاتو او مخرج په رعایتولو سره ئې د ادا کولو کوشش وشي نو یو څه اند ازه له ظا سره مشابه کیږي- آیا که چېرته دا حرف د یادو شویو حروفو مشابه ولوستل شي نو په لمانځه کښې کوم فساد راځي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د تلفظ په دوران کښې که چېرته یو حرف په بل حرف باندې د بدلولو په صورت کښې په معنیٰ کښې تغیر راتلو نو په اتفاق سره لمونځ فاسدیږي- همد ارنګه که چېرته ضاد په زا، ذال، دال، ظا باندې بدل شي او بعینهٖ دال او ظا ولوستل شي نو لمونځ پرې فاسدیږي- البته که چېرته ضاد له خپلو صفاتو او مخرج سره په ادا کولو باندې له کوم بل لفظ سره مشابه آواز له خولې څخه ووځي لیکن په څرګنده توګه فرق او تمیز تر سترګو نه شي او نه پرته له مشقت او تکلیف څخه د هغو تر منځ فرق وکړی شي نو په دې سره لمونځ نه فاسدیږي- که چېرته په صراحت سره ئې تمیز او فرق وشي نو بیا لمونځ فاسدیږي-

قال ابن عابدينؒ: (قوله الا ما يشق) قال في الخانية و الخلاصة الاصل فيما اذا ذكر حرفاً مكان حرفٍ و غير

المعنی ان امکن الفصل ما بینهما بلا مشقه تفسد و الا یمکن الا بمشقه کا لظاء مع الضاد المعجمتین، و الصاد مع السین المهملتین و الطاء مع التاء قال اکثرهم لا تفسد. (رد المحتار ج۱، ص۶۳۳، زلة القاری)

قال طاهر بن عبد الرشیدؒ: و الاصل فی هٰذه انه ان امکن الفصل بین الحرفین من غیر مشقه کا لطاء مع الصاد بان قرأ الطالحات مکان الصالحات تفسد صلوته و ان کا لا یمکن الفصل بین الحرفین الا بمشقه کا لظاء مع الضاد و الصاد مع السین و الطاء مع التاء اختلف المشائخ فیه قال اکثرهم لا یفسد قال بعضهم یفسد. (خلاصة الفتاویٰ ج۱، ص۱۰۶، زلة القاری) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۷۹، زلة القاری)

## د صاد په ځای د سین د لوستلو حکم

**سوال:** که چیرته کوم امام د صِرَاطَ الَّذِیْنَ په ځای سِرَاطَ الَّذِیْنَ ولولي نو لمونځ پرې فاسدیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** اګر که یو حرف په بل حرف باندې د اسې بدلول چه په معنیٰ کښې تبدیلي واقع شي نو لمونځ پرې فاسدیږي لیکن په نوموړي کښې دا تبدیلي د لمانځه فاسدوونکې نه ده ځکه چه صراط په سین سره هم یو قرائت دی۔ د دې لپاره د سِرَاطَ الَّذِیْنَ په لوستلو سره په لمانځه باندې هیڅ اثر نه لویږي۔ البته په صاد سره لوستل ئې بهتر دي۔

لما قال العلامة جمال الدین ابو الفرج ابن الجوزی الصراط: الطریق یقال ان اصله با لسین لانهٗ من الاستراط هو الابتلاع فا لسراط کانه یسترط المارین علیه فمن قرأ با لسین کمجاهد و ابن محیص و یعقوب فعلی اصل الکلمة و من قرأ با لصاد کابی عمرو و الجمهور فلانها اخف علی اللسان...... قال الفرأ اللغة الجیدة با لصاد و هی لغة قریش الاولیٰ. (زاد المسیر ج۱، ص۱۴، تحت صراط الذین)

قال العلامة محمود الآلوسیؒ: (الصراط) الطریق و اصله با لسّین من السراط...... و با لسین علی الاصل قرائن کثیر بروایة قنبل و اویس اللؤلؤی عن یعقوب و قرأ الجمهور با لصاد و هی لغة قریش. (روح المعانی ج۱، ص۹۲، تحت الصراط المستقیم) و مثله فی تفسیر ابن کثیر ج۱، ص۴۳، تحت اهدنا الصراط)

## له سورت فاتحې څخه مخکښې د بسم الله د لوستلو حکم

**سوال:** په لمانځه کښې د سورت فاتحې یا کوم بل سورت د شروع کولو په وخت کښې د بسمْ الله د ویلو حکم څه دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له سورت فاتحې څخه مخکښې د بسم الله لوستل سُنت دي۔ البته د فاتحې او سورت تر منځه د بسم الله لوستل سُنت نه دي لیکن د محققینو په نزد ئې لوستل بهتر او مستحب دي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: (سمی) غیر المؤتم بلفظ البسملة لا مطلق الذکر کما فی ذبیحة وضوء (سرافی اوّل کل رکعة) و لو جهریة (لا) تسنّ (بین الفاتحة و السورة مطلقاً) و لو سریة و لا تکره اتفاقاً و ما صححه الزاهدی من وجوبها ضعفه فی البحر.



قال ابن عابدینؒ: کذا صرح فی الذخیرة و المجتبیٰ بان سمّی بین الفاتحة و السورة المقروة سراً او جهراً کان حسناً و رجحه ابن الهمام. (رد المحتار ج۱، ص۴۹۰، باب صفة الصلوة، فصل فی الشروع)

(ثم یاتی با لتسمیة) و یخفیها و هی من القرآن آیة انزلت للفصل بین السّور کذا فی الظهیریة فیما یکره فی الصلوة...... و لا یسمّی بین الفاتحة و السورة هٰکذا فی الوقایة و النقایة. (الفتاویٰ الهندیة ج۱، ص۷۴، الفصل الثالث فی سُننها)

قال العلامة حسن بن عمّار الشرنبلالیؒ: (و) تسنّ (التسمیة اول کل رکعة) قبل الفاتحة لانهﷺ کان یفتتح صلوته ببسم الله الرحمٰن الرحیم. و فی الطحطاوی و اتفقوا علی عدم الکراهة فی ذکرها بین الفاتحة و السورة بل هو حسن سواء کانت الصلوة سریة او جهریة و ینافیه ما فی القهستانی انه لا یسمّی بین الفاتحة و السورة فی قولها. و فی روایة عن محمد قال فی المضمرات و الفتویٰ علی قولهما.

و فی حاشیة تبع. فیه الکمال و تلمیذه ابن امیر الحال حیث رجحان ان الخلاف فی السنیة فلا خلاف انه لو سمّی لکان حسناً لشبهه الخلاف فی کونها آیة من کل سورة. (طحطاوی علی مراقی الفلاح ص۱۴۲، باب سننها) و مثله فی عزیز الفتاویٰ ج۱، ص۲۳۵، کتاب الصلوٰة)

## په اعرابو کښې د غلطۍ حکم

**سوال:** په لمانځه کښې یو امام صاحب د قرآنکریم یو آیت شِفَآءٌ لِّمَا فِی الصُّدُوْرِ د شین د زیر په ځای شَفَآءٌ لِّمَا فِی الصُّدُور د شین په زور ولوست۔ اوس په خلکو کښې اختلاف لویدلی دی، ځینې وایي چه په لمانځه کښې کوم فرق نه پریوځي په د اسې حال کښې چه ځینې وایي چه د لمانځه بیرته راګرځول واجب دي۔ آیا په اعرابو کښې د دې ډول غلطۍ له وجهې د لمانځه بیرته راګرځول واجب دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په د اسې حال کښې چه د شَفَآء د شین په زور مثل نه په قرآنکریم کښې شته (البته د شفا لفظ د شین په زور له همزې پرته په قرآنکریم کښې موجود دی) او نه د دې لپاره کومه صحیح معنیٰ شته۔ لهذا د اعرابو د د اسې غلطۍ له وجهې د متقدمینو په نزد د لمانځه بیرتـه راګرځول واجب دي۔ او د متاخرینو په نزد د لمانځه بیرته راګرځول واجب نه دي او دا صحیح قول هم دی۔ د دې لپاره له دې څخه د اسې تبدیلي نه راځي چه د لمانځه مفسد وګرځي۔

قال ابن عابدینؒ: (قوله فلو فی اعراب) ککسر قواما مکان فتحها و فتح باء نعبد مکان ضمها و مثال ما یعتبر اَنَّمَا یخشی اللهَ مِنْ عِبَادِهِ العُلَمَآءُ بضمها الجلالة و فتح همزة العلماء و هو مفسد عند المتقدمین و اختلف المتاخرون فذهب ابن مقاتل عمن معه انه لا یفسد و الاول احوط و هٰذا اوسع کذا فی زاد الفقیر لابن الهمام. (رد المحتار ج۱، ص۶۳۱، باب زلة القاری)

اذا لحن فی الاعراب لحناً لا یغیّر المعنیٰ بان قرأ لا ترفعوا اصواتکم برفع التاء لا تفسد صلوٰة با لاجماع و ان غیر المعنیٰ تغیّرا فاحشا بان قرأ و عصیٰ آدم ربه بنصب المیم و رفع الرب و ما اشبه ذٰلک مما لو تعمد به یکفر اذا قرأ خطا فسدت صلوٰته فی قول المتقدمین و اختلف المتاخرون قال محمد بن مقاتل و ابو نصر محمد بن سلام و ابو بکر بن سعید

البلخی و الفقیه ابو جعفر الهندوانی و ابو بکر محمد بن الفضل و الشیخ الامام الزاهد و شمس الائمة الحلوانی لا تفسد صلٰوة و ما قاله المتقدمون احوط. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۸۱، باب زلة القاری) و مثله فی خلاصة الفتاوٰی ج۱، ص۱۱۳، زلة القاری)

## مسد په شد سره د لوستلو حکم

**سوال:** زمونږ د جومات مولوي صاحب یو ځل د ماښام په لمانځه کښې د تبت یدا سورت ولوست او د مسد لفظ ئې کوم چه مخفف دی په شد سره یعنې مشدد ولوست. آیا په دې سره د لمانځه په صحت کښې کوم اثر لویږي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** مخفف لفظ د مشدد په لوستلو سره او همدارنګه مشدد لفظ د مخفف په لوستلو سره که چېرته د معنٰی فساد راتلو نو لمونځ فاسدیږي او که نه نو بیا نه فاسدیږي۔

قال الحصکفیؒ: او تخفیف مشدد و عکسه او بزیادة حرف فاکثر نحو الصراط الذین او بوصل حرف بکملة نحو ایاکنعبد او بوقف و ابتداء لم تفسد...... و ان غیر المعنٰی به یفتی بزازیة الا تشدید رب العالمین و ایّاك نعبد فیترکه تفسد. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۶۳۱، زلة القاری)

و لو ترك التشدید فی موضعه او اتی با لتشدید فی غیر موضعه صح فان کان لا یغیر المعنٰی. (خلاصة الفتاوٰی ج۱، ص۱۱۲، زلة القاری)

## په لمانځـــه کښــې په قرائت کښــې په غلطي باندې لـــه پوهیدلو وروسته د هغې د صحـــیح کولو حکم

**سوال:** که چېرته یو څوك په لمانځه کښې د قرائت په دوران کښې په الفاظو یا اعرابو کښې غلطي وکړي او وروسته بیا پرې پوه شي او زر ئې بیرته صحیح کړي او دوباره ئې صحیح قرائت کړي نو آیا په لمانځه کښې کوم فرق راځي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په لمانځه کښې د قرائت په دوران کښې د غلطی له کیدلو وروسته د هغې په صحیح کولو سره په لمانځه باندې هیڅ اثر نه لویږي، لمونځ به صحیح او درست وي۔

ذکر فی الفوائد لو قرأ فی الصلٰوة بخطا فاحش ثم رجع و قرأ صحیحا قال عندی صلٰوته جائزة و کذٰلك الاعراب. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۸۲، باب زلة القاری)

قال الشیخ مولانا شاه اشرف علی التهانویؒ: و فی العالمگیری: ذکر فی الفوائد لو قرأ فی الصلٰوة بخطاءٍ فاحش ثم رجع و قرأ صحیحا قال عندی صلٰوته جائزة و کذٰلك الاعراب. قلت و کذٰلك سمعتُ شیخی مولانا محمد یعقوب رحمه الله تعالٰی. (امداد الفتاوٰی ج۱، ص۱۶۸، باب القرأة)



## اِذَا جَآءَ نَصْرُ اللّٰهِ په ځای اِذَا جَآوَ النَّصْرُ اللّٰه د لوستلو حکم

**سوال:** که چېرته یو څوك په لمانځه کښې د اِذَا جَآءَ نَصْرُ اللّٰهِ په ځای اِذَا جَآوَ النَّصْرُ اللّٰهِ ولولي نو آیا لمونځ ئې پرې فاسدیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په نوموړي صورت کښې چونکه د معنٰی تغیر هم شته او د لغت تغیر هم شته۔ له دې وجهې د لمانځه بیرته راګرځول ضروري دي۔

و فی الهندیة: (و منها) ذکر حرف مکان حرف. ان ذکر حرفا مکان حرف و لم یغیر المعنٰی بان قرأ ان المسلمون ان الظالمون و ما اشبه ذٰلك لم تفسد صلٰوته و ان غیر المعنٰی فان امکن الفصل بین الحرفین من غیر مشقه کا لطاء مع الصاد فقرأ الطالحات مکان الصالحات تفسد صلٰوته عند الکل الخ. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۷۹، کتاب الصلٰوة، الفصل الخامس فی زلة القاری)

قال العلامة ابن عابدینؒ: و ان کان الخطاء بابدال حرف بحرف فان امکن الفصل بینهما بلا کلفة کا لصاد مع الطاء بان قرأ الطالحات مکان الصالحات فا تفقوا علی انهٗ مفسد و ان لم یمکن الا بمشقه کا لظاء مع الضاد و الصاد مع السین فاکثرهم علی عدم الفساد لعموم البلوٰی الخ. (رد المحتار ج۱، ص۴۶۶، باب ما یفسد الصلٰوة و ما یکره فیها، مطلب مسائل زلة القاری) و مثله فی البزازیة علی هامش الهندیة ج۴، ص۴۳، کتاب الصلٰوة)

## په دوهم رکعت کښې د یوه آیت زیاتوالی د کراهیت سبب نه دی

**سوال:** زمونږ امام صاحب د ماښام د لمانځه په لومړي رکعت کښې درې آیتونه تلاوت کړه او په دوهم رکعت کښې ئې څلور آیتونه تلاوت کړه چه له وجهې ئې دوهم رکعت په لومړي رکعت باندې اوږد شو۔ آیا په دې سره د شریعت له مخې لمونځ مکروه کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** اګر که دوهم رکعت په لومړي رکعت باندې اوږدول مکروه دي لیکن دا کراهیت هلته لازمیږي چه د دوهم رکعت قرائت په لومړي رکعت باندې له دوو آیتونو څخه زیات اوږد شي او له دوو آیتونو څخه کم زیاتوالی د کراهیت سبب نه ګرځي۔

لما قال العلامة ابراهیم الحلبیؒ: اما اطالة الرکعة الثانیة علی الرکعة الاولی فمکروه با لاجماع لکن لا بمطلق الاطالة بل ان کانت الاطالة بثلاث آیات او بما فوقها تکره و ان کانت تلك الاطالة آیة اق آیتین لا تکره. (حلبی کبیر ص۱۳۰، باب صفة الصلٰوة)

## د درېو آیتونو له لوستلو وروسته د مقتدي امام ته د فتحې ورکولو حکم

**سوال:** د یوه جومات امام صاحب د درېو آیتونو په اندازې سره قرائت وکړ چه ناڅاپه ئې مخکښیني آیتونه ویر شول۔ په دې صورت کښې که چېرته کوم مقتدي امام ته فتح ورکړي او امام ئې فتح واخلي نو آیا په دې سره لمونځ فاسدیږي او که نه؟ د احنافو فقهاوؒ په دې باره کښې څه رأیه ده؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** چه کله امام د درېو آیتونو په برابر قرائت وکړي نو باید چه رکوع ته

لاړ شي او مقتدي په فتح ورکولو باندې مجبور نه کړي- او که چېرته بالفرض مقتدي امام ته د دریو آیتونو تر لوستلو وروسته امام ته فتحه ورکړي او امام ئې هم قبول کړي نو لمونځ نه فاسد یږي-

لما قال العلامة ابن عابدين رحمه الله: بخلاف فتحه على امامه فانه لا يفسد مطلقاً لفاتح و اخذ بكل حال اى سواء قرأ الامام قدر ما تجوز به الصلوٰة ام لا انتقل الى آية اخرى ام لا تكرر الفتح ام لا هو الاصح. (رد المحتار ج۱، ص ۴۶۰، باب ما يفسد الصلوٰة الخ)

قال العلامة ابن نجيم المصرى رحمه الله: لما صرحوا فى فتح المصلى على امامه بانها لا تفسد على الصحيح سواء قرأ الامام ما تجوز به الصلوٰة ام لا. (البحر الرائق ج۱، ص ۳۷۱، باب الحدث فى الصلوٰة)

## په یوه رکعت کښې له یوه ځخه د زیاتو سورتونو د لوستلو حکم

**سوال:** څه فرمایي علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چه په یوه رکعت کښې له یوه ځخه د زیاتو سورتونو لوستل جائز دي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** بهتره دا ده چه په یوه رکعت کښې یو سورت ولوستل شي- هو! که چېرته په یوه رکعت کښې دوه درې سورتونه ولوستل شي نو په لمانځه باندې کوم بد اثر نه لویږي اګر که د اولیٰ خلاف خو خامخا دی-

لما قال العلامة السيد احمد الطحطاوى رحمه الله: و يكره....... و الجمع بين سورتين اى فى ركعة واحدة لما فيه من الشبهه التفضيل و الهجر. (طحطاوى على مراقى الفلاح ص۲۰۶، باب ما يكره فى الصلوٰة)



# باب المسبوق و اللاحق

## (د مسبوق او لاحق احکام او مسئلې)

## د مسبوق او لاحق تعریف

**سوال:** جناب مفتي صاحب! د مسبوق او لاحق تعریف څه شی دی؟ او مسبوق او لاحق چا ته وایي؟ بینوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** مسبوق: هغه لمونځ کوونکي ته وایي چه له امام سره د ټولو رکعتونو یا ځینو رکعتونو د کولو موقع په لاس ور نه شي

لاحق: هغه مقتدي دی چه د مجبورۍ له وجهې د اقتداء له کولو ځخه وروسته ټول رکعتونه یا ځینې ترې فوت شي او بیا اقتداء وروسته وکړي-

قال العلامة الحصكفىؒ: و اللاحق من فاتته الركعات كلها او بعضها لكن بعد اقتداء بعذر كغفلة و زحمة..... و المسبوق من سبقه الامام بها او بعضها. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۱، ص۵۹۴ تا ۵۹۶، كتاب الصلوٰة، مطلب فى احكام المسبوق الخ)

و فى الهندية: المسبوق من لم يدرك الركعة الاولىٰ مع الامام........ و اللاحق هو الذى ادرك اولها و فاته الباقى فى النوم او حدث او بقى قائماً للزحام...... الخ. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۹۲، الباب الخامس، الفصل السابع فى المسبوق و اللاحق)

## د مسبوق لپاره د ثناء د لوستلو حکم

**سوال:** یو سړی د ماښام په لمانځه کښې په دوهم رکعت کښې له امام سره شامل شو نو دی به ثناء څه وخت لولي؟ بینوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته مسبوق امام په هغه رکعت کښې پیدا کړي په کوم رکعت کښې چه قرائت ویل کیږي نو مسبوق به ثناء نه لولي بلکه د امام قرائت به اوري او چه کله د امام له سلام اړولو وروسته نومړی مسبوق د تیر شوي رکعت د راګرځولو لپاره ودریږي نو ثناء به لولي- هو! د امام ابو یوسفؒ په نزد له امام سره په وخت د یو ځای کیدو کښې تعوّذ لوستل مستحب دي په داسې حال کښې چه وروسته (د امام له فراغت ځخه وروسته) هم له قرائت ځخه مخکښې به تعوّذ لولي-

قال العلامة طاهر بن عبد الرشيد البخارىؒ: المسبوق اذا ادرك الامام فى القرأة التى يجهر فيها لا يأتى با لثناء فاذا قام الى قضاء ما سبق يأتى با لثناء و يتعوذ للقرأة و عند ابى يوسفؒ يتعوّذ عند الدخول فى الصلوٰة و عند القرأة و هٰذا استحباب اما كونه سنة فقد مر فى فصل الآداب ثم فى الثناء سواء كان قريباً من الامام او لا يسمع فى صلوٰة الجهر يسكت. و فى صلوٰة المخافة يأتى بالثناء اذا ادركه قائماً. (خلاصة الفتاوىٰ ج۱، ص۱۶۵، مسائل المسبوق)

و فی الهندیة: و فی صلٰوة المخافة یأتی بهٖ الخ. و یسکت المؤتم عن الثناء اذا جهر الامام و ان ادرک الامام فی الرکوع او السجود یتحرّی ان کان اکبر رأیه انه لو اتی به ادرکه فی شیء من الرکوع او السجود یأتی بهٖ قائماً و الّا یتابع الامام و لا یأتی بهٖ. و اذا لم یدرک الامام فی الرکوع و السجود لا یأتی به و ان ادرک الامام فی القعدة لا یأتی با لثناء بل یکبر للافتتاح ثم للانحطاط ثم یقعد. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۹۱، الباب فی اللاحق و المسبوق)

## په دوهم رکعت کښې د شریك شوي مسبوق لپاره د تشهد د ویلو حکم

**سوال:** که چېرته یو څوك د ماسپښین په لمانځه کښې له امام سره په دوهم رکعت کښې شریك شي او امام چه کله په دوهم رکعت کښې کښیني نو په همدې مسبوق باندې همدغه تشهد ویل لازم دي او که نه؟ په ځینو متونو او حواشي کښې لیکلي دي چه په مسبوق باندې دا تشهد ویل ضروري نه دي۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په مسبوق باندې دا تشهد ویل واجب دي۔

قال ابن عابدینؒ: و المسبوق یسجد مع امامه قید با لسجود لانه لا یتابعه فی السلام بل یسجد معه و یتشهد فاذا سلم الامام قام الی القضاء الخ. (رد المحتار ج۱، ص۵۴۹، حکم المسبوق و اللاحق)

و ایضاً قال بعد ورقة: کم لو ادرك الامام فی القعدة الاولی فقعد معه فقام الامام قبل شروع المسبوق فی التشهد فانه یتشهد تبعاً لتشهد امامه. (رد المحتار ج۱، ص۵۵۱، حکم فی اللاحق و المسبوق)

و فی الهندیة: اذا ادرك الامام فی التشهد و قام الامام قبل ان یتم المقتدی او اسلم الامام فی آخر الصلٰوة قبل ان یّتم المقتدی التشهد فا لمختار ان یّتمّ التشهد. کذا فی الغیاثیة و ان لم یتمّ اجزأه. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۹۰، الفصل السادس فیما یتابع الامام الخ) و مثله فی مراقی الفلاح علی صدر الطحطاوی ص۲۵۱، باب فیما یفعله المقتدی)

## له امــــام سره په اولې قعدې کښې د شــــریکیدلو په صورت کښــــې د تشهد د ویلو حکم

**سوال:** که چېرته یو مسبوق له امام سره په اولې قعدې کښې شریك شي او د مسبوق په کښیناستو سره امام ودریږي نو آیا په داسې صورت کښې د امام متابعت ضروري وي او که د مسبوق د تشهد پوره کول او بیا وروسته دریدل؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په داسې صورت کښې د تشهد له پوره کولو پرته هم که چېرته مسبوق د امام د متابعت له وجهې ودریږي نو لمونځ ئې له کراهیت سره کیږي۔ لیکن بهتره به دا وي چه تشهد پوره ووایي او بیا جګ شي۔ ځکه چه په قعده کښې تشهد ویل واجب دي۔ لهذا د یو واجب له وجهې دوهم واجب باید پاتې نه شي۔ تر دې پورې چه مدرك به هم د تشهد له پوره کولو پرته نه دریږي بلکه تشهد به پوره کوي او بیا د امام متابعت به کوي او دریږي به۔ تر څو چه د دواړو واجبو رعایت وشي۔

و فی الهندیة: اذا ادرك الامام فی التشهد و قام الامام قبل ان یتم المقتدی او سلم الامام فی آخر الصلٰوة قبل



ان یتم المقتدی التشهد فا لمختار ان یتم التشهد کذا فی الغیاثیة. و الم یتم اجزأه. (الهندیة ج۱، ص۹۰، الفصل السادس فیما یتابع الامام الخ)

قال ابن عابدینؒ: فان عارضها واجب لا ینبغی ان یفوته بل یأتی به ثم یتابع کما لو قام الامام قبل ان یتم المقتدی التشهد فانهٗ یتمه. ثم یقوم لان الاتیان به لا یفوت المتابعة با لکلیة. و انما یؤخرها و المتابعة مع قطعه تفوته با لکلیة فکان تاخیر احد الواجبین مع الاتیان بهما اولی من ترك احدهما با لکلیة. (رد المحتار ج۱، ص۴۷۰، مطلب مهم فی تحقیق متابعة الامام)

## د امام د متابعت حکم

**سوال:** که چېرته امام له اولې قعدې څخه دریم رکعت ته ودریږي او مسبوق چا چه التحیات په نیمایي کښې میندلی وي، د وروسته پاتې کیدو له وجهې التحیات مکمل کړي او په اتفاقي توګه داسې وشي چه امام له قیام څخه رکوع ته لاړ شي نو آیا مسبوق به د دریو تسبیحاتو په برابر قیام کوي او د لاحق غوندې به له امام سره شریکیږي او که د رکوع له کولو وروسته به له امام سره د شریکیدلو کوشش کوي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له اصل جواب څخه مخکښې دا خبره یاده ساتی چه واجب متابعت درې قسمه دی:

(۱) د مقارنت په شکل کښې (یعني چه له امام سره په تولو رکنونو کښې شري پاتې شي۔

(۲) د تعاقب په شکل کښې: د فعل له ابتداء څخه امام مخکښې او مقتدي وروسته وي۔

(۳) د تاخر په شکل کښې: چه له فعل څخه امام مخکښې فارغ شي او مقتدي د امام له ادا کولو څخه وروسته هغه فعل ادا کړي۔

په دغو دریو صورتونو کښې د متابعت حق ادا کیږي او د مقتدي لمونځ صحیح کیږي۔ لهذا په نوموړي صورت کښې چونکه د تشهد ویل واجب دي د دې لپاره لاحق یا مسبوق د تشهد له لوستلو وروسته دې قیام وکړي او رکوع دې یوائې ادا کړي بیا دې له امام سره شریك شي۔ په دې صورت کښې هم د متابعت حق د تاخر په شکل کښې ادا کیږي۔ البته په پورتني صورتونو کښې که چېرته مقتدي اصل فعل (یعني فرض رکن لکه رکوع) پریږدي نو د امام له سلام اړولو وروسته به مستقل رکعت ادا کوي او سلام به اړوي۔ او که چېرته ئې د امام له سلام اړولو وروسته مستقل رکعت ادا نه کړ نو لمونځ ئې و نه شو۔ د دې لپاره د لمانځه بیرته راګرځول پرې واجب بلکه فرض دی او دوباره به ئې ادا کوي۔

قال ابن عابدینؒ: و الحاصل ان متابعة الامام فی الفرائض و الواجبات من غیر تاخیر واجبةٌ. فان عارضها واجب لا ینبغی ان یفوته بل یأتی بهٖ ثم یتابع کما لو قام قبل ان یتم المقتدی التشهد فانهٗ یتمه ثم یقوم لان الاتیان بهٖ لا یفوت المتابعة با لکلیة. و انما یؤخرها و المتابعة مع قطعه تفوتهٗ با لکلیة فکان تاخیر احد الواجبین مع الاتیان بهما اولٰی من ترك احدهما با لکلیة. (رد المحتار ج۱، ص۴۷۰، مطلب مهم فی تحقیق متابعة الامام)

قال العلامة حماد بن حسن الشرنبلالیؒ: لو سلم الامام او تکلم قبل فراغ المقتدی من قرأة التشهد

يتمه....... و لا يتبع الامام و ان خاف فوت الركوع لان قرأة بعض التشهد لم تعرف قربة و الركوع لا يفوت فى الحقيقة لانه يدرك فكان خلف الامام و معارضة واجب آخر لا يمنع الاتيان بما كان فيه من واجب غيره لاتيانه به بعدهٗ فكان تاخير احد الواجبين مع الاتيان بهما اولى من ترك احدهما با لكلية. (مراقى الفلاح على صدر الطحطاوى ص ۲۵۱، فصل فيما يفعله المقتدى بعد فراغ امامه....... الخ)

## مسبوق به په سلام كښې د امام متابعت نه كوي اګر كه د سجدۀ سهوې سلام هم وي

**سوال:** مسبوق كه چېرته له امام سره د سجدۀ سهوه لپاره په قصد يا په سهوه سره سلام وګرځوي نو په لمانځه باندې ئې څه اثر لوېږي؟ همدارنګه په قعده اخير كښې د شريكېدونكي سړي لپاره د امام د سجدۀ سهو متابعت ضروري دی او كه نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د مسبوق والي د حيثيت د ور په ياديدو تر څنګ سلام ګرځول د لمانځه د فساد موجب دی۔ البته د هيرې په صورت كښې سلام اړول په لمانځه باندې كوم اثر نه اچوي په داسې حال كښې چه د امام له سلام سره يو ځای او يا مخكښې سلام وګرځوي۔ لهذا داسړی به د امام له فراغت څخه وروسته درېږي او خپل لمونځ به پوره كوي۔ هو! په مسبوق باندې د امام د سجدۀ سهو متابعت ضروري دی ليكن د سلام په ګرځولو كښې به د امام متابعت نه كوي تر څو چه له وجهې ئې محلل د لمانځه په منځ كښې واقع نه شي او د امام له فراغت څخه وروسته په سهوه سره په سلام ګرځولو سره په مسبوق باندې سجدۀ سهو واجبېږي۔

قال العلامة الحصكفىؒ: و المسبوق يسجد مع امامه مطلقاً سواءٌ كان السهو قبل الاقتداء او بعدهٗ. قال ابن عابدينؒ تحت هٰذه العبارة قيد با لسجود لانه لا يتابعه فى السلام بل يسجد معه و يتشهد ما ذا سلم الامام قام الى القضاء فان سلم فان كان عامداً فسدت و الا لا و لا سجود عليه ان سلّم سهواً قبل الامام او معه او ن سلّم بعده لزمه لكونه منفرداً حينئذ (بحر) و اراد با لمعية المقارنة و هو نادر الوقوع كما فى شرح المنية و فيه و لو سلم على ظن ان عليه ان يّسلّم فهو سلام عمد يمنع البناء. (الدر المختار و رد المحتار ج ۲، ص ۸۲، باب سجود السهو)

و فى الهندية: سهو الامام يوجب عليه و على من خلفه السجود كذا فى المحيط و لا يشترط ان يكون مقتدياً به وقت السهو حتىٰ لو ادرك الامام بعد ما سها يلزمه ان يسجد مع الامام تبعاً لهٗ. و لو دخل معه بعد ما سجد سجدة السهو. يتابعه فى الثانية و لا يقتضى الاول و ان دخل معه بعد ما سجدهما لا يقضيهما. (الهندية ج ۱، ص ۱۲۸، باب سجود السهو) و مثله فى البحر الرائق ج ۱، ص ۳۷۸، باب الحدث فى الصلوٰة، فى استخلاف المسبوق)



## د مسبوق په سهو سره سلام اړول او بيا له خارج څخه د فتحې په تر لاسه كيدو سره ئې د لمانځه حكم

**سوال:** مسبوق كه چېرته په سهو سره سلام وګرځوي او بل سړی ئې خپل مسبوقيت ور په زړه كړي او دی عمل پرې وكړي د پاتې لمانځه لپاره ودرېږي نو د لمانځه شرعي حيثيت به ئې څه وي؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په دې مسئله كښې د فقهاوو پخپل منځ كښې اختلاف دی۔ د ځينو په نزد په داسې كولو سره لمونځ فاسدېږي او د ځينو په نزد لمونځ ئې صحيح دی او همدا راجح قول دی۔ لهذا احتياط په دې كښې دی چه لمونځ كوونكی له بهر څخه د فتحې په تر لاسه كيدو باندې تحری وكړي او بيا جګ شي او خپل پاتې لمونځ پوره كړي تر څو چه د اختلاف صورت جوړ نه شي۔ هو! كه چېرته ئې له امام سره يو ځای سلام اړولی وي نو د لمانځه په آخر كښې د سجده سهو ضرورت هم نشته او كه چېرته ئې د امام له سلام څخه وروسته سلام ګرځولی وي نو په داسې صورت كښې د لمانځه په آخر كښې سجدۀ سهو پرې واجبه ده۔

قال العلامة الحصكفىؒ: و لو سلّم (اى المسبوق) ساهياً ان بعد امامه لزمه السهو و الا لا. (الدر المختار على هامش رد المحتار ج ۱، ص ۴۴۳، باب سجود السهو)

قال القاضى خان: اذا سلم المسبوق ساهياً يلزمه السهو قيل هٰذا اذا سلم بعد الامام فان سلم مع الامام لا سهو عليه. (الفتاوى القاضى خان على هامش الهندية ج ۱، ص ۱۲۳، باب سجود السهو)

## د ماښام د جمعې په آخري ركعت كښې د شريكېدونكي سړي حكم

**سوال:** كه چېرته يو څوك د ماښام په لمانځه كښې له امام سره په آخري ركعت كښې شامل شي نو هغه به پاتې لمونځ څنګه ادا كوي؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** دا مسبوق به د امام د سلام اړولو نه وروسته جګېږي، ثناء، تعوذ، تسميه، فاتحه او بل سورت به وايي ركوع او سجده به كوي او بيا به په قعده كښې كښيني التحيات به وايي۔ بيا به جګېږي په دوهم ركعت كښې به فاتحه او سورت لولي بيا به تر ركوع او سجدې وروسته كښيني التحيات او نور به پوره كوي سلام به ګرځوي۔ او دريم ركعت هغه له امام سره ادا كړی دی۔ اوِ كه چېرته په دوهم ركعت (د امام له فراغت څخه وروسته په لومړي ركعت) كښې قعده و نه كړي نو بيا ئې هم لمونځ استحساناً جائز دی او سجدۀ سهو هم پرې واجبه نه ده۔

لما قال ابراهيم الحلبىؒ: لو ادرك مع الامام ركعة من المغرب فانه يقرأ فى الركعتين الفاتحة و السورة و يقعد فى اوليهما لانه ثنائية و لو لم يقعد جاز استحساناً لا قياساً و لم يلزمه سجود السهو. (كبيرى ص ۴۶۸، فى آخر فصل سجود السهو)

قال ابن نجيم المصرىؒ: لو ادرك مع الامام ركعة من المغرب فانهٗ يقرأ فى الركعتين با لفاتحة و السورة و لو ترك

القراۃ فی احدهما فسدت صلٰوته و علیه ان یقضی رکعة بتشهد لانها ثانیته و لو ترك جازت استحساناً لا قیاساً. و قال ابن عابدینؒ: تحت هٰذه العبارة. و لو لم یقعد جاز استحساناً لا قیاساً و لم یلزمه سجود السهو و لو سهواً. (البحر الرائق و منحة الخالق ج ۱، ص ۳۷۹، باب الحدث فی الصلٰوة) و مثله فی رد المحتار ج ۱، ص ۵۹۷، احکام المسبوق)

## د دریو رکعتونو د مسبوق لپاره د امام لـه فارغیدو وروسته د دوو رکعتونو د پرله پسې د اداکولو په صورت کښې د لمانځه حکم

**سوال:** که چېرته مسبوق له امام سره څلورم رکعت اداکړي نو اصل حکم خو دا دی چه د امام له فراغت وروسته به بل رکعت اداکوي او قعده به کوي. لیکن که هغه دا سې و نه کړه او له امام څخه وروسته ئې د بناء په صورت کښې دوه رکعتونه بغیر له قعدې څخه یو ځای اداکړه نو آیا سجدۀ سهو پرې لازمیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** اګر که معتمد علیه قول د امام محمدؒ دی او په مذکوره صورت کښې د امام محمدؒ د قول خلاف شوی دی. لیکن بیا هم د نوموړي سړي لمونځ استحساناً جائز او صحیح دی. سجدۀ سهو هم پرې واجبه نه ده.

قال العلامة الحصکفیؒ: و یقضی اول صلٰوته فی حق قرأته و آخرها فی حق تشهد فمدرك رکعة من غیر فجر یأتی برکعتین بفاتحة و سورة و تشهد بینهما و برابعة الرباعی بفاتحة فقط و لا یقعد قبلها...... و قال ابن عابدینؒ تحت هٰذه العبارة. (قوله و یقضی صلٰوته فی حق قرأته اول الخ) و هٰذا قول محمدؒ کما فی مبسوط السرخسیؒ و علیه اقتصر فی الخلاصة و شرح الطحاوی و الاسبیجابی و الفتح و الدرر و البحر و غیرهم و ذکر الخلاف کذٰلك فی السراج الوهاج لکن فی صلٰوة الجلابی ان هٰذا قولهما و تمامهٗ فی شرح الشیخ اسمٰعیل و فی الفیض عن المستصفی لو ادرکه فی رکعة الرباعی یقضی رکعتین بفاتحة و سورة ثم یتشهد ثم یأتی با لثالثة بفاتحة خاصة آه. و ظاهر کلامهم اعتماد قول محمدؒ (قوله تشهد بینهما) قال فی شرح المنیة و لو لم یقعد جاز استحساناً لا قیاساً و لم یلزمه سجود السهو لکون الرکعة اولی من وجه آه. (الدر المختار و رد المحتار ج ۱، ص ۵۹۶، احکام المسبوق و اللاحق)

قال ابراهیم الحلبیؒ: و من جملتها ما اشرنا الیه انه یقضی اوّل صلٰوته فی حق القراۃ و آخرها فی حق القعدة حتٰی لو ادرك مع الامام رکعة من المغرب بانه یقرأ فی الرکعتین الفاتحة و السورة و یقعد فی اولیهما لانها ثنائیة و لو لم یقعد جاز استحساناً لا قیاساً و لم یلزمه سجود السهو لو سهواً لکونها اولٰی من وجه الخ. (کبیری ص ۴۶۸، باب سجود السهو) و مثله فی منحة الخالق حاشیة البحر الرائق ج ۱، ص ۳۷۹، باب الحدث فی الصلٰوة)

## په څلورم رکعت کښې د شریکیدونکي مسبوق د لمانځه حکم

**سوال:** چه کله یو سړی په څلور رکعتیزه لمانځه کښې امام په آخري رکعت کښې پیدا کړي او لومړني دري رکعتونه له هغه څخه فوت شوي وي نو د امام له سلام ګرځولو وروسته مقتدي باید څه طریقه اختیار کړي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** دا مسبوق به د امام له فراغت څخه وروسته دریږي او د یو رکعت له



اداکولو وروسته به قعده کوي او دریم رکعت ته د دریدو په صورت کښې به فاتحه او یو سورت لولي او په آخري رکعت کښې یواځې سورت فاتحه لولي. ګوا که په دې صورت کښې به مسبوق له امام سره د اداشوي رکعت څخه پرته نور رکعتونه به په همدې ترتیب اداکوي.

قال العلامة الحصکفیؒ: (و المسبوق من سبقه الامام بها او ببعضها) (ای بکل رالرکعات او ببعض الرکعات) (و هو منفرد) حتٰی یثنی و یتعوذ و یقرأ و ان قرأ مع الامام لعدم الاعتداد بها لکراهتها مفتاح السعادة (فیما یقضه) ای بعد متابعة لامامه الخ. و یقضی اوّل صلٰوته فی حق قراۃ و آخرها فی حق التشهد. فمدرك رکعة من غیر فجر یأتی برکعتین بفاتحة و سورة و تشهد بینهما و برابعة الرباعی فقط و لا یقعد قبلها. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج ۱، ص ۵۹۶، احکام المسبوق و اللاحق)

قال العلامة طاهر بن عبد الرشید البخاریؒ: و لو ادرك رکعة مع الامام فی صلٰوة الظهر و العصر و العشاء و قام الی القضاء فعلیه ان یقضی رکعة و یقرأ فیها با لفاتحة و سورة و یتشهد لانهٗ یقضی آخر الصلٰوة فی حق التشهد و یقضی رکعة و یقرأ فیها با لفاتحة و السورة و لا یتشهد و فی الثالثة با لخیار و القراۃ افضل و لو ادرك رکعتین منها یقضی رکعتین و یقرأ فیهما و یتشهد. (خلاصة الفتاوٰی ج ۱، ص ۱۶۶، مسائل المسبوق) و مثله فی البحر الرائق ج ۱، ص ۳۷۹، فی باب الحدث فی الصلٰوة، فی استخلاف المسبوق)

## د مسبوق لپاره لـه امام سره په آخري قعدې کښې د درود شریف د لوستلو حکم

**سوال:** که چېرته یو سړی په جماعت کښې په داسې حال کښې شامل شي چه امام یو یا دوه رکعته اداکړي وي نو مقتدي به په آخري قعدې کښې له امام سره د کښیناستو په صورت کښې درود شریف او دعاء لولي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** مسبوق د امام په آخري قعدې کښې د لمانځه د وسط په حکم کښې دی. د دې لپاره هغه باید درود شریف و نه لولي ځکه چه درود شریف د لمانځه په آخري کښې لوستلکیږي. نو ځکه مسبوق به په آخري قعدې کښې د تشهد په ویلو کښې له اطمینان څخه کار اخلي تر څو چه د امام تر سلام اړولو پورې دی په تشهد کښې مشغول پاتې وي. او که چېرته تشهد زر ختم کړي نو بیا به په بیا بیا توګه د تشهد آخري څو ټکي یعې شهادتونه لولي.

و فی الهندیة: و منها ان المسبوق ببعض الرکعات یتابع الامام فی التشهد الاخیر و اذا اتم التشهد لا یشتغل بما بعده من الدعوات ثم ما ذا یفعل تکلموا فیه. و عن ابن شجاع انه یکرر التشهد ای قوله اشهد ان لا اله الا الله و هو المختار کذا فی الغیاثیة. (الهندیة ج ۱، ص ۹۱، الفصل السابع فی المسبوق و اللاحق)

قال قاضی خانؒ: المسبوق اذا قعد مع الامام کیف یفعل اختلفوا فیه و الصحیح انهٗ یترسل فی التشهد حتٰی یفرغ من التشهد عند سلام الامام. (فتاوٰی قاضی خان علی هامش الهندیة ص ۱۰۳/۱۰۴، فصل فی المسبوق)

## د امام په سهوې سره پنځم رکعت ته په پورته کیدو باندې د مسبوق د لمانځه حکم

**سوال:** په آخري قعدې کښې د تشهد له ویلو وروسته امام په سهوې سره پنځم رکعت ته پورته شو نو په د اسې صورت کښې به مسبوق (چا چه له امام سره څه رکعتونه نیولي وي او څه پاتې وي) کومه طریقه اختیاروي؟ آیا مسبوق به هم د امام د متابعت په کولو سره پنځم رکعت ته پورته کیږي او که به تر هغو ناست وي تر څو چه امام بیرته را وګرځي او سلام واړوي او که به د امام د متابعت په پریښودو سره خپل پاتې لمونځ پوره کوي؟ په دغو دریو صورتونو کښې د مسبوق لپاره کوم صورت د عمل وړ دی چه عمل پرې وکړي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** څرګنده دې وي چه د مسبوق حالت له مدرک څخه مختلف دی۔ مدرک له ابتداء څخه واخله تر آخره پورې د امام تابع وي لیکن مسبوق د امام په تابعداري کښې یږ اځې تر هغه وخته پورې وي تر څو چه د امام لمونځ په حال وي۔ په دې معنی سره چه د امام له سلام اړولو وروسته مسبوق د.یو اځې لمونځ کوونکي په شان خپل لمونځ پوره کوي۔ د فقهاوو له خبرو څخه څرګندیږي چه له امام سره لمونځ کوونکی مسبوق باید له احتیاط څخه کار واخلي، چه د اسې و نه شي چه د امام له د اسې زیاتي تابعداری څخه د هغه لمونځ متاثر شي۔ لهذا امام چه کله تر آخري قعدې وروسته پنځم رکعت ته سهواً پورته شي نو د ا د اسې حالت دی چه تعلق ئې له اصلي لمانځه سره نشته ځکه چه لمونځ خو پوره شوی دی د دې لپاره پنځم رکعت ته په پورته کیدو باندې د امام تابعداري ضروري نه ده۔ مسبوق به د تشهد په حالت کښې ناست وي او د امام انتظار به کوي۔ او که چېرته په مذکوره صورت کښې د آخري ناستې نه وروسته مسبوق هم له امام سره ودریږي نو د مسبوق لمونځ فاسدیږي۔

قال ابن نجیم المصریؒ: و لو قام الامام الی الخامسة فی صلوٰة الظهر فتابعه المسبوق ان قعد الامام علی راس الرابعة تفسد صلوٰة المسبوق. (البحر الرائق ج۱، ص۳۷۸)

و ایضاً قال علاؤ الدین الحصکفیؒ: و لو قام امامه لخامسة فتابعه ان بعد القعود تفسد. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۵۹۹، قبل باب الاستخلاف)

له دې وجهې مسبوق به د پنځم رکعت تر سجدې پورې انتظار کوي۔ په دې دوران کښې که چېرته د سجدې له کولو څخه مخکښې امام ته وریاد شو او بیرته را وګرځید په تشهد کښیناست نو مسبوق به له امام سره سجدهٔ سهو وکړي، چه کله امام سلام واړوي نو مسبوق به د قاعدې له مخې پورته شي او خپل پاتې لمونځ به پوره کړي۔ لیکن که چېرته امام د پنځم رکعت سجده وکړه نو بیا به مسبوق د تشهد په اندازه له کښیناستو وروسته جګ شي او خپل لمونځ به پوره کوي۔



قال العلامة طاهر بن عبد الرشید البخاریؒ: و فی الاصل لو قام المسبوق الی قضاء ما سبق به بعد فراغه من التشهد قبل السلام جاز. (خلاصة الفتاوی ج۱، ص۱۶۹، قبل الفصل السادس عشر فی السهو)

او که چېرته امام د پنځم رکعت لپاره د تشهد له ویلو پرته جګ شي نو بیا په دې صورت کښې که مسبوق د امام تابعداري وکړي او که ئې نه کړي په دواړو صورتونو کښې د پنځم رکعت د سجدې په کولو سره لمونځ نفل ګرځي۔

قال ابن نجیم المصریؒ: و ان لم یقعد لم تفسد حتی یقید الخامسة بسجدة فاذا قیدها با لسجدة فسدت صلوٰة الکل. (البحر الرائق ج۱، ص۳۷۸، باب الحدث فی الصلوٰة)

و لو قام امامه الخامسة فتابعه ان بعد القعود تفسد و الا لا حتی یقید الخامسة بسجدة. قال ابن عابدینؒ (قوله تفسد) ای صلوٰة المسبوق لانه اقتداء فی موضع الانفراد.

و قال ایضاً: (تحت قوله و الا) ای و ان لم یقعد و تابعه المسبوق لا تفسد صلوٰته...... فان قیدها بسجدة انقلبت نفلاً. (رد المحتار ج۱، ص۵۹۹، احکام المسبوق)

قال العلامة الحصکفیؒ: و لو قام قبل السلام هل یعتد بادائه ان قبل قعود الامام قدر التشهد لا و ان بعد نعم و کره تحریماً الا لعذر. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۵۹۷، احکام المسبوق) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۹۱/۹۲، باب اللاحق و المسبوق)

## د مسبوق لپاره په قضاء شویو رکعتونو کښې د قرائت حکم

**سوال:** یو سړی له امام سره په آخري رکعت کښې شامل شو او لمونځ ئې ادا کړ۔ د امام له فراغت څخه وروسته به په فوت شوي رکعتونو کښې قرائت وایي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د احنافو په نزد مسبوق به په فوت شوي رکعتونو کښې له سورت فاتحې سره یو بل سورت یو ځای کوي او وایي به ئې۔ ځکه چه مسبوق د قرائت له اعتباره د لمانځه لومړنی برخه ادا کوي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: و یقضی (ای المسبوق) اول صلوٰته فی حق قراة الخ.

قال ابن عابدینؒ: تحت هٰذه العبارة (قوله و یقضی اول الخ) هٰذا قول محمد کما فی مبسوط السرخسیؒ و علیه اقتصر فی الخلاصة و شرح الطحطاوی لو ادرکه فی رکعة الرباعی یقضی رکعتین بفاتحة و سورة ثم یتشهد ثم یأتی الثالثة بفاتحة خاصة عند ابی حنیفة و قالا رکعة بفاتحة و سورة ثمّ یتشهد ثم رکعتین اولاهما بفاتحة و سورة و ثانیهما بفاتحة خاصة و ظاهر کلامهم اعتماد قول محمد. (رد المحتار ج۱، ص۵۹۶، احکام المسبوق)

قال العلامة طاهر بن عبد الرشید البخاریؒ: و المسبوق فیما یقضی یقضی اول صلوٰته فی حق القراة و آخر صلوٰته فی حق التشهد الخ و لو ادرک رکعتین منها. (ای من صلوٰة الظهر او العصر او العشاء) یقضی رکعتین و یقرأ فیهما و یتشهد. (خلاصة الفتاوی ج۱، ص۱۶۵/۱۶۶) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۹۱، باب احکام اللاحق و المسبوق)

## د امـــام د سُرعت له وجهې له مقتدي څخه په رکوع او سجــــدې کښې د تـــاخير حکم

**سوال:** که چېرته يو سړی د لمانځه له ابتداء څخه له امام سره په جمع کښې شريك وي- په منځ کښې د امام د سُرعت (تيزي) له وجهې له مقتدي څخه رکوع يا سجده پاتې شي نو دا سړی به په دې حالت کښې څه کوي؟ بينوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** دا سې سړی به په ترتيب سره له امام سره د رکوع او سجدې د ادا کولو کوشش کوي- د فرضو يا واجبو له پرېښودلو څخه دا بهتره ده چه د امام په ملګرتيا کښې ځنډ وشي ځکه چه د تاخير په صورت کښې هم فی الجمله متابعت موجود دی-

قال ابن عابدينؒ: فلو نام فی الثالثة و استيقظ فی الرابعة فانهٗ يأتی با لثالثة بلا قرأة فاذا فرغ منها صلی مع الامام الرابعة و ان فرغ منها الامام صلاها وحدها بلا قرأة ايضاً فلو تابع الامام ثم قضی الثالثة بعد السلام صح و اثم. (رد المحتار ج۱، ص۵۹۵، احکام اللاحق)

و فی الهندية: و لو لم يشتغل بقضاء ما سبقه الامام و لکن يتابع الامام اوّلاً ثم قضٰی ما سبقه الامام بعد تسليم الامام جازت صلٰوته عندنا هٰکذا فی شرح الطحطاوی. (الهندية ج۱، ص۹۲، الفصل السابع فی المسبوق و اللاحق)

## د سجـــــدۀ سهو لپاره سلام ګرځول د ذات په اعتبـــــار سره مخرج عن الصلٰوه نـــــه دی

**سوال:** امام د سجده سهو لپاره په سلام ګرځولو سره له لمانځه څخه وتلی ګڼل کيږي او که نه؟ که چېرته وتلی نه ګڼل کيږي نو مسبوق ولې له امام سره له سلام اړولو څخه منع شوی دی؟ او که چېرته له لمانځه څخه وتلی ګڼل کيږي نو بيا په دې دوران کښې په امام پسې د نوي مسبوق اقتداء ولې صحيح کيږي؟ د دواړو صورتونو څه دلائل دي؟ او آيا د سهوې سجده د سلام له ګرځولو پرته هم ادا کولی شي او که نه؟ بينوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په دې مسئلې کښې د امامانو اختلاف دی- امام محمدؒ فرمايي چه کوم سړی د سجدې لپاره سلام واړوي نو هغه په اصل کښې له لمانځه څخه وتلی نه وي- او دا سلام موقوفاً او ذاتاً په يوه اعتبار سره هم مخرج او محلل نه دی- په دا سې حال کښې چه د شيخينوؒ په نزد دا سلام خو په خپل ذات کښې محلل او مخرج دی لکه څرنګه چه نبي کريمﷺ فرمايلي دي چه تحليلها التسليم ليکن د سهو د خاوند په حق کښې په قطعي او ذاتي توګه محلل او مخرج نه ګڼل کيږي- او که چېرته سجدۀ سهو و نه کړي نو مخرج او محلل ګڼل کيږي- لهذا د سلام ګرځولو په وخت کښې په هغه باندې هيڅ حکم نه لګول کيږي نه د مخرج او نه د محلل او نه د غير مخرج او محلل- له دې تحقيق څخه د مسبوق لپاره د سلام د ګرځولو ممانعت وجه معلومه شوه چه د مسبوق په حق کښې چونکه دا سلام د لمانځه په منځ کښې د



ګرځولو احتمال دی د دې لپاره د مسبوق لپاره د سلام ګرځول ممنوع دي- تر څو چه د ده په حق کښې د لمانځه په منځ کښې محلل واقع نه شي- اګر که له يوې وجهې دې محلل هم نه وي- پاتې شوه دا خبره چه بيا په دې حالت کښې د امام پسې د نوي مسبوق اقتداء ولې صحيح کيږي؟ نو د دې وجه دا ده چه د ده اقتداء هغه وخت صحيح تسليميږي چه امام تر سلام ګرځولو وروسته سجدۀ سهو وکړي- ځکه چه د سجدۀ سهو له کولو وروسته سلام په اتفاق سره مخرج او محلل نه دی- د دې لپاره امام په دې صورت کښې په اتفاق سره له لمانځه څخه وتلی نه دی- لهذا د دوهم مسبوق اقتداء ورپسې جائزه او صحيح ده- برسيره پر دې د سهوې سجده له سلام څخه مخکښې هم جائزه ده- له نبي کريمﷺ څخه دواړه ډوله عمل په روايتونو او حديثونو کښې منقول دي- ليکن چونکه نبي کريمﷺ د ټول امت لپاره عامه تشريع دا تاکلې ده چه لکل سهو سجدتان بعد السلام. د دې لپاره ئې سلام ګرځول او د سجدۀ سهوې ادا کول افضل ګڼلی دی- ځکه چه تر سلامه پورې څومره واجبات پاتې شوي وي د هغو ټولو لپاره يو ځل سجدۀ سهو کول کافي ګرځي-

قال العلامة الحصکفیؒ: و سلام من عليه سجود سهو يخرجه من الصلٰوة خروجاً موقوفاً ان سجد عاد اليها و الا لا و علی هذا يصح الاقتداء بهٖ الخ.

قال ابن عابدينؒ: تحت هٰذه العبارة (قولهٗ يخرجه من الصلٰوة الخ) هٰذا عندهما و اما عند محمدؒ فانه لا يخرجه منها اصلاً کما فی البحر و غيره.

(قولهٗ ان سجد عاد الخ) افاد ان معنی التوقف انهٗ يخرجه منها من کل وجه علی احتمال ان يعود الی حرمتها با لسجود بعد خروجه منها و لهم فيه تفسير آخر و هو انهٗ قبل السجود يتوقف علی ظهور عاقبته ان سجد تبيّن انهٗ لم يخرجه و ان لم يسجد تبيّن انهٗ اخرجه من وقت وجوده. (رد المحتار ج۲، ص۸۹، باب سجود السهو)

قال الامام اکمل الدين محمد بن محمد البابرتیؒ: (لان هٰذا السلام) ای سلام من عليه سجدة السهو غير قاطع ای با لاتفاق اما عند محمدؒ فلانه لم يشرع محللاً و اما عندهما فلانه ان کان محللاً فهو محلل علی سبيل التوقف لا علی سبيل البتات و کل ما لم يشرع قاطعاً لا يقطع الصلٰوة فدل علی ان القطع لا يحصل با لسلام. (العناية علی هامش فتح القدير ج۱، ص۴۵۰، باب سجود السهو)

قال ابن الهمامؒ: فکل سلام الاصل فيه ان يکون مخرجاً لانهٗ جعل محللاً شرعاً. قال النبیﷺ تحليلها التسليم و لانه من باب الکلام علی ما مرّ الا انه منع من الاخراج حالة السهو دفعاً للحرج لکثرة السهو و غلبة النسيان و لا يکثر سلام من علم ان عليه الواجب لان ظاهر حال المسلم انهٗ لا يترك الواجب فبقی مخرجاً علی اصل الوضع. (فتح القدير ج۱، ص۴۵۱، باب سجود السهو)

## په مسافـــــــر امام پسې په دوهم ركعت يا قعدې كښې د شـــــامل شوي مقيم مقتدي د لمانځه حكم

**سوال:** يو مقيم سړی په مسافر امام پسې په دوهم ركعت يا قعده كښې شريك شو. نو د مسافر امام له سلام ګرځولو څخه وروسته به مقيم مسبوق پاتې لمونځ څه ډول ادا كوي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** چه كله يو مقيم سړی د مسافر امام پسې اقتداء وكړي او لمونځ يا د ماسپښين، مازديګر او يا د ماسخوتن وي نو د امام له سلام اړولو وروسته به مقتدي په دريم او څلورم ركعت كښې قرائت نه وايي. او په كوم ركعت كښې ئې چه امام پيدا كړی وي په هغه كښې به سورت فاتحه او يو بل سورت تلاوت كړي. ګواكه په دې صورت كښې دی د لمانځه په مختلفو برخو كښې د مسبوق او لاحق دواړو په حكم كښې دی.

قال العلامة الحصكفیؒ: و اللاحق من فاته الركعات كلها او بعضها لكن بعد اقتدائه لعُذر و سبق حدث و صلٰوة خوف و مقيم ائتم بمسافر..... قال ابن عابدينؒ تحت هٰذه العبارة (قوله مقيم الخ) ای فهو لاحق (ای مقيم المقتدی با لمسافر) با لنظر للاخيرتين و قد يكون مسبوقاً ايضاً كما اذا فاته اول صلٰوة امامه المسافر. آه (الدر المختار و رد المحتار ج ۱، ص ۵۹۴، مسائل المسبوق و اللاحق)

و ايضاً قال ابن عابدينؒ: ان اللاحق المسبوق يقضی وجوباً اولاً ما لحق به ثم ما سبق به الخ و ان صح عكسه عندنا خلافاً لزفرؒ. (رد المحتار ج ۱، ص ۴۲۵)

قال العلامة طاهر بن عبد الرشيدؒ: ان المسبوق فيما يقضی كا لمنفرد و اللاحق كانهٗ خلف الامام و لهٰذا لا قراة على اللاحق و يفترض على المسبوق. (خلاصة الفتاوىٰ ج ۱، ص ۱۶۶، مسائل المسبوق)

## د لاحق د لمانځه طـــــــريقه

**سوال:** زيد د ماسپښين په لمانځه كښ شريك شو، د دوه ركعتونو له ادا كولو وروسته بې اودسي ور پيښه شوه نو فوراً ئې اودس وكړ او له امام سره په قعده كښې شامل شو. آيا دی به پاتې لمونځ د امام له فارغيدو وروسته څه ډول ادا كوي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په صورت مسئوله كښې د اوداسه له كولو وروسته هغه بايد فوت شوی لمونځ له قرائت پرته ادا كړي كوم چه د حدث يعنې بې اودسي له وجهې ترې فوت شوی دی. بيا كه چېرته امام په لمانځه كښې وي نو له هغه سره به شموليت غوره كړي او كه نه نو يوائې به لمونځ پوره كوي. هو! كه چېرته لومړی له امام سره يو ځای شي او بيا د امام له فراغت څخه وروسته خپل پاتې لمونځ پوره كړي نو دا هم جائز دي ليكن لومړی صورت بهتر دی.

و فی الهندية: اللاحق اذا عاد بعد الوضوء ينبغی لهٗ ان يشتغل اوّلاً بقضاء ما سبقه الامام بغير قرأة يقوم مقدار قيام الامام و ركوعه و سجوده. و لو زاد او نقص فلا يضره. هٰكذا فی شرح الطحاوی. و قال بعد سطر واحدةٍ و لو لم يشتغل بقضاء ما سبقه الامام و لٰكن يتابع الامام اولاً ثم قضٰی ما سبقه الامام بعد تسليم الامام جازت صلٰوته عندنا. هٰكذا



فی شرح الطحاوی. (الهندية ج ۱، ص ۹۲، الفصل السابع فی المسبوق و اللاحق)

قال ابن عابدينؒ: ففی شرح المنية و حكمه (ای اللاحق) انه يقضی ما فاتهٗ اوّلاً ثم يتابع الامام ان لم يكن قد فرغ. و فی النتف اذا توضأ و رجع يبدأ بما سبقه الامام بهٖ. ثم ان ادرك الامام فی شیء من الصلٰوة يصليه معهٗ آه. و فی البحر و حكمه انّهٗ يبدأ بقضاء ما فاتهٗ با لعذر ثم يتابع الامام ان لم يفرغ. و هٰذا وجب لا شرط حتٰی لو عكس يصح الخ. (رد المحتار ج ۱، ص ۵۹۵، احكام المسبوق و اللاحق) و مثله فی الهندية ج ۱، ص ۱۲۱/۱۲۲، الباب الحادی عشر فی قضاء الفوائت)

## د مـــــدرك د سستئ له وجهې د ركن په پاتې كيدو باندې د هغـــــه د راګــــــرځولو حكم

**سوال:** كه چېرته په وترو كښې مقتدي د دعاء قنوت په پوره كولو مصروف وو چه امام له ركوع څخه قومې ته لاړ نو اوس به دا سړی ركوع څنګه ادا كوي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په دې صورت كښې به مقتدي فوراً ركوع او سجده كوي او له امام سره به شريكيږي. اګر كه مقارن او متعاقب متابعت ادا نه شو ليكن د متابعت دريم ډول يعنې متابعت با لتاخير په بناء سره د نوموړي سړي لمونځ صحيح شو لكه څرنګه چه د لاحق د لمانځه حكم دی. او كه چېرته ركوع او قومه پريږدي او فوراً د امام متابعت وكړي نو د امام له فراغت څخه وروسته به يو مستقل ركعت ادا كوي بيا به ئې لمونځ صحيح كيږي. او كه چېرته با لكل ركعت ادا نه كړي نو لمونځ ئې باطليږي او بيرته به ئې راګرځوي.

قال ابن عابدينؒ: نعم تكون المتابعة فرضاً بمعنی ان يأتی با لفرض مع امامه او بعده كما لو ركع امامه فركع معه مقارناً او معاقباً و شاركه فيه او بعد ما رفع منه فلو لم يركع اصلاً و رفع قبل ان يركع مع امامه و لم يعد معه او بعده لبطلت صلٰوته الخ. (رد المحتار ج ۱، ص ۴۷۱، مطلب مهم فی تحقيق متابعة الامام)

# باب مکروهات الصلٰوه

## (د لمانځه د مکروهاتو بیان)

### د پرتاګه پایڅې له ښنګرو ښکته د کښته زړېدلو حکم

**سوال:** که چېرته د لمانځه په حالت کښې د پرتاګه پایڅې له ښنګرو ښکته کښته وي نو حکم ئې څه دی؟ په د اسې حال کښې چه په دې دور کښې د اکثرو خلکو پایڅې له ښنګرو ښکته کښته زړېږي او په همدې حالت کښې لمونځ هم کوي، آیا په د اسې ډول سره لمونځ کېږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** پایڅې د تکبر په توګه له ښنګرو ښکته کښته پرېښودل مکروه تحریمي دي۔ د دې لپاره په د اسې حالت کښې لمونځ کول هم له کراهیت څخه خالي نه وي۔ البته لمونځ پرې نه فاسدېږي۔

عن ابن عمر ان النبی ﷺ قال من جرّ ثوبه خیلاء لم ینظر الله الیه یوم القیامة.

عن ابی هریرة قال قال رسول الله ﷺ ما اسفل من الکعبین من الازار فی النار. (کلاهما فی الصحیح البخاری ج١، ص٨٦١، کتاب اللباس)

لما قال العلامة المُلاّ علی القاریؒ: قال ابن الملك: و یفهم منه ان جره لغیر ذٰلك لا یکون حراماً لکنه مکروه کراهة تنزیهة.

و ایضاً قال: و قد نص الشافعی علی ان التحریم مخصوص با لخیلاء لدلالة ظواهر الحدیث علیها فان کان الخیلاء فهو ممنوع منع تحریم و الا فمنع تنزیهة. (مرقات شرح مشکٰوة ج٨، ص١٣٨، کتاب اللباس، الفصل الاول) و مثله فی مشکٰوة ج٢، ص٣٧١/٣٧٢، کتاب اللباس)

### په لمانځه کښې د نبي کریم ﷺ په تصور کښې د راتللو حکم

**سوال:** په لمانځه کښې د التحیاتو په دوران کښې د جناب نبي کریم ﷺ په تصور کښې له راتلو څخه لمونځ فاسدېږي او که نه؟ په د اسې حال کښې چه د ځینو خلکو خیال دا دی چه لمونځ پرې فاسدېږي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په لمانځه کښې د نبي کریم ﷺ په تصور یا خیال کښې له راتلو څخه لمونځ نه فاسدېږي ځکه چه په التحیاتو او درود شریف کښې د انسان په تصور کښې خامخا نبي کریم ﷺ راځي۔ البته علی سبیل التعظیم و العباده خیال راوستل شرعاً جائز نه دي۔ ځکه چه لمونځ یواځې د الله تعالی لپاره ادا کېږي۔ په لمانځه کښې د غیر الله له تصور او خیال څخه پرهیز وکړی۔ او محض له خیال څخه لمونځ نه فاسدېږي۔

عن ابی هریرةؓ قال قال رسول الله ﷺ ان الله تجاوز عن اُمتی ما وسوست به صدرها ما لم تعمل به او تتکلم. متفق علیه. (مشکٰوة، ج١، ص١٨، باب فی الوسوسة)



عن ابی هریرةؓ قال قال رسول الله ﷺ ان الله عز وجل تجاوز لامتی عما حدثت به نفسها ما لم تعمل او تتکلم به. (الصحیح المسلم ج١، ص٧٨، باب بیان تجاوز الله تعالی عن حدیث النفس)

### په جومات کښې د ځای د ډېروالي تر څنګ په بام باندې د لمانځه د اداکولو حکم

**سوال:** په جومات کښې د ځای د ډېروالي سره سره ځینې خلك د جومات په بام باندې لمونځونه کوي۔ آیا شرعا د اسې کول جائز دي؟ او په دې سره په لمانځه کښې کوم فرق راځي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د جومات په بام باندې په انفرادي توګه یا له جمعې سره د لمانځه ادا کول جائز دي لیکن بغیر له عذر څخه د اسې کول له کراهیت څخه خالي نه وي۔ په دې شرط چه د امام حالت پرې مشتبه نه شي او نه تر امام مخکښې ولاړ وي۔ او که چېرته د امام حالت پرې مشتبه شي یا تر امام مخکښې ولاړ وي نو بیا جائز نه دي۔

قال ابن عابدینؒ: سطح المسجد له حکم المسجد فهو کاقتدائه فی جوف المسجد اذا کان لا یشتبه علیه الامام....... و لهذا یصح اقتداء من علی سطح المسجد بمن فیه اذا لم یتقدّم علی الامام. (رد المحتار ج١، ص٦٥٦، احکام المسجد)

لما قال العلامة فخر الدین حسن بن منصور الشهیر بقاضی خان: و لو قام علی سطح المسجد و اقتدی بامام فی المسجد ان کان للسطح باب فی المسجد و لا یشتبه علیه حال الامام یصح الاقتداء و ان اشتبه علیه حال الامام لا یصح. (الفتاوی القاضی خان علی هامش الهندیة ج١، ص٩٤، باب الامامة) و مثله فی الفتاوی الهندیة ج١، ص٨٨، باب الامامة، الفصل الرابع فی بیان ما یصح الاقتداء)

### د پټکي په تړلو کښې که چېرته د سر منځنۍ برخه لوڅه پاتې شي نو د لمانځه به څه حکم وي؟

**سوال:** ځینې خلك لیدل شوي دي چه کله پټکي تړي نو د سر منځنۍ برخه لوڅه پرېږدي او په همدې حالت لمونځ هم کوي۔ نو په د اسې ډول سره د لمانځه د اداکولو حکم څه دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** نبي کریم ﷺ له دې ډول پټکي په سرولو څخه منع فرمایلې ده چه په سر باندې دې پټکی موجود وي لیکن د سر منځنۍ برخه دې لوڅه وي۔ د دې لپاره له د اسې پټکي سره لمونځ مکروه دی۔

لما قال العلامة الحصکفیؒ: یکره اشتمال الصماء و الاعتجاز...... لنهی النبی ﷺ عنه و هو شد الرأس او تکویر عمامة علی رأسه ترك وسطه مکشوفا. قال ابن عابدینؒ (تحت قوله و الاعتجاز) (رد المحتار ج١، ص٦٥٢، باب ما یفسد الصلٰوة وما یکره مطلب الکلام علی اتخاذ المسبحة)

قال العلامة حسن بن عمار الشرنبلالیؒ: و یکره الاعتجاز و هو شد الرأس با لمندیل او تکویر عمامة علی رأسه. (مراقی الفلاح علی صدر الطحطاوی ص۲۸۴، فصل مکروهات الصلٰوة) و مثله فی الهندیة ج۱، ص۱۰۶، الفصل الثانی فیما یکره الصلٰوة)

## د جالۍ په خولۍ کښې د لمانځه د ادا کولو حکم

**سوال:** نن صبا د چینایي (جالۍ لرونکو) خولیو رواج عام دی او په لمانځه کښې اکثره خلك همدا خولۍ استعمالوي په داسې حال کښې چه د سر ویښته ترې ښکاریږي۔ آیا له داسې خولیو سره لمونځ کول جائز دي او که څنګه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په لمانځه کښې د عورت پټول ضروري دي او هغه هم په داسې جامو سره چه هغه ته مباح وي۔ لکه څرنګه چه د سر پټول د نارینه وو د عورت په پټولو کښې داخل نه دي او جالۍ لرونکې خولۍ هم د نارینه وو لپاره مباح ده نو د دې لپاره په داسې خولیو کښې لمونځ کول کومه بده خبره نه ده۔

لما قال المفتی عزیز الرحمٰنؒ: (الجواب) کومه جامه چه اغوستل ئې د نارینه وو لپاره مباح وي که چېرته هغه جالۍ لرونکې وي نو په خولۍ کښې ئې لمونځ صحیح دی۔ او استعمال ئې په دې طریقې سره صحیح دی چه د عورت ترې نه ښکاریږي۔ (فتاوٰی دار العلوم دیوبند ج۴، ص۱۰۹، باب مکروهات الصلٰوه)

## په غلا شوې خولۍ کښې د لمانځه د ادا کولو حکم

**سوال:** زما یو ملګری خیاط (درزي) دی او خلك جامې د ګنډلو لپاره ورته راوړي۔ نو که چېرته له دغو رختونو څخه کوم شی زیات شي او هغه خولۍ ترې جوړه کړي او لمونځ ورسره وکړي نو آیا لمونځ ئې ورسره کیږي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته دا رخت کوم چه له درزي سره زیاتیږي مالك د زړه په خوښه ور پرېښي وي نو له هغه څخه په جوړې شوې خولۍ کښې ئې لمونځ له کراهیت څخه پرته جائز دی۔ البته که چېرته د مالك له خوښې پرته ئې ځان ته خولۍ ترې جوړه کړې وي نو په داسې غلا شوې خولۍ کښې لمونځ کول مکروه دي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: و کذا تکره فی اماکن کفوق کعبة..... و ارض مغصوبة. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۳۸۱، کتاب الصلٰوة قبیل باب الآذان)

قال العلامة حسن بن عمار الشرنبلالیؒ: و تکره فی ارض الغیر بلا رضاه. (مراقی الفلاح علی صدر الطحطاوی ص۲۹۱، باب مکروهات الصلٰوة)



## په لیلامي (استعمال شویو) جامو کښې د لمانځه حکم

**سوال:** ځینې خلك نیلامي (استعمال شوي) جامې استعمالوي آیا پرته له پریمینځلو څخه په دغو جامو کښې لمونځ جائز دی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** نیلامي جامې اکثره د یهودو، نصاراوو او فساقو استعمال شوې جامې وي۔ فقهاء کرامو د هغو په پرتوګونو، پتلونونو او داسې نورو څخه پرته په نورو جامو کښې د لمانځه ادا کول جائز بللي دي۔ البته بهتره دا ده چه داسې جامې پریمینځل شي او بیا استعمال شي۔

لما قال العلامة الحصکفیؒ: اثیاب الفسقة و اهل الذمة طاهرة. قال ابن عابدینؒ: قال فی الفتح قال بعض المشائخ تکره الصلٰوة فی ثیاب الفسقة لانهم لا یتقون الخمور. قال المصنف یعنی صاحب الهدایة الاصح انه لا یکره لانه لم یکره من ثیاب اهل الذمة الا السراویل مع استحلالهم الخمر فهٰذا اولٰی. (رد المحتار ج۱، ص۳۵۰، فصل فی الاستنجاء، قبیل کتاب الصلٰوة)

قال العلامة السید احمد الطحطاویؒ: (تحت قوله و ثیاب الفسقة و اهل الذمة) مثلهم اهل الحرب (قوله طاهرة) ظاهره جواز الصلٰوة فیها من غیر کراهة فی التجنیس ان الصلٰوة فی سراویل اهل الذمة مکروهة. قال الحلبیؒ: و لعله لانهم لا یستنزئون و لا یستنجون. (الطحطاوی حاشیة رد المحتار ج۱، ص۱۶۸، فصل فی الاستنجاء، قبیل کتاب الصلٰوة) و مثله فی فتاوٰی دار العلوم دیوبند ج۴، ص۱۲۵، باب مکروهات الصلٰوة)

## په نریو جامو کښې لمونځ مکروه دی

**سوال:** نن صبا د داسې جامو استعمال عام شوی دی چه بدن تول په واضحه توګه ترې څرګندیږي۔ په داسې جامو کښې لمونځ څنګه دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د آزادې ښځې تول بدن عورت دی او د نارینه وو له نامه څخه واخله تر زنګنونو پورې عورت دی۔ په لمانځه کښې د دغو برخو پټول فرض دي۔ لهذا که چېرته د کومې ښځې د بدن هره یوه برخه چه له دغو جامو څخه ښکاره شي یا د نارینه له عورت څخه کومه برخه پټه نه وي نو په دې صورت کښې لمونځ نه کیږي او بیرته راګرځول ئې واجب دي۔

و لما قال العلامة الحصکفیؒ: و للمرأة و لو خنثٰی جمیع بدنها حتٰی شعرها النازل فی الاصح خلا الوجه و الکفین فظهر الکف عورة علی المذهب و القدمین علی المعتمد. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۴۰۵، باب شروط الصلٰوة)

و قال ابن عابدینؒ: تحت قوله و لا یصف ما تحته با لا یرٰی منه لون البشرة احترازاً عن الرقیق و نحو الزجاج. (رد المحتار ج۱، ص۴۱۰، باب شروط الصلٰوة، مطلب فی النظر الی وجه الامرد)

و فی الهندیة: و بدن الحرة عورة الا وجهها و کفیها و قدمیها. کذا فی المتون و شعر المرأة و ما علی رأسها عورة و اما المسترسل ففیه روایتان الاصح انهٗ عورة. کذا فی الخلاصة وهو الصحیح و به اخذ الفقیه ابو اللیث و علیه

الفتوى....... و الثوب الرقيق الذي يصف ما تحته لا تجوز الصلوٰة فيه كذا في التبيين. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۵۸، الباب الثاني في شروط الصلوٰة) و مثله في تبيين الحقائق ج۱، ص۹۶، باب شروط الصلوٰة)

## سجدې ته د تلو په وخت كښې د پرتاګه د را پورته كولو حكم

**سوال:** جناب مفتي صاحب! ځيني خلك ليدل شوي دي چه سجدې د تلو په وخت كښې خپل پرتوګ او د اسې نور پورته كوي. آيا د اسې عمل په كولو سره په لمانځه باندې كوم اثر لويږي او كه نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د لمانځه په حالت كښې بغير له ضرورته د اسې كول مكروه دي. البته كه چېرته ضرورت وي نو بيا كوم كراهيت پكښې نشته.

لما قال العلامة الحصكفيؒ: و كره كفه او رفعه و لو لتراب كمشمر كم او ذيل و عبثه به اى بثوبه و بجسده للنهي الا لحاجة و لا بأس به خارج صلوٰة. قال ابن عابدينؒ: (تحت قوله و عبثه) قال في النهاية و حاصله ان كل عمل هو مفيد للمصلّي فلا بأس به...... فاما ما ليس بمفيد فهو العبث. (رد المحتار ج۱، ص۶۴۰، باب ما يفسد الصلوٰة و ما يكره فيها)

قال العلامة حسن بن عمار الشرنبلاليؒ: و كف ثوبه اى رفعه او من خلفه اذا اراد السجود و قيل ان يجمع ثوبه و يشده في وسطه لما فيه من التجبر المنافي للخشوع لقولهﷺ امرت ان اسجد على سبعة اعضاء و ان لا اكف شعر و لا ثوباً. (مراقي الفلاح على صدر الطحطاوي ص۲۸۴، باب مكروهات الصلوٰة) و مثله في الهندية ج۱، ص۱۰۵، الفصل الثاني فيما يكره في الصلوٰة)

## د كفارو په لاس په جوړو شويو جامو كښې د لمانځه حكم

**سوال:** په بازارونو او ماركيټونو كښې نن صبا د جاپان او د اسې نورو اروپايي ملكونو جوړې شوې جامې خرڅيږي. ښكاره خبره ده چه د ارختونه اكثره د كفارو په لاس جوړ شوي وي. آيا په د اسې جامو كښې لمونځ جائز دى او كه نه؟ او د د اسې جامو استعمال څه حكم لري؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د كفارو په لاس د جوړو شويو جامو په استعمال كښې هيڅ بدي نشته. تر كومه ځايه پورې چه په دغو جامو كښې د لمانځه د ادا كولو خبره ده نو اګر كه د اسې جامو د ناپاكۍ احتمال شته ليكن د پاكوالي خوائې راجحه ده. د دې لپاره په د اسې جامو كښې لمونځ صحيح دى.

لما قال العلامة الحصكفيؒ: لو شك في نجاسة ماء او ثوب لم يعتبر. قال ابن عابدينؒ: (تحت قوله من شك) في انائه و ثوبه فهو طاهر الخ كذا ما يتخذه اهل الشرك او الجهلة من المسلمين و الخبز و الاطعمة. (رد المحتار ج۱، ص۱۵۱، كتاب الطهارة مطلب ابحاث الغسل)

قال العلامة عالم بن العلاء الانصاري رحمه الله: قال ابو حفص البخاري رحمه الله من شك في انائه او ثوبه او



بدنه اصابته نجاسة ام لا فهو طاهر ما لم يستيقن. (الفتاوى التاتارخانية ج۱، ص۱۴۶، كتاب الطهارة، نوع في مسائل الشك) و مثله في فتاوى دار العلوم ديوبند ج۴، ص۱۰۷، باب مكروهات الصلوٰة)

## د سترګو د پټولو په صورت كښې د لمانځه د ادا كولو حكم

**سوال:** ځيني خلك په پټو سترګو سره لمونځ كوي. نو آيا د اسې لمونځ جائز دى او كه نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په لمانځه كښې د سترګو پټول مكروه تنزيهي يعني د اولى خلاف دي. د دې لپاره بايد چه په پټو سترګو سره لمونځ ادا نه كړي. هو! كه چېرته د خشوع او خضوع لپاره په لمانځه كښې څوك سترګې پټې كړي نو له كراهيت پرته جائز دي بلكه ځينو علماوو بهتر هم بللى دى.

لما قال العلامة الحصكفيؒ: و كره...... تغميض عينه للنهي الا لكمال الخشوع قال ابن عابدينؒ: (تحت قوله للنهي) ثم الظاهر ان الكراهة التنزيهة. (رد المحتار ج۱، ص۶۴۵، باب ما يفسد و ما يكره فيها)

قال العلامة حسن بن عمار الشرنبلاليؒ: و يكره تغميض عينيه الا لمصلحة لقولهﷺ اذا قام احدكم في الصلوٰة فلا يغمض عينيه لانه يفوت النظر للمحل المندوب و لكل عضو و طرف حظ من العبادة و برؤية ما يفوت الخشوع و يفرق الخاطر بما يكون التغميض اولى من النظر. (مراقي الفلاح على صدر الطحطاوي ص۲۸۸، باب مكروهات الصلوٰة)

## په څادر يا رومال باندې د خولې د پټولو په صورت كښې د لمانځه حكم

**سوال:** د ژمي په موسم كښې خلك په څادر يا رومال باندې خولې پټوي او لمونځ كوي. په دې ډول سره د لمانځه د ادا كولو حكم څه دى؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په لمانځه كښې د پزې او خولې پټول مكروه دي. د دې لپاره د ژمي يا اوړي په موسم كښې له د اسې كولو څخه پرهيز وكړي ځكه چه لمونځ يې مكروه كيږي.

لما في الهندية: و يكره التلثم و هو تغطية الانف و الفم في الصلوٰة و التثاؤب الخ. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۱۰۷، الفصل الثاني فيما يكره في الصلوٰة)

لما قال العلامة حسن بن عمار الشرنبلاليؒ: و يكره...... و تغطية انفه و فمه لما روينا قال السيد احمد الطحطاويؒ (تحت قوله لما روينا) من انهﷺ نهى عن ان يغطي الرجل فاه كذا في الشرح. (الطحطاوي حاشية مراقي الفلاح ص۲۸۹، فصل في مكروهات الصلوٰة)

## لـــه نسوارو او سګريټو سره د لمانځه د ادا كولو حكم

**سوال:** ځيني خلك د نسوارو پوړى يا د سګريټو ډبى د لمانځه د ادا كولو په حالت كښې په خپل جيب كښې ساتي. آيا په جيب كښې د نسوارو يا سګريټو د موجودالي سره لمونځ كيږي او كه نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په شریعت کښې د تمباکو استعمال مباح دی چه له دې وجهې له هغه سره لمونځ کول هم صحیح دي۔ البته که چېرته له نسوارو یا سګریټو سره کوم مردار شی ګډ شوی وي نو بیا لمونځ ورسره صحیح نه دی۔ هو! دا خبره یاده لرئ چه له خوشایو څخه جوړې شوې ایرې که چېرته له نسوارو سره ګډې وي نو لکه څرنګه چه دا ایرې پاکې دي د دې لپاره له دې څخه د نسوارو په پاکوالي باندې کوم اثر نه لویږي۔ (و الله اعلم)

لما قال العلامة ابن عابدینؒ: فانه لم یثبت اسکاره و لا تفتیره و لا اضراره بل ثبت له منافع فهو داخل تحت قاعدة الاصل فی الاشیاء الاباحة و ان فرض اضراره للبعض لا یلزم منه تحریمه علی کل احدٍ الخ. (رد المحتار ج۱، ص۴۶۵، کتاب الاشربة)

لما قال العلامة محمد کامل الطرابلسیؒ: لما سئل عنه الدخان الذی شاع فی زماننا و عمت به البلوٰی و حکم الله فیه. قال الجواب: ان المجتهدین لم یتکلمون علیه لانه انما حدث بعدهم و المتاخرون اختلفوا فیه فمنهم من یقول بتحریمه و منهم من یقول باباحته و منهم من توسط و قال بکراهته احسن ما رأیت فیه قول شیخ مشائخنا خاتمة المحققین العلامة الاسیر المالکی و اختلف فی الدخان و الورع ترکه. (فتاوٰی کاملیة ص۲۶۹، کتاب الخطر و الاباحة) و مثله فی فتاوٰی دار العلوم دیوبند ج۴، ص۱۰۸، باب مکروهات الصلٰوة)

## که چېرته په لمانځه کښې چا ته لاړې یا بلغم ورشي نو څه بـــه کوي؟

**سوال:** که چېرته په لمانځه کښې چا ته لاړې یا بلغم ورشي نو څه باید وکړي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته د لمانځه په دوران کښې چا ته لاړې یا بلغم ورشي نو که چېرته ئې د تیرولو امکان وي نو تیر دې کړي او که نه وي نو بیا دې د جامو په یوې څوکې کښې تو کړي۔

لما اخرج الامام محمد البخاریؒ: قال النبی ﷺ فلا تبزقن احدکم فی قبلة و لٰکن عن یساره او تحت قدمه ثم اخذ طرف ردائه فبزق فیه ثم رد بعضه علی بعض فقال او یفعل هٰکذا. (الصحیح البخاری ج۱، ص۵۹، باب اذا تدره البزاق فلیأخذ بطرف ثوبه)

قال النبی ﷺ فلا یبزقن احدکم قبل قبلة و لٰکن عن یساره او تحت قدمه ثم اخذ طرف ردائه فبصق فیه ثم رد بعضه علی بعض. (مشکٰوة المصابیح ج۱، ص۷۴، باب المساجد)

## له ویښتانو څخـــه د اوښ د کاڼ غوندې جوړولـــو په صورت کښې د لمانځـــه حکم

**سوال:** نن صبا اکثره ښځې د خپل سر ویښتان په یوه ځای باندې جمع کوي او تړي ئې چه د اوښ کاڼ ورته وایي۔ آیا په دې حالت کښې د لمانځه ادا کول صحیح دي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د ښځو لپاره د ویښتانو په یوه ځای باندې د جمع کولو او تړلو (د اوښ د کاڼ د جوړولو) په صورت کښې لمونځ مکروه دی۔ اګر که د لمانځه له حالت پرته د ضرورت



په وخت کښې د ویښتانو په یوه ځای جمع کول مباح دي۔

لما قال العلامة الحصکفیؒ: و عقص شعره آه. قال ابن عابدینؒ: (تحت قوله و عقص شعره) ای ضفره و فتله و المراد به ان یجعله علی هامته و یشده بخیط او ان یلف ذوائبه حول رؤسه کما یفعله النساء فی بعض الاوقات او یجمع الشعر کله من قبل القفا و یشده بخیط او خرقة و جمیع ذٰلک مکروه. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۶۴۲، باب المکروهات)

و فی الهندیة: و یکره عقص شعره و هو جمع الشعر علی الرأس و یشده بشیء حتی لا ینحل کذا فی التبیین و اختلف الفقهاء فیه علی اقوال فقیل ان یجمعه وسط رأسه ثم یشده و قیل ان یلف ذوائبه حول رأسه کما یفعله النساء و قیل ان یجمعه من قبل القفا و یمسکه بخیط او خرقة و کل ذٰلک مکروه کذا فی البحر الرائق. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۰۶، الفصل الثانی فیما یکره فی الصلٰوة) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۲۳، باب ما یفسد فی الصلٰوة و ما یکره)

## کـــه چېرته په جومات کښې قبر وي نو د لمانځه حکم به څه وي؟

**سوال:** زمونږ د کلي په جومات کښې یو زوړ قبر دی۔ کله کله ځینې خلك قبر ته بالکل مخامخ په لمانځه ودریږي۔ آیا د دغو خلکو لمونځونه صحیح دي او که څنګه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** قبر ته مخامخ لمونځ که نفل وي او که فرض مکروه دی۔ البته که چېرته د قبر مخې ته کوم دیوال یا بل شی وي نو بیا کوم کراهیت پکښې نشته۔ هو! په دې صورت کښې هم د قبر پرستۍ له تهمت څخه د ځان ساتنې لپاره هلته لمونځ باید ادا نه شي۔ په داسې حال کښې چه د جومات په نورو برخو کښې له کراهت پرته لمونځ جائز دی۔

لما قال العلامة الحصکفیؒ: و کذا تکره فی اماکن کفوق کعبة...... و مقبرة. قال ابن عابدینؒ: و اختلف فی علته فقیل لان فیها عظام الموتٰی و صدیدهم و هو نجس و فیه نظر و قیل لان اصل عبادة الاصنام اتخاذ قبور الصالحین مساجد و قیل لانه تشبه با لیهود و علیه شیء فی الخانیة و لا بأس با لصلٰوة فیها اذا کان فیها موضع اعد للصلٰوة و لیس فیه قبر و لا نجاسة و لا قبتله الٰی قبر. (رد المحتار ج۱، ص۳۸۰، کتاب الصلٰوة، قبل باب الآذان)

قال العلامة حسن بن عمار الشرنبلالیؒ: و تکره الصلٰوة فی المقبرة و امثالها. قال الطحطاویؒ: (تحت قوله فی المقبرة) لانه تشبه با لیهود و النصارٰی..... و فی زاد الفقیر و تکره الصلٰوة فی المقبرة الا ان یکون فیها موضع اعد للصلٰوة لا نجاسة فیه و لا قذر فیه. قال الحلبیؒ: لان الکراهة معللة با لتشبه و هو منتف حینئذٍ. و فی القهستانیؒ فی عن جنائز المضمرات لا تکره الصلٰوة الی جهة القبر الا اذا کان بین یدیه بحیث لو صلی صلٰوة الخاشعین وقع بصره علیه. (طحطاوی حاشیة مراقی الفلاح ص۲۹۰، باب مکروهات الصلٰوة)

## د امام لپاره په محراب کښې د ننه د دریدلو حکم

**سوال:** که چېرته امام په مکمله توګه په محراب کښې د ننه ولاړ وي نو په لمانځه باندې کوم اثر لویږي او که نه؟ آیا د امام دا عمل جائز دی او که څنګه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د امام په مکمله توګه په محراب کښې د ننه دریدل صحیح نه دي

ځکه چه په لمانځه باندې بد اثر لوېږي۔ د دې لپاره امام بايد له محراب ښخه د باندې ودرېږي او که رکوع او سجده ئې په محراب کښې د ننه ادا کيدله نو پروانه کوي۔

لما قال العلامة الحصكفىؒ: و كره...... و قيام الامام فى المحراب لا سجوده فيه و قدماه خارجه لان العبرة للقدم مطلقاً و ان لم يشتبه حال الامام. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۱، ص۶٤٥، باب مكروهات الصلٰوة)

لما قال حسن بن عمار الشرنبلالىؒ: و يكره قيام الامام بجملته فى المحراب لا قيامه خارجه و سجوده فيه. (مراقى الفلاح على صدر الطحطاوى ص۲۹٤، فصل فيما يكره فى الصلٰوة) و مثله فى البحر الرائق ج۲، ص۲٥، باب ما يفسد الصلٰوة و ما يكره)

## د سخت قضاء حاجت د ضرورت سره د لمانځه ادا کول

**سوال:** کله کله انسان ته د قضاء حاجت سخت ضرورت وي ليکن انسان ئې منع کوي او لمونځ ورسره کوي۔ په دې ډول سره د ادا شوي لمانځه به څه حکم وي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** فقهاء کرامو تصريح کړې ده چه کله د قضاء حاجت سخت ضرورت وي نو په داسې حالت کښې د لمانځه ادا کول مکروه تحريمي دي۔ بهتره دا ده چه له قضاء حاجت ښخه ځان فارغ کړي او لمونځ ادا کړي۔ هو! که چېرته د لمانځه د قضاء کيدو خطر موجود وي نو بيا له کراهيت پرته ئې لمونځ جائز دی۔

قال العلامة ابن عابدينؒ: (تحت قوله و صلٰوته مع مدافعة الاخبثين) قال فى الخزائن: سواء كان بعد شروعه او قبله فان شغله قطعها ان لم يخف فوت الوقت و ان اتمها اثم..... بقى ما اذا خشى فوت الجماعة و لا يجد جماعة غيرها فهل يقطعها كما يقطعها اذا رأى على ثوبه نجاسة قدر الدرهم ليغسلها اولاً كما اذا كانت النجاسة قدر الدرهم اقل من الدرهم و الصواب الاول. (رد المحتار ج۱، ص٦٤١، باب مكروهات الصلٰوة)

لما قال حسن بن عمار الشرنبلالىؒ: و مدافعاً لاحد الاخبثين البول و الغائط او الريح...... الا اذا خاف فوت الوقت او فوت الجماعة فحينئذٍ يصلى بتلك الحال لان اخراج الصلٰوة عن وقتها حرام و الجماعة مؤكدة واجبة. قال السيد احمد الطحطاوىؒ: (تحت قوله الا اذا خاف فوت الوقت) ظاهره انها تنتفى الكراهة عند ذٰلك. (مراقى الفلاح على صدر الطحطاوى ص۲۹۲، فصل فيما يكره فى الصلٰوة)

## د اوږې، پياز او داسې نورو شيانو د خوړلو په صورت کښې د لمانځه د ادا کولو حکم

**سوال:** اوږه، پياز يا مولۍ خوړل او بيا لمونځ کول څنګه دي؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د اوږې، پياز، مولۍ او داسې نورو شيانو له خوړلو ښخه په خولې کښې بد بويي پيدا کيږي۔ بهتره دا ده چه دا بد بويي لرې کړي او بيا لمونځ ادا کړي۔ له دې بد بويي سره د لمانځه ادا کول له جومات برسيره په هر ځای کښې مکروه دي۔ د دې لپاره چه په حديث شريف کښې د دغو شيانو د خوړلو په حالت کښې د لمانځه له ادا کولو ښخه منع راغلې ده۔



عن على رضى الله قال نهى عن اكل الثوم الا مطبوخا. (الجامع الترمذى ج۲، ص۳، باب ما جاء فى الرخصة فى اكل الثوم مطبوخاً)

عن على رضى الله عنه قال نهى عن اكل الثوم الا مطبوخا. (ابو داؤد ج۲، ص۱۸۱، كتاب الاطعمة، باب اكل الثوم) و مثله فى مشكٰوة، ج۲، ص۳٦۷، كتاب الاطعمة، الفصل الثانى)

## په لمانځه کښې د پښو په پوندو باندې د کښيناستو په صورت کښې د لمانځه حکم

**سوال:** ځينې خلك د بيمارۍ له وجهې په لمانځه کښې خپلې پښې په صحيح طريقه نه شي کيښودلی او د پښو په پوندو باندې کښيني آيا په داسې صورت کښې لمونځ کيږي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په لمانځه کښې د پښو په پوندو باندې کښيناستل مکروه دي۔ البته که چېرته د کومې بيمارۍ له وجهې وي نو بيا له کراهيت پرته ئې لمونځ صحيح دی۔

قال العلامة ابن عابدينؒ: (تحت قوله و اقعاؤه) و الكرخى بان ينصب قدميه و يقعد على عقبيه و يضع يديه على الارض....... قال فى البحر و ينبغى ان تكون الكراهة التحريمية على الاول تنزيهية على الثانى. (رد المحتار ج۱، ص٦٤۳، باب مكروهات الصلٰوة)

قال العلامة السيد الطحطاوىؒ: (تحت قوله كره الاقعاء) و قال الكرخى هو ان ينصب قدميه و يقعد على عقبيه واضعا يديه على الارض. قال الزيلعى...... لا ان ما قاله الكرخىؒ غير مكروه بل يكره ذٰلك ايضاً. (طحطاوى حاشية مراقى الفلاح ص۲۸۳، باب ما يكره فى الصلٰوة) و مثله فى البحر الرائق ج۲، ص۲۲، باب ما يفسد الصلٰوة و ما يكره)

## په جوماتونو کښې په پرتو خوليو کښې د لمانځه حکم

**سوال:** ځينو جوماتونو کښې خولۍ پرتې وي۔ آيا په هغو خوليو کښې لمونځ جائز دی او که نه؟ په داسې حال کښې چه له جومات ښخه د باندې ئې په اغوستلو سره خلك عار محسوسوي يعنې پرې شرميږي؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** لمونځ کوونکي ته په کار دي چه د لمانځه لپاره داسې خولۍ يا رومال په سر کړي چه له هغه سره کوم مجلس ته پرته له شرميدلو ښخه تلی شي۔ کومې خولۍ چه په جوماتونو کښې پرتې وي د اغوستلو په صورت کښې ئې لمونځ کوونکی نورو مجلسونو ته ورسره نه شي تللی د دې لپاره د ثياب بذله په حکم کښې د راتلو په صورت کښې په داسې خوليو کښې لمونځ مکروه دی۔

لما قال العلامة الحصكفىؒ: و كره...... و صلاته فى ثياب بذلة يلبسها فى بيته. قال ابن عابدينؒ: تحته...... و خسرها فى شرح الوقاية بما يلبسه فى بيته و لا يذهب الى الاكابر و الظاهر ان الكراهة تنزيهية. (رد المحتار ج۱، ص٦٤۱، باب مكروهات الصلٰوة)

قال العلامة حسن بن عمار الشرنبلالیؒ: و تکره الصلٰوة فی ثیاب البذلة..... ما لا یذهب به الی الکبراء و رای عمرؓ رجل فعل ذٰلك فقال ارأیت لو کنت ارسلتُك الی بعض ا کنتَ تمر فی ثیابك هٰذه فقال لا فقال عمرؓ الله احق ان تتزین له. (مراقی الفلاح علی صدر الطحطاوی ص۲۹۲، فصل مکروهات الصلٰوة)

## په لمانځه کښې له اوږو څخه د څادر د لویدلو حکم

**سوال:** کله کله د لمانځه په حالت کښې د لمونځ کوونکي له اوږو څخه څادر لویږي- په دې صورت کښې لمونځ کوونکی باید څه وکړي؟ بینوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته د لمانځه په حالت کښې د چا څادر له اوږو څخه ئې ولویږي او د زوړندوالي صورت اختیار کړي نو که چېرته ئې بیرته پورته کول په کم عمل سره ممکن وي نو بیا دې په یوه لاس سره بیرته اوږو ته واچوي ځکه چه په لمانځه کښې د څادر زوړندول مکروه دي- همدارنګه له دې اصلاح څخه ذهني تشویش هم له منځه ځي کوم چه د څادر په لویدو سره منځ ته راغلی وي-

لما قال العلامة الحصکفیؒ: و کره...... سدل تحریماً للنهی ثوبه ای ارساله بلا لُبس معتاد و کذا القبا بکم الی ولاء. ذکره الحلبی کشد مندیل و یرسله من کتفیه. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۶۳۹، باب مکروهات الصلٰوة)

لما قال العلامة حسن بن عمار الشرنبلالیؒ: و یکره سدله تکبراً او تهاوناً و با لعذر لا یکره و هو ان یجعل الثوب علی رأسه و کتفیه او کتفیه فقط و یرسل جوانبه من غیر ان یضمها. (مراقی الفلاح علی صدر الطحطاوی ص۲۸۵، باب فیما یکره فی الصلٰوة) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۲۴، باب ما یفسد الصلٰوة و ما یکره)

## د تـــــایي د تړلو په صورت کښې د لمانځه حکم

**سوال:** ځینې بابو ډوله خلك په غاړې پورې تایي اچوي او لمونځ کوي- آیا له تایي سره د لمانځه اداکول جائز دي او که نه؟ په د اسې حال کې چه دا د کفارو علامت دی؟ بینوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** تایي (د صلیب نښه) او د عیسایانو له دیني شعائرو څخه یو شعار دی- چونکه د تایي په تړلو سره د هغو د مذهبي شعار تائید او حمایت کیږي د دې لپاره له کفارو سره د تشبه له وجهې له تایي سره لمونځ مکروه دی-

لقوله علیه السلام: من تشبه بقوم فهو منهم. قال الطیبیؒ: قوله من تشبه بقوم هٰذا عام فی الخلق و الخلق و الشعار و اذا کان الشعار اظهر فی التشبیه ذکر فی هٰذا الباب. (طیبی شرح مشکٰوة ج۸، ص۲۱۹، کتاب اللباس، الفصل الثانی)

قال العلامة ملا علی القاریؒ: عن ابن عمرؓ قال قال رسول اللهﷺ من تشبه بقوم ای من شبه نفسه با لکفار مثلا فی اللباس و غیره او با لفساق او الفجار او باهل التصوف و الصلحاء الابرار فهو منهم ای فی الاثم و الخیر. قال الطیبیؒ: هٰذا عام فی الخلق و الخلق و الشعار و لما کان الشعار اظهر من التشبه ذکر فی هٰذا الباب. (مرقاة شرح



مشکٰوة ج۸، ص۲۵۵، کتاب اللباس، الفصل الثانی) و مثله فی مشکٰوة ص۳۷۵، کتاب اللباس، الفصل الثانی)

## په تشهد کښې د لمن د صحیح کولو حکم

**سوال:** ځینې خلك چه کله په التحیاتو کښې کښیني نو خپل لمن برابروي- آیا د هغو له دې عمل څخه ئې په لمانځه باندې کوم اثر لویږي او که نه؟ بینوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په لمانځه کښې که د التحیاتو موقع وي یا نور مواقع له خپلو جامو یا بدن یا کوم بل شي سره لوبې کول په شریعت کښې مکروه دي- د دې لپاره په صورت مسئوله کښې د تشهد په حالت کښې خپله لمن برابرول د عمل کثیروالي له وجهې مکروه دی- هو! که چېرته لمن د ګونډو لاندې راشي او د تکلیف سبب جوړ شي نو کولی شي چه له عمل کثیر څخه پرته ئې صحیح کړي-

لما قال العلامة الحصکفیؒ: و کره کفه ای رفعه و لو لتراب کمشمر کم او زیل و عبثه به ای بثوبه و بجسده للنهی الا لحاجة و لا بأس به. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۶۴۰، باب مکروهات الصلٰوة)

قال العلامة ابو البرکات النسفیؒ: و کره عبثه بثوبه و بدنه و قلب الحصا الا للسجود مرّة و فرقعة الاصابع. (کنز الدقائق علی هامش البحر الرائق ج۲، ص۱۹، باب ما یفسد الصلٰوة و ما یکره فیها) و مثله فی مراقی الفلاح علی صدر الطحطاوی ص۲۸۰، فصل فی مکروهات الصلٰوة)

## د مـــــالي نقصان له وجهې د لمانځه د ماتولو حکم

**سوال:** که چېرته یو څوك په لمانځه کښې مشغول وي او په همدې حالت کښې ئې کوم شی له ضائع کیدو سره مخامخ وي نو آیا د څومره مالیت لرونکي شي لپاره یو څوك خپل لمونځ ماتولی شي؟ بینوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** فقهاء کرامو د یوه درهم د قیمت لرونکي شي د ضائع کیدو په صورت کښې د لمانځه ماتول جائز بللي دي په د اسې حال کښې چه یو درهم درې ماشې او یوه رتی کیږي- نو ځکه په اوسني دور کښې د درې ماشو او یوې رتی سپینو زرو له قیمت سره د برابر مالیت لرونکي شي د ضائع کیدو په صورت کښې د لمانځه ماتول جائز دي-

لما فی الهندیة: رجل قام الی الصلٰوة فسرق منه شیء قیمته درهم له ان یقطع الصلٰوة و یطلب السارق سواء کانت فریضة او تطوّعاً لان الدرهم مال. (الهندیة ج۱، ص۱۰۹، الفصل الثانی فیما یکره الصلٰوة)

قال العلامة الحصکفیؒ: و یباح قطعها لنحو قتل حیة و ند دابة و فور قدر و ضیاع ما قیمته درهم له او لغیره. قال ابن عابدینؒ: (تحت قول و ضیاع ما قیمته درهم) قال فی مجمع الروایات: لان ما دونه تصیر فلا یقطع الصلٰوة) لاجله الخ. (رد المحتار ج۱، ص۶۵۴، باب مکروهات الصلٰوة، قبل فی احکام المسجد) و مثله فی مراقی الفلاح علی صدر الطحطاوی ص۳۰۰، فصل فیما لا یکره)

## په سینټ (سپرې) کښې د الکحل د ګډوالي په صورت کښې د هغـــــه د استعمال حکم

**سوال:** نن صبا ځینې داسې خوشبویي لرونکي سپرې (سینټ) پیدا کیږي چه په هغې کښې الکحل ګډ وي۔ آیا د داسې سپرې ګانو د استعمالولو په صورت کښې لمونځ جائز دی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د امام ابو حنیفهؒ په نزد کوم شراب چه له خرما یا انګورو څخه جوړ شوي وي هغه حرام او مردار دي۔ البته کوم شراب چه له دغو دوو شیانو څخه پرته له نورو شیانو څخه جوړ شوي وي هغه پاك دي۔ متاخرینو فقهاوو د عموم بلوٰی له وجهې په همدې قول باندې فتوٰی ورکړې ده۔

لما قال الشیخ المفتی محمد تقی العثمانی: و اما غیر الاشربة الاربعة فلیست نجسة عند الامام ابی حنیفةؒ...... و ان معظم الکحول التی تستعمل الیوم فی الادویة و العطور و غیرها. لا تتخذ من العنب او التمر انما تتخذ من الحبوب او القشور او البترول و غیره کما ذکرنا فی باب بیع الخمر من کتاب البیوع و حینئذ هناك فسحة فی الاخذ بقول ابی حنیفةؒ عند عموم البلوٰی. (تکملة فتح الملهم ج۳، ص۶۰۸، کتاب الاشربة)

## ویده سړي ته مخامخ د لمانځه د اداکولو حکم

**سوال:** که چیرته د کوم لمونځ کوونکي مخې ته کوم سړی ویده وي نو د داسې لمونځ کوونکي د لمانځه حکم به څه وي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چیرته ویده سړی قبلې ته مخامخ ویده وي او شا ئې د لمونځ کوونکي خواته وي نو د لمونځ کوونکي لمونځ له کراهیت پرته جائز دی۔ هو! که چیرته ئې مخ لمونځ کوونکي خواته وي نو بیا د لمونځ کوونکي لمونځ به مکروه وي۔

لما قال العلامة الحصکفیؒ: و لا یکره صلٰوة الی ظهر قاعد او قائم و لم یتحدث الا اذا خیف الغلط بحدیثه. قال ابن عابدینؒ: (تحت قوله الی ظهر قاید) قید با لظهر احترازاً عن الوجه فانها تکره الیه کما مر...... و فی شرح المنیة فادبه نفی قول من قال با لکراهة بحضرة المتحدیثن و کذا بحضرة النائمین........ و فی النائمین اذا خاف ظهور شیء یضحکه. (رد المحتار ج۱، ص۶۵۱، باب مکروهات الصلٰوة)

قال ابراهیم الحلبیؒ: و لا بأس بان یصلّی متوجهاً الی ظهر رجل قاعداً الظاهر ان التقیید به باعتبار الغالب و انه لا فرق بین کونه قاعداً او قائما و قوله یتحدث لافادة نفی قول من با لکراهة بحضرة المتحدثین و کذا بحضرة النائمین. (کبیری ص۳۵۸، کراهیة الصلٰوة)



## پـــــه لمانځه کښې بغیر له عربي ژبې څخـــه په نورو ژبو بـــــاندې د دعاګـــــانو د غوښتلو حکم

**سوال:** که چیرته یو څوك په لمانځه کښې له عربي ژبې پرته په اردو، پښتو او داسې نورو ژبو باندې له الله تعالی څخه دعاګانې وغواړي نو په لمانځه باندې ئې څه اثر لویږي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** مسنونه طریقه دا ده چه په لمانځه کښې یوازې په عربي ژبې باندې دعاګانې وغوښتل شي۔ که چیرته له عربي پرته په نورو ژبو باندې څوك دعاګانې وغواړي نو لمونځ به ئې له کراهیت څخه خالي نه وي۔

لما قال العلامة ابن عابدینؒ: و ظاهر التعلیل ان الدعاء بغیر العربیة خلاف الاولٰی و ان الکراهة تنزیهیة. (رد المحتار ج۱، ص۵۲۱، مطلب فی الدعاء بغیر العربیة، باب صفة الصلٰوة)

قال العلامة عبد الحی اللکهنوی رحمه الله: و منها ان یدعوا با لعربیة لیکون اقرب الی الاجابة فان اللسان العربی من الفضل ما لیس لغیره........ فی غرر الافکار شرح درر البحار فی بحث الدعاء بعد التشهد کره الدعا با لاعجمیة الخ. (السعایة ج۲، ص۲۴۵، باب صفة الصلٰوة)

## د لمانځـــــه په دوران کښې په غیږ کښې د بچي د کښېنولو حکم

**سوال:** د لمانځه په حالت کښې که چیرته د چا مخې ته بچی راشي یا ئې په غیږ کښې کښېني نو د لمونځ کوونکي لمونځ پرې فاسدیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چیرته بچی پخپله د چا غیږې ته راشي نو لمونځ نه پرې فاسدیږي۔ همدارنګه که چیرته د بچي د ژړا یا لویدو خطر موجود وي او په دې ځای کښې کوم بل څوك نه وي چه له لویدو څخه ئې بچ کړي نو په دې صورت کښې د بچي په غیږ کښې د اخیستلو په صورت کښې لمونځ نه فاسدیږي۔ البته له دغو شرائطو پرته په قصد سره د مینې او محبت له مخې د بچي له پورته کولو څخه لمونځ مکروه کیږي۔

صلی و هو حامل صبیاً جازت صلٰوته و یکره لو لم یکن هناك من یحفظه و یتعهد و هو یبکی فلا یکره هٰکذا فی محیط السرخسی. (الفتاوٰی الهندیة ج۱، ص۱۰۷، الفصل الثانی فیما یکره فی الصلٰوة)

قال العلامة الحصکفیؒ: یکره..... و حمل الطفل و ما ورد نسخ بحدیث ان فی الصلٰوة شغلاً. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۶۳۵، مکروهات الصلٰوة) و مثله فی خلاصة الفتاوٰی ج۱، ص۵۹، الجنس فیما یکره)

## لـــــه ځنګلو څخه د لستونو د پورته کولو په صورت کښې د لمانځه حکم

**سوال:** که چیرته په لمانځه کښې د چا لستوني له ځنګلو څخه پورته وي نو آیا لمونځ ئې پرې مکروه کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د جامو د موجودوالي په صورت کښې د لستونو تر ځنګلو پورې پورته کول مکروه دي۔ البته که چیرته له چا سره جامې موجودې نه وي نو که ئې ځنګلي لوڅې

هم وي نو بيائې لمونځ له کراهيت پرته جائز دی۔

قال الحصكفیؒ: (و) كره (كفه) ای رفعه و لو لتراب كمشمر كم او ذيل و فی رد المحتار فيه الكراهة فی الخلاصة و المنية بان يكون رافعا كميه الى المرفقين. (رد المحتار ج۱، ص۶۴۰، مكروهات الصلوٰة)

و لو صلى رافعا كميه الى المرفقين كذا فی فتاوٰی قاضی خان. (الهندية ج۱، ص۱۰۶، الفصل الثانی ما يكره فی الصلوٰة) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۲۴، باب ما يفسد الصلوٰة و ما يكره فيها)

## لـــــه امام څخه مخکښــــــــې د سلام اړولو حکم

**سوال:** د امام له سلام اړولو څخه مخکښې د سلام اړولو حيثيت څه دی؟ آيا مکروه تحريمي دي او که مکروه تنزيهي؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د کتابونو له پلتنې څخه د دې حکم څرګند نه شو۔ البته د احاديثو له مخې مکروه تحريمي دی۔

عن انس قال صلى بنا رسول اللهﷺ ذات يوم فلما قضٰى صلوٰته اقبل علينا بوجهه فقال ايها الناس انى امامكم فلا تسبقونى بالركوع و لا بالسجود و لا بالقيام و لا بالانصراف فانى اراكم امامى و من خلفى. رواه مسلم. (مشكوٰة ج۱، ص۱۰۱، ما على الماموم من المتابعة)

عن انسؓ قال صلى بنا رسول اللهﷺ ذات يوم فلما قضى الصلوٰة اقبل علينا بوجهه فقال ايها الناس انى امامكم فلا تسبقونى بالركوع و لا بالسجود و لا بالقيام و لا بالانصراف فانى اراكم امامى و من خلفى. (مسلم ج۱، ص۱۸۰، باب تحريم سبق للامام بركوع و سجود و نحوها)

## ټادر غوړول او لمونځ پرې کول

**سوال:** په جومات کښې ټادر غوړول او بيا لمونځ پرې کول جائز دي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په جومات کښې د ټادر غوړول او بيا لمونځ پرې کول جائز دي په دې شرط چه د زمکې کلکوالی ترې محسوس شي۔ که چېرته د زمکې سختوالی محسوس نه شي نو بيا مکروه دی۔

رجل يصلى على الارض و يسجد على خرقه و ضعوها بين يديه ليقى بها الحر لا باس به كذا فى الظهيرية. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۱۰۸، الفصل الثانى فيما يكره فى الصلوٰة و ما لا يكره)

قال طاهر بن عبد الرشيد البخاریؒ: و لو سجد على ذيله او كمه او كور عمامته يتقى بذٰلك حر الارض و بردها يجوز عندنا. (خلاصة الفتاوٰى ج۱، ص۵۹، جنس آخر فيما يكره)

## په مکــــــروه وخت کښې د لمانځه د ادا کولو حکم

**سوال:** د لمر د راختلو او لويدلو په وخت کښې لمونځ مکروه دی او که نه؟ که چېرته مکروه وي نو کوم ډول مکروه به وي؟ د فرضو او نفلو په ادا کولو کښې کوم فرق شته او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په مکروهو وختونو يعنې د لمر د راختلو او لويدلو او د لمر د استواء



په دوران کښې د شريعت له مخې لمونځ مکروه تحريمی دی۔ البته د لمر د لويدلو په وخت کښې د هم هغې ورځې د مازديګر لمونځ له کراهيت سره جائز دی۔ هو! د سهار او مازديګر تر لمونځونو وروسته د قضائي لمانځه ادا کول جائز دي۔ مکروه وختونه درې دي۔ (۱) د لمر د راختلو وخت (۲)نصف النهار (د ورځې نيمايي)۔ (۳) د لمر د لويدلو وخت۔

قال العلامة الحصكفیؒ: (و كره) تحريما و كل ما لا يجوز مكروه (صلوٰة) مطلقاً (ولو) قضاء او واجبة او نفلاً (على جنازة و سجدة تلاوة و سهو) لا شكر قنية (مع شروق) الا العوام فلا يمنعون من فعلها لانهم يتركونها و الاداء الجائز عند البعض اولٰى من الترك كما فى القنية و غيرها. (و استواء) الا يوم الجمعة...... (و غروب الا عصر يومه). (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۱، ص۳۷۰، كتاب الصلوٰة)

قال قاضى خانؒ يجوز قضاء الفتوائت فى اى وقت شاء الا فى ثلاث ساعات لا تجوز فيها المكتوبة و لا صلوٰة الجنازة و لا سجدة التلاوة اذا طلعت الشمس حتٰى ترفع و عند الانتصاف الٰى ان تزول و عند احمرارها الٰى ان تغيب الا عصر يومه ذٰلك فانه يجوز اداء عند الغروب. (الفتاوى قاضيخان على هامش الهندية ج۱، ص۷۴، باب الآذان) و مثله فى خلاصة الفتاوٰى ج۱، ص۶۸، الفصل الرابع فى المواقيت)

## په لمـــــانځه کښې د يوه سورت له شروع کولو وروسته بغير د عـــــذر نه د بل سورت د شروع کولو حکم

**سوال:** که چېرته کوم سړی په لمانځه کښې د يوه سورت قرائت شروع کړي ليکن بيا ئې په قصد سره پرېږدي او بل سورت شروع کړي نو آيا لمونځ ئې پرې فاسدېږي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په لمانځه کښې د يوه سورت له شروع کولو وروسته د هغه له پوره کولو څخه مخکښې پرته له کوم عذر څخه د هغه پرېښودل او بل سورت شروع کول مکروه دي۔ البته لمونځ ئې کيږي۔

افتتح سورة و قصد سورة اخرٰى فلما قرأ آية او آيتين اراد ان يترك السورة و يفتتح التى ارادها يكره. و كذا قرأ اقل من آية و ان كان حرفاً و لو كبر للركوع فى الصلوٰة ثم بدا له ان يزيد فى القرأة لا بأس به ما لم يركع. (خلاصة الفتاوٰى ج۱، ص۹۸، فصل فى القرأة)

و فى الهندية: افتتح سوره و قصد سورة اخرٰى فلما قرأ آية او آيتين اراد ان يترك السورة و يفتتح التى ارادها يكره و كذا لو قرأ اقل من آية و ان كان حرفاً و لو كبر للركوع فى الصلوٰة ثم بداله ان يزيد فى القرأة لا بأس به ما لم يركع. (الهندية ج۱، ص۷۹، فصل فى القرأة)

## سرتور سر د لمانځه د ادا کولو حکم

**سوال:** ځينې خلك پرته له کوم عذر څخه لوڅ سر لمونځونه کوي۔ آيا شرعا لوڅ سر لمونځ جائز دی او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د سُستئ او پرته له کوم شرعي عذر څخه لوڅ سر لمونځ مکروه دی۔

لکه څرنګه چه نن صبا د ځینو فیشن پرسته خلکو طریقه ده۔ البته د عذر او ځان ذلیل ښکارولو په توګه لوڅ سر لمونځ جائز دی۔

قال العلامة الحصكفیؒ: (و صلٰوته حاسرا) ای كاشفا (رأسه للتكاسل) و (لا) بأس به (للتذلل) اما للاهانة بها فكفر. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۶۴۱، مكروهات الصلٰوة)

تكره الصلٰوة حاسرا رأسه اذا كان يجد العمامة و قد فعل ذٰلك تكاسلاً او تهاوناً با لصلٰوة. و لا بأس به اذا فعله تذللا و خشوعا بل هو حسن كذا فی الذخيرة. (الهندية ج۱، ص۱۰۶، الفصل الثانی فيما يكره فی الصلٰوة و ما لا يكره) و مثله فی البحر الرائق ج۱، ص۲۵، باب ما يفسد الصلٰوة و ما يكره فيها)

## په کومې قالینې باندې چه د صلیب عکس وي په هغې باندې د لمانځه د اداکولو حکم

**سوال:** نن صبا ځینې قالینونه یا درۍ د اسې جوړې شوي دي چه په هغو کښې د صلیب عکسونه او صورتونه جوړ شوي وي۔ آیا په د اسې قالینې یا درۍ باندې شرعا لمونځ جائز دی او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په مقدس شریعت کښې د کفارو له دیني شعائرو سره مشابهت مکروه بلل شوی دی چه څو نمونې ئې فقهاء کرامو بیان کړي هم دي۔ لهذا صلیب چونکه د عیسایانو مذهبي علامه ده نو ځکه په صلیب لرونکي قالینې یا درۍ باندې لمونځ له کفارو سره د مشابهت له وجهې مکروه دی۔ د دې لپاره په د اسې قالینې یا درۍ باندې د لمانځه له اداکولو څخه پرهیز لازمي دی۔

لما قال النبیﷺ من تشبه بقوم فهو منهم. (ابو داوٗد ج۲، ص۵۵۹، كتاب اللباس، باب فی لبس الشهرة)

قال العلامة فخر الدين الزيلعیؒ: (قوله او شمع او سراج) لانهما لا يعبدان و الكراهة باعتبارها و انما تعبدها المجوس اذا كانت فی القانون و فيها الجمر او فی التنور فلا يكره التوجه اليها علی غير ذٰلك الوجه. (تبيين الحقائق ج۱، ص۱۶۷، فصل فی مكروهات الصلٰوة) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۳۲، باب مكروهات الصلٰوة)

## په لمانځه کښې د جامو د برابرولو حکم

**سوال:** له رکوع څخه سجدې ته د تلو په وخت کښې پرتوګ پورته خواته راکشول، همدارنګه له سجدې څخه د پورته کیدو په وخت کښې خپلې جامې برابرول آیا د شریعت له مخې جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له حاجت او ضرورت پرته د جامو صحیح کول چه تر څو پورې عمل کثیر ته نه وي رسیدلی مکروه دي۔ او د حاجت او له ضرورت له مخې له کراهت پرته جائز دي- او که چېرته خبره عمل کثیر ته ورسیږي نو بیا لمونځ فاسد یږي۔

قال العلامة الحصكفیؒ: (و) كره (كفه) ای رفعه و لو لتراب كمشمر كم او ذيل. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۶۴۰، مكروهات الصلٰوة)



و يكره للمصلی ان يعبث بثوبه او لحيته او جسده او ن يكف ثوبه بان يرفع ثوبه من بين يديه او خلفه اذا اراد السجود كذا فی معراج الدراية و لا بأس بان ينفض ثوبه كيلا يلتفت بجسده فی الركوع و لا بأس بان يمسح جبهته من التراب و الحشيش. (الفتاوی الهندية ج۱، ص۱۰۵، الفصل الثانی مكروهات الصلٰوة) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۱۹، مكروهات الصلٰوة)

## د امام لپاره د محراب په منځ کښې د دریدلو حکم

**سوال:** د امام لپاره د لمانځه په حالت کښې بالکل د محراب په منځ کښې دریدل چه له مقتدیانو څخه ئې حرکات او وضع قطع پټ وي یا د امام په برنډه کښې دریدل او د مقتدیانو په سرای کښې د دریدلو په صورت کښې به د لمانځه حکم څه وي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د امام لپاره په محراب کښې داسې دریدل چه حرکتونه ئې له مقتدیانو څخه پټ وي مکروه دي۔ البته که چېرته امام په د اسې صورت کښې ودریږي چه ټول کیفیتونه او حالتونه ئې له مقتدیانو څخه پټ نه وي نو بیا هیڅ کراهیت پکښې نشته۔

همدارنګه که چېرته امام په برنډه کښې ولاړ وي او مقتدیان په سرای کښې ولاړ وي نو که چېرته د امام ټول کیفیتونه او حالتونه له مقتدیانو څخه پټ نه وي نو له کراهیت پرته لمونځ جائز دی او که چېرته پټ وي نو بیا مکروه دی۔

و قال العلامة الحصكفیؒ: (قيام الامام فی المحراب لا سجوده فيه) و قدماه خارجه لان العبرة للقدم (مطلقا) و ان لم يتشبه حال الامام ان علل با لتشبه و ان با لاشتباه و لا اشتباه فلا اشتباه فی نفی الكراهة. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۶۴۵، باب ما بعد الصلٰوة)

قال الشيخ السيد احمد الطحطاویؒ: (لا) يكره (قيام الامام) بجملة (فی المحراب) لا قيامه خارجه و سجوده فيه مسمّی محراباً لانه يحارب النفس و الشيطٰن با لقيام اليه و الكراهة لاشتباه الحال علی القوم و اذا ضاق المكان فلا كراهة. (الطحطاوی ص۲۹۴، فصل فی المكروهات) و مثله فی الهندية ج۱، ص۱۰۸، الفصل الثانی فيما يكره فی الصلٰوة.... الخ.

## په لمانځه کښې د روح لرونکو شیانو عکس د پښو لاندې کیښودل

**سوال:** جناب مفتي صاحب! که چېرته یو څوك د کوم روح لرونکي شي په عکس یا تصویر باندې منقش شوي جانماز (مصلّی) باندې لمونځ وکړي او پښې ئې په همدې تصویر باندې ایښی وي نو د لمونځ کوونکي د لمانځه حکم به څه وي آیا مکروه کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په کومې کوټې کښې چه د روح لرونکي شي تصویر زړیدلی وي هلته لمونځ مکروه دی که تصویر مخې ته وي او که شاته، ښي طرف ته وي او که کیڼ طرف ته۔ فقهاء کرامو د دې کراهت وجه له بت پرستۍ سره مشابهت او د هغه تعظیم بیان کړې ده لیکن که چېرته په کوم جانماز باندې د کوم روح لرونکي شي تصویر جوړ وي چه په هغه باندې د لمونځ کوونکي

پښې پرې د پلسه راځي نو په داسې جانماز باندې له کراهت پرته لمونځ جائز دی۔ د دې لپاره په دې سره د نومورې تصویر تذلیل راځي نه تعظیم۔ ځکه چه اسلام د تصویر له تعظیم څخه منع فرمایلې ده۔

لما قال العلامة المرغینانیؒ: و لا باس بان یصلّی علی بساط فیه تصاویر لان فیه استهانة با لصّور و لا یسجد علی التصاویر لانهٗ یشبه عبادة الصور و اطلق الکراهیة فی الاصل لان المصلّی معظم و یکره ان یکون فوق راسه فی السقط و بین یدیه او بحذائه تصاویر او صورة معلقة...... الخ. (الهدایة ج۱، ص۱۲۶، باب ما یفسد الصلوٰة و ما یکره)

## د بیت الله شـــریف او روضه اقدس ﷺ په تصویرونو باندې په نقش شوي مصلّی باندې د لمـــانځه حکم

**سوال:** جناب مفتي صاحب! د یوې استفتاء ځواب مې تر نظر تیر شو چه له وجهې ئې ډیر له تشویش سره مخامخ شوم۔ د استفتاء ځواب دا وو چه په کوم جانماز (مصلّی) باندې د بیت الله شریف او مبارکې روضې تصویرونه نقش شوي وي په هغې باندې لمونځ جائز نه دی۔ د تشویش خبره دا ده چه اکثره مسلمانان په دغو منقشو مصلاّوو باندې لمونځونه کوي۔ په لویو لویو جوماتونو کښې لوی لوی علماء کرام او مفتیان عظام مو په داسې جانمازونو باندې لیدلي دي چه لمونځونه ئې کړي دي۔ او په ځانګړې توګه د تشویش خبره دا ده چه خلک داسې منقش جانمازونه له سعودي عربستان څخه په ډیر شوق سره خپلو کورونو ته راوړي۔ اوس که چېرته د نومورې استفتاء د ځواب مطابق په داسې مصلاوو باندې لمونځ جائز نه وي نو زمونږ کړي لمونځونه به څنګه کیږي؟ آیا مونږ به د ټولو لمونځونو بیا قضایي راوړو او که نه؟ د مهربانۍ له مخې زمونږ دا تشویش رفع کړی؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په جانماز (مصلّی) باندې د نه روح لرونکي شي تصویر د لمانځه مانع نه دی او نه په دې سره په لمانځه کښې کوم کراهیت راځي۔

لما قال العلامة ابراهیم الحلبیؒ: و اما صورة غیر ذی روح فلا خلاف فی عدم کراهة الصلوٰة علیها او الیها. (کبیری ص۳۴۶، مکروهات الصلوٰة)

د کعبې مبارکې او روضې مبارکې تصویرونه هم د غیر ذي روحو شیانو په جمله کښې راځي۔ د دې لپاره په کومه مصلّی کښې چه دا ډول تصویرونه وي په هغې باندې د لاندیني وجوهاتو پر بناء لمونځ جائز دی۔

﴿۱﴾ پخپله په کعبې یا د هغې په دیوالونو باندې لمونځ جائز دی۔

لما فی الهندیة: لو صلّی علی جدار الکعبة فان کان وجهه الی سطح الکعبة یجوز و الا فلا. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۶۳، باب صلٰوة فی الکعبة)

لما قال العلامة عالم بن العلاء الانصاریؒ: و لو صلّی فی جوف الکعبة او علٰی سطحها جاز الی ای جهة. (الفتاوی التاتارخانیة ج۱، ص۴۳۵، باب صلٰوة فی الکعبة)



البته په داسې کولو سره یوائې د بې ادبۍ له وجهې کراهت تنزیهي لازمیږي۔

لما قال العلامة السید الطحطاویؒ: صح فرض و نفل فوقها و ان لم یتخذ مصلیها سترة لما ذکرنا لکنه مکروه لاساءة الادب باستعلائه علیها و ترک تعظیمها یفید ان الکراهیة التنزیهة. (الطحطاوی ص۳۳۹، باب صلٰوة فی الکعبة)

﴿۲﴾ د تصویر حکم د عین هغه شي حکم نه وي۔

﴿۳﴾ د لمانځه د اداکولو په دوران کښې په دغو تصاویرو باندې سر کیښودل کیږي نه پښې کوم چه د تعظیم موجب دی۔ همدا وجه ده چه کوم عکسونه د پښو لاندې راځي نو له هغو سره له کراهت پرته لمونځ جائز دی۔

لما قال العلامة الحصکفیؒ: و لا یکره لو کانت تحت قدمیه او محل جلوسه لانها مهانة. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۶۴۸، مکروهات الصلوٰة)

لهذا د دغو وجوهاتو پر بناء د کعبې مبارکې او روضې مبارکې په تصویرونو باندې په نقش شوي جانماز باندې لمونځ جائز دی۔ هو! د دې خبرې خیال باید وساتل شي چه په دغو تصویرونو باندې پښې را نه شي تر څو چه د بې ادبۍ شبهه پیدا نه شي۔ تر کومه ځایه پورې چه د ادا شوي لمونځونو مسئله ده نو هغه له کراهیت پرته جائز دي د دوباره راګرځولو ضرورت ئې نشته۔ کومو حضراتو چه د نه جواز فتویٰ ورکړې ده د هغو فتویٰ د غور او بیا کتنې قابله ده۔ د دې لپاره چه کله پخپله د کعبې په سر باندې لمونځ جائز دی نو په منقش جانماز باندې خو په طریقه اولیٰ سره جائز دی۔

لما قال العلامة المفتی محمد حسن گنگوهیؒ: (سوال) په یوه جانماز باندې د کعبې مبارکې تصویر دی په هغه باندې لمونځ څنګه دی؟ آیا په نومورې تصویر باندې د پاسه بل رخت ورکړو او پټ ئې کړو او که څه وکړو؟ که چېرته ئې خرڅ کړو نو څلورمه برخه قیمت ئې لاس ته راځي او جومات ته هم تاوان دی۔

(الجواب) په صورت مسئوله کښې په داسې مصلاوو باندې د لمانځه په اداکولو کښې شرعا هیڅ حرج نشته۔ او نه په هغو باندې د رختونو د ورکولو ضرورت شته او نه ئې د خرڅولو ضرورت شته۔ فی منیة المصلی: و اما صورة غیر ذی روح فلا خلاف فی عدم کراهة الصلوٰة علیها او الیها. (ص۳۱۴)

او په دې تصویرونو سره د کعبې مبارکې په تعظیم کښې هم کوم فرق نه راځي ځکه چه د تصویر حکم د عین شي حکم نه وي۔ بله دا چه پخپله په خانهٔ کعبه کښې چه کله لمونځونه کیږي نو هلته هم زمکه د پښو لاندې کیږي نو چه کله هغه د له تعظیم سره تکر نه وي نو د تصویر د پښو لاندې راتلل به په طریقهٔ اولیٰ سره د تعظیم منافي نه وي۔ فقط و الله سبحانه و تعالی اعلم۔ (الفتاوی المحمودیه ج۷، ص۱۱۱، کتاب الصلوه)

## باب مفسد ات الصلوه

## (د لمانځه د مفسد اتو په بیان کښې)

### په لمانځه کښې د پښو د ښورولو حکم

**سوال:** آیا په لمانځه کښې د پښو په ښورولو سره لمونځ فاسد یږي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په لمانځه کښې د پښو ښورول چه کله د عمل کثیر درجې ته نه وي رسیدلی لمونځ پرې نه فاسد یږي. هو! له ضرورت پرته باید د پښو له ښورولو څخه پرهیز وشي. البته د دواړو پښو ښورول د عمل کثیر په جملې کښې راځي.

ان حرك رجلاً واحدة لا على الدوام لا تفسد صلٰوته و ان حرك رجليه تفسد و اعتبر هذا القائل العمل با لرجلين با لعمل با ليدين و العمل برجل واحدة با لعمل بيد واحدة قال بعضهم ان حرك رجليه قليلاً لا تفسد صلٰوته كذا فى المحيط و هو الاوجه هٰكذا فى البحر الرائق. (الهندية ج۱، ص۱۰۳، الباب السابع فيما يفسد الصلٰوة)

قال ابن نجيمؒ: ان حرك رجلا واحدة لا على الدوام لا تفسد صلٰوته و ان حرك رجليه تفسد فمشكل لان الظاهر ان تحريك اليدين فى الصلٰوة لا يبطلها متٰى يلحق بهما تحريك الرجلين فا لاوجه قول بعضهم ان حرك رجليه قليلاً لا تفسد صلٰوته و ان كان كثيراً فسدت كما فى الذخيرة. (البحر الرائق ج۲، ص۱۳، باب مفسدات الصلٰوة)

### پـــــه لمانځه کښې د توخې حکــــم

**سوال:** ځینې وختونه داسې شوي دي چه ځینې لمونځ کوونکي په لمانځه کښې توخیږي. او ځینې خلك خو په توخیدلو کښې له حد څخه هم تجاوز کوي. آیا په لمانځه کښې توخیدل شرعا څنګه دي او اندازه ئې څه ده؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چیرته په لمانځه کښې بې اختیاره د کوم عذر له مخې چا ته توخې ورشي نو شرعاً څه پروا نه کوي او که پرته له عذر څخه یو اځې د آواز د ښائسته والي لپاره وي نو بیا هم جائز دي. البته په لمانځه کښې د توخې لپاره کومه خاصه اندازه نه ده ټاکل شوې. هو! له عذر پرته توخیدل لمونځ فاسدوي په دې شرط چه حروف ترې پیدا شي او که حروف ترې پیدا نه شي نو بیا هم بې له عذره توخیدل مکروه دي.

قال العلامة الحصكفیؒ: (و التنحنح) بحرفين (بلا عذر) اما به بان نشاء طبعه فلا (او) بلا (غرض صحيح) فلو لتحسين صوته او يهتدى امامه او للاعلام انه فى الصلٰوة فلا فساد على الصحيح. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۱، ص۶۱۸، مطلب المواضع التى لا يجب الخ)

و يفسد الصلٰوة التنحنح بلا عذر بان لم يكن مدفوعاً اليه حصل منه حروف هٰكذا فى التبيين و لو لم يظهر له حروف فانه لا يفسد اتفاقاً لكنه مكروه كذا فى البحر الرائق. (الهندية سعيدى ج۱، ص۵۲، الباب السابع الفصل فيما يفسد الصلٰوة)



### په لمانځه کښې د قرآن له مخې د تلاوت کولو حکم

**سوال:** که چیرته یو څوك په لمانځه کښې قرآن کریم له مخې قرائت وکړي نو آیا لمونځ پرې فاسدیږي او که نه؟ همدارنګه په دې کښې حافظ او غیر حافظ فرق لري او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د قرآنکریم له مخې په لمانځه کښې قرائت کول مختلف فیه مسئله ده. د امام ابو حنیفةؒ په نزد لمونځ پرې فاسدیږي. په داسې حال کښې چه د صاحبینؒ او امام شافعيؒ په نزد لمونځ پرې نه فاسدیږي. البته صحیح قول دا دی چه لمونځ پرې فاسدیږي. او حافظ او غیر حافظ په دې مسئله کښې برابر دي.

و يفسدها قرأته من مصحف عند ابى حنيفةؒ و قال لا يفسد ان حمل المصحف و تقليب الاوراق و النظر فيه عمل كثير و للصلٰوة عنه بدو على هذا لو كان موضوعاً بين يديه على رجل و هو لا يحمل و لا يقلب او قرأ المكتوب فى المحراب لا تفسد و لان التلقن من المصحف تعلم ليس من اعمال الصلٰوة و هٰذا يوجب التسوية بين المحمول وغيره فنفسد بكل حال و هو الصحيح هكذا فى الكافى. (الفتاوى الهندية ج۱، ص۱۰۱، مفسدات الصلٰوة)

قال ابن نجيمؒ: (قوله قرأته من مصحف) اى يفسدها عند ابى حنيفةؒ و قالا هى تامة لانها عبادة انضافت الى عبادة الا انها يكره لانه تشبه بصنيع اهل الكتاب و لابى حنيفةؒ وجهان احدهما ان حمل المصحف و النظر فيه و تقليب الاوراق عمل كثير الثانى انه تلقن من المصحف فصار كما اذا تلقن من غيره و على هٰذا الثانى لا فرق بين الموضوع و المحمول عنده و على الاول يفترقان و صح المصنف فى الكافى الثانى و قال انها تفسد بكل حال تبعاً لما صححه شمس الائمة السرخسى. (البحر الرائق ج۲، ص۱۰، ما يفسد الصلٰوة) و مثله فى الدر المختار على صدر رد المحتار ج۱، ص۶۲۳، مفسدات الصلٰوة)

### په لمانځه کښې له قبلې څخه د راګرځیدلو حکم

**سوال:** د لمانځه د اداکولو په دوران کښې د چاد یکې ورکولو په وخت کښې د لمونځ کوونکي سینه له قبلې څخه وګرځیده نو آیا په دې سره ئې لمونځ فاسدیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چیرته له قبلې څخه په ډیره لږه اندازه منحرف شي نو لمونځ ئې نه فاسدیږي او که چیرته من كل الوجوه له قبلې څخه منحرف شي نو بیائې لمونځ فاسدیږي.

قال العلامة الحصكفیؒ: (و لغيره) اى غير معانيها (و اصابة جهتها) بان يبغى شىء من سطح الوجه مسامتا للكعبة او لهوائها. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۱، ص۴۲۸، شروط الصلٰوة)

قال ابن نجيمؒ: (قوله و لغيرها اصابة جهتها) لغير المكى فرضه اصابه جهتها وهو الجانب الذى اذا توجه اليه الشخص يكون مسامتا للكعبة او لهوائها. (البحر الرائق ج۱، ص۳۰۰، شروط الصلٰوة) و مثله فى الهندية ج۱، ص۶۳، الفصل الثالث فى استقبال القبلة)

## په لاسپیکر کښې د لمانځه د ادا کولو حکم

**سوال:** نن صبا په اکثرو جوماتونو کښې په لاسپیکر کښې لمونځونه ورکول کیږي۔ آیا شرعاً د دې آلې په ذریعې سره لمونځ ورکول جائز دي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** لاسپیکر یوه نوې آله ده او د دې په سبب سره د مکبر (تکبیر ویونکي) او امام آواز تر لرې ځایه پورې رسیږي۔ د فني لحاظ له مخې چونکه دا آواز د امام آواز وي د دې لپاره د محققینو علماء کرامو اتفاق دی چه په لاسپیکر کښې لمونځ ورکول جائز دي لیکن له ضرورت پرته په لاسپیکر کښې د لمانځه له ورکولو څخه باید ځان ساتنه وشي۔ البته د ځینو حضراتو د تحقیق مطابق چونکه دا د امام خپل آواز نه وي بلکه د بازګشت آواز وي نو د دې لپاره په لاسپیکر کښې لمونځ صحیح نه دی۔

قال المفتی کفایت اللهؒ: ما څو وارې دا آله په لمانځه کښې د استعمالولو حکم لیکلی دی او په اخبارونو کښې مې هم شائع کړي دي۔ او هغه دا چه د خپل ذات په حد کښې د دې آلې په نه جواز کښې هیڅ وجه نشته۔ د دې لپاره د جُمعې او اخترونو په خطبو، وعظ او تقریر په مجلسونو کښې د دې آلې استعمال مباح دی۔ د لمانځه په لویو مجمعو کښې چه کوم خلك خلکو ته تکبیرونه رسوي د هغو د آواز د لوړولو لپاره که دا آله استعمال شي نو کومه پروا نه لري۔ (کفایت المفتي ج۹، ص۲۰۷، کتاب الخطر و الاباحه)

د امداد المفتاو ج۱، ص۶۰۵، ۶۰۸، و آلات جدیده ص۵۳، له تحریر څخه ئې جواز معلومیږي۔

## د ښځې د محاذاتو مسئله

**سوال:** که چېرته په لمانځه کښې یوه ښځه د یوه سړي په محاذاتو (برابر) ودریږي او امام ئې د اقتداء نیت هم وکړي او ښځه بالغه هم وي نو آیا په دې سره لمونځ فاسدیږي او که نه؟ آیا د محاذاتو په مسئله کښې په محرمې او پردۍ ښځې کښې څه فرق شته او که نه؟ او د محاذاتو شرائط څه دي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته یوه بالغه ښځه د کوم نارینه په محاذاتو کښې ودریږي نو د څو شرائطو تر څنګ د سړي لمونځ فاسدیږي۔ د مثال په ډول پرته له کوم حائل څخه ځای یو وي، ښځه عاقله بالغه وي چه لمونځ ئې صحیح کیږي۔ لیونۍ نه وي، امام د ښځې د اقتداء نیت کړی وي، محاذات په یوه کامل رُکن کښې وي، او د دراړو جهت یو وي۔

او په محاذاتو کښې د پنډۍ او ښنګرو اعتبار وي او په دې کښې محرمه او پردۍ هیڅ فرق نه لري دواړه سره برابرې دي۔

(و منها) ان یکون فی مکان واحد حتی لو کان الرجل علی الدکان و المرأة علی الارض و الدکان مثل قامة الرجل لا تفسد صلٰوته (منها) ان یکون بلا حائل حتی لو کان فی مکان متحد بان کانا علی الارض او علی الدکان الا ان



بینهما اسطوانة لا تفسد صلٰوته هٰکذا فی الکافی و ادنی الحائل قدر مؤخر الرحل و غلظه غلظ الاصبع و الفرجة تقوم مقام الحائل و ادناه قدر ما یقوم فیه الرجل کذا فی التبیین (منها) ان تکون ممن تصح منها الصلٰوة حتی ان المجنونة اذا حاذته لا تفسد صلٰوته (منها) ان ینوی الامام امامتها او امامة النساء وقت الشروع لا بعده و لا یشترط حضور النساء لصحة نیتهن. (و منها) ان تکون المحاذات فی رکن کامل حتی لو کبرت فی صف و رکعت فی آخر و سجدت فی ثالث فسدت صلاة من عن یمینها و یسارها خلفها من کُلّ صف (و منها) ان تکون جهتهما متحدة حتی لو اختلف لا تفسد و لا یتصور اختلاف الجهة الا فی جوف الکعبة او فی لیلة مظلمة و صلی کل با لتحرٰی الی جهة و المعتبر فی المحاذات، الساق و الکعب علی الصحیح هٰکذا فی التبیین و المرأة تتناول الاجنبیة و المحرمة و الحلیلة و الصغیرة المشتهاة و الکبیرة التی ینفر عنها الرجال هٰکذا فی الکفایة. (الهندیة ج۱، ص۸۹، باب الامة، الفصل الخامس)

قال العلامة الحصکفیؒ: (و اذا حاذته) و لو بعضو واحد و خصه الزیلعیؒ با لساق و الکعب (امرأة) و لو امة (مشتهاة) حالاً کبنت تسع مطلقاً و ثمان و سبع لو ضخمة او ماضیا کعجوز (و لا حائل بینهما) اقله قدر ذراع فی غلظ اصبع او فرجة تسع رجلاً (فی صلٰوة) و ان لم تتخذ کنیتها ظهرا بمصلّی عصر علی الصحیح سراج فانه یصح نقلاً علی المذهب بحر و سیجی (مطلقة) خرج الجنازه (مشترکة) فمحاذات المصلیة لمصل لیس فی صلاتها مکروهة لا مفسد فتح (تحریمة) و ان سبقت ببعضها (و اَدَاءٍ) و لو حکما کلاحقین بعد فراغ الامام بخلاف المسبوقین و المحاذات فی الطریق (و اتحدت الجهة) فلو اختلفت کما فی جوف الکعبة و لیلة مظلمة. (فسدت صلٰوته) لو مکلفاً و الا لا (ان نوی الامام وقت شروعه لا بعده (امامتها) و ان لم تکن حاضرة علی الظاهر و لو نوی امرأة معینة او النساء الا هٰذه عملت نیته (و الا) قنوها (فسدت صلٰوتها) (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۵۷۲ تا۵۷۵، باب الامامة)

## په بس موټر کښې په ناستې سره د لمانځه حکم

**سوال:** کله کله په بس کښې د سفر په دوران کښې د لمانځه وخت راځي او د بس چلوونکی د لمانځه لپاره بس نه دروي۔ که چېرته په بس کښې په ناستې سره لمونځ وشي نو شرعاً به جائز وي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په بس کښې په ناستې سره د عذر له وجهې لمونځ جائز دی خو چه د لمانځه د شروع کولو په وخت کښې د لمونځ کوونکي مخ قبلې ته مخامخ وي۔ لیکن بهتره دا ده چه انتظار وکړي۔ کیدای شي چه د باقاعده لمانځه ادا کولو وخت په لاس ورشي په دې شرط چه له مخکښې څخه ئې له بس چلوونکي سره خبره کړې وي او چلوونکی د بس په نه درولو باندې مُصر وي۔ البته که چېرته د بس چلوونکی بس چېرته ودروي نو بیا په بس کښې لمونځ جائز نه دی۔

قال العلامة الحصکفیؒ: (صلی الفرض فی فلك) صار (قاعداً بلا عذر صح) لغلبة العجز (و اساء) و قالا لا یصح الا بعذر و هو الاظهر برهان. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۱۰۱، باب صلوٰة المریض)

(اما الصلٰوة علی العجلة ان کان طرف العجلة علی الدابة و هی تسیر اولا تسیر (فهی صلٰوة علی الدابة فتجوز فی حالة العذر) المذکور فی التیمم (لا فی غیرها) و من العذر المطر وطین یغیب فیه الوجه و ذهاب الرفقاء. (الدر المختار

على صدر رد المحتار ج ۲، ص ٤٠، باب النوافل، مطلب الصلوة على الدابة)

و لا تجوز المكتوبة على الدابة الا من عذر........ اما الصلوة على العجلة فان كان طرفها على الدابة و هى تسير اولا فهى صلوة على الدابة و قد مر حكمها. (الفتاوى الهندية ج ۱، ص ۱٤۳، الباب الخامس عشر فى صلوة المسافر) و مثله فى معارف السنن ج ۳، ص ۳۹۵، باب الصلوة على الدابة حيث توجهت به)

## پــــه جومات کښې د ځای د نشتوالي له وجهــــې په دوکانونو کښې د لمانځــــه د اداکولو حکم

**سوال:** زمونږ جومات ډیر کوچنی دی کله کله لمونځ کوونکي دومره ډیر وي خصوصاً د جُمعې په ورځ چه په جومات کښې نه ځاییږي نو ځینې خلك له جومات ښخه د باندې په دوکانونو کښې دریږي. چه له مخې ئې په صفونو کښې اتصال نه شي راتللی. آیا په داسې صورت کښې په امام پسې لمونځ جائز دی او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته په جومات کښې ځای نه وي نو له جومات ښخه د باندې په دوکانونو کښې هغه وخت لمونځ جائز دی چه د جومات او دوکانونو تر منځ لار بنده شي او په صفونو کښې اتصال پیدا شي. بل شرط ئې دا دی چه دغو مقتدیانو ته د امام حالت معلوم وي. که چېرته په صفونو کښې اتصال نه وي او په منځ کښې باقاعده لاره خالي وي او همدارنګه مقتدیانو ته د امام حالت هم معلوم نه وي نو په داسې صورت کښې اقتداء صحیح نه ده.

قال العلامة الحصكفىؒ: (و يمنع من الاقتداء طريق تجرى فيه عجلة) الة يجرها الثور (او نهر تجرى فيه السفن) و لو زروقا و لو فى المسجد (او خلاء) الى فضاء (فى الصحراء) او فى مسجد كبير جدا كمسجد القدس (يسع صفين) فاكثر الا اذا اتصلت الصفوف فيصح مطلقاً كان قام فى الطريق ثلاثة و كذا اثنان عند الثانى لا واحد اتفاقاً لانه لكراهة صلاته صار وجوده كعدمه فى حق من خلفه (و الحائل لا يمنع) الاقتداء (ان لم يشتبه حال امامه بسماع او رؤية) و لو من باب مشبك يمنع الوصول فى الاصح (و لم يختلف المكان) حقيقة كمسجد و بيت فى الاصح. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج ۱، ص ٥٨٤، باب الامامة)

و منها طريق عام يمر فيه العجلة و الاوقار هكذا فى شرح الطحاوى. اذا كان بين الامام و بين المقتدى طريق انكان ضيقاً لا يمر فيه العجلة و الاوقار لا يمنع و ان كان واسعاً يمر فيه العجلة و الاوقار يمنع كذا فى فتاوى قاضى خان و الخلاصة هذا اذا لم تكن الصفوف متصلة على الطريق اما اذا اتصلت الصفوف لا يمنع الاقتداء و لو كان على الطريق واحد لا يثبت به الاتصال و بالثلث يثبت بالاتفاق. (الفتاوى الهندية ج ۱، ص ۸۷، باب الامامة، الفصل الرابع فى بيان ما يمنع صحة الاقتداء...... الخ)



## په لمــــانځه کښې د واجباتو د پاتې کیدلو حکــــم

**سوال:** که چېرته له کوم سړي ښخه په لمانځه کښې واجبات پاتې شي او سجده سهو هم ونه کړي نو لمونځ ئې کیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په لمانځه کښې په قصد سره د واجباتو پرېښودل کبیره ګناه ده. البته په سهوې سره د واجباتو په پاتې کیدو سره که چېرته سجدهٔ سهو وکړي نو لمونځ ئې صحیح کیږي او که چېرته سجدهٔ سهو و نه کړي نو بیا د لمانځ بیرته راګرځول پرې واجب دي. که چېرته ئې راو نه ګرځوي نو بیا له تحریمي کراهیت سره ئې لمونځ جائز دی.

قال العلامة الحصكفىؒ: (لها واجبات) لا تفسد بتركها و تعاد وجوباً فى العمد و السهو ان لم يسجد له و ان لم يعدها يكون فاسقاً اثماً و كذا كل صلوة اديت مع كراهة التحريم يجب اعادها و المختار انه جابر للاول لان الفرض لا يتكرر. (الدر المختار على الصدر رد المحتار ج ۱، ص ٤٥٦، واجبات الصلوة)

فلا تفسد الصلوة بتركها عامداً او ساهياً بل يجب عليه سجود السهو فى السهو جبرا للنقصان الحاصل بتركها سهواً و الاعادة فى العمد و السهو اذا لم يسجد لتكون مؤداة على وجه لا منقص فيه فاذا لم يعدها كانت مؤداه اداء مكروها كراهة تحريم و هذا هو الحكم فى كل واجب تركه. (البحر الرائق ج ۱، ص ۲۹۵، شروط الصلوة) و مثله فى مراقى الفلاح على هامش الطحطاوى ص ۱۳٤، فى بيان واجبات الصلوة)

## د زلزلې په وخت کښې دُ لمانځه د ماتولو حکم

**سوال:** د لمانځه په حالت کښې که چېرته زلزله راشي نو د لمانځه ماتول او د باندې کوم محفوظ ځاي ته تلل شرعا جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د زلزلې په سبب سره د جمعي لمونځ ماتولو او د باندې وتلو په اړه کومه صریحه جزئیه لاس ته رانه غله لیکن په فقهي ذخائرو کښې ځینې داسې جزئې موجودې دي چه له مالي نقصان ښخه د بچ کیدو په خاطر یو ځوك لمونځ ماتولی شي نو له ځاني نقصان ښخه د بچ کیدو په خاطر خو به په طریقه اولی سره جائز وي. چونکه په زلزلې کښې د ځاني تاوان خطر موجود وي نو د دې لپاره لمونځ ماتول او د باندې وتل جائز دي.

لما قال ابن عابدينؒ: (تتمة) نقل عن خط صاحب البحر على هامشه: ان القطع يكون حراماً و مباحاً و مستحباً و واجباً فالحرام لغير عذر و المباح اذا خاف فوت مال و المستحب القطع للاكمال و الواجب لاحياء النفس. (رد المحتار ج ۱، ص ٥۲، باب ادراك الفريضة، مطلب قطع الصلوة يكون حراماً و مباحاً...... الخ)

و فى الهندية: و كذا لاجنبى اذا خاف ان يسقط من سطح او تحرقة النار او يغرق فى الماء و استغاث المصلى وجب عليه قطع الصلوة رجل قام الى الصلوة فسرق منه شيء قيمته درهم له ان يقطع الصلوة و يطلب السارق سواء كانت فريضة او تطوعاً لان الدراهم مال..... الخ. (الفتاوى الهندية ج ۱، ص ۱۰۹، الفصل الثانى فيما يكره فى الصلوة و مما يتصل بذلك مسائل) و مثله فى البحر الرائق ج ۲، ص ۷۱، باب ادراك الفريضة)

## په لمانځه کښې د امام په غلطۍ باندې د فتح په ورکولو سره لمونځ نه فاسد یږي

**سوال:** زمونږ د جومات امام صاحب د سهار په لمانځه کښې غلط شو او یوه مقتدي فتحه ورکړه لیکن امام صاحب فتحه وا نه خیسته بلکه خپل لمونځ ئې جاري وساته. د سلام له اړولو وروسته امام صاحب وویل چه چا فتحه راکړې ده د هغه لمونځ فاسد شوی دی له دې وجهې دې خپل لمونځ بیرته را وګرځوي. آیا په رښتیا هم د فتحې په ورکولو سره لمونځ فاسد یږي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په لمانځه کښې د امام په غلطۍ باندې که چېرته مقتدي فتحه ورکړي نو په دې سره د مقتدي لمونځ نه فاسد یږي او نه د امام په فتحه اخیستنې باندې لمونځ فاسد یږي. البته له ډیرو فتحو ورکولو څخه اجتناب وکړی.

قال العلامة الحصکفیؒ: (بخلاف فتحه علی امامه) فانه لا یفسد (مطلقاً) لفاتح و آخذ بکل حال الاّ اذا سمعه المؤتم من غیر مصلّ ففتح به تفسد صلٰوة الکل و ینوی الفتح لا القرأة. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۶۲۲، باب ما یفسد الصلٰوة)

و ان فتح علی امامه لم تفسد ثم قیل ینوی الفاتح با لفتح علی امامه التلاوة و الصحیح أن ینوی الفتح علی امامه دون القرأة قالوا هٰذا اذا ارتج علیه قبل ان یقرأ قدر ما تجوز به الصلٰوة او بعد ما قرأ و لم یتحول الٰی آیة اخرٰی و اما اذا قرأ او تحول ففتح علیه تفسد صلٰوة الفاتح و الصحیح انها لا تفسد صلٰوة الفاتح بکل حال و لا صلٰوة الامام لو اخذ منه علی الصحیح هکذا فی الکافی. (فتاوی الهندیة ج۱، ص۱۱۳، الباب السابع فیما یفسد الصلٰوة) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۶، باب ما یفسد الصلٰوة و ما یکره فیها)

## په لمانځه کښې د خبرې کولو حکم

**سوال:** په لمانځه کښې که چېرته یو څوك خبرې وکړي نو په لمانځه باندې ئې څه اثر لویږي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په لمانځه کښې خبرې کول که په سهوې سره وي یا په قصد سره لمونځ فاسدوي. په داسې صورت کښې به لمونځ بیا راګرځوي.

قال ابن عابدینؒ: (یفسدها الکلام) ای یفسد الصلٰوة و مثلها سجود السهو و التلاوة و الشکر علی القول عن الحموی (قوله هو النطق بحرفین الخ) ای ادنٰی ما یقع اسم الکلام علیه المرکب من حرفین کما فی القستهانی عن الجلابی. (رد المحتار ج۱، ص۶۱۳، باب ما یفسد الصلٰوة و ما یکره فیها)

اذا تکلم فی صلٰوته ناسیاً او عامداً خاطئاً او قاصداً قلیلاً او کثیراً تکلم لاصلاح صلٰوته بان قام الامام فی موضع القعود فقال له المقتدی أقعد او قعد فی موضع القیام فقال له قم او لا لاصلاح صلٰوته و یکون الکلام من کلام الناس استقبل الصلٰوة عندنا کذا فی المحیط. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۹۸، باب ما یفسد الصلٰوة و ما یکره فیها) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص۱۲، باب ما یفسد الصلٰوة و ما یکره فیها)



## د لمانځه په دوران کښې د ښځې له تیکري څخه د ویښتانو د ښکاریدلو حکم

**سوال:** نن صبا ځینې ښځې داسې تیکري په سروي چه هیڅ ئې تول ترې ښکاریږي په ځانګړې توګه چه کله په لمانځه ودریږي نو د ښځې ویښتان او د بدن غړي په څرګنده توګه ترې ښکاریږي. آیا په دې ډول سره د ویښتانو په ښکاریدلو سره د ښځې لمونځ فاسدیږي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د آزادې ښځې تول بدن په لمانځه کښې بلکه په هر وخت کښې پټ ساتل ضروري دي او د ښځې د سر ویښتان هم په ستر کښې داخل دي چه پټول ئې لازم دي. لهذا که چېرته کومه ښځه په لمانځه کښې داسې تیکری استعمال کړي چه د سر ویښتان ئې ترې ښکاریدل نو لمونځ ئې نه کیږي بلکه د لمانځه بیرته راګرځول پرې واجب دي.

قال الحصکفیؒ: (و للحرة) و لو خنثٰی (جمیع بدنها) حتٰی شعرها النازل فی الاصح خلا الوجه و الکفین فظهر الکف عورة علی المذهب (و القدمین) علی المعتمد. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۴۰۵، باب شروط الصلٰوة)

لما قال ابن عابدینؒ: تحت قوله و لا یصف ما تحته بان لا یرٰی منه لون البشرة احترازاً عن الرقیق و نحو الزجاج. (الرد المحتار ج۱، ص۴۱۰، باب شروط الصلٰوة، مطلب فی النظر الٰی وجه الامرد)

و بدن الحرة عورة الا وجهها و کفیها و قدمیها کذا فی المتون و شعر المرأة ما علی رأسها عورة و اما مسترسل ففیه روایتان الاصح انه عورة کذا فی الخلاصة و هو الصحیح و به اخذ الفقیه ابو اللیث و علیه الفتوٰی...... و الثوب الرقیق الذی یصف ما تحته لا تجوز الصلٰوة فیه کذا فی التبیین. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۵۸، الباب الثانی فی شروط الصلٰوة) و مثله فی تبیین الحقائق ج۱، ص۹۶، باب شروط الصلٰوة)

## په لمانځه کښې د درود او دعا الفاظ په زړه کښې د لوستلو حکم

**سوال:** زما په ژبه کښې لُکنت دی چه له وجهې ئې د لمانځه الفاظ په صحیح طریقې سره نه شم ادا کولی. خصوصاً چه کله په التحیاتو باندې کښینم نو د درود او دعا الفاظ مې بالکل ژبې ته نه راځي چه له وجهې ئې راته سخت تکلیف وي. نو په الفاظو او معانیو باندې د غور په کولو سره ئې په زړه کښې لولم. نو آیا په دې سره مې په لمانځه کښې فساد راځي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په لمانځه کښې د التحیاتو لوستل واجب دي او پریښودل ئې ګناه ده. او نه په زړه کښې د غور او فکر په کولو سره ادا کیدلی شي. لهذا د خپل طاقت مطابق د دغو الفاظو د ادا کولو کوشش وکړی اګر که الفاظ صحیح ادا نه شي لیکن دومره یقین مو وي چه ما الفاظ ادا کړي دي. هو! درود شریف او دُعا چونکه سُنت دي د دې لپاره که چېرته د مجبورۍ له مخې پاتې هم شي نو کومه پروا نه لري لیکن لوستل ئې ډیر مناسب دي.

فان کان لا ینطق لسانه فی بعض الحروف ان لم یجد آیة لیس فیها تلك الحروف یجوز صلٰوته و لا یؤم غیره.

(الهندیة ج۱، ص۷۹، زلة القاری)

و یجب التشهد فی القعدة الاخیرة و کذا فی القعدة الاولیٰ و هو الصحیح هٰکذا فی السراج الوهاج و هو الاصح کذا فی محیط السرخسی. (الهندیة ج۱، ص۷۱، واجبات الصلوٰة)

قال ابن عابدینؒ: لها واجبات........ (قوله و التشهد ان) ای تشهد القعدة الاولیٰ و تشهد الاخیرة. (رد المحتار ج۱، ص۴۶۶، واجبات الصلوٰة) و مثله فی البحر الرائق ج۱، ص۳۱۸، واجبات الصلوٰة.

## د لمونځ کوونکي په مخکښې د سپي او ښځې په تیریدو سره لمونځ نه فاسد یږي

**سوال:** که چېرته د لمانځه په حالت کښې د چا له مخې څخه ښځه یا سپی تیر شي نو لمونځ یې فاسدیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د ښځې او سپي د لمونځ کوونکي له مخې په تیریدو سره لمونځ نه فاسدیږي۔

قال ابن عابدینؒ: (قوله و لو امرأة او کلب) بیان للاطلاق و الشارة الی الرد علی الظاهریة بقولهم بقطع الصلوٰة مرور المرأة و الکلب و الحمار و علی احد فی الکلب الاسود. (رد المحتار ج۱، ص۴۶۹، باب ما یفسد الصلوٰة)

(مار فی موضع سجوده لا تفسد) سواء المرأة و الکلب و الحمار لقوله ﷺ لا یقطع الصلوٰة شیء و ادرؤ ما استطعتم فانها هو شیطان (و ان اثم المارُّ) (مراقی الفلاح علی هامش الطحطاوی ج۱، ص۱۸۷)

## په لمانځه کښې د سرې ذکر کولو حکم

**سوال:** ځیني خلك په لمانځه کښې سرې (په پټه او په زړه کښې) ذکر کوي نو آیا په لمانځه باندې څه اثر کوي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** لمونځ د مخصوصو ذکرونو نوم دی، له دغو ذکرونو څخه پرته په لمانځه کښې نور ذکرونه کول د لمانځه فاسدوونکي دي، د دې لپاره کوم سړی چه په مخصوصو مقاماتو کښې له مخصوصو اذکارو پرته نور ذکر کوي نو لمونځ یې فاسدیږي۔

لما قال العلامة ابراهیم الحلبیؒ: ذکر فی الملتقط ان المصلی اذا لسعته الحیة فقال بسم الله الرحمٰن الرحیم تفسد صلوٰته الخ و ذکر فی الذخیرة انه اذا قال المریض یا ربّ او قال بسم الله لما یلحقه من المشقه اما عندهما ای الطرفین فتفسد. (کبیری ص۴۳۷، فصل فیما یفسد الصلوٰة)

قال الشیخ المفتی عزیز الرحمٰن فی جواب هٰذه المسئلة: ظاهر همین است که نماز فاسد شود لهٰذا احتیاط دین امر واجب است. (فتاویٰ دار العلوم دیوبند ج۴، ص۴۶، فصل فیما یفسد الصلوٰة)

## په جامو باندې د نجاست له موجودوالي سره د لمانځه حکم

**سوال:** بزګران اکثره وخت په بیړې سره په پټیو کښې د کار له جامو سره لمونځونه کوي په داسې حال کښې چه کله کله هغوی ته پخپلو جامو باندې د نجسو شیانو لکه خوشایي او داسې نورو د موجودوالي علم نه وي۔ آیا د دغو نجسو شیانو له موجودوالي سره یې لمونځونه کیږي او که نه؟



**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته دا نجاستونه د درهم له اندازې څخه زیات وي نو په هیڅ حال کښې یې هم لمونځونه نه صحیح کیږي که پرې خبر وي یا نه۔ بلکه لمونځونه به بیرته را ګرځوي۔ البته که چېرته د درهم له اندازې څخه کم وي او هغه ته معلوم وي نو د لمانځه بیرته راګرځول پرې واجب دي او که چېرته معلوم نه وي نو لمونځ یې صحیح دی۔

لما قال العلامة الحصکفیؒ: و عفی الشارع عن قدر درهم و ان کره تحریما...... و فوقه مبطل. قال ابن عابدینؒ: (تحت قوله و ان کره تحریما) ففی المحیط یکره ان یصلی و معه قدر درهم او دونه من النجاسة عالماً به. (رد المحتار ج۱، ص۳۱۶، باب الانجاس)

قال الشیخ عبد الرحمٰن الجزائریؒ: و یعفی فی النجاسة المغلظة عن امور منها قدر درهم و بقدر فی النجاسة الکثیفة بما یزن عشرین قیراطاً و فی النجاسة الرقیقة بعرض مقعر الکف....... فان الصلوٰة تکون به مکروهاً کراهة تنزیة...... و المشهور عند الحنفیة کراهة التحریم. (کتاب الفقه علی مذاهب الاربعة ج۱، ص۱۸، مبحث ما یعفی عنه من النجاسة)

## د زکات په روپو د جومات لپاره په اخیستل شویو صفونو باندې د لمانځه حکم

**سوال:** که چېرته یو څوك د جومات لپاره د زکات په روپو باندې د صفونو انتظام وکړي نو آیا په داسې صفونو باندې لمونځ کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د لمانځه لپاره د ځای پاکوالی شرط دی۔ په دې صورت کښې چونکه دا صفونه پاك دي د دې لپاره لمونځ پرې جائز دی اګر که د راوړونکي زکات نه ادا کیږي څکه چه د تملیك شرط پکښې مفقود دی یعنې وجود نه لري۔

لما قال العلامة الحصکفیؒ: یشترط ان یکون الصرف...... تملیکاً لا اباحة کما مرّ لا یصرف الی بناء نحو مسجد و لا الی کفن میت. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۳۴۴، باب المصرف)

فی الهندیة: و لا یجوز ان یبنی با لزکوٰة المسجد و کذا القناطر و السقایات...... و کل ما لا تملیك فیه. (الفتاویٰ الهندیة ج۱، ص۱۸۸، الباب السابع فی المصارف) و مثله فی فتح القدیر ج۲، ص۲۰۷، باب من یجوز دفع الصدقة الیه و من لا یجوز)

## د نامه د لاندې د وینښتانو په موجودوالي کښې د لمانځه حکم

**سوال:** له اکثرو خلکو څخه مو اوریدلي دي چه کوم سړي چه د نامه لاندې وینښتان تر څلویښتو ورځو پورې لرې نه کړي نو لمونځ یې نه کیږي۔ آیا دا خبره د شریعت له مخې صحیح ده او که څنګه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** بهتره دا ده چه د نامه لاندې وینښتان په اونۍ (هفته) کښې یو ځل لرې شي، تر څلویښتو ورځو پورې پریښودل یې له عذر پرته مکروه دي لیکن له دې کراهت سره سره د لمانځه ادا کول صحیح دي اګر که دا عمل پخپل ذات کښې مناسب نه دی۔

لما فی الهندیة: و الافضل ان یقلم اظفاره و یحفی شاربه و یحلق عانته و ینظف بدنه با لاغتسال فی کل سبوع مرة فان لم یفعل فی کل خمسة عشر یوماً و لا یعذر فی ترکه وراء الاربعین فا لاسبوع هو الافضل و الخمسة عشر هو الاوسط و الاربعون الابعد و لا عذر فیما وراء الاربعین و یستحق الوعید. (الفتاوی الهندیة ج۵، ص۳۵۸، کتاب الکراهة، الباب التاسع عشر)

لما قال العلامة الحصکفیؒ: و حلق عانته و تنظیف بدنه با لاغتسال فی کل اسبوع مرة و الافضل یوم الجمعة و جاز فی کل خمسة عشر و کره ترکه وراء الاربعین. قال ابن عابدینؒ: تحت قوله (و کره ترکه) ای تحریماً لقول المجتبیٰ و لا عذر فیما وراء الاربعین و یستحق الوعید. (رد المحتار ج۶، ص۴۰۷، کتاب الکراهة، فصل فی البیع)

## په لمانځه کښې د الله یا اِنّا لِلّٰه ویلو حکم

**سوال:** که چېرته د لمانځه په دوران کښې چا ته کومه ناځاپې واقعه ور پېښه شي یا کومه هیبتناکه خبره واوري او له ژبې څخه بې اختیاره د الله یا اِنّا للّٰه الفاظ ووځي نو آیا لمونځ ئې فاسدېږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په دې مسئله کښې د فقهاء کرامو دوه رایې دي، د یوې رأیې مطابق ئې لمونځ فاسدېږي په داسې حال کښې چه د دوهمې رأیې مطابق چونکه دا الفاظ له کلام الناس سره تعلق نه لري د دې لپاره ئې لمونځ نه فاسدېږي۔ علامه ابن عابدینؒ او داسې نورو محققینو دوهم قول ته ترجیح او مفتیٰ به ګڼلی دی۔

لما قال العلامة ابن عابدین: (تحت قوله لو سقط شیء من السطح فبسمل) یشکل علیه ما فی البحر لولدغته عقرب او اصابه وجع فقال بسم الله قیل تفسد لانه کا لانین و قیل لا لانه لیس من کلام الناس و فی النصاب و علیه الفتویٰ و جزم به فی الظهیریة و کذا لو قال یا رب کما فی الذخیرة. (رد المحتار ج۱، ص۶۲۲، باب ما یفسد الصلوٰة و ما یکره الخ)

قال العلامة ابن نجیم المصریؒ: ذکر فی الفتاوی الظهیریة فی بعض المواضع انه لو اجاب بقول بان یخبر بخبر یسره فقال الحمد للّٰه رب العالمین او بخبر یسوء ه فقال اِنّا للّٰهِ و اِنّا الیه راجعون تفسد صلوٰته. والاصح انه لا تفسد صلوٰته و هو تصحیح مخالف للمشهور. (البحر الرائق ج۲، ص۸، باب ما یفسد الصلوٰة الخ) و مثله فی فتاویٰ دار العلوم دیوبند ج۴، ص۶۵، فصل مفسدات الصلوٰة)

## د لیونۍ ښځې په محاذ اتو باندې لمونځ نه فاسدېږي

**سوال:** مونږ په کتابونو کښې لیدلي دي چه ښځه په لمانځه کښې د نارینه په محاذ اتو (برابرۍ) کښې راشي نو د نارینه لمونځ فاسدېږي، نو آیا که چېرته یوه لیونۍ ښځه د کوم سړي په محاذ اتو کښې راشي نو د لمانځه حکم به ئې څه وي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په لمانځه کښې اګر که پردۍ ښځه د نارینه په محاذ اتو کښې راشي نو د نارینه لمونځ فاسدېږي لیکن دا فاسدوالي په څو شرائطو پورې مشروط دی چه د تکبیر تحریمې یو والی پکښې هم شامل دی کوم چه له مکلف څخه متوقع دی۔ چونکه د لیونۍ



ښځې لمونځ با لکل صحیح نه دی نو د دې لپاره د دې په محاذ اتو سره لمونځ هم نه فاسدېږي۔

لما قال العلامة ابن عابدینؒ: (تحت قوله فی صلوٰة و ان لم تتخذ)...... قال و فیه اشارة الی ان محاذاة المجنونة لا تفسد لان صلوٰتها لیست بصلاة فی الحقیقة. (رد المحتار ج۱، ص۵۷۳، باب الامامة)

لما فی الهندیة: (و منها) ان تکون ممن تصح منها الصلوٰة حتی ان المجنونة اذا حاذته لا تفسد کذا فی الکافی. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۸۹، باب الامامة، الفصل الخامس) و مثله فی امداد الاحکام ج۱، ص۵۶۱، باب مفسدات الصلوٰة)

## په زخم باندې سپرټ (الکحل) لګول او بیا لمونځ کول

**سوال:** چه کله یو څوک زخمي کېږي نو د وینې د بندولو لپاره په زخم باندې الکحل اچوي نو آیا سپرټ لګول او بیا لمونځ کول ورسره جائز دي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په سپرټ کښې چونکه الکحل استعمالیږي د دې لپاره که چېرته الکحل له انګورو، زبیبو او خرماوو څخه جوړ شوي وي نو په اتفاق سره ئې استعمال ناجائز دی او نه لمونځ ورسره کیږي او که چېرته له دغو څلورو شیانو څخه پرته له نورو شیانو څخه جوړ شوي وي نو د امام ابو حنیفةؒ په نزد پاك دي او استعمالول ئې پروا نه لري۔

لکه څرنګه چه نن صبا الکحل له دغو څلورو شیانو څخه پرته له نورو حبوبو، دانو، پستوکو، پټرولو او داسې نورو شیانو څخه جوړیږي نو د دې لپاره د عموم بلوٰی په خاطر د امام ابو حنیفةؒ په قول باندې د فتوٰی مطابق لمونځ ورسره صحیح دی۔

لما قال الشیخ المحقق المفتی محمد تقی عثمانی: و ان معظم الکحول التی تستعمل الیوم فی الادویة و العطور و غیرها لا تتخذ من العنب و التمر انما تتخذ من الحبوب او القشور او البترول و غیره کما ذکرنا فی باب بیع الخمر من کتاب البیوع و حینئذ هناك فسحة فی الاخذ لقول ابی حنیفؒ عند عموم البلوٰی. (تکملة فتح الملهم ج۳، ص۶۰۸، کتاب الاشربة حکم الکحول المکرة)

لما قال الشیخ مولانا اشرف علی التهانویؒ: سپرټ که چېرته له انګورو، زبیبو، رطب، او تمر څخه لاس ته نه وي راغلی نو څه ګنجائش پکښې شته، د اختلاف له وجهې۔ او که له دغو شیانو لاس ته نه وي راغلی نو ګنجائش پکښې نشته، د اتفاق له وجهې۔ (امداد الفتاویٰ ج۱، ص۸۲، باب الانجاس)

## په نیم لستوني لرونکي بنیان کښې د لمانځه د ادا کولو مسئله

**سوال:** آیا له ضرورت پرته یوائې په نیم لستوني لرونکي بنیان کښې لمونځ کول جائز دي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په لمانځه کښې له ضرورت پرته د څنګلو ښکاره ساتل مکروه دي۔ چونکه په بنیان کښې څنګلې ښکاره وي د دې لپاره له ضرورت پرته په هغه کښې لمونځ مکروه دی۔ هو! که چېرته له چا سره کمیس نه وي نو بیا د ضرورت له وجهې یوائې په بنیان

کښې له کراهیت پرته لمونځ کول جائز دي۔

لما قال العلامة الحصكفیؒ: و كره كفه ای رفعه و لو لتراب كمشمر كم او ذيل. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص ٦٤٠، باب ما یفسد الصلٰوة و ما یکره)

قال العلامة حسن بن عمّار الشرنبلالیؒ: و كره....... و تشمير كميه عنهما للنهی عنه لما فیه من الجفاء المنافی للخشوع. قال السيد احمد الطحطاویؒ: (تحت قوله تشمير كميه) ای عن ذراعيه سواء كان الی المرفقين او الاعلی الظاهر. (طحطاوی حاشية مراقی الفلاح ص۲۸۳، فصل فی مکروهات الصلٰوة) و مثله فی امداد الاحکام ج۲، ص ٥٥٤، باب مفسدات الصلٰوة الخ)

## په لمانځه کښې د تنحنح (غاړې تازه کولو) حکم

**سوال:** د ژمي په ورځو کښې یا کله همد اسې څینې خلك د خپلو غاړو د تازه کولو لپاره توخیږي نو آیا په لمانځه باندې ئې کوم اثر لویږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د ستوني د صفا کولو لپاره یا د آواز د ښائستوالي او وضاحت لپاره یا د مجبورۍ نه وجهې تنحنح (د غاړې تازه کول) له کراهیت پرته جائز دي۔ البته که چېرته له ضرورت پرته وشي نو بیا مکروه دی۔

لما قال العلامة الحصكفیؒ: التنحنح بحرفين بلا عذر اما به بان نشاء من طبعه فلا او بلا غرض صحیح فلو لتحسين صوته او ليهتدی امامه او لاعلام انه فی الصلٰوة فلا فساد علی الصحيح. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص١٦٨، باب مفسدات الصلٰوة)

قال العلامة حسن بن عمار الشرنبلالیؒ: و یفسدها التنحنح بلا عذر لما فيه من الحروف و ان كان لعذر كمنعة البلغم من القرأة لا یفسد. قال السيد احمد الطحطاویؒ: (تحت قوله و ان كان لعذر الخ) منه التنحنح لاصلاح الصوت و تحسينه او ليهتدی امامه من خطيئته او للاعلام بانهٗ فی الصلٰوة علی الصحيح. (طحطاوی حاشية مراقی الفلاح ص۲٦۳، باب مفسدات الصلٰوة) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص٤، باب ما یفسد الصلٰوة و ما یکره)

## په لمانځه کښې په بیا بیا توګه د بدن د ګرولو حکم

**سوال:** په خلکو کښې مشهوره ده چه که چېرته یو څوك په لمانځه کښې ځان درې وارې وګروي نو لمونځ ئې فاسد یږي۔ آیا دا خبره صحیح او که څنګه؟ که چېرته صحیح وي نو د خارش د مریض لپاره به په دې باره کښې څه حکم وي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د لمانځه په یوه رکن کښې د ننه پرته له شرعي عذر څخه پرله پسې د بدن ګرول لمانځه ته نقصان ورکوونکی دی۔ البته د شرعي عذر له وجهې بیا په لمانځه باندې کوم اثر نه اچوي۔ د دې لپاره د خلکو دا خبره صحیح ده۔ لیکن د خارښ د مریضانو لپاره د عذر له وجهې د ځان ګرول مرخص دي۔

لما قال العلامة الحصكفیؒ: و عبثه بهٖ ای بثوبه و بجسده للنهی الا لحاجة و لا بأس به. قال ابن عابدينؒ (قوله الا



لحاجة) كحده بدنه لشیء اكله و اضره و سلت عرق يؤلمه و يشغله قلبه و هذا لو بدونه عمل كثير قال فی الفيض الحك بيد واحدة فی ركن ثلاث مرات يفسد الصلٰوة ان رفع يده فی كل مرة. (رد المحتار ج۱، ص٤٧۳، فصل فيما يفسد و ما يكره الصلٰوة)

لما قال السيد احمد الطحطاویؒ: انما يكره العبث فی الصلٰوة اذا لم تدع الحاجة اليه دعت فلا بأس به كسلت العرق عن وجهه او التراب عند الايذاء. (طحطاوی علی مراقی الفلاح ص۱۹۹، باب ما يكره الصلٰوة)

## په لمانځه کښې په بیا بیا توګه د تعوذ د لوستلو حکم

**سوال:** یوه سړي ته په لمانځه کښې ډیرې وسوسې ور لویږي که چېرته ئې د دفع کولو لپاره په بیا بیا توګه تعوذ ولولي نو د لمانځه حکم به ئې څه وي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د وسوسو د دفع کولو لپاره بار بار اعوذ بالله ویل د لمانځه فاسدوونکی نه دی۔ لهذا په صورت مسئوله کښې د وسوسو د دفع کولو لپاره بار بار اعوذ بالله الخ په لوستلو سره لمونځ نه فاسد یږي۔

لما قال العلامة السيد احمد الطحطاویؒ: و لو تعوذ لدفع الوسوسة لا تفسد مطلقا....... و لو تعوذ لدفع الوسوسة لا تفسد مطلقاً نظر اذ لا فرق بينها و بين الحوقلة. (طحطاوی علی الدر المختار ج۱، ص٤١٦، باب ما يفسد الصلٰوة و يكره بها)

# باب الوتر

## (د وترو احکام او مسئلې)

### د وترو په جمعې سره کول د رمضان المبارک خصوصیت دی

**سوال:** یو سړی د عذر له مخې یا پرته له عذره روژه نه نیسي لیکن لمونځ په باقاعده توګه کوي. آیا د اسې سړی د ماسخوتن تر لمانځه وروسته وتر په جمعې سره ادا کولی شي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په رمضان المبارک کښې د وترو لمونځ په جماعت سره کول د روژې له وجهې نه نه دی بلکه دا پخپله د رمضان المبارک د میاشتې یو خصوصیت دی. پس کوم سړی چه له کومې وجهې روژه نه شي نیولی نو د وترو لمونځ په جماعت سره ادا کولی شي. همدا وجه ده چه نابالغ هلك په روژې باندې د نه مکلف والي سره سره د وترو په جماعت کښې شریکیدلی شي.

قال مولانا جلال الدین الخوارزمی الکرلانیؒ: و فی رمضان الصحیح ان الجماعة افضل لان عمر رضی الله عنه کان یؤمهم فی الوتر و لانه لما جاز الاداء با لجماعة کانت الجماعة افضل اعتباراً با لمکتوبة کذا فی فتاوی قاضی خان.
(الکفایة فی ذیل فتح القدیر ج۱، ص ۴۰۹، فصل فی قیام رمضان)

و قال ابن عابدینؒ: و الصحیح ان الجماعة فیها افضل الا ان سنیتها لیست کسنیة جماعة التراویح آه. (رد المحتار باب الوتر و النوافل ج۲، ص۴۹) و مثله فی البحر الرائق ج۱، ص۶۹، باب الوتر و النوافل)

### د وترو په رکعتونو کښې د شك لویدلو حکم

**سوال:** که چېرته یو سړي ته د وتر لمانځه د ادا کولو په وخت کښې په دوهم رکعت کښې دا شك ولویږي چه دا مې دریم رکعت دی نو په د اسې صورت کښې هغه باید څه وکړي؟ ځکه چه دا احتمال شته چه دا دوهم رکعت دریم رکعت وي او دا احتمال هم شته چه په واقعې توګه دا دوهم رکعت وي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته چا ته په وترو کښې شك پیدا شي چه دا مې دوهم رکعت دی او که دریم نو د اسې به په همدې رکعت کښې، دعاء قنوت لولي په کوم رکعت کښې چه شك ور لویدلی وي او په همدې رکعت کښې به کښیني هم او قعده به کوي. ځکه چه دا احتمال شته چه همدا ئې دریم رکعت وي، له قعدې وروسته چه کله دریم رکعت ته پورته شي نو دوباره به دعاء قنوت لولي، رکعت به پوره کړي او په آخر کښې به سجدهٔ سهو وکړي.

قال طاهر بن عبد الرشید البخاریؒ: لو شك فی الوتر و هو قائم انها ثانیة ام ثالثة یتم تلك الرکعة و یقنت فیها و یقعد. ثم یقوم فیصلّی رکعة اُخری و یقعد ثم یقوم فیصلّی رکعة اُخری و یقنت فیها ایضاً و یسجد للسهو هو المختار.
(خلاصة الفتاوی، ج۱، ص ۱۷۰/۱۷۱، فصل فی سجود السهو)



و فی الهندیة: ذکر الناطفی فی اجناسه. لو شك احد فی الوتر انه فی الاولی او الثانیة او الثالثة. فانه یقنت فی الرکعة التی هو فیها ثم یقعد ثم یقوم فیصلّی رکعتین بقعدتین و یقنت فیهما احتیاطاً. و فی قول آخر لا یقنت فی الکل اصلاً. و الاول اصح لان القنوت واجب و ما تردد بین الواجب و البدعة یأتی به احتیاطاً کذا فی محیط السرخسی. (الهندیة ج۱، ص ۱۱۱، باب الوتر) و مثله فی البحر الرائق ج۲، ص ۴۱، باب الوتر و النوافل)

### په وترو کښې د مشهور دعاء قنوت لوستل بهتر دي

**سوال:** په وترو کښې د دعاء قنوت د لوستلو حیثیت څه دی؟ که چېرته له چا څخه دعاء قنوت پاتې شي نو د لمانځه به ئې څه حکم وي؟ همدا رنګه که چېرته د چا دعاء قنوت زده نه وي نو په د اسې حالت کښې به د هغه په بدل کښې باید څه شی ولولي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په وترو کښې نفس دعاء قنوت واجب دی. لهذا چه کومه دُعا پکښې وویل شي نو د وترو لمونځ ئې ادا کیږي. که چېرته یو څوك با لکل څه و نه وایي نو د واجبو ترك له وجهې به سجدهٔ سهو پرې واجبه وي، البته د مشهور دعاء قنوت لوستل بهتر دي.

و القنوت واجب علی الصحیح (و فیه) و لیس فی القنوت دعاء مؤقت. و الاولی ان یقرأ اللّٰهم إنا نستعینك الخ.
(الهندیة ج۱، ص ۱۱۱، باب الوتر)

او د کوم سړي چه دُعاء قنوت زده نه وي نو بهتره دا ده چه اللّٰهمّ ربّنا آتنا فی الدّنیا حسنةً و فی الاٰخرة حسنةً و قنا عذاب النّار ولولي. او که چېرته "یا ربّ" یا "اللّٰهمّ اغفرلی" درې واري ولولي نو غاړې ئې خلاصیږي.

و قال ابن نجیم المصریؒ: و من لا یحسن القنوت با لعربیة او لا یحفظه ففیه ثلاثة اقوال مختلفة قیل یقول یا ربّ ثلاث مرات ثم یرکع و قیل یقول اللهم اغفر لی ثلاث مرات. و قیل اللّٰهمّ ربّنا آتنا فی الدّنیا حسنةً و فی الاٰخرة حسنةً و قنا عذاب النّار. (البحر الرائق ج۲، ص ۴۲، باب الوتر و النوافل)

قال الامام علاؤ الدین ابی بکر بن مسعود الکاسانی الحنفیؒ: و اما دعاء القنوت فلیس فی القنوت دعاء مؤقت کذا ذکره الکرخی فی کتاب الصلوة لانه روی عن الصحابة ادعیة مختلفة فی حال القنوت و لان الموقت من الدعاء یجری علی لسان الداعی من غیر احتیاجه الی احضار قلبه و صدق الرغبة منه الی الله تعالی فیبعد عن الاجابة. و لانه لا توقیت فی القراة لشیء من الصلوة ففی دعاء القنوت الاولی. (بدائع الصنائع ج۱، ص۲۷۳، فصل فی القنوت) و مثله فی تبیین الحقائق ج۱، ص ۱۷۰، باب الوتر و النوافل)

### په رمضان شریف کښې د تراویحو په جماعت سره له ادا کولو وروسته د وترو یوائې د ادا کولو حکم

**سوال:** که چېرته یو څوك د تراویحو لمونځ په جمعې سره وکړي لیکن د کوم عذر یا پرته له عذر څخه د وترو لمونځ یوائې ادا کړي نو آیا دا طریقه صحیح ده او که څنګه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په رمضان المبارک کښې د وترو لمونځ د تراویحو غوندې نه دی بلکه

په وترو کښې توسع شته، په جمعې سره او یوائې ادا کول ئې دواړه جائز دي. لهذا په صورت مذکوره کښې د نوموړي سړي لپاره یوائې د وترو په ادا کولو کښې کوم حرج نشته. لیکن په جمعې سره ادا کول ئې بهتر دي.

قال العلامة الحصکفیؒ: هل الافضل فی الوتر الجماعة ام المنزل تصحیحان.

قال ابن عابدینؒ: تحت هذه العبارة رجح الکمال الجماعة الٰی ان قال و فی شرح المنیة و الصحیح ان الجماعة فیها افضل الاّ ان سنیتها لیست کسنیة جماعة التراویح. (رد المحتار ج۲، ص۴۹، مبحث صلوٰة التراویح)

قال ابن نجیم المصریؒ: فا لوتر کا لتراویح فکما ان الجماعة فیها سنة فکذٰلك فی الوتر. (البحر الرائق ج۲، ص۷۰، باب الوتر و النوافل) و مثله فی فتح القدیر ج۱، ص۴۰۹، فصل فی قیام الرمضان)

## بغیر له رمضان څخه د وترو په جمعې سره د ادا کولو حکم

**سوال:** په شرح الیاس کښې لیکلي دي چه "ان الاقتداء فی الوتر با لامام خارج رمضان جائز". (شرح الیاس علی هامش شرح الوقایة ج۱، ص۲۴۲) آیا دا خبره صحیح ده او که نه؟ که چېرته په رښتیا هم مسئله همدا سې وي نو بیا له رمضان شریف څخه علاوه د کال په نورو میاشتو کښې د وترو لمونځ ولې په جمعې سره نه ادا کیږي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د وترو جماعت د رمضان المبارك په میاشت کښې په اتفاق سره سُنت دی. او له رمضان څخه علاوه د کال په نورو میاشتو کښې د وترو جماعت سُنت نه دی. د نه سُنت والي له وجهې د وترو لمونځ په جمعې سره نه ادا کیږي. د شرح الیاس له عبارت څخه ئې یوائې جواز معلومیږي او عام فقهاء کرام ئې هم د نفس جواز قائل دي لیکن که چېرته علی سبیل التداعي وکړ ځي او دوام پرې اختیار کړي نو دا صورت بیا مکروه دی.

قال العلامة الحصکفیؒ: و لا یصلّی الوتر و لا التطوع بجماعة خارج رمضان ای یکره ذٰلك لو کان علی سبیل التداعی بان یقتدی اربعة بواحد. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۴۸، مطلب فی کراهة الاقتداء فی النفل)

قال ابن عابدینؒ: و یمکن ان یقال الظاهر ان الجماعة فیه (ای الوتر) غیر مستحبة ثم ان کان ذٰلك احیاناً کما فعل عمرؓ کان مباحاً غیر مکروه. و ان کان علی سبیل المواظبة کان بدعة مکروهة لانه خلاف المتوارث. (رد المحتار علی الدر المختار ج۲، ص۴۸، مطلب فی کراهیة الاقتداء فی النفل)

قال ابن نجیمؒ: لو صلوا الوتر بجماعة فی غیر رمضان فهو صحیح مکروه کا لتطوع فی غیر رمضان بجماعة و قیده فی الکافی بان یکون علی سبیل التداعی. اما لو اقتدیٰ واحد بواحدٍ او اثنان بواحد لا یکره و اذا اقتدیٰ ثلاثة بواحد اختلفوا فیه و ان اقتدیٰ اربعة بواحدة کره اتفاقاً. (البحر الرائق ج۱، ص۷۰، باب النوافل) و مثله فی الجوهرة النیرة ج۱، ص۱۲۰، باب قیام الرمضان)



## د رمضـــان په میاشت کښې د فرضو لمـــونځ په جمعې سره د نه ادا کولو په صورت کښې د وترو لمونځ په جمعې ســـره د ادا کولو حکم

**سوال:** که چېرته له چا څخه په رمضان المبارك کښې د فرض لمانځه جمعه تیره شي نو آیا دا سړی د وترو لمونځ په جمعې سره ادا کولی شي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په رمضان المبارك کښې د فرض لمانځه د یوائې ادا کولو څخه وروسته د وترو په جماعت کښې د شریکیدلو په باره کښې د فقهاء کرامو پخپل منځ کښې اختلاف دی. د ځینو حضراتو له قول څخه د شرکت جواز معلومیږي.

قال الشیخ ابراهیم الحلبیؒ: و اذا لم یصل الفرض مع الامام فعن عین الائمة الکرابیسی انه لا یتبعه فی التراویح و لا فی الوتر. و کذا اذا لم یتابع فی التراویح لا یتابعه فی الوتر. و قال ابو یوسف اللیلابی اذا صلّی مع الامام شیئاً من التراویح یصلی معه الوتر. و کذا اذا لم یدرك معه شیئاً منها. و کذا اذا صلی مع غیره له ان یصلی الوتر معه و هو الصحیح ذکره ابو اللیث آه. (کبیری ص۴۵۹، باب التراویح)

په داسې حال کښې چه محمد امین المعروف بابن عابدینؒ د نه جواز خواته مائل دی. لیکن متاخرینو فقهاوو د جواز قول ته ترجیح ورکړی دی.

قال ابن عابدینؒ: لکن فی التتارخانیة عن التتمة انه سئل علی بن احمد عمن صلی الفرض و التراویح وحده او التراویح فقط. هل یصلی الوتر مع الامام فقال لا آه. ثم رأیت القهستانی ذکر تصحیح ما ذکره المصنف. ثم قال لکنه اذا لم یصل الفرض معه لا یتبعه فی الوتر. آه. فقوله و لو لم یصلیها ای و قد صلی الفرض معه لکن ینبغی ان یکون قول القهستانی "معه" احترازاً عن صلاتها منفرداً. اما لو صلاها جماعة مع غیره. ثم صلی الوتر معه لا کراهة. (رد المحتار ج۲، ص۴۸، باب التراویح)

لما قال الشیخ عبد الحیؒ: در قنیه از عین الائمه و در تاتارخانیه از علی بن احمد مرقوم است که هر که فرض با جماعت ادا نکرده باشد وتر را هم به جماعت ادا نه سازد و هم چنین در غنیه وغیره مذکور است لیکن قدامی وجه قوی معتد به عدم جواز معلوم نه می شود حق جواز معلوم می شود. و الله اعلم. (مجموعة الفتاوٰی علی هامش خلاصة الفتاوٰی ج۱، ص۱۲۴، فصل فی الوتر) و مثله فی امداد الاحکام ج۱، ص۶۰۰، فصل فی الوتر و دعاء القنوت)

## د وتـــــرو په جماعت کښې د مقتدي لپاره د دعـــــاء قنوت له ختمولو مخکښې د رکوع حکم

**سوال:** په رمضان المبارك کښې که چېرته له مقتدي څخه په دعاء قنوت کښې غلطي یا کوم خلل واقع شي او دعاء قنوت له سره شروع کړي. په دې منځ کښې امام رکوع ته لاړ شي نو مقتدي به څه کوي؟ همدارنګه که چېرته له امام څخه دعاء قنوت پاتې شي او رکوع ته لاړ شي نو مقتدي به د وریادیدلو په صورت کښې څه عمل غوره کوي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** چه کله امام رکوع ته لاړ شي او مقتدي لا له دعاء قنوت څخه فارغ نه

وي نو که چېرته د رکوع د فوت کیدو خطره وي بیا به د امام متابعت کوي او که چېرته امام په رکوع کښې د لږې اند ازې غوندې د نیولو امکان وي نو تر هغه پورې دې دعاء قنوت ووایي او رکوع ته دې لاړ شي تر څو چه د دواړو عملونو رعایت وشي۔

قال طاهر بن عبد الرشید البخاریؒ: فلو رکع الامام فی الوتر قبل ان یفرغ المقتدی من القنوت فانه یتابع الامام. و لو رکع الامام و لم یقرأ القنوت یقرأ المقتدی من القنوت شیئاً ان خاف الرکوع فانه یرکع و ان کان لا یخاف یقنت ثم یرکع. (خلاصة الفتاوٰی ج۱، ص ۱۶۰، النوع من یتابع الامام)

قال قاضی خانؒ: و لو رکع الامام فی الوتر قبل ان یفرغ المقتدی من القنوت فانه یتابع لان القنوت لیس بموقت و لا مقدر و لو رکع الامام فی الوتر و لم یقرأ المقتدی من القنوت شیئاً ان خاف فوت الرکوع فانهٗ یرکع. و ان کان لا یخاف یقنت ثم یرکع. (فتاوٰی قاضی خان علی هامش العالمگیریة ج۱، ص۹۷، باب الوتر)

## د کـــوچني اختر د شك په شپه کښې د وتـــرو لمونځ په جماعت ســـره د ادا کولو حکم

**سوال:** چه کله د کوچني اختر د ورځې په باره کښې شك پيدا شي يعنې د میاشت د لیدلو حتمي ثبوت میسر نه شي نو په داسې صورت کښې د ماسخوتن په وخت کښې د تراویحو او وترو لمونځ په جمعې سره د ادا کولو حکم څه دی؟ همدارنګه د وترو په جماعت سره له ادا کولو وروسته که چېرته د میاشت د لیدلو ثبوت وشي نو آیا د وترو بیرته راګرځول شته او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له رمضان المبارك څخه پرته په نورو میاشتو کښې هم د وترو لمونځ په جمعې سره جائز دی۔ البته همیشه والی پرې مکروه دی۔ چه کله د وترو جماعت په داسې صورت کښې وي چه د اختر د میاشتې یقیني ثبوت نه وي نو د وترو جماعت له کراهت څخه پرته جائز دی او د بیرته راګرځولو ضرورت ئې نشته۔

قال ابن عابدینؒ: ثم قال و یمکن ان یقال الظاهر ان الجماعة فیه (ای الوتر) غیر مستحبة. ثم ان کان ذاك احیاناً کما فعل عمرؓ کان مباحاً غیر مکروه و ان کان علٰی سبیل المواظبة کان بدعة مکروهة. (رد المحتار ج۲، ص۴۸، باب الوتر و النوافل)

قال ابن الهمام: و فی بعض الحواشی قال بعضهم لو صلاها بجماعة فی غیر رمضان له ذاك و عدم الجماعة فیها فی غیر رمضان لیس لانه غیر مشروع بل باعتبار انه یستحب تاخیرها الٰی وقت یتعذر فیه الجماعة. (فتح القدیر ج۱، ص۴۰۹، فصل فی قیام رمضان)

## دوترو په آخـــري رکعت کښې په رکوع یا له رکوع څخـــه مخکښې د شریکیدونکي مقتدي لپاره د قنوت د ویلو حکم

**سوال:** په رمضان المبارك کښې یو سړی د وترو په دریم رکعت کښې له امام سره شریك شو او دعاء قنوت ئې له امام سره ووایه۔ اوس په پاتې لمانځه کښې د دعاء قنوت د ویلو څه حکم دی؟ یا



ئې امام د دریم رکعت په رکوع کښې پيدا کړ او دعاء قنوت ئې نه ووایه نو د داسې مسبوق لپاره د دوباره دعاء قنوت د ویلو څه حکم دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په دواړو صورتونو کښې د مسبوق لپاره د دوباره دعاء قنوت د ویلو هیڅ ضرورت نشته۔ په لومړي صورت کښې هغه دعاء قنوت حقیقتاً او دوهم صورت کښې ئې حکماً لوستلی دی۔

قال العلامة الحصکفیؒ: و اما المسبوق فیقنت مع امامه فقط و یصیر مدرکا بادراك رکوع الثالثة.

و قال ابن عابدینؒ: تحت هٰذه العبارة (فیقنت مع امامه فقط) لانه آخر صلٰوته و ما یقضیه اولهما حکماً فی حق القرأة و ما اشبهها و هو القنوت. و اذ وقع قنوته فی موضعه بیقین لا یکرر لان تکراره غیر مشروع شرح المنیة. (رد المحتار ج۲، ص ۱۰، باب الوتر و النوافل)

قال ابن نجیم المصریؒ: المسبوق برکعتین فی الوتر فی شهر رمضان اذا قنت مع الامام فی الرکعة الاخیرة من صلٰوة الامام حیث لا یقنت فی الرکعة الاخیرة اذا قام الی القضاء فی قولهم جمیعاً. و الفرق ان تکرار القنوت فی موضعه لیس بمشروع الٰی ان قال فام المسبوق فهو مامور بان یقنت مع الامام فصار ذاك موضعاً له. (البحر الرائق ج۲، ص۴۱، باب الوتر و النوافل) و مثله فی خلاصة الفتاوٰی ج۱، ص ۱۷۱، الفصل السادس عشر فی سجود السهو)

## د یوه رکعت وتـــر ادا کوونکي امام پسې د اقتداء حکم

**سوال:** په غیر حنفي امام پسې د یوه رکعت وتر ادا کولو حکم څه دی؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** غیر حنفي امام که چېرته له دوو رکعتونو وروسته پرته له سلام څخه درې رکعته وتر پوره کړي نو اقتداء ورپسې صحیح ده۔

همدارنګه که چېرته وتر په دوو سلامونو یعنې له دوو رکعتونو وروسته د سلام په ګرځولو سره وتر پوره کړي نو د امام ابو بکر الجصاص او متاخرینو فقهاوو په نزد اقتداء ورپسې صحیح ده او دا ترجیح د حالاتو مقتضي دی۔

لما قال العلامة ابو بکر الجصاص الرازیؒ: یجوز اقتداء الحنفی بمن یسلم علی الرکعتین فی الوتر و یصلی معه بقیة الوتر لان امامه لا یخرج بسلامه عنده لانه مجتهد فیه. (البنایة شرح الهدایة ج۳، ص ۴۱، باب صلٰوة الوتر)

قال العلامة محمد انور شاه الکشمیریؒ: نعم لو اقتدٰی خلف الشافعی و سلم الشافعی علی الرکعة الثانیة کما هو مذهبهم ثم اتم الوتر الحنفی عند ابی بکر الرازی و ابن وهبان....... الخ. (عرف الشذی علی الترمذی ج۱، ص ۱۰۴، باب ما جاء فی فصل الوتر) و مثله فی معارف السُنن ج۴، ص ۱۷۰، باب ما جاء فی الوتر)

## د ماسخوتن د لمانځه د فاسدیدو په صورت کښې د وترو د قضائي حکم

**سوال:** یوه ورځ د صبح صادق له راختو نه وروسته معلومه شوه چه د ماسخوتن فرض مې فاسد شوي دي په داسې حال کښې چه وتر او سنت مې صحیح ادا کړي وو۔ آیا د قضائي په صورت کښې به یوائې د ماسخوتن څلور رکعته فرض راګرځوم او که د سنتو او وترو قضایي هم

ضروري ده؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په صورت مسئوله کښې اګر که د امام اعظم صاحب او صاحبینو رحمهم الله اقوال سره مختلف دي لیکن د افتاء د اصولو له مخې د امام ابو حنیفةؒ په قول باندې فتوی ورکول مناسب دي۔

قال ابن عابدینؒ: قال فی الفتاوی السراجیة: ثم الفتوی علی الاطلاق علی قول ابی حنیفةؒ ثم قول ابی یوسفؒ الخ. و قیل اذا کان ابو حنیفةؒ فی جانب و صاحباه فی جانب ف المفتی با لخیار. و الاول اصح اذا لم یکن المفتی مجتهداً انتهی. (شرح عقود رسم المفتی ص ۷۱/۷۰)

له دې وجهې یو ځې د فرضو قضایي را وګرځوی د وترو قضایي نشته ځکه چه ترتیب خو یو ځې د تذکر (ور یادیدو) په حالت کښې واجب دی۔ د نسیان یا د وخت په وتلو سره ترتیب ساقطیږي۔ و الله اعلم۔ او د دوو رکعتو سنتو قضائي د هیچا په مذهب کښې هم نشته۔

و فی الهندیة: لو تبین ان العشاء صلاها بلا طهارة دون التراویح و الوتر اعاد التراویح مع العشاء دون الوتر. لانها تبع للعشاء هذا عند ابی حنیفةؒ فان الوتر غیر تابع للعشاء فی الوقت عنده. و التقدیم انما وجب لاجل الترتیب و ذاك بسقط بعذر النسیان. فیصح اذا ادی قبل العشاء با لنسیان بخلاف التراویح فان وقتها بعد اداء العشاء فلا یعتد بما ادی قبل العشاء و عندهما الوتر کا لتراویح و با لجملة اعادة الوتر مختلف فیها. و اما اعادة التراویح و سائر سنن العشاء. فمتفق علیها اذا کان الوقت باقیة. (الهندیة ج۱، ص۱۱۵، فصل فی التراویح)

قال الامام الکاسانی الحنفیؒ: اما اصل الوقت (للوتر) فوقت العشاء عند ابی حنیفة الا انه شرع مرتبا علیه حتی لا یجوز ادائه قبل صلوة العشاء مع انه وقته لعدم شرطه و هو الترتبب الا اذا کان ناسیا کوقت اداء الوقتیة و هو وقت الفائتة لکنه شرع مرتبا علیه. و عند ابی یوسفؒ و محمدؒ و الشافعیؒ وقته بعد اداء صلوة العشاء و هذا بناء علی ما ذکرنا. ان الوتر واجب عند ابی حنیفةؒ و عندهم سنة. و ینی علی هذا الاصل مسئلتان احداهما ان من صلی العشاء علی غیر وضوء و هو لا یعلم ثم توضأ فاوتر ثم تذکر اعاد صلوة العشاء با لاتفاق و لا یعید الوتر فی قول ابی حنیفةؒ. عندهما یعید و وجه البناء علی هذا الاصل انه لما کان واجباً عند ابی حنیفةؒ کان اصلاً بنفسه فی حق الوقت لا تبعاً للعشاء فکما غاب الشفق دخل وقته کما دخل وقت العشاء الا ان وقته بعد فعل العشاء الا ان تقدیم احدهما علی الآخر واجب حالة التذکر فعند النسیان یسقط. (بدائع الصنائع ج۱، ص۲۷۲، باب الوتر) و مثله فی الزیلعی ج۱، ص۱۷۸، باب الوتر و النوافل)



# باب السنن و النوافل

## (د سننو او نوافلو احکام او مسئلې)

### د سهار سنتونه زیات مؤکد دي

**سوال:** جناب مفتي صاحب! له یو چا څخه مې اوریدلي دي چه د سهار سنتونه تر ټولو زیات مؤکد دي۔ آیا د پنځه وخته لمونځونو سُنتونه یو ډول دي او که کوم فرق پکښې شته؟ د ځواب مهرباني را سره وکړی او مونږ مشکور وګرځوی؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د حنفي فقهې په معتبرو کتابونو کښې لیکلي دي چه په پنځه وخته لمونځونو کښې تر ټولو زیات مؤکد د سهار سُنت دي رسول اللهﷺ په دې باندې ځانګړې همیشه والی کړی دی۔ له دې وروسته د ماسپښین څلور رکعته سنتونه دي، پاتې نور ټول سره برابر دي۔

لما قال العلامة الحصکفی رحمه الله: و السنن اکدها سنة الفجر اتفاقاً ثم الاربع قبل الظهر فی الاصح لحدیث من ترکها لم تنله شفاعتی ثم الکل سواء. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۱٤، باب النوافل)

قال العلامة ابن عابدین رحمه الله: اقوی السنن المؤکدة رکعتا الفجر حتی روی عن ابی حنیفةؒ انها لا تجوز مع القعود بغیر عذر لقوله علیه الصلوة و السلام صلوها و لو طردتکم الخیل......... و الاصح ان التی قبل الظهر اکد بعد الفجر ثم الباقی سواء. (منحة الخالق حاشیة البحر الرائق ج۲، ص٤۸، باب النوافل) و مثله فی مراقی الفلاح علی صدر طحطاوی ص۳۱٤، باب النوافل)

### د مؤکدو سُنتونو ثبوت

**سوال:** د سهار، ماښام، ماسخوتن او جُمعې په لمانځه کښې مؤکدو سنتونو ثبوت د کوم حدیث له مخې شوی دی او په کوم کتاب کښې موجود دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د مؤکدو سنتونو په باره کښې ګڼ قولي او فعلي حدیثونه راغلي دي۔ د نسائي د روایت مطابق په ورځ کښې دولس رکعته سنتونه دي او د جُمعې په باره کښې د امام ابو حنیفةؒ د رائې مطابق څوارلس جوړیږي او همدا قول راجح هم دی۔ په داسې حال کښې چه د صاحبینوؒ په نزد شپاړس دي چه امام طحاويؒ همدا قول راجح بللی دی۔

بحدیث النبیﷺ عن عائشه قالت قال رسول اللهﷺ من ثابر علی اثنتی عشرة رکعة فی الیوم و اللیلة دخل الجنة اربعاً قبل الظهر و رکعتین بعدها و رکعتین بعد العشاء و رکعتین قبل الفجر. (النسائی ج۱، ص۲۵٦، باب ثواب من صلی فی الیوم و اللیلة)

و عن ابی هریرةؓ قال قال رسول اللهﷺ: اذا صلی احدکم فلیصلّ اربعا. (النسائی ج۱، ص۲۱۰، باب عدد الصلوة بعد الجمعة)

و عن ابن عمر ان رسول اللهﷺ کان لا یصلی بعد الجمعة حتیٰ ینصرف فیصلی رکعتین. (النسائی ج۱، ص ۲۱۰، باب صلوٰة الامام بعد الجمعة) لیکن دا دوه رکعته صرف سُنت دي مؤکد نه دي۔

و الدلیل علی استنان الاربع قبل الجمعة ما رواه مسلم مرفوعاً من کان مصلّیا قبل الجمعة فلیصل اربعاً. (البحر الرائق باب النوافل ج۲، ص۴۹)

## د جُمعې د ورځې د سنتونو تعداد او په آخري دوو رکعتونو کښې د جُمعې نیت

**سوال:** د جُمعې په لمانځه کښې آخري دوه رکعتونه سُنت مؤکد دي او که نه؟ او د جُمعې نیت پکښې ضروري دی او که نه؟ برسیره پر دې د قبلیه او بعدیه سنتونو تعداد څومره دی؟ ځینې خلك د جُمعې د لمانځه تول رکعتونه شپاړس، ځینې دولس او ځینې لس بیانوي۔ که څېرته یو څوك آخري دوه رکعتونه ادا نه کړي نو لمونځ ئې کیږي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د جُمعې لمونځ دوه رکعته فرض، څلور مؤکد سُنتونه له فرضو څخه مخکښې او څلور وروسته او تر دې وروسته د دوو رکعتونو په مؤکد والي کښې اختلاف دی لیکن د مفتیٰ بِهٖ قول له مخې ادا کول ئې بهتر دي۔ او په دغو دوو رکعتونو کښې به د جُمعې نیت باید وشي، دا دوه رکعتونه له عذر څخه پرته پریښودل ښه نه دي او د اولیٰ خلاف دی لیکن د جُمعې لمونځ ئې کیږي۔ پاتې شوه دا خبره چه کوم خلك د جُمعې لمونځ لس رکعته بولي هغوی د آخري دوو رکعتونو په سُنت والي باندې قائل نه دي لکه امام ابو حنیفةؒ او کوم خلك ئې چه دولس رکعته بولي لکه صاحبینؒ د هغو په نزد آخري دوه رکعته سُنت مؤکد دي۔ او کوم خلك ئې چه شپاړس رکعته بولي بنایي چه هغوی پکښې نوافل یا احتیاطي لمونځ ورګډوي۔

قال ابن نجیم المصریؒ: و الدلیل علی استنان الاربع قبل الجمعة ما رواه مسلم مرفوعاً من کان مصلّیاً قبل الجمعة فلیصل اربعاً مع ما رواه ابن ماجة عن ابن عباس رضی الله عنه قال کان رسول اللهﷺ یرکع من قبل الجمعة اربعا لا یفصل فی شیء منهنّ. و علی استنان الاربع بعدها ما فی صحیح مسلم عن ابی هریرة مرفوعاً اذا صلی احدکم الجمعة فلیصل بعدها اربعاً و فی روایة اذا صلیتم بعد الجمعة فصلوا اربعاً و ذکر فی البدائع انه ظاهر الروایة و عن ابی یوسفؒ انه ینبغی ان یصلّی اربعاً ثم رکعتین. و ذکر محمدؒ فی کتاب الاعتکاف ان المعتکف یمکث فی المسجد الجامع مقدار ما یصلّی اربعا او ستاً آه. و فی الذخیرة و التجنیس و کثیر من المشائخ علی قول ابی یوسفؒ. و فی مُنیة المصلی الافضل عندنا ان یصلّی اربعاً ثم رکعتین. (البحر الرائق ج۲، ص ۴۹، باب السنن و النوافل)

قال الامام ابو بکر الکاسانیؒ: فقد ذکر فی الاصل اربع قبل الجُمعة و اربع بعدها کذا ذکر الکرخی و ذکر الطحاوی عن ابی یوسفؒ انه قال یصلی بعدها ستًا و قیل هو مذهب علیؓ و ما ذکرنا انه کان یصلی اربعاً مذهب عبد الله ابن مسعودؓ........ و نحن لا تمنع من یصلّی بعدها کم شاء غیر انا نقول السنّة بعدها اربع رکعات لا غیر لما روینا. (بدائع الصنائع ج۱، ص ۲۸۵، فصل اما الصلوٰة المسنون) و مثله فی کبیری ص ۳۸۸، فصل فی النوافل)



## له مکروه وختونو څخه پرته هر وخت نفل لمونځ کول بهتر دي

**سوال:** له ریاکاري څخه د ځان ساتنې په نیت د ورځې د زوائدو سنتونو پریښودلو حکم څه دی؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** ریا په نفلو، سنتو، فرضو او تولو عباداتو کښې حرامه ده۔ له ریاکاري څخه د ځان ساتنې په بهانې سره د عباداتو پریښودل مناسب نه دي۔ د ریا احتمال خو په فرضو کښې هم کیدلی شي په دې حال کښې چه د فرضو پریښودل په هیڅ صورت کښې هم جائز نه دي۔ نوافل په شپه او ورځ کښې له مکروه وختونو څخه پرته په هر حالت کښې جائز دي چه له تفصیل څخه د فقهي کتابونه ډك دي۔

و فی الهندیة: ثلاث ساعات لا تجوز فیها المکتوبة و لا صلوٰة الجنازة و لا سجدة التلاوة اذا طلعت الشمس حتیٰ ترتفع و عند الانتصاف الی ان تزول و عند احمرارها الی ان تغیب الاّ عصر یومه ذٰلك. فانه یجوز اداؤه عند الغروب هٰکذا فی فتاویٰ قاضیخان.

و قال بعد عدة اسطر: و التطوع فی هٰذه الاوقات یجوز و یکره کذا فی الکافی و شرح الطحاوی. (الهندیة ج۱، ص ۵۲، کتاب الصلوٰة، الباب الاول فی مواقیت الصلوٰة)

قال الامام الکاسانیؒ: اما الذی یکره التطوع فیها لمعنی یرجع الی الوقت فثلاثة اوقات احدها ما بعد طلوع الشمس الی ان ترتفع و ابیض و الثانی عند استواء الشمس الی ان تزول و الثالث عند تغیر الشمس و هو احمرارها الی ان تغرب الشمس ففی هٰذه الاوقات الثلاثة یکره کل تطوع فی جمیع الازمان یوم الجمعة وغیره و فی جمیع الاماکن بمکة و غیرها. و سواء کان تطوعا مبتدأ لا سبب له او تطوعا له سبب کرکعتی الطواف و رکعتی تحیة المسجد و نحوهما الخ. (بدائع الصنائع ج۱، ص۲۹۶، فصل فی بیان ما یکره فی التطوع)

## د مازدیګر تر لمانځه مخکښې د څلورو رکعتونو نفلو د ادا کولو حکم

**سوال:** د مـازدیګر تر لمانځه مخکښې د څلـــورو رکعتونو نفلو د ادا کولو فضیلت له کوم حدیث څخه ثابت دی؟ همدا رنګه د وخت صحیح تعین او حکم ئې بیان کـــړی۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د مازدیګر تر لمانځه مخکښې څلور رکعته نفل لمونځ مستحب دی او صحیح وخت ئې د مازدیګر د لمانځه له وخت څخه شروع کیږي۔ البته دا نفل د مازدیګر تر لمانځه مخکښې ادا کیږي۔

بحدیث النبیﷺ: عن ابن عمر رضی الله تعالی عنه عن النبیﷺ رحم الله امرءاً صلی قبل العصر اربعاً. (الترمذی ج۱، ص۹۸، باب ما جاء فی الاربع قبل العصر)

قال ابن نجیمؒ: و ندب الاربع قبل العصر........ الخ و قال بعد ثلاثة اسطر و روی ابو داؤد عنه (ای عن علی رضی الله عنه) ان النبیﷺ کان یصلی قبل العصر رکعتین فلذا خیّره فی الاصل بین الاربع و بین الرکعتین و الا فضل الاربع الخ. (البحر الرائق ج۱، ص ۵۰، باب النوافل) و مثله فی الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۱۳، مطلب فی السنن و النوافل)

## د مازدیګر تر لمانځه مخکښې د سُنتو د ماتولو په صورت کښې تر لمانځه وروسته ادا کول ئې مکروه تحریمي دی

**سوال:** که چیرته یو څوک د مازدیګر تر لمانځه مخکښې نفل لمونځ شروع کړي لیکن د جماعت د درېدو له وجهې ئې مات کړي او په فرض لمانځه کښې شامل شي نو آیا د مازدیګر تر لمانځه وروسته ئې را ګرځولی شي او که نه؟ او آیا په نوموړي باندې د "لزم النفل بالشروع" د قاعدې اطلاق کیږي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** اګر که د نفل لمانځه په ماتولو سره د "لزم النفل با لشروع" د قاعدې مطابق نفل واجب ګرځي لیکن دا واجب د واجب لغیره په حکم کښې دی او د مازدیګر تر لمانځه وروسته لکه څرنګه چه نفل لمونځ نه کیږي همد ارنګه واجب لغیره ادا کول هم جائز نه دي. له دې وجهې په کوم بل صحیح وخت کښې دې ادا کړي.

و فی الهندیة: لو افتتح صلٰوة النفل فی وقت مستحب ثم افسدها فقضاها بعد صلٰوة العصر قبل مغیب الشمس لا یجزیه هکذا فی محیط السرخسی. انتهی. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۵۳، کتاب الصلٰوة، فصل فی الاوقات التی لا تجوز فیها الصلٰوة......الخ)

قال الحصکفیؒ: و کره نفل و کل ما کان لا لعینه بل لغیره کمنذور و الذی شرع فیه فی وقت مستحب او مکروه. ثم فسده و لو سنة الفجر بعد صلٰوة و صلٰوة عصر انتهی مختصراً. و قال ابن عابدینؒ: تحت هذه العبارة و الکراهة ههنا تحریمیة ایضاً کما صرح به فی الحلیة. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۳۷۵، کتاب الصلٰوة)

## د لمر د زیړوالي په وخت کښې د مازدیګر تر لمانځه مخکښې د نفلو حکم

**سوال:** که چیرته د مازدیګر او ماښام تر منځ وخت مختصر وي نو په داسې صورت کښې د مازدیګر لمونځ ضروري دی چه مخکښې ادا شي او که تر هغه مخکښې نفل باید ادا شي او بیا د مازدیګر لمونځ وشي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** چه تر څو پورې د لمر رنګ تغیر نه وي خوړلی بلکه پخپل اصلي حالت قائم وي نو په داسې صورت کښې د مازدیګر تر لمانځه مخکښې نفل جائز دي. البته که چیرته د لمر په رنګ کښې د زیړوالي اثرات شروع شوي وي نو بیا دې د وخت په لمانځه باندې اکتفاء وشي او د نفلو لمونځ مکروه دی.

قال الامام الکاسانیؒ: و الثالث عند تغیر الشمس و هو احمرارها و اصفرارها الی ان تغرب ففی هذه الاوقات الثلاثة یکره کل تطوع فی جمیع الاماکن یوم الجمعة و غیره. و فی جمیع الاماکن بمکة و غیرها و سواء کان تطوعا مبتداءً حینئذٍ لا سبب له. (بدائع الصنائع ج۱، ص۲۹۵، فصل فی بیان ما یکره من التطوع)

قال برهان الدین المرغینانیؒ: لا یجوز عند طلوع الشمس و لا عند قیامها فی الظهیرة و لا عند غروبها لحدیث



عقبة بن عامرؓ قال ثلاثة اوقات نهانا رسول اللهﷺ ان تصلی فیها و ان نقبر فیها موتانا عند طلوع الشمس حتی ترتفع و عند زوالها حتی تزول و حین تضیف للغروب حتی تغرب. و قال بعد اسطرٍ الا عصر یومه. (الهدایة ج۱، ص۶۸، فصل فی الاوقات یکره فیها الصلٰوة)

## د ماسپښین تر فرضو مخکښې د سنتو تعداد

**سوال:** تر زوال وروسته د صحیح حدیث مطابق باید څو رکعاته سُنت ادا شي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د صحیح حدیث مطابق نبي کریمﷺ د لمر تر زوال وروسته څلور رکعتونه ادا کول په داسې حال کښې چه په ځینو روایتونو کښې د دوو رکعتونو ادا کول هم ثابت دي. لکه څرنګه چه د حضرت ابن عمرؓ په روایت کښې راغلي دي. لیکن دا دوه رکعتونه امام محمد او ابن الهمام رحمهما الله په تحیه المسجد باندې محمول کړي دي.

عن علیؓ قال کان النبیﷺ یصلی قبل الظهر اربعاً و بعدها رکعتین.

عن ابن عمرؓ ان رسول اللهﷺ یصلی قبل الظهر رکعتین و بعدها رکعتین و بعد صلٰوة المغرب رکعتین فی بیته و بعد صلٰوة العشآء رکعتین و کان لا یصلّی بعد الجمعة فی المسجد حتی ینصرّف فیسجد سجدتین.

قال محمدؒ هٰذا تطوع، و هو حسن، و قد بلغنا ان النبیﷺ کان یصلی قبل الظهر اربعاً اذا زالت الشمس......الخ (مؤطا امام محمد ص۱۶۲)

و قال ابن الهمامؒ: ثم کان یصلّی رکعتین تحیة المسجد فکان ابن عمرؓ یراهما. (فتح القدیر ج۱، ص۳۸۶، باب النوافل)

ذکر الامام ابو عیسی الترمذیؒ: عن علیؓ کان رسول اللهﷺ یصلی قبل الظهر اربعاً و بعدها رکعتین. قال ابو عیسٰی و العمل علی هٰذا عند اکثر اهل العلم من اصحاب النبیﷺ و من بعدهم یختارون ان یصلی الرجل قبل الظهر اربع رکعات و هو قول لسفیان و ابن المبارک.......الخ.

قال العلامة محمد یوسف البنوریؒ: تحت هو قول السفیان و الیه ذهب ابو حنیفة و اصحابهؒ. (معارف السنن ج۴، ص۱۰۴/۱۰۵، باب ما جاء فی الاربع قبل الظهر)

و عن ابن عمرؓ قال صلیتُ مع النبیﷺ رکعتین قبل الظهر و رکعتین بعدها. (معارف السنن ج۴، ص۱۰۶/۱۰۳)

قال ابن عابدینؒ: و ما رآه ابن عمر تحیة المسجد. (منحة الخالق حاشیة البحر الرائق ج۲، ص۵۰، باب النوافل)

## د ماښام تر لمانځه وروسته دوه رکعته نفل ادا کول

**سوال:** د ماښام تر لمانځه وروسته د دوه رکعته نفل لمانځه ادا کولو حیثیت څه دی؟ آیا دا نفل د اوابینو په جملې کښې راتلی شي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** نفل لمونځ د مکروه وختونو څخه پرته په هر وخت کښې جائز دی. په مذکوره وخت کښې د نفلو په ادا کولو کښې هیڅ حرج نشته. البته دا نفل په اوابینو کښې نه شماریږي. ځکه چه د اوابینو د لمانځه تعداد په روایاتو کښې شپږ رکعته راغلي دي. هو! که چیرته له څلور نفلو سره دوه رکعته سنت ګډ کړي او شپږ رکعته ئې شمار کړي نو بیا په اوابینو

کښې شماریدلی شي- لیکن په مستقله توګه شپږ رکعته اوابین اداکول بهتر دي-

لحدیث النبیﷺ عن ابی هریرة رضی الله عنه قال قال رسول اللهﷺ من صلی بعد المغرب ست رکعات لم یتکلم فیما بینهن بسوءٍ عُدِلن له بعبادة ثنتی عشرة سنة. (الجامع الترمذی ج۱، ص۹۸، باب ما جاء فی فضل التطوع ست رکعات بعد المغرب)

قال مُلاّ علی قاریؒ: تحت هٰذه الحدیث (قوله ست رکعات) المفهوم ان الرکعتین الراتبتین داخلتان فی السّتّ الٰی ان قال قاله الطیبی فیصلی المؤکدتین تسلیمة و فی الباقی الخیار الخ. (مرقات شرح مشکٰوة ج۳، ص۱۱٤، باب النوافل، الفصل الثانی)

قال الشیخ ابراهیم الحلبیؒ: و ان تطوع بعد المغرب ست رکعات فهو افضل. لحدیث ابن عمرؓ انه علیه السلام قال: من صلٰی بعد المغرب بست رکعات کتب من الاوابین و تلا انه کان للاوّابین غفوراً. (کبیری ص۳۸۵، باب فصل فی النوافل) و مثله فی الجامع الترمذی ج۱، ص۹۸، باب ما جاء فی فصل التطوع الخ)

## د ماښام تر فرضو وروسته د دوه رکعتو مؤکدو سنتو د نیت په تړلو سره څلور رکعته اداکول او آخـــري دوه رکعته په ناستو باندې د اداکولو حکم

**سوال:** که څېرته یو سړی د ماښام د دوه رکعته مؤکدو سنتو نیت وتړي او له دوو رکعتونو تر اداکولو وروسته په قعده کښې د څلور رکعتونو د اداکولو اراده وکړي او بیا په آخر کښې د دوه رکعتونو لپاره د ریدو په ځای دا دوه رکعتونه په ناستو وکړي نو آیا دا طریقه شرعاً جائزه ده؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په نوموړي صورت کښې دوه مسئلې د غور وړ دي- لومړی مسئله دا ده چه آیا د سُنتو له لمانځه سره د نفل لمانځه په ګډولو سره د سُنتو په آخري قعدې کښې د تاخیر یا ځنډ په کولو سره په لمانځه باندې څه اثر پریوځي او که نه؟ او دوهمه مسئله دا ده چه د نفلو په لمانځه باندې د قیام د قدرت په درلودلو سره په ناستو سره د اداکولو شرعي حیثیت څه دی؟ تر کومه ځایه پورې چه د دوهمې مسئلې حکم دی نو نفل لمونځ ابتداءً یا بناءً په قیام باندې د قدرت درلودلو تر څنګ په ناستې سره جائز دی. البته په ولاړې باندې اداکول ئې بهتر دي-

قال العلامة الحصکفیؒ: و یتنفل مع قدرته علی القیام قاعداً لا مضطجعاً الا بعذر ابتداءً و کذا بناءً بعد الشروع بلا کراهة علی الاصح کعکسه. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۳٦، باب السنن و النوافل)

و فی الهندیة: و حکم السهو فی الفرض و النفل سواءٌ. و قال بعد اسطر. و لا یجب السجود الا بترك واجب او تاخیره او تاخیر رُکن او تقدیمه او تکراره او تغیر واجب بان یجهر فیما یخافت. و فی الحقیقه وجوبه بشیءٍ واحد و هو ترك الواجب. (الهندیة ج۱، ص۱۲٦)

و فی الهندیة: و اذا افتتح التطوع قائماً ثم اراد ان یقعد من غیر عذر فلهٗ ذٰلك عند ابی حنیفةؒ استحساناً. (الهندیة ج۱، ص۱۱٤، باب النوافل) و مثله فی الجوهرة النیرة ج۱، ص۹۲/۸۹، باب النوافل)

او په لومړي مسئلې کښې ئې سُنت لمونځ صحیح دی لیکن د سلام د تاخیر له وجهې



سجده سهو پرې واجبېږي-

قال المرغینانیؒ: لا یجب السهو الا بترك الواجب او تاخیره او تاخیر رُکن ساهیاً. (الهدایة ج۱، ص۱۳۷، باب سجود السهو)

## د تراویحو او وترو په منځ کښې د نفلو حکـــم

**سوال:** د تراویحو د لمانځه او وترو په منځ کښې د نفلو د اداکولو شرعي حیثیت څه دی؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د تراویحو او وترو په منځ کښې نفل لمونځ جائز دی-

قال العلامة الحصکفیؒ یجلس ندبا بین کل اربعة بقدرها کذا بین الخامسة و الوتر و یخیرون بین تسبیح و قرأة و سکوت و صلٰوة فرادٰی. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص٤٦، بحث صلٰوة التراویح)

و قال ابن نجیم المصریؒ: و قد قالوا انهم مخیّرون فی حالة الجلوس ان شاء وا سبحوا و ان شاؤا قرؤا القرآن. و ان شاؤا صلوا اربع رکعات فرادٰی و ان شاؤا قعدوا ساکتین. و اهل مکة یطوفون اسبوعاً و یصلون رکعتین و اهل المدینة یصلون اربع رکعات فرادٰی. و بهٰذا علم انه لو قال بانتظار بعد کل ترویحة بدل قوله بجلسة لکان اولٰی. (البحر الرائق ج۲، ص٦۹، باب النوافل) و مثله فی غنیة المستملی ص٤۰٤، باب النوافل)

## لـــــه وترو وروسته د دوه رکعته نفلو شرعي حیثیت

**سوال:** له وترو وروسته دوه رکعته نفل له کوم روایت څخه ثابت دي او که نه؟ که څېرته ثابت وي نو کیفیت ئې څرګند کړی؟ بینوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له وترو وروسته د دوه رکعته نفلو په باره کښې قولي او فعلي دواړه قسمه روایتونه وارد دي- د ترمذي شریف روایت دی چه: عن ام سلمة ان النبیﷺ کان یصلی بعد الوتر رکعتین. (الجامع الترمذی ج۱، ص۱۰۸، ابواب الصلٰوة الوتر)

او په ابن ماجه کښې پرې دا اضافه شوې ده چه: "خفیفتین و هو جالس". (ابن ماجة ص۸۵، باب ما جاء فی الرکعتین بعد الوتر جالسا)

لهذا دا دوه رکعتونه له شك او شبهې نه بغیر په سُنن زوائدو کښې داخل دي- باقي د ابن ماجه د روایت له مخې رسول اللهﷺ دا دوه رکعتونه په ناستې کړي دي- د دې لپاره په فقهاء کرامو کښې د دغو دوه رکعتونو په ناستې او ولاړې سره ئې په افضل والي کښې اختلاف دی- په داسې حال کښې چه علامه انور شاه کشمیريؒ د تحقیق او نورو محققینو د رائې مطابق لکه څرنګه چه د رسول اللهﷺ په ناستې سره د دغو دوه رکعتونو اداکول تعبداً او قصداً وو نو ځکه په ناستې سره اداکول ئې افضل دي-

لما قال الشیخ انور شاه الکشمیریؒ: یعنی ان الجلوس فیهما اتفاقی او قصدی فاختار النووی الاول عندی المختار هو الثانی لانهما لم تثبتا عنه قائماً قط فحمل فعله فی جمیع عمره علی الاتفاق مما یصارم النداهة. (فیض الباری ج۲، ص٤۲٦، باب المداومة علی رکعتی الفجر)

قال العلامة محمد یوسف البنوری: لو ثبت الرکعتان بعد الوتر فا لسنة فیها الجلوس دون القیام فان الجلوس

فیهما قصدی. (معارف السنن ج٤، ص٢٥٩، بحث رکعتین بعد الوتر جالساً) و مثله فی عرف الشذی علی الترمذی ج١، ص١٠٧، باب ما جاء فی رکعتین بعد الوتر)

## د نوافلو په اولې قعدې کښې د درود شریف او د دریم رکعت په ابتداء کښې د ثناء او تعوذ د لوستلو حکم

**سوال:** د نوافلو او سنتونو په اولې قعدې کښې باید یوائې په تشهد اکتفاء وشي او که د درود شریف لوستل هم ورسره ضروري دي؟ همدارنګه د دریم رکعت لپاره تر دریدو وروسته ثناء او اعوذ بالله لوستل ضروري دي او که د فرض لمونځونو غوندې له سورت فاتحې څخه شروع کیږي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د مؤکدو سنتونو په اولې قعدې کښې درود شریف او په دریم رکعت کښې ثناء او اعوذ بالله نه لوستل کیږي۔ له دې پرته د نورو نوافلو هره شفع (دوه رکعته) مستقل لمونځ دی۔ د دې لپاره د هرې شفعې په اولې قعدې کښې درود شریف او د دریم رکعت په ابتداء کښې ثناء او اعوذ بالله باید ولوستل شي۔

قال العلاة الحصکفیؒ: و لا یصلی علی النبیﷺ فی القعدة الاولیٰ فی الاربع قبل الظهر و الجمعة و بعدها الی ان قال و لا یستفتح اذا قام الی الثالثة منها. لانها لتأکدها اشبهت الفریضة و فی البواقی من ذوات الاربع یصلی علی النبیﷺ و یستفتح و یتعوذ و لو نذراً لان کل شفع صلٰوة. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج٢، ص١٦، باب السنن و النوافل)

قال ابن نجیم المصریؒ: و فی الاربع قبل الظهر و الجمعة و بعدها لا یصلی علی النبیﷺ و لا یستفتح اذا قام الی الثالثة بخلاف سائر ذوات الاربع من النوافل. (البحر الرائق ج٢، ص٤٩، باب السنن و النوافل)

## د سنتِ زوائدو په اولې قعدې کښې د درود شریف او په دریم رکعت کښې د ثناء او تعوذ د لوستلو حکم

**سوال:** د جُمعې او ماسپښین د لمانځه په څلورو رکعتونو کښې له تشهد وروسته درود شریف او په دریم رکعت کښې د ثناء د لوستلو حکم څه دی؟ همدارنګه په سنن مؤکد او زوائدو کښې کوم فرق شته او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د ماسپښین او جُمعې له سنتونو پرته د نورو ټولو څلور رکعتیزو سنتونو او نفلونو په اولې قعدې کښې له تشهد وروسته درود شریف او په دریم رکعت کښې باید ثناء او تعوذ ولوستل شي ځکه چه د نوافلو هره شفع ځانته یو مستقل لمونځ دی په د اسې حال کښې چه مؤکد سنتونه له دې حکم څخه مستثنیٰ دي۔

قال العلامة الحکفیؒ: و لا یصلی علی النبیﷺ فی القعدة الاولیٰ الاربع قبل الظهر و الجمعة و بعدها. و قال بعد سطر واحدة و لا یستفتح اذا قام الی الثالثة منها. لانها لتأکدها اشبهت الفریضة. و فی البواقی من ذوات الاربع یصلی علی النبیﷺ و یستفتح و یتعوذ و لو نذراً لان کل شفع صلٰوة. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج٢، ص١٦، باب السنن و النوافل)



قال ابن نجیمؒ: و فی المجتبی و فی الاربع قبل الظهر و الجمعة و بعدها لا یصلی علی النبیﷺ فی القعدة الاولیٰ و لا یستفتح اذا قام الی الثالثة بخلاف سائر ذوات الاربع من النوافل. (البحر الرائق ج٢، ص٤٩، باب النوافل) و مثله فی الهندیة ج١، ص١١٣، باب النوافل)

## د سنتو او فرضو تر منځ دوه رکعته د تحیه المسجد د لمانځه ادا کولو حکم

**سوال:** که چېرته یو څوك په کور کښې د ماسپښین سُنت ادا کړي او جومات ته لاړ شي او په جومات کښې د جماعت له دریدو څخه مخکښې دوه رکعته د تحیه المسجد لمونځ ادا کړي نو آیا د شریعت له مخې په دې کښې څه ممانعت شته او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د ماسپښین د سنتو او فرضو په منځ کښې دوه رکعته د تحیة المسجد لمونځ جائز دی او په فقهاء کرامو کښې یوه هم په دې وخت کښې له نفلو څخه ممانعت نه دی کړی بلکه د ځینو محققینو د رائې مطابق له شارع علیه السلام څخه د ماسپښین د څلورو مخکښیني سنتونو څخه وروسته دوه رکعته د تحیة المسجد لمونځ ثابت دی۔ د تحیة المسجد د صحت لپاره کوم خاص وخت معین نه دی۔ البته په مکروه وختونو کښې د اسې لمونځ نه شي ادا کیدلی۔ هو! د سنتو او فرضو تر منځ بغیر له کوم عذر نه له د اسې کار څخه باید پرهیز وشي کوم چه له تحریمه سره تکر وي ځکه چه بیائې په ثواب باندې اثر لویږي۔

لما قال العلامه ابن الهمامؒ: فا لاولی الاستدلال بمجموع حدیثین حدیث ابن عمرؓ...... و حدیث عائشةؓ........ فان الاربع کان یصلیها فی بیته فاتفق عدم علم ابن عمرؓ بهنّ و ان علم غیرها مما صلی فی بیته لانهﷺ کان یصلی الکل فی البیت ثم کان یصلّی رکعتین تحیة المسجد کان ابن عمرؓ یراها. (فتح القدیر ج١، ص٣٨٤، باب النوافل)

قال العلامة الشرنبلالیؒ: سن تحیة المسجد برکعتین فی غیر وقت مکروه قبل الجلوس...... الخ. (مراقی الفلاح علی هامش الطحطاوی ص٢١٥، فصل فی تحیة المسجد)

قال ابن عابدینؒ: و هو الذی جمع به فی الفتح بین هذا الحدیث (ای حدیث ابن عمرؓ) و حدیث عائشةؓ انهﷺ کان یصلی اربعا قبل الظهر بقوله. اما بان الاربع کان یصلیها علیه السلام فی بیته. و ما رأه ابن عمرؓ تحیة المسجد او بان ابن عمرؓ کان یری تلك ورد آخر سببه الزوال و هو مذهب بعض العلماء. (منحة الخالق علی البحر الرائق ج٢، ص٥٠، باب الوتر والنوافل)

## د جُمعې د ورځې سنتونه له جومات څخه د باندې (باهر) په نورو ځایونو کښې د ادا کولو حکم

**سوال:** د جُمعې د ورځې سُنت لمونځونه له جومات سره ځانګړي دي او که په کوم بل ځای کښې هم ادا کیدلی شي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د سُنتو د ادا کولو لپاره د جومات ځانګړتیا نشته۔ سُنتونه له جومات څخه پرته په کور کښې هم ادا کیدلی شي۔ له نبي کریمﷺ څخه په دواړو ځایونو (کور او جومات) ادا کول ثابت دي۔ هو! له جومات څخه په کور کښې ئې ادا کول بهتر دي۔

بحدیث النبیﷺ: عن زید بن ثابتؓ عن النبیﷺ قال افضل صلوتکم فی بیوتکم الا المکتوبة. (الترمذی ج۱، ص۱۰۲، باب ما جاء فی فضل الصلوة فی البیت)

عن ابن عمرؓ قال کان اذا کان بمکة فصلی الجمعة تقدم فصلّی رکعتین ثم تقدم فصلّی اربعاً و اذا کان با لمدینة صلی الجمعة ثم رجع الی بیته فصلّی رکعتین فقیل له فقیل کان رسول الله یفعل ذٰلك. (ابو داؤد ج۱، ص۱۶۰، باب الصلوة بعد الجمعة)

قال الشیخ ابراهیم الحلبی الکبیریؒ: و اما السنن التی بعد الفریضة فانه ان تطوع بها فی المسجد فحسن و تطوعه بها فی البیت افضل. و هذا غیر مختص بما بعد الفریضة بل بجمیع النوافل ما عدا التراویح و تحیة المسجد قال بعد عدة اسطر التطوع فی المسجد حسن و فی البیت احسن. کما قال المصنفؒ و به افتی الفقیه ابو جعفر. قال الا ان یخشی ان یشغل عنها اذا رجع. (کبیری ص۳۹۹/۴۰۰، باب النوافل) و مثله فی رد المحتار ج۲، ص۲۰، باب السنن و النوافل)

## د سُنتو د نه ادا کونکي سـړي حکم

**سوال:** که چېرته یو څوك مؤکد او غیر مؤکد سُنتونه ادا نه کړي نو آیا په فرض لمانځه باندې ئې څه اثر لوېږي او که نه؟ او د داسې سړي حکم څه دی؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** مؤکد سنتونه په سفر کښې د شرعي عذر له مخې پرېښودل جائز دي. او همداسې د مؤکدو سُنتونو پرېښودل د عتاب او ملامتیا موجب دی. سُنتونه د فرضو مکملات دي. ګواکه د سُنتونو د نه ادا کولو له وجهې فرائض نیمګړي پاتې کیږي. د سُنتونو په پرېښودلو باندې مداومت له عملي نافرمانۍ سره برابره ده.

قال ابن نجیمؒ: رجل ترك سُنن الصلوة الخمس ان لم یر السنن حقاً فقد کفر لانه ترك استخفافاً. و ان رأی حقاً منهم من قال لا یأثم و الصحیح انه یأثم لانه جاء الوعید با لترك. و قال بعد سطر ان السنة المؤکدة بمنزلة الواجب فی الاثم با لترك الی ان قال و انه لا یجوز ترك السنن المؤکدة و لو صلّی وحده و هو احوط. (البحر الرائق ج۲، ص۴۹، باب الوتر و النوافل)

و فی الهندیة: رجل ترك السنن الصلوة ان لم یر السنن حقاً فقد کفر لانه تارکها استخفافاً و ان راها حقاً فا لصحیح انه یأثم لانه جاء الوعید با لترك کذا فی محیط السرخسی. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۱۱۲، باب النوافل) و مثله فی کبیری ص۳۸۹، باب النوافل (فروع)

## د نفلو په ځــای د قضایي لمونځونو را اګرځول بهتر دي

**سوال:** که چېرته د یوه سړي په ذمې باندې قضاء شوي فرض لمونځونه وي نو د هغه لپاره د نفل لمونځونو ادا کول بهتر دي او که د قضایي لمونځونو؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** چه کله د قضاء شوي لمونځونو صحیح تعداد معلوم نه وي نو د داسې سړي لپاره بهتره دا ده چه له هر لمانځه سره د یوه یوه لمانځه قضایي را وګرځوي. نو په داسې صورت کښې د نفل لمونځونو له ادا کولو څخه د قضایي لمونځونو را اګرځول ډیر بهتر دي.

و فی الهندیة: و فی الحجه و الاشتغال با لفوائتة اولی و اهم من النوافل او السنن المعروفة و صلوة الضحٰی و



صلوة التسبیح و الصلوة التی رویت فی الاخبار فیها سور معدودة و اذکار معهودة فتلك بنیة النفل و غیرها بنیة القضاء کذا فی المضمرات. (الهندیة ج۱، ص۱۲۵، باب قضاء الفوائت)

قال ابن عابدینؒ: و اما النفل فقال فی المضمرات الاشتغال بقضاء الفوائت اوّل اولی و اهم من النوافل. (رد المحتار ج۲، ص۷۴، باب قضاء الفوائت) و مثله فی التاتارخانیة ج۱، ص۷۷۰، کتاب الصلوة، باب قضاء الفائتة)

## د تهجد لمانځه د رکعتونو تعــــداد

**سوال:** د تهجد لمونځ څو رکعته دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له حضورﷺ د تهجد لمونځ په مختلفو وختونو کښې مختلف رکعتونه ثابت دي چه کم تر کمه دوه رکعته او زیات نه زیات دولس رکعتونه مروي دي. ځکه چه په اکثرو وختونو کښې ده مبارکﷺ اته رکعتونه ادا کړي دي د دې لپاره ځینو محققینو داکثر تعداد اته رکعته نقل کړي دي په داسې حال کښې چه له زیات څخه زیات تر دولسو رکعتو پورې هم ثابت دي.

لما ذکره الامام محمد بن اسماعیل البخاریؒ: ان عبد الله بن عباس اخبره انه بات عند میمونة زوج النبیﷺ و هی خالته الی ان قال عبد الله فقمت فصنعت مثل ما صنع ثم ذهبت فقمت الی جنبه فوضع رسول اللهﷺ یده الیمنی علی رأسی و اخذ باُذنی یفتلها فصلّی رکعتین ثم رکعتین ثم رکعتین ثم رکعتین ثم رکعتین ثم رکعتین ثم اوتر ثم اضطجع حتی جاء المؤذن فقام فصلّی رکعتین خفیفتین ثم خرج فصلّی الصبح. (الجامع البخاری ج۱، ص۱۳۵، ابواب الوتر، باب ما جاء فی الوتر)

قد ذکر الامام البیهقی عن کریب مولی ابن عباسؓ ان عبد الله بن عباسؓ اخبره انه بات عند میمونةؓ زوج النبیﷺ هی خالته الی ان قال عبد الله فقمتُ فصنعتُ مثل ما صنع ثم ذهبتُ فقمتُ الی جنبه فوضع رسول اللهﷺ یده الیمنی علی رأسی و اخذ باذنی یفتلها فصلّی رکعتین ثم رکعتین ثم رکعتین ثم رکعتین ثم رکعتین ثم رکعتین قال القعنبی ستّ مرار ثم اوتر ثم اضطجع حتی جاء المؤذن فقام فصلّی رکعتین خفیفتین ثم خرج فصلّی الصبح. (السنن الکبریٰ ج۳، ص۷، باب عدد رکعات قیام النبیﷺ و صفتها) و مثله فی امداد الفتاوی ج۱، ص۳۰۹، نماز وتر)

## د تهجد و د جماعت حکم

**سوال:** د تهجدو لمونځ په جمعي سره د ادا کولو په باره کښې د شریعت حکم څه دی؟ که چېرته جائز وي نو د تل لپاره به جائز وي او که کله کله؟ او څومره خلك چه سره یو ځای شي نو بغیر له کراهیت نه د تهجد و جماعت ادا کولی شي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د تهجدو لمونځ نفل دی او په نفلي لمانځه کښې چه یو یا دوه کسان په امام پسې اقتداء وکړي نو کله چه علی سبیل التداعي (د رابللو په شکل کښې) نه وي نو له کراهیت پرته جائز دی. البته که چېرته مقتدیان له درېو څخه زیات شي نو د احنافو په نزد په اتفاق سره مکروه دی او د درېو مقتدیانو صورت کښې د فقهاوو تر منځ اختلاف دی. د ځینو په نزد مکروه دی او د ځینو په نزد له درېو څخه د کمو جماعت پرته له کراهیت څخه جائز دی.

قال العلامة الحصكفيؒ: و لا يصلى الوتر و لا التطوع بجماعة خارج رمضان اى يكره ذٰلك لو على سبيل التداعي بان يقتدى اربعة بواحدٍ...... قال ابن عابدينؒ: تحت هٰذه العبارة اما اقتداء واحد بواحد او اثنين بواحد فلا يكره و ثلاثة بواحد فيه خلاف و ايضاً قال فوق هٰذه العبارة و يمكن ان يقال الظاهر ان الجماعة فيه غير مستحبة. ثم ان كان ذٰلك احياناً كما فعل عمر كان مباحاً غير مكروه. و ان كان على سبيل المواظبة كان بدعة مكروهة خلاف المتوارث. (رد المحتار ج۲، ص۴۸، بحث صلٰوة التراويح)

قال العلامة عالم بن العلاء الانصاريؒ: و لا يصلى تطوعاً بجماعة الا قيام رمضان و حكى عن شمس الائمة السرخسيؒ ان التطوع با لجماعة على سبيل التداعي مكروه اما لو اقتدىٰ واحدٍ بواحدٍ او اثنان بواحدٍ لا يكره و اذا اقتدىٰ ثلاثة بواحدٍ ذكر هو رحمه الله ان فيه اختلاف المشائخ قال بعضهم و اذا اقتدىٰ اربع بواحدٍ كره بلا خلاف. (الفتاوى التاتارخانية ج۱، ص۶۷۰، باب الوتر) و مثله فى كبيرى ص۴۰۸، باب التراويح)

## د تهجد د لمانځه په آخر کښې وتر ادا کول بهتــــــــر دي

**سوال:** د تهجد د لمانځه په آخر کښې د وتر لمونځ ادا کول ضروري دي او که نه؟ که چېرته يو ځوك د شپې يو اځې يو څو ركعته نفل ادا كړي او وتر ورسره و نه كړي نو په تهجد باندې ئې څه اثر لوېږي او كه نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** تهجد د نفل هغه لمانځه ته وايي چه له ماسخوتن څخه وروسته له خوب څخه په را وېښېدو سره ادا كيږي. كه چېرته وتر ئې په آخر كښې ادا شي نو بهتر دي. هو! كه چېرته وتر ورسره ادا نه شي نو بيا هم په تهجد باندې كوم اثر نه لوېږي.

بحديث النبيﷺ عن نافعٌ ان ابن عمرٌ قال من صلّى من الليل فليجعل آخر صلٰوته وتراً فان رسول اللهﷺ يامر بذٰلك. (النسائى ج۱، ص۲۴۷، باب وقت الوتر)

اخرج الامام الترمذى عن مسروق انه سئل عائشة عن وتر النبيﷺ فقالت من كل الليل قد اوتر اوله و اوسطه و آخره فانتهى وتره حين مات فى وجه السحر. (الجامع الترمذى ج۱، ص۱۰۳، باب ما جاء فى وتر من اول الليل و آخره.

كان ابو بكر يوتر ثم ينام ثم يقوم و يتهجد و عمر كان ينام قبل ان يوتر ثم يقوم و يصلّى و يوتر فقال النبيﷺ لابى بكر اخذت با لحزم و قال لعمر اخذت با لقوة. (مجموعة الفتاوىٰ اردو ج۱، ص۳۳۱، كتاب الصلٰوة، تراويح و تهجد الخ)

**دوهم سوال:** كه چېرته يو ځوك د شپې په آخري برخه كښې له خوب څخه تر وېښېدو وروسته قضائي لمونځونه ادا كړي نو آيا د تهجد و په ځاى هم ورته درېږي او كه نه؟

**الجواب:** كه چېرته يو ځوك له خوب څخه را وېښ شي او د قضاء شوي لمونځونو قضائي را وګرځوي نو د ځينو فقهاوو په نزد د تهجد و په ځاى هم ورته درېږي.

قال ابن عابدينؒ: لان التهجد ازالة النوم و قال بعد سطر واحدٍ ان التهجد لا يحصل الا با لتطوع فلو نام بعد صلٰوة العشاء ثم قام فصلّى فوائت لا يسمّى تهجداً و تردد فيه بعض الشافعية قلت و الظاهر ان تقيده با لتطوع بناء على الغالب و انه يحصل باى صلٰوة كانت فى الحديث المار و ما كان بعد صلٰوة العشاء فهو من الليل. (رد المحتار ج۲، ص۲۴، مطلب فى صلٰوة الليل)



## تحية المسجد د نورو لمونځونو په ضمن کښې هم ادا کيدلی شي؟

**سوال:** كه چېرته جومات ته د داخليدو په وخت كښې د تحية المسجد د ادا كولو په ځاى په نورو سنتونو يا قضايي لمونځونو كښې سړى مشغول شي نو آيا د تحية المسجد ثواب هم ور كول كيږي او كه نه؟ اګر كه ئې په همدې لمانځه سره د تحية المسجد نيت نه وي كړى. "په بهشتي زيور" كښې د ثواب د وركول كيدو او په "كامل حنفي لمونځ" كښې د نه وركول كيدو خبره راغلې ده. لهذا چه كومه خبره راجحه وي هغه څرګنده كړى؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** تحية المسجد جومات ته د ور ننوتو په وخت كښې له دوه ركعاته لمانځه د ادا كولو څخه عبارت دى او د روايتونو له مخې تحيه المسجد سُنت دى. كه چېرته په مستقله توګه دوه ركعته ادا شي نو بهتر دى او كه نه نو د وخت د سنتو په ضمن كښې هم تحية المسجد ادا كيدلى شي. خيال وكړى چه تحية المسجد په مكروه وختونو كښې د حنفي فقهې له مخې جائز نه دى. په داسې وختونو كښې د تحية المسجد په ځاى تسبيح، تهليل او درود شريف په لوستلو سره د تحية المسجد ثواب وركول كيږي.

قال العلامة الحصكفيؒ: و يسنّ تحية المسجد و هى ركعتان و اداء الفرض او غيره و كذا دخوله بنيّة فرض او اقتداء ينوب عنها بلا نيّة..... قال ابن عابدينؒ: تحت هٰذه العبارة اذ دخل فيه (اى المسجد) بعد الفجر او العصر فانهٗ يسبّح و يهلّل و يصلّى على النبيﷺ فانهٗ حينئذٍ يؤدى حق المسجد كما اذا دخل المكتوبة فانهٗ غير مامور بها حينئذٍ كما فى التمرتاشى. و قال بعد عدة اسطرٍ. قال فى الحلية لو اشتغل داخل المسجد با لفريضة غير ناوٍ للتحية قامت تلك الفريضة مقام تحية المسجد لحصول تعظيم المسجد كما فى البدائع. (رد المحتار ج۱، ص۱۸، باب السنن و النوافل)

قال العلامة الشرنبلاليؒ: سن تحية المسجد بركعتين يصلّيها فى غير وقت مكروه قبل الجلوس الخ الى ان قال و اداء الفرض ينوب عنها قاله الزيلعى و كذا كل صلٰوة اداها عند الدخول بلا نيّة التحية لانها لتعظيمه و حرمتهٖ و قد حصل ذٰلك بما صلٰوة و لا تفوت با لجلوس عندنا. (مراقى الفلاح على هامش الطحطاوى ص۳۲۰، فصل فى تحية المسجد)

## د صلٰوة التسبيح په قومې کښې د لاسونو د تــــړلو حکم

**سوال:** د صلٰوة التسبيح په قومه كښې د تسبيحاتو په ويلو كښې ډېر وخت لګيږي. په داسې حالت كښې آيا د نورو لمونځونو غوندې د لاسونو كښته زوړندول بهتر دي او كه تر لاندې تړل بهتر دي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** هر هغه قيام چه په هغه كښې مسنون ذكر نه وي نو په هغه كښې لاسونه نه تړل كيږي. د صلٰوة التسبيح په قومه كښې اګر كه مسنون ذكر يعنې تسبيحات شته ليكن د قيام لپاره د نه قرار والي له وجهې لاسونه پكښې د نامه لاندې نه تړل كيږي بلكه زوړندوي به ئې.

قال العلامة الشيخ احمد الطحطاويؒ: تحت قول المصنف (و يسن وضع الرجل يده اليمنىٰ على اليسرىٰ) ما نصه كما

فرغ من التكبير للاحرام بلا ارسال و يضع في كل قيام من الصلوة و لو حكما فدخل القاعد و لا بد في ذلك القيام ان يكون فيه ذكر مسنون و ما لا فلا كما في السراج الوهاج و غيره. و قال محمدؒ لا يضع حتى يشرع في القراة فهو عندهما سنة قيام فيه ذكر مشروع و عنده سنة للقراة فيرسل عنده حالة الثناء و القنوت و في صلوة الجنازة و عندهما يعتمد في الكل الى ان قال فان قيل في القومة من الركوع ذكر مشروع و هو التسميع و التحميد فينبغي ان يضع فيها على قولهما اجيب بان المراد قيام له قرار فيه ذكر مسنون يراجع. (طحطاوی علی مراقی الفلاح ص ۱۴۰، فصل فی بیان سنن الصلوة)

قال الملا خسرو الحنفیؒ: فا لحاصل ان كل قيام فيه ذكر مسنون ففيه الوضع و كل قيام ليس كذلك ففيه الارسال. (الدرر و الغرر ج۱، ص۶۷، باب صفة الصلوة)

## د استخارې د لمانځه مسنونه طـــــــريقه

**سوال:** د استخارې د لمانځه مسنونه طريقه کومه يوه ده او په کوم وخت کښې ئې ادا کول بهتر دي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د استخارې د لمانځه مسنونه طريقه دا ده چه کله يو څوك د کوم کار د کولو اراده وکړي چه په هغه کښې د تاوان او فائدې دواړو احتمال وي نو په داسې حالت کښې دې د ماسخوتن تر لمانځه وروسته دوه رکعته لمونځ داسې ادا کړي چه په لومړي رکعت کښې سورت کافرون او په دوهم رکعت کښې سورت اخلاص تلاوت کړي. له لمانځه وروسته دې په پوره توجه سره دا دُعا ووايي.

اللّٰهم انّي استخيرك بعلمك و استقدرك بقدرتك و اسئلك من فضلك العظيم. فانك تقدر و لا اقدر و تعلمُ و لا اعلم و انت علاّم الغيوب. اللّٰهم ان كنت تعلم ان هٰذا الامر خير لي في ديني و معيشتي و عاقبة امري او قال في عاجل امري و آجله فاقدره لي ثم بارك لي فيه. و ان كنت تعلم ان هٰذا الامر شر لي في ديني و معيشتي او قال في عاجل امري او آجله فاصرفه عني و اصرفني عنه و اقدر لي الخير حيث كان ثم ارضني به قال و يسمّي حاجته. (الجامع الترمذی ج۱، ص۱۰۹، باب ما جاء فی الاستخارة)

او چه کله هٰذا الامر ته ورسيږي نو د هم هغه کار خوا ته به توجه کوي او په زړه کښې دې راولي. د داسې عمل له کولو څخه وروسته چه کومې خوا ته د زړه ميلان وي هغه کار دې غوره کړي. که چېرته له يو ځل څخه اطمينان حاصل نه شي نو تر اوه ځله پورې دې دا عمل جاري ساتي. ځکه چه د څو ځله په کولو سره ترددّ او شك نه پاتې کيږي.

قال ابن عابدينؒ: و في الحلية و يستحب افتتاح هٰذا الدعاء و ختمه با لحمدله و الصلوة. و في الاذكار انهٗ يقرأ في الركعة الاولى الكافرون و في الثانية الاخلاص آه. و عن بعض السلف انه يزيد في الاولى "وَ رَبُّكَ يَخْلُقُ مَا يَشَآءُ وَ يَخْتَارُ" الى "يُعْلِنُوْنَ" و في الثانية "وَ مَا كَانَ لِمُؤْمِنٍ وَّ لاَ مُؤْمِنَةٍ (الآية)" و ينبغي ان يكررها سبعاً لما روى ابن السنيؒ يا انس اذا هممت بامرها فا ستخر ربّك فيه سبع مرات. ثم انظر الى الذى سبق الى قلبك فان الخير فيه و لو تعذرت عليه الصلوة استخار با لدعاء آه. و في شرح الشرعة المسموع من المشائخ انهٗ ينبغي ان ينام على طهارة مستقبل القبلة بعد قرأة الدعاء المذكور فان رأى في منامه بياضاً او خضرة فذلك الامر خير. و ان رأى فيه سواد او حمرة فهو شر ينبغي ان يجتنب آه. (رد المحتار ج۲، ص۲۶، مطلب في ركعتي الاستخارة)



## نفل لمونځ له عذر پرته په ناستې ســــــره د ادا کولو حکم

**سوال:** د نفل لمانځه د ادا کولو کيفيت څه دی؟ آيا له عذر څخه پرته په ناستې سره د ادا کولو په صورت کښې په نفلو باندې کوم اثر لويږي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** نفل لمونځ په ناستې سره هم او په ولاړې سره هم جائز دی. البته د ولاړې په مقابله کښې په ناستې سره نيم ثواب ورکول کيږي.

قال الامام البخاریؒ: عن عمران بن حصين قال سئلت النبی ﷺ صلٰوة الرجل و هو قاعدٌ فقال من صلّى قائماً فهو افضل و من صلّى قاعداً فله نصف اجر القائم. (الحديث) (الجامع الصحيح البخاری ج۱، ص۱۵۰، ابواب تقصير الصلوة)

په داسې حال کښې چه معذور سړي په ناستې سره هم د ادا کولو په صورت کښې پوره ثواب ورکول کيږي.

قال العلامة علاؤ الدين الحصكفیؒ: و يتنفل مع قدرته على القيام قاعداً لا مضطجعاً الاّ بعذر ابتداءً و كذا بناءً بعد الشروع بلا كراهة كعكسه. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۲، ص۳۶، باب السنن و النوافل)

قال ابن نجيم المصری رحمه الله: و يتنفل قاعداً مع قدرته على القيام ابتداءً و بناءً و قد حكى فيه اجماع العلماء. و بعد عدة اسطر قال و اما اذا صلاه مع عجزه فلا ينقص عن ثوابه قائماً. (البحر الرائق ج۲، ص۶۲، باب النوافل)

## د ديني عالم لپاره د سُنتو پرېښودل جـــــــائز دي

**سوال:** آيا د يوه ديني عالم يا مفتي لپاره د خلکو د مسائلو د حل کولو لپاره سُنت لمونځونه پرېښودلی شي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د خلکو د مسائلو د حل کولو او د تعليم او تعلم لپاره مقدس شريعت يوه ديني عالم لپاره د دې مشغوليت په بناء سره د سُنتو د پرېښودلو اجازه ورکړې ده ليکن د سهار د سُنتو د پرېښودلو اجازه ئې ده ته هم نه ده ورکړې.

لما قال العلامة الحصكفی رحمه الله: و لا يجوز تركها لعالم صار مرجعاً في الفتاوى بخلاف باقي السنن كله تركها لحاجة الناس الى فتواه. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۲، ص۱۵، باب النوافل)

قال العلامة ابن عابدينؒ: (فله تركها) الظاهر ان معناه انهٗ يتركها وقت اشتغاله با لافتاء لاجل حاجة الناس المجتمعين عليه و ينبغي انهٗ يصليها اذ فرغ في الوقت و ظاهر التفرقة بين السنة الفجر و غيرها الخ. (رد المحتار ج۲، ص۱۵)

## حــــــــاجي صاحبان به نفل لمونځونه په حرم شريف کښې کوي او که د خپل اوسيدو په ځــــــاى کښې؟

**سوال:** جناب مفتي صاحب! زما حج ته د تلو اراده ده. پوښتنه مې دا ده چه د يوه حاجي لپاره نفل لمونځ په حرم شريف کښې بهتر دی او که د خپل اوسيدو په ځای کښې؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** بهتره دا ده چه نفل لمونځ د خپل اوسيدو په ځای کښې ادا شي ليکن د حرمين شريفينو د شرافت او عظمت په خاطر د يوه حاجي لپاره نفل لمونځ په حرمين شريفين

کښې بهتر دی د دې لپاره چه حاجي ته د اشرافت په نورو ځایونو کښې نه ور په برخه کیږي۔

لما قال العلامة مُلا علی القاریؒ: و الظاهر ان الکعبة و الروضة الشریفة تستثنیان للغرباء لعدم حصولها فی مواضع آخر فتغتنم الصلٰوة فیهما قیاساً علی ما قاله ائمتنا ان الطواف للغرباء افضل من الصلٰوة النافلة. (مرقاة ج۳، ص۱۸۶، کتاب الصلٰوة)

## د مازدیګر تر لمانځه وروسته د نذر شوي نفلونو د ادا کولو حکم

**سوال:** د اسې خو د مازدیګر تر لمانځه وروسته د لمر د ډوبیدو په وخت کښې د نفلو ادا کول مکروه دي لیکن که چېرته چا د نفلو د لمانځه نذر منلی وي نو د د اسې نفلونو د واجب والي په بناء سره د مازدیګر تر لمانځه وروسته ئې ادا کولی شي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د مازدیګر او سهار تر لمونځونو وروسته مطلقاً نفل مکروه دی که نذر شوي نفلونه وي او که نور نفلونه وي۔ د دې لپاره د صورت مسئوله مطابق د مازدیګر تر لمانځه وروسته د منل شوي نذر دې په کوم غیر مکروه وخت کښې ادا کړي ځکه چه تر مازدیګر وروسته ادا کول ئې له کراهیت څخه خالي نه وي۔

لما قال العلامة المرغینانیؒ: و یکره ان یتنفل بعد الفجر حتٰی تطلع الشمس و بعد المغرب حتٰی تغرب لما روی انه علیه السلام نهی عن ذٰلك و لا بأس بان یصلّی فی هٰذان الوقتین الفوائت و یسجد التلاوة و یصلّی علی الجنازة لان الکراهة کانت لحق الفرض لیصیر الوقت کا لمشغول بهٖ لا لمعنی فی الوقت فلم تظهر فی حق الفرائض و فیما وجب لعینهٖ کسجدة التلاوة و ظهر فی حق المنذور لانهٗ تعلق وجوب بسبب من جهتهٖ. (الهدایة ج۱، ص۸۲، فصل فی الاوقات المکروه، کتاب الصلٰوة)

لما فی الهندیة: و لو نذر ان یصلّی فی الوقت المکروه فادی فیه یصح و یأثم و یجب ان یصلّی فی غیره. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۵۲، کتاب الصلٰوة، الباب الاول فی المواقیت، الفصل الثالث)

## د تحیة الوضوء د لمانځه له ادا کولو څخه مخکښې د کښیناستلو حکم

**سوال:** که چېرته یو څوك اودس وکړي او جومات ته راشي او د څه وخت لپاره کښیني، بیا جګ شي او د تحیه الوضوء لمونځ ادا کړي نو د دې حکم به څه وي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** مسنونه طریقه دا ده چه کله یو سړی اودس وکړي جومات ته داخل شي نو له کښیناستو څخه به مخکښې دوه رکعته د تحیه الوضوء یا تحیة المسجد لمونځ ادا کړي۔ هو! که چېرته د کوم عذر له وجهې لومړی کښیني او بیا جګ شي او تحیه الوضوء ادا کړي نو بیا هم څه پروا نه لري۔

لقوله علیه السلام: اذا دخل احدکم المسجد فلیرکع رکعتین قبل ان یجلس.



## د صلٰوة التسبیح په جماعت سره د ادا کولو حکم

**سوال:** جناب مفتي صاحب! زمونږ د کلي څه خلك د رمضان المبارك په میاشت کښې صلٰوة التسبیح په جمعې سره ادا کوي او ښځو ته په ځانګړي توګه په لاسپیکر کښې اعلانونه کوي او د دې لمانځه د ادا کولو لپاره ئې جوماتونو ته رابولي۔ نو د صلٰوة التسبیح په جماعت سره د ادا کولو اهتمام او انتظام شرعاً جائز دی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د صلٰوه التسبیح په جماعت سره ادا کول له شارع علیه السلام څخه منقول نه دی او لکه څرنګه چه دا لمونځ نفل دی او نفل لمونځ په جماعت سره بیا په ځانګړې توګه چه په تداعي (د تداعي مطلب دا دی چه مقتدیان څلور وي نو بیا به په اتفاق د علماوو سره دا جماعت مکروه دی او که چېرته مقتدیان درې نفره وي نو ئې په مکروه والي کښې اختلاف دی او که چېرته مقتدیان دوه نفره وي له کراهیت پرته جائز دی لیکن د جماعت ثواب به ئې بیا هم نه وي "رد المحتار علی الدر المختار ج۱، ص۳۷۱" و فیه قوله علیٰ سبیل التداعی بان یقتدی اربعة فاکثر بواحد) سره وي مکروه دی۔

لما قال فی الهندیة: التطوع با لجماعة اذا کان علی سبیل التداعی یکره و فی الاصل للصدر الشهید اما اذا صلوا بجماعة بغیر آذان و اقامة فی ناحیة المسجد لا یکره. و قال شمس الائمة الحلوانیؒ: ان کان سوی الامام ثلاثة لا یکره با لاتفاق و فی الاربع اختلف المشائخ و الاصح انهٗ یکره هٰکذا فی الخلاصة. (الفتاوی الهندیة ج۱، ص۸۲، الباب الخامس الامامة، الفصل الاول فی الجماعة من کتاب الصلٰوة)

## په صلٰوة التسبیح کښې د تسبیحاتو په پاتې کیدو سره د تسبیح د لمانځه حکم

**سوال:** که چېرته له یوه سړي څخه د صلٰوة التسبیح په لومړي رکعت کښې تسبیحات پاتې شي او د سلام له اړولو څخه مخکښې ور په زړه شي چه له ما څخه په فلاني رکعت کښې تسبیحات پاتې شوي دي نو آیا د سجدهٔ سهو په کولو سره ئې لمونځ صحیح کیږي او که نه؟ او که چېرته سجده سهو و نه کړي نو آیا شرعاً ئې دا لمونځ په صلٰوه التسبیح کښې شماریږي او که یوائې په نفلو کښې شماریږي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** سجدهٔ سهو د واجبو په ترك باندې لازمیږي په د اسې حال کښې چه تسبیحات واجب نه دي د دې لپاره د تسبیحاتو په پاتې کیدو سره سجده سهو نه لازمیږي۔ البته د تسبیحاتو په پاتې کیدو سره دا لمونځ یوائې په نفلو کښې حسابیږي او د صلٰوة التسبیح ثواب نه ورکول کیږي۔ هٰکذا في فتاویٰ رحیمیه ج۴، ص۴۳۲، باب النوافل۔

# باب التراويح

## (د تراويحو احكام او مسئلې)

### په سحري (پيشلمي) كښې د تراويحو د ادا كولو حكم

**سوال:** ځيني خلك مو ليدلي دي چه د تراويح لمونځ په پيشلمي كښې ادا كوي، آيا د تراويح تر پيشلمي پورې ځنډول خو به مكروه نه وي؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** مستحبه دا ده چه تراويح دې د شپې تر نيمايي يا تر دريمې برخې پورې وځنډول شي۔ تر پيشلمي پورې ځنډول ئې اګر كه د صحيح قول مطابق مكروه خو نه دي ليكن له داسې كولو څخه اجتناب مناسب دی۔

لما قال العلامة الحصكفیؒ: و يستحب تاخيرها الٰی ثلث الليل او نصفه و لا تكره بعده فی الاصح. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص ٤٤، باب الوتر و النوافل)

قال العلامة ابن عابدينؒ: و ما فی البحر من ان الصحيح انهٗ لا بأس با لتاخير لا يدل علٰی ثبوت كراهة التنزيهة. (رد المحتار ج۲، ص ٤٤، باب الوتر و النوافل)

### تراويح سُنت مؤكد دي

**سوال:** د تراويحو د لمانځه ادا كول څه حكم لري؟ په موجوده وخت كښې چه په كوم اهتمام مونږ تراويح ادا كوو د رسالت يا خلافت په دور كښې ئې حيثيت څه وو؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** رسول الله ﷺ تروايح كړي دي البته د باقاعده اهتمام رعايت ئې نه دی كړی۔ ځكه چه د ده په اهتمام سره په أمت باندې د لازم والي خطره وه۔ د دې لپاره ده مبارك د عذر له وجهې پرېښې دي۔ البته د خلفاء راشدينو په دور كښې دا عذر پاتې نه وو نو خلفاء راشدينو په باقاعده اهتمام سره تراويح كړي دي۔ پر دې بناء باندې په تراويحو باندې مواظبت سُنت مؤكد دی۔

لما قال العلامة عبد الله بن محمود الموصلی: التراويح سنة مؤكدة لان النبیﷺ اقامها فی الليالی....... الی يومنا هٰذا. ان ابا يوسف سئل ابا حنيفة عنها و ما فعله عمرؓ. فقال التراويح سنة مؤكدة و لم يتخرجه عمرؓ من تلقاء نفسه. و لم يكن فيه مبتدعا. و لم يأمر الا عن اصل لديه و عهد من رسول اللهﷺ. (الاختيار لتعليل المختار ج۱، ص٦٨، فصل فی التراويح)

قال العلامة الحصكفیؒ: التراويح سنة مؤكدة لمواظبة الخلفاء الراشدين..... قال العلامة ابن عابدينؒ: تحت قوله سنة مؤكدة صححه فی الهداية و غيرها و هو المروی عن ابی حنيفة و ذكر فی الاختيار ان ابا يوسف سئل ابا حنيفة عنها و ما فعله عمر فقال التراويح سنة مؤكدة و لم يستخرجه عمر من تلقاء نفسه و لم يكن فيه مبتدعاً و لم يامر به الا عن اصل لديه و عهد من رسول اللهﷺ و قال ايضاً تحت قوله لمواظبة الخلفاء الراشدين ای اكثرهم لان المواظبة عليها وقعت فی اثناء خلافة عمرؓ و وافقه علی ذلك عامة الصحابة و من بعدهم الی يومنا هذا بلا نكير. (رد المحتار علی الدر المختار ج۲، ص٤٣، باب التراويح) و مثله فی الفتاوی التاتارخانية ج۱، ص٦٥٣، الفصل الثالث عشر فی التراويح)



### د شلو ركعتونو ثبوت

**سوال:** د شلو ركعتونو تراويحو دليل څه دی؟ حضرت عمر رضی الله تعالی عنه د كومو وجوهاتو له مخې دومره اهميت وركړی دی؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د رمضان المبارك په مياشت كښې د تراويحو ادا كول د نبي كريمﷺ مبارك سُنت دي چه تر اوسه پورې تعامل پرې راغلی دی. تر كومه ځايه پورې چه د ركعتونو د تعداد تعلق دی نو د حضرت عبد الله بن عباس رضی الله عنهما له مرفوع روايت څخه پرته د اكثرو خلفاء راشدينو متوارثه طريقه ده۔ چه كله خليفهٔ راشد حضرت عمر رضی الله عنه شل ركعته تراويح د يوه قاري تر شا د ادا كولو حكم وركړ نو د هغه دور يوه صحابي هم انكار و نه كړ۔ ګواكه هغوی د حضرت عمرؓ په فيصلې باندې اجماع وكړه۔ په اصولي توګه دا فيصله هم د مرفوع روايت په حكم كښې دی۔ د دې لپاره چه د صحابي په عباداتو كښې د خلاف قياس خبرې د كولو لازمي نتيجه به دا وي چه هغه به دا خبره له حضورﷺ څخه اوريدلې وي۔ له دې بغير د تول أمت په دې باندې اجماع شوې ده۔

قال ابن نجيم المصریؒ: و قد سنها رسول اللهﷺ و ندبنا اليها و اقامها فی بعض الليالی ثم تركها خشية ان تكتب علی اُمته كما ثبت ذلك فی الصحيحين و غيرهما ثم وقعت المواظبة عليها فی اثناء خلافة عمر رضی الله عنه و وافقه علی ذلك عامة الصحابة رضی الله عنهم كما ورد ذلك فی السنن ثم ما زال الناس من ذلك الصدر الی يومنا هذا علی اقامتها من غير نكير و كيف لا و قد ثبت عنهﷺ عليكم بسُنتی و سنة الخلفاء الراشدين المهديين عضوا عليها با لنواجذ كما رواه ابو داؤد. و اطلقه فشمل الرجال و النساء كما صرح به فی الخانية و الظهيرية. الخ.

و قوله عشرون ركعة بيان لكميتها و هو قول الجمهور لما فی المؤطا عن يزيد بن رومان قال كان الناس يقومون فی زمن عمر بن الخطاب بثلاث و عشرين ركعة و عليه عمل الناس شرقاً و غرباً..... و ذكر العلامة الحلبیؒ ان الحكمة فی كونها عشرين ان السنن شرعت مكملات للواجبات و هی عشرون با لوتر فكانت التراويح كذلك لتقع المساوات بين المكمل و المكمل انتهی. (البحر الرائق ج۲، ص٦٦، تراويح فی باب الوتر و النوافل)

قال العلامة عالم بن العلاء الانصاریؒ: التراويح سنة مؤكدة توارثها الخلف عن السلف من لدن تاريخ رسول اللهﷺ الی يومنا هذا هكذا روی الحسن عن ابی حنيفة و قد واظب عليها الخلفاء الراشدون و قال عليه السلام عليكم بسُنتی و سنة الخلفاء الراشدين من بعدی و اقامها ازواج النبی عليه السلام. (الفتاوی التاتارخانية ج۱، ص٦٥٣، الفصل الثالث عشر فی التراويح)

و عن السائب بن يزيد قال كانوا يقومون علی عهد عمر بن الخطاب فی شهر رمضان بعشرين ركعة. رواه البيهقی و اسناده صحيحٌ. (آثار السنن ص ٢٥٠، باب فی التراويح بعشرين ركعات) و مثله فی فتاوٰی قاضی خان علی هامش الهندية ج۱، ص ٢٣٢، باب التراويح و آثار السنن ص٢٥٣، باب فی التراويح بعشرين ركعات.

## د شلــــو رکعتونو تراویحو په باره کښې د حضرت ابن عبــــاسؓ د یـــــوه روایت حیثیت

**سوال:** د شلو رکعاتو تراویحو په باره کښې د حضرت ابن عباسؓ د روایت حیثیت څه دی؟ له ځینو اقوالو څخه د ضعیف والي په طرف ئې میلان معلومیږي۔ آیا د دغه ضعف له وجهې د شلو رکعتونو حیثیت متاثر کیږي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما حدیث ته اګر که ضعیف هم ویل شوي دي لیکن دا خبره یاده ساتی چه یو حدیث اګر که د سند له مخې ضعیف وي لیکن کله چه په هغه باندې د خیر القرون له زمانې څخه په پرله پسې توګه عمل شوی وي نو د امت د عمل له دې تواتر څخه هغه حدیث د مضمون په اعتبار سره قوي جوړیږي او بیا ضعیف نه پاتې کیږي۔ دا د حدیثو د اصولو یو مسلّم او منل شوي اصل دي۔

قال ابن عابدینؒ: و اما ما روی ابن ابی شیبة فی مصنفه و الطبرانی و عند البیهقی من حدیث ابن عباسؓ ان النبی ﷺ کان یصلّی فی رمضان عشرین رکعة سوی الوتر فضعیف بابی شیبة ابراهیم بن عثمان جد الامام ابی بکر بن ابی شیبة متفق علی ضعفه مع مخالفته للصحیح آه. قلت اما مخالفته الصحیح فقد یجاب عنها بان ما فی الصّحیح مبنی علی ما هو الغالب من احواله ﷺ و هٰذا لیلتین فقط ثم ترکه علیه الصلٰوة و السلام فلذا لم تذکره عائشه رضی الله عنها و اما تضعیف من ذکر فقد یقال انه بما مر من نقل الاجماع علی سنتها من غیر تفصیل مع قول الامام رحمه اللّٰهان ما فعله عمر رضی الله عنه لم یتخرجه من تلقاء نفسه و لم یکن فیه مبتدعاً و لم یأمر بهٖ الا عن اصل لدیه و عهد من رسول الله ﷺ فتأمل منصفاً. (منحة الخالق علی هامش البحر الرائق ج۲، ص۶۶، باب السنن و النوافل)

و ذکر العلامة عبد العلی بحر العلومؒ: و روی ابن ابی شیبة عن ابن عباس کان رسول الله ﷺ یصلی فی رمضان عشرین رکعة و الوتر. قال الشیخ عبد الحق قالوا اسناده ضعیف و تعارضه حدیث امّ المؤمنین....... انه لا معارضة لان اُمّ المؤمنین اخبرت لما علمت و لعل رسول الله ﷺ صلّٰی عشرین فی بیت اُمّ المؤمنین میمونة و شاهد ذٰلك ابن عباس و مواظبة الصحابة علی عشرین قرینة صحة هٰذه الروایة. (رسائل الارکان ص۱۳۸، فصل فی التراویح)

## صلٰوة اللیل او قیام رمضان ځان ځانته لمونځونه دي

**سوال:** صلٰوة اللیل (تهجد) یا قیام رمضان (تراویح) د یوه لمانځه دوه نومونه دي او که جلا جلا لمونځونه دي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د صلٰوة اللیل او تهجّد تر منځه د عموم او خصوص نسبت دی۔

کما یعلم من قول ابن عابدینؒ: نعم صلوه اللیل و قیام اللیل اعم من التّهجد الخ. (رد المحتار علی الدر المختار ج۲، ص۲۴، مطلب فی صلوه اللیل)

البته قیام رمضان او تراویح دواړه یو شی دي

کما یعلم من صنیع برهان الدین المرغینانیؒ: فصل فی قیام رمضان، یستحب ان یجتمع الناس فی شهر رمضان بعد صلٰوة العشاء فیصلی بهم امامهم خمس ترویحات کل ترویحة بتسلیمتین الخ. (الهدایة ج۱، ص۱۳۴، باب النوافل، فصل فی قیام رمضان،



قال العلامة السید محمد یوسف البنوریؒ: و با لجملة فا لمراد بقیام رمضان التراویح. (معارف السنن ج۵، ص۳۴۳، باب ما جاء فی قیام رمضان)

## د حضرت عائشه صدیقه رضی الله تعالٰی عنها د حدیث مقصد

**سوال:** حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها دا حدیث چه نبي کریم ﷺ په رمضان او غیر رمضان کښې له یوولسو رکعتونو څخه زیات نه دي کړي، آیا دا د تراویحو په اړه دی او که د تهجدو په اړه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** دا حدیث د تهجد په اړه دی، د تراویحو په اړه نه دی راغلی ځکه چه په غیر رمضان کښې تراویح نه ادا کیږي۔ تراویح یوازې له رمضان شریف سره مخصوص دي۔ لهذا د غیر رمضان په تهجد باندې دال دی۔

بحدیث عن النبی ﷺ عن ابی سلمة انه اخبره انه سئل عائشةؓ کیف کانت صلٰوة رسول الله ﷺ فی رمضان. فقالت ما کان رسول الله ﷺ یزید فی رمضان و لا فی غیره علی احدٰی عشرة رکعة ثم یصلی اربعاً. فلا تسئل عن حسنهن و طولهن. ثم یصلّی اربعاً. فلا تسئل عن حسنهن ثم یصلّی ثلاثاً الخ.

قال شیخ مشائخنا مولانا الجنجوهیؒ: کان السائل ظن ان رسول الله ﷺ لعله کان یزید فی رمضان علی ما تهجّد فی غیره فردته بقولها ما کان یزید فی رمضان و لا فی غیره ای فی غالب الاحوال و الاوقات فا لغرض الانکار علی زیادة رکعات التهجد لخوصیته رمضان فلا ینافیه ما کان یصلیه فی بعض الاحیان فوق احدٰی عشرة رکعة و کذا لا تعلق له بصلٰوة التراویح نفیاً و لا اثباتاً. (فتح الملهم ج۲، ص۲۹۱، باب صلٰوة اللیل و قدر رکعات النبی ﷺ)

قال الشیخ ظفر احمد العثمانیؒ: د حضرت عائشه هغه حدیث چه په هغه کښې دا فرمایي چه رسول الله ﷺ له یوولسو رکعتونو څخه په رمضان او غیر رمضان کښې زیات نه دي کړي---الخ، د تراویحو په اړه نه دی بلکه یوازې د تهجدو په اړه دی یعنې ده مبارک ﷺ به په تهجدو کښې په ډیرو وختونو کښې تر دې زیات نه ادا کول۔ (امداد الاحکام ج۱، ص۶۴۷، باب التراویح)

## د فرض لمانځه له ادا کولو څخه بغیر د تراویحو د ادا کولو حکم

**سوال:** که چېرته کوم امام په رمضان المبارک کښې د فرضو له ادا کولو څخه پرته د تراویحو لمونځ ادا کړي نو آیا شرعاً د اسې کول صحیح دي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کوم امام چه پخپله فرض نه وي ادا کړی نو په تراویحو کښې اقتداء ور پسې صحیح نه ده او نه ئې په دې سره غاړې خلاصیږي۔ ځکه چه له تراویحو څخه مخکښې د ماسخوتن د لمانځه ادا کول ضروري دي۔

و فی الهندیة: فان وقتها (ای التراویح) بعد اداء العشاء فتجب الاعادة ان ادّی قبل العشاء. (الهندیة ج۱، ص۱۱۵، فصل فی التراویح)

قال الشیخ ابراهیم الحلبیؒ: و قال القاضی الامام النسفیؒ الصحیح ان وقتها (ای التراویح) بعد العشاء لا تجوز قبلها سواء کانت بعد الوتر او قبله و هو المختار. (غنیة المستملی (کبیری) ص۴۰۳، باب التراویح) و مثله فی رد المحتار ج۲، ص۴۴، مبحث صلٰوة التراویح)

## پــــــه تراویحو کښې د دوهمې شفعې د فاسدیدو په صورت کښې د دوه رکعتونو د قضایي حکم

**سوال:** که چېرته یوه سړي د څلورو رکعتونو نیت تړلی وي او بیا ئې د دریم یا څلورم رکعت په دوران کښې سلام واړول یائې په دوهمې شفعې کښې لمونځ فاسد شو نو آیا د نفلو غوندې به د دوه رکعتونو قضایي راوړي او که به د څلورو رکعتونو؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** څرګنده دې وي چه تروایح پخپل ذات کښې سُنت دي لیکن څلور څلور رکعته اداکول ئې سُنت نه دي۔ لهذا په نوموړي صورت کښې به یواځې د دوه رکعتونو قضایي کافي وي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: و قضی رکعتین لو نوی اربعاً غیر مؤکدة علی اختیار الحلبی وغیره. و نقض فی خلال الشفع الاول او الثانی ای و تشهد للاول. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۳۲، باب الوتر و النوافل)

لیکن د اولې شفعې راګرځول د واجبو د ترک له وجهې ضروري دي۔

قال ابن عابدینؒ: (قوله او الثانی) ای و کذا یقضی رکعتین لو اتم الشفع الاول بقعدته. ثم شرع فی الثانی فنقضه فی خلاله قبل القعدة فیقضی الثانی فقط لتمام الاوّل لکن ینبغی اعادة الاول لترك واجب السلام مع عدم انجباره بسجود سهو کما هو الحکم فی کل صلٰوة ادیت مع ترك الواجب. (رد المحتار ج۲، ص۳۲، باب السنن و النوافل)

قال ابن نجیمؒ: قوله و قضٰی رکعتین لو نوی اربعاً و افسده بعد القعود الاوّل او قبله یعنی فیلزمه الشفع الثانی ان افسده بعد القعود الاوّل و الشروع فی الثانی. و الشفع الاول فقط ان افسده قبل القعود بناء علی انه لا یلزمه بتحریمه النفل اکثر من الرکعتین و ان نوی اکثر منها و هو ظاهر الروایة عن اصحابنا الاّ بعارض الاقتداء (البحر الرائق ج۲، ص۵۸، باب النوافل) و مثله فی الفتاوی القاضی خان علی هامش الهندیة ج۱، ص۲٤٠، باب التراویح، فصل فی السجود.

## د څلورو رکعتونو تراویحو له اولې قعدې بغیر د اداکولو حکم

**سوال:** که چېرته څلور رکعته تراویح له اولې قعدې پرته ادا شي او په آخر کښې سجده سهو وکړي نو آیا دا به څلور رکعته شمارېږي او که دوه رکعته؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په نوموړي صورت کښې به دوهمه شفع او قرائت دوباره اداکوي۔ دا به یواځې دوه رکعته ګڼل کیږي۔

و فی الهندیة: عن ابی بکر الاسکافؒ انه سئل عن رجل قام الی الثالثة فی التراویح و لم یقعد فی الثانیة قال ان تذکر فی القیام ینبغی ان یعود و یسلم. و ان تذکر بعد ما سجد للثالثة فان اضاف الیها رکعة أخری کانت هذه الاربع عن تسلیمة واحدة. (الهندیة ج۱، ص۱۱۸، فصل فی التراویح)

قال ابن نجیم المصریؒ: فلو صلی الامام اربعا بتسلیمة و لم یقعد فی الثانیة فاظهر الروایتین عن ابی حنیفةؒ و ابی یوسفؒ عدم الفساد. ثم اختلفوا هل تنوب عن تسلیمة او تسلیمتین. قال ابو اللیث تنوب عن تسلیمتین. و قال ابو جعفر و ابن الفضل تنوب عن واحدة و هو الصحیح. کذا فی الظهیریة و الخانیة و فی المجتبیٰ و علیه الفتوٰی. (البحر الرائق ج۲ ص٦٧) و مثله فی الفتاوی القاضی خان علی هامش الهندیة ج۱، ص۲٤٠، فصل فی السهو)



## د پنځمې ترویحې او وترو تر منځ د نفلو له اداکولو څخه د ضعیفانو (کمزورو) خلکو رعایت بهتر دی

**سوال:** د تراویحو او وترو تر منځ د نفلو د اداکولو حکم څه دی؟ په داسې حال کښې چه په قوم کښې ضعیف خلك هم موجود وي او د تاخیر په کولو سره هغو ته تکلیف وي۔ نو آیا نفل اداکول بهتر دي او که د ضعیفانو رعایت ضروري دی؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته د قوم ضعیفو خلکو ته له انتظار څخه تکلیف وي نو د نفلو د اداکولو په ځای باید وتر لمونځ ادا شي ځکه چه د نفلو له اداکولو څخه د ضعیفانو رعایت اهم دی۔

و فی الهندیة: و یستحب الجلوس بین الترویحتین قدر ترویحة و کذا بین الخامسة و الوتر کذا فی الکافی و هکذا فی الهدایة. و لو علم ان الجلوس بین الخامسة و الوتر یثقل علی القوم لا یجلس هکذا فی السراجیة. (الهندیة ج۱، ص۱۱۵، فصل فی التراویح)

قال العلامة الحصکفیؒ: یجلس ندباً بین کل اربعة بقدرها کذا بین الخامسة و الوتر و یخیرون بین تسبیح و قرأة و سکوت و صلٰوة فرادٰی. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص٤٦، باب التراویح)

## د تراویحــــــو په منځ کښې د کښیناستلو په صورت کښې چُپ والی هــــم جائز دی

**سوال:** له څلورو رکعتونو تراویحو وروسته چه کومه دُعا لوستل کیږي که چېرته هغه د چا زده نه وي نو په تسبیح او تهلیل باندې اکتفاء جائزه ده او که نه؟ که چېرته یو څوك غلی او خاموش کښیني نو د هغه بیا حکم څه دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د څلورو رکعاتو تراویحو څخه وروسته کښیناستل مستحب دي۔ تسبیح او تهلیل ضروري نه دي۔ البته که چېرته درې وارې دا دُعا چه سُبحان ذی المُلك و الملکوت...... الخ ولولي نو ډیره به ښه وي۔ که چېرته ئې دا دُعا یاده نه وي نو تسبیح او تهلیل هم ویلی شي او په غلي او چُپ اوسیدو باندې هم سُنت اداکیږي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: و یجلس ندباً بین کل اربعة بقدرها و کذا بین الخامسة و الوتر و یخیرون بین تسبیح و قرأة و سکوت و صلٰوة فرادٰی. و قال ابن عابدینؒ تحت هٰذه العبارة. قال القهستانیؒ: فیقال ثلاث مرات سبحان ذی الملك و الملکوت، سبحان ذی العزه و العظمة و القدرة و الکبریاء و الجبروت، سُبحان الملك الحیَ الذی لا ینام و لا یموت سُبُوح قدوس رب الملٰئکة و الروح لا اله الا الله نستغفر الله نسئلك الجنة و نعوذ بك من النار. (رد المحتار ج۲، ص٤٦، مبحث فی صلٰوة التراویح)

قال ابن نجیمؒ: و قد قالوا انهم مخیّرون فی حالة الجلوس ان شاؤا سبحوا و ان شاؤا قرؤا القرآن و ان شاؤا صلوا اربع رکعات فرادٰی و ان شاؤا قعدوا ساکتین. و اهل مکة یطوفون اسبوعاً و یصلون رکعتین و اهل المدینة یصلون اربع رکعات فرادٰی. (البحر الرائق ج۲، ص٦٩، باب الوتر و النوافل)

## د څلورو رکعتو تراويحو او د ماسپښين د مخکښيني سنتونو په ادا کښې فرق

**سوال:** که چېرته يوه سړي د څلورو رکعتو تراويحو نيت وتاړه، په دوهم رکعت کښې ئې تشهد هير شو او سجدهٔ سهو ئې وکړه، آيا دا به د ده لپاره څلور رکعاته ګڼل کيږي او که دوه رکعاته؟ همدارنګه د ماسپښين په مخکښينيو څلورو سنتو کښې که چېرته اوله قعده له چا څخه پاتې شي او په آخر کښې سجدهٔ سهو وکړي نو د تراويح او د دغو څلورو سنتونو حکم يو دی او که جلا جلا؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په تراويحو کښې د څلورو رکعتونو د نيت په تړلو سره د اولې قعدې په پاتې کيدو سره د مفتی به قول مطابق تراويح دوه رکعته ګڼل کيږي۔ په داسې حال کښې چه د ماسپښين په سنتو کښې د سجدهٔ سهو په کولو سره لمونځ مکمل ګرځي۔ ګواکه د ماسپښين د سُنتو حکم له تراويحو څخه جدا دی۔

لما فی الهندية: و لو صلی اربعاً بتسليمة و لم يقعد فی الثانية ففی الاستحسان لا تفسد هو اظهر الروايتين عن ابی حنيفة و ابی يوسف و اذا لم تفسد قال محمد بن الفضل تنوب الاربع عن تسليمة واحدة هو الصحيح. (الفتاوی الهندية ج١، ص١١٨، فصل فی التراويح)

و فی الهندية: و لو صلی الاربع قبل الظهر و لم يقعد علی رأس الركعتين جاز استحساناً. (الفتاوی الهندية ج١، ص١١٢، باب النوافل)

و فی الهندية: و منها القعدة الاولی حتی لو تركها يجب عليه السهو. (الفتاوی الهندية ج١، ص١٢٧، باب سجود السهو)

قال العلامة حسن بن منصور الشهير بقاضی خانؒ: اذا صلی الامام اربع ركعات بتسليمة واحدة و لم يقعد فی الثانية فی القياس تفسد صلٰوته و هو قول محمدؒ و زفرؒ يلزمه قضاء هٰذه التسليمة و هو رواية عن ابی حنيفة و فی الاستحسان هو اظهر الروايتين عن ابی حنيفة و ابی يوسف لا تفسد...... قال الفقيه ابو جعفر و الشيخ الامام ابو بكر محمد بن الفضل فی التراويح تنوب الاربع عن تسليمة واحدة. و كذا لو صلی الاربع قبل الظهر و لم يقعد علی رأس الركعتين جاز استحساناً. (الفتاوی القاضی خان علی هامش الهندية ج١، ص٢٣٩/٢٤٠، فصل فی التراويح)

قال العلامة قاضی خانؒ: اذا ترك القعدة الاولی من ذوات الاربع او الثلاثة يلزمه السهو و لو ترك فی التطوع لا تفسد صلٰوته فی قول ابی حنيفة و ابی يوسف رحمهما الله و يلزمه السهو. (الفتاوی القاضی خان علی هامش الهندية ج١، ص١٢١، باب سجود السهو)

## په ديرشم د رمضان کښې د شوال د مياشتې د راختو د احتمال په صورت کښې د تراويحو د ادا کولو حکم

**سوال:** زمونږ په علاقه کښې زياتره د رمضان ديرشمه د شوال اولنۍ ورځ وي۔ که چېرته صحيح شهادت په لاس را نه شي نو په همدې شپې کښې د تراويحو لمونځ بايد ادا شي او که نه؟ که چېرته ادا شي نو د معمول مطابق به ادا کيږي او که به د شپې په آخري برخې کښې ادا کيږي؟



**الجواب باسم ملهم الصواب:** تراويح د رمضان المبارك د مياشتې وظيفه ده، چه تر څو پورې د کوچني اختر حکم نه وي شوی تر هغو پورې به روژه او تراويح دواړه معمول به وي۔ له دې وجهې که چېرته د شوال د مياشتې احتمال هم وي نو تراويح به پخپل تاکلي وخت ادا کيږي۔ هو! که چېرته د شپې په آخري برخې کښې د مياشتې د ليدو خبر راشي نو تراويح په نفلو بدليږي۔

عن ابن عباسؓ قال قال رسول اللهﷺ لا تصوموا قبل رمضان صوموا لرؤيته و افطروا لرؤيته. (معارف السنن ج٥، ص٣٣٦، باب ما جاء ان الصوم لرؤية الهلال و الافطار)

و عن رجل ان اصحاب النبیﷺ قال اختلف الناس فی آخر يوم من رمضان فقدم اعرابيان فشهدا عند النبیﷺ با الله لاهل اهلال امس عشيه فامر رسول اللهﷺ الناس ان يفطروا زار خلف فی حديثه و ان يغدوا الی مصلاهم. (سنن ابی داؤد ج١، ص٣٢٠، باب شهادة رجلين علی رؤية الهلال شوال) و مثله فی رسائل الاركان ص٢٠٦، فصل يفترض علی المكلّفين الا يطلبوا هلال)

## د حنفي مذهبه خلکو لپاره په رمضان شريف کښې د تراويحو په جماعت سره د ادا کولو لپاره د مستقل امام د نيولو حکم

**سوال:** مونږ د روزګار او کاروبار په سلسله کښې په متحده عربي اماراتو کښې اوسيږو، د اماراتو خلك دولس رکعته تراويح کوي، که چېرته مونږ د لته د ځان لپاره په رمضان شريف کښې يو حنفي امام ونيسو او پخپل کور يا اُطاق کښې په جمعې سره د تراويحو د ادا کولو انتظام وکړو نو شرعاً به ئې څه حيثيت وي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته په قانوني توګه کوم ممانعت نه وي نو داسې کول صحيح بلکه بهتر دي۔

قال ابن عابدينؒ: و لو كان لكل مذهب امام كما فی زماننا فا لافضل الاقتداء با لموافق سواءٌ تقدم او تأخر علی ما استحسنه عامة المسلمين و عمل به جمهور المؤمنين من اهل بحرمين قدس و مصر و الشام و لا عبرة بمن شذ منهم. (رد المحتار ج١، ص٥٦٥، باب الامامة، مطلب اذا صلی الشافعی قبل الحنفی الخ)

## په تروايحو کښې د قرآنکريم د ختم حکم

**سوال:** په تراويحو کښې د قرآنکريم ختم شرعاً څه حکم لري؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په تراويحو کښې يو ځل د قرآنکريم ختم سُنت دی او له يو ځل څخه زيات افضل دی۔

قال العلامة الحصكفیؒ: و الختم مرة سنة و مرتين فضيلة و ثلاثا افضل. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج٢، ص٤٦، باب التراويح)

قال ابن نجيمؒ: و الجمهور علی ان السنة الختم مرة...... الخ. و مرتين فضيلة و ثلاث مرات فی كل عشرة مرة افضل. (البحر الرائق ج٢، ص٦٨) و مثله فی الهندية ج١، ص١١٧، الباب التاسع فی النوافل، فصل فی التراويح)

## په اتو رکعتونو تراویحو کښې د مسنون ختم قرآن حکم

**سوال:** په کوم قرائت باندې چه شل رکعته تراویح په بیړه بیړه ادا کیږي که چېرته هم هغه قرائت په اتو رکعتونو کښې په قراره قراره تلاوت شي نو آیا په دې سره به کفایت وشي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د قرآن د ختم سُنت خو به ادا شي لیکن د تراویحو سُنت نه ادا کیږي او هغه د شلو رکعتونو په ادا کولو سره ادا کیږي۔

قال ابن عبد الله بن عمر النسفیؒ: و سن فی رمضان عشرون رکعة بعد العشاء قبل الوتر و بعده بجماعة و الختم مرة بجلسة بعد کل اربع بقدرها. (کنز الدقائق علی هامش البحر الرائق ج۲، ص٦٦، فصل فی التراویح)

قال ابن عابدینؒ: تحت قوله عشرون رکعة هو قول الجمهور و علیه عمل الناس شرقاً و غرباً. (رد المحتار ج۲، ص٤٥، باب النوافل و التراویح) و مثله فی رسائل الارکان ص۱۳۸، فصل فی التراویح)

## د اتو رکعتونو تراویحو د ادا کولو حکم

**سوال:** آیا د اتو رکعتونو تراویحو ادا کوونکی فاسق او بدعتي دی او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** شل رکعته تراویح د امت د اجماع له مخې او د خلفاء راشدینو د مواظبت (همیشه والي) له مخې سنت مؤکد دي۔ لهذا بغیر له کوم شرعي عذر څخه شل رکعته پرېښودل او په ځای ئې اته رکعته ادا کول د ملامتی موجب دی په د اسې حال کښې چه د شلو رکعتونو منکر سړی ضال او مضل دی۔

لما قال العلامة ظفر احمد العثمانیؒ: فقیام رمضان بعشرین رکعة و الوتر هو السنة المؤکدة یضلل تارکها و یلام من نقص عنها. (اعلاء السنن ج۷، ص۷۲، کیفیة القرأة فی التراویح)

قال العلامة الحصکفیؒ: التراویح سنة مؤکدة لمواظبة الخلفاء الراشدین للرجال و النساء........ و هی عشرون رکعة. قال ابن عابدینؒ تحت عشرون هو قول الجمهور و علیه عمل الناس شرقاً و غرباً. (رد المحتار و الدر المختار ج۲، ص٤٣/٤٥، باب التراویح)

قال العلامة ابن عابدینؒ: تارکها یستوجب اساءة ای التضلیل و اللوم. (رد المحتار ج۱، ص٤٧٤، باب صفة الصلوٰة) و مثله فی الجوهرة النیرة ج۱، ص۱۱۷، باب قیام رمضان و منحة الخالق علی البحر الرائق ج۱، ص۳۰۲، باب صفة الصلوٰة)

## د قرآن د ختم سُنت والی له تراویحو سره خاص دی

**سوال:** ﴿الف﴾ زید او بکر دواړه د قرآن حافظان دي او دواړه غواړي چه په یوه جومات کښې په تراویحو کښې د قرآن کریم ختم وکړي۔ آیا د هغو لپاره دا صحیح ده چه په لومړیو لسو رکعتونو کښې زید خپل منزل (پاو باندې یوه سیپاره) تلاوت کړي او په پاتې لسو رکعتون کښې بکر خپل منزل تلاوت کړي، په دې ډول سره په یوه جومات کښې به د قرآن کریم دوه ختمونه وشي؟

﴿ب﴾ زید د تراویحو په لمانځه کښې قرآنکریم وایي په د اسې حال کښې چه بکر په فرضو او وترو کښې قرآن کریم تلاوت کول غواړي تر څو چه دوه ختمونه ادا شي۔ شرعاً په دغو دواړو صورتونو کښې کوم یو صورت صحیح دی؟



**الجواب باسم ملهم الصواب:** په صورت مسئوله کښې لومړی صورت جائز دی او دوهم صورت د سُنتو خلاف دی ځکه چه د قرآن کریم ختم په تراویحو کښې سُنت دی نه په فرضو او وترو کښې، په ځانګړې توګه دا حکم به په هغه صورت کښې وي چه د قرائت اوږدوالی د خلکو لپاره د تکلیف سبب وي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: و الختم مرة سنة و مرتین فضیلة و ثلاثا افضل. و قال ابن عابدینؒ: تحت هٰذه العبارة ای قرأة الختم فی صلوه التراویح سنة. و صححه فی الخانیة و غیرها و قال بعد اسطر لٰکن فی الخانیة و غیرها ما یفید تخصیص التراویح. (الدر المختار و رد المحتار ج۲، ص٤٦، مبحث صلوٰة التراویح)

قال العلامة قاضی خانؒ: و لو قرأ بعض القرآن فی سائر الصلوٰة بان کان القوم یملون من القرأة فی التراویح فلا بأس به لٰکن یکون لهم ثواب الصلوٰة لا ثواب الختم و قد ذکرنا ان السنة هی الختم فی التراویح. (الفتاوٰی القاضی خان علی هامش الهندیة ج۱، ص۳۳۸، فصل فی مقدار القرأة فی التراویح) و مثله فی رسائل الارکان ص۱۳۷، فصل فی التراویح)

## په تراویحو کښې څو ځله د قرآنکریم د ختمولو حکم

**سوال:** یو حافظ په یوه جومات کښې له یو ځل ختم کولو څخه وروسته په بل جومات کښې د دوهم ځل لپاره ختم کولی شي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** هو کولی ئې شي! ځکه چه د امام او مقتدیانو د تولو لپاره تراویح سنت دي، په دې کښې اقتداء المثل بالمثل دی۔ لهذا د مقتدیانو اقتداء صحیح ده۔ او دا خبره چه د دوهم ځل لپاره بل قوم ته د قرآن کریم ختم، نو د امام لپاره د فضیلت په درجه کښې دی او د مقتدیانو په حق کښې سُنت دی۔

برسیره پر دې له اقتداء څخه مخکښې قرأت نه په امام باندې او نه په مقتدیانو باندې لازم دی، له اقتداء څخه وروسته په امام باندې په اندازه د ما تجوز به الصلوٰة فرض دی او اوس چه امام څو مره قرائت هم ووایي تر دې پورې چه په دوه رکعتونو کښې ټول قرآن ختم کړي د امام او مقتدیانو سنت ادا کیږي۔ حاصل دا چه د حافظ په بل جومات کښې د قرآنکریم ختم کول د مقتدیانو په مسنون ختم باندې کوم اثر نه اچوي۔

و فی خزانة الروایت: قد روی بعض اهل العلم عن کنز الفتاوٰی رجل امّ قوماً فی التراویح و ختم فیها ثم امّ قوماً اخرین له ثواب الفضیلة و لهم ثواب الختم. (مجموعة الفتاوٰی ج۱، ص۲۲٤، باب التراویح)

قال الشیخ ظفر احمد العثمانیؒ: و سن ختم القرآن فیها ای مرة فی الشهر علی الصحیح و هو قول الاکثر. قال الطحطاوی و مرتین فضیلة و ثلاثة فی کل عشرة مرة افضل آه. قلت و الاطلاق یدل علی فضیلة الختم ثلاثا مطلقاً سواء کان فی مسجد واحد او فی ثلاث مساجد فی کل مسجد مرّة. (امداد الاحکام ج۱، ص٦۲۰، باب التراویح) و مثله فی کفایت المفتی ج۳، ص۳٦٥، باب التراویح)

## د تـــــراویحو د دوه رکعتونو په فـــــاسیدو سره مسنون ختم نه اداکیـــــږي

**سوال:** که چېرته یو سړی په تراویحو کښې قرآنکریم تلاوت کاوه او په دوه رکعتونو کښې ئې د قرآنکریم د معتد به برخې په تلاوت کولو سره ئې لمونځ فاسد شو چه له وجهې ئې د بیا لپاره ددې دوه رکعتونو اداکول پرې لازم شو. نو آیا په دغه فاسد لمانځه کښې تلاوت شوي آیتونه به بیرته وایي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په فاسد شوي لمانځه کښې چه کوم قرائت شوی وي هغه د قرآنکریم په ختم کښې اعتبار نه لري۔ د هغه لپاره په کار دي چه هغه قرائت د دوهم ځل لپاره ووایي او که نه نو ختم به ئې ناقص وي۔

و فی الهندية: و اذا فسد الشفع و قد قرأ فيه لا يعتد بما قرأ فيه و يعيد القرأة ليحصل له الختم فی الصلوة الجائزة. قال بعضهم يعتد بها كذا فی الجوهرة. (الفتاوی الهندية ج۱، ص۱۱۸، فصل فی التراويح)

قال الشيخ الاسلام ابو بكر الجدار: و اذا فسد الشفع و قد قرأ فيه لا يعتمد بما قرأ فيه و يعيد القرأة ليحصل له الختم فی الصلوة الجائزة قال بعضهم يعتد بها. (الجوهرة النيرة ج۱، ص۱۱۸، باب قيام رمضان)

## د قرآنکریم په ختم کښې بسم الله په جهر سره د لوستلو حکم

**سوال:** په تراویحو کښې د قرآنکریم د ختم په کوم سورت باندې په جهر سره د بسم الله د لوستلو حکم څه دی؟ او که د ټولو سورتونو په ابتداء کښې اخفاء ضروري ده؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د احنافو په نزد د سوره النمل د بسم الله له آیت څخه پرته بسم الله له ټول قرآنکریم څخه مستقل آیت دی کوم چه د سورتونو تر منځ د فاصلې او فرق لپاره نازله شوې ده او په ځانګړې توګه د هیڅ یوه سورت جزء نه دی۔ لیکن له ټول قرآن څخه د نفس یو آیت د کیدو له وجهې په یو ځای کښې بسم الله په جهر سره لوستل ضروري دي۔ تر څو چه د قرآنکریم کومه حصه له جهر څخه پرته پاتې نه شي۔ بنا پر دې صورت که چېرته په هیڅ یوه سورت باندې بسم الله په جهر سره و نه لولي نو د سامعینو په حق کښې د قرآن کریم د ختم یو آیت به ناقص پاتې شي۔ هو! که چېرته بسم الله د هر سورت په سر کښې په پټه ولوستل شي نو کوم حرج پکښې نشته۔

قال العلامة الحصكفی: (لا) تسن (بين الفاتحة و السورة مطلقاً) و لو سرية و لا تكره اتفاقاً و ما صححه الزاهدی من وجوبها ضعفه فی البحر (و هی آية) واحدة (من القرآن) كله (انزلت للفصل بين السور) فما فی النمل بعض آية اجماعاً (و ليست من الفاتحة و لا من كل سورة) فی الاصح. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۱، ص۳۶۲، مطلب قرأة البسملة بين الفاتحة و السورة حسن)

قال الامام ابو بكر الجصاص الرازی: فالاولی ان تكون آية تامة من القرآن من غير سورة النمل لان التی فی سورة النمل ليست باية تامة و الدليل علی انها آية تامة حديث ابن ابی مليكة عن ام سلمةؓ ان رسول اللهﷺ قرأ فی الصلوة



فعدّها آية. (احكام القرآن ج۱، ص۱۲، فصل اما القول فی انها آية او ليست آية)

و قال ايضاً و ان قرأها مع كل سورة فحسن. (احكام القرآن ج۱، ص۱٤) و مثله فی معارف السنن ج۲، ص۲۶۲، باب ما جاء ...... الجهر ببسم الله الخ

## لـــــه رمضان المبارك څخه پرته په نورو میاشتو کښې په جمعې سره د نفلو په لمانځه کښې د قـــــرآنکریم د ختمولو حکم

**سوال:** له رمضان المبارك څخه پرته په نورو میاشتو کښې په باقاعده توګه د نفلو په لمانځه کښې شبینه د قرآنکریم د ختمولو حکم څه دی؟ او په داسې حالت کښې د رمضان شریف غونډې وتر په جمعې سره اداکول جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له رمضان المبارك څخه پرته په نورو میاشتو کښې د نفلو د لمانځه لپاره د باقاعده جماعت اهتمام زمونږ د مسلك (احنافو) له قواعدو سره موافقت نه لري۔ په داسې حالت کښې د قرآنکریم د ختم لپاره د خلکو د یو ځای کولو په صورت کښې د تراویحو غونډې په نفلو کښې د قرآنکریم ختم کول له کراهت څخه خالي نه دی۔ هو! که چېرته په انفرادي توګه یو څوك په نفلو کښې د قرآنکریم د تلاوت اهتمام وکړي یا پرته له کوم اهتمام او تداعي څخه د نفلو په لمانځه کښې یو یا دوه کسان په کوم حافظ پسې اقتداء وکړي نو بیا څه پروا نه لري۔ په داسې حال کښې چه د وترو لمونځ له رمضان څخه پرته په نورو وختونو کښې په جمعې سره علی سبیل التداعي اداکول مکروه دي۔ البته که چېرته یو یا دوه کسان پرته له کوم التزام یا تداعي څخه وتر په جمعې سره اداکړي نو بیا هم څه پروا نه لري۔

قال ابن نجيم المصریؒ: و لو صلوا الوتر بجماعة فی غير رمضان فهو صحيح مكروه كالتطوع فی غير رمضان بجماعة و قيده فی الكافی بان يكون علی سبيل التداعی. اما لو اقتدیٰ واحد بواحد او اثنان بواحد لا يكره. و اذا اقتدیٰ ثلاثة بواحد اختلفوا فيه و ان اقتدیٰ اربعة بواحد كره اتفاقاً. (البحر الرائق ج۲، ص۷۰، باب الوتر و النوافل)

قال العلامة الحصكفیؒ: و لا يصلی الوتر و لا التطوع بجماعة خارج رمضان. ای يكره ذلك لو علی سبيل التداعی بان يقتدی اربعة بواحدٍ. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص٤۸، بحث صلوة التراويح) و مثله فی فتح القدير ج۱، ص٤۰۹، فصل فی قيام رمضان.

## تراویح په جمعې سره اداکول سُنت کفایه دی

**سوال:** جناب مفتي صاحب! د تراویحو لمونځ باید ځانته اداشي او که په جمعې سره؟ که چېرته یو څوك ئې په جمعې سره ادا نه کړي نو حکم به ئې څه وي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د تراویحو لمونځ پخپل ذات کښې سُنت مؤکد دی لیکن له جمعې سره اداکول ئې سُنت کفایه دی۔ که چېرته د کلي یو څو کسان تراویح په جمعې سره اداکړي نو د ټولو غاړې پرې خلاصیږي او که نه نو ټول به ګنهګار وي۔ که چېرته یو څوك په جلا توګه بغیر له جمعې څخه د تراویحو لمونځ اداکړي نو سُنت خو ئې اداکیږي لیکن د جماعت له ثواب

څخه به محروم اوبې برخې وي.

قال العلامة الحصكفيؒ: و الجماعة فيها سُنة على الكفاية فى الاصح فلو تركها اهل مسجد اثموا الا لو ترك بعضهم و كل ما شرع بجماعة فا لمسجد فيه افضل. (الدر المختار على صدر رد المحتار على صدر رد المحتار ج۲، ص۴۵، باب النوافل)

قال العلامة ابن عابدينؒ: و الجماعة فيها سنة على الكفاية الخ افاد ان اصل التراويح سنة عين فلو تركها واحد كره بخلاف صلاتها با لجماعة فانها سنة كفاية فلو تركها الكل اساء وا اما لو تخلف عنها رجل من افراد الناس و صلّى فى بيته فقد ترك الفضيلة. (رد المحتار ج۲، ص۴۵، باب النوافل) و مثله فى البحر الرائق ج۲، ص۶۸، باب النوافل)

## تراويح اته رکعاته دي او که شل رکعاته؟

**سوال:** څه فرمايي د دين علماء کرام د تراويحو د مقدار په باره کښې چه آيا اته رکعته دي او که شل رکعته؟ ځينې غير مقلدين د عائشه رضى الله عنها د حديث په بناء باندې کوم چه په بخاري شريف او د اسې نورو کښې مروي دی، تراويح اته رکعته بولي او له شلو رکعتونو څخه انکار کوي، د قرآن او حديثو په رڼا کښې د ا مسئله څرګنده کړی؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** څرګنده دې وي چه د رمضان المبارك په مياشت کښې د تراويحو لمونځ ادا کول سنت مؤكد دي.

كما صرح به فى الهندية و شرح التنوير و مراقى الفلاح و الجوهرة من كتب الحنفية. و فى الروضه و التوشيح من كتب الشافعية، و الشرح الكبير من كتب المالكية، و الروض و نيل المآرب من كتب الحنابلة.

البته د تراويحو په تعداد کښې اختلاف دی. د امام ابو حنيفه او امام شافعي رحمهما الله په نزد ئې تعداد شل رکعاته دی.

كما صرح به فى البدائع و غيره من كتب الحنفية و فى المجموع من كتب الشافعية و هى رواية عن مالك كما فى شرح المهذب و اختار ابو عمر ابن عبد البر المالكى كما فى شرح التقريب و ذكره ابن رشد فى البداية عن احمد و رواه ابن قدامة فى المغنى عن احمد.

او ابن قاسم په مدَوَنه نومي کتاب کښې له امام مالكؒ څخه روايت کوي چه تراويح ۳۶ رکعاته دي او وتر درې رکعاته دي. او امام ترمذي له امام احمدؒ څخه روايت کوي چه هغه د کوم ځانګړي تعداد قائل نه دی او د هغه په نزد په دې کښې توسع دی. اته رکعاته، شل رکعاته، شپږ ديرش رکعته ټول جائز دي. او د حنفيه ووّ له مشائخو څخه علامه ابن الهمامؒ فرمايي چه اته رکعته د رسول الله ﷺ د سُنت والي له وجهې مؤكد دي او شل رکعته د خلفاء راشدينوؓ د سُنت والي له وجهې سُنت زائده دي. په هر حال په ائمه اربعه وو او د هغو په متبعينو کښې هيڅا هم له اتو رکعتونو څخه زياتو مثلا شلو رکعتونو ته بدعت يا مکروه نه دي ويلي.

البته ځينو غير مقلدينو اته رکعاته تراويح مسنون بللي دي او له دې څخه ئې له زياتو څخه انکار کړی دی او د ا مسئله ئې د طلاق ثلاثه لره ئې د يوه طلاق د ګڼلو د مسئلې غوندې د بې علمه او کم علمه خلکو د ښکار لومه ګرځولې ده. اعاذنا الله من شرور الفرق الشاذة المخالفة عن السواد الاعظم.



د ا غير مقلدين د حضرت عائشه رضى الله تعالى له دې حديث څخه تمسك کوي چه:

هو ما رواه البخارى ما كان رسول الله ﷺ يزيد فى رمضان و لا فى غيره على احدىٰ عشرة ركعة. (بخارى ج۱، ص۱۵۴، كتاب التهجد)

(يعني رسول الله ﷺ نه په رمضان شريف کښې او نه په غير رمضان کښې له يوولسو رکعتونو څخه زيات کړي دي.

همد ارنګه د ا خلك د حضرت جابر له دې حديث څخه حجت نيسي چه:

و هو ما رواه ابن خزيمة و ابن حبان انه ﷺ قام بهم فى رمضان فصلى ثمانى ركعات و وتر.

(يعني نبي کريم ﷺ له صحابه ووّ سره په رمضان شريف کښې قيام وکړ او اته رکعاته لمونځ ئې ادا کړ او وتر ئې هم ادا کړ)

قال النيمویؒ مداره على عيسىٰ بن جارية قال الذهبىؒ قال ابن معين عنده مناكير. و قال النسائىؒ منكر الحديث. و عنه ايضاً متروك و قال ابو زرعة لا بأس به. و قال فى الخلاصة و ثقة ابن حبان. و قال ابو داؤد منكر الحديث. انتهٰى.

همدارنګه د ا خلك د سائب بن يزيد په حديث باندې هم منګولې لګوي:

و هو ما رواه مالك فى المؤطا انه قال امر عمر بن الخطاب ابى بكر بن كعب و تميما الدارمى ان يقوم للناس باحدىٰ عشرة ركعة.

او جمهور علماء د حضرت ابن عباس رضى الله تعالى عنهما له دې حديث څخه استدلال کوي چه:

و هو ما رواه ابن ابى شية و الطبرانى و البيهقى انهٗ عليه الصلوٰة و السلام يصلّى فى رمضان عشرين ركعة سوى الوتر انتهٰى.

(يعني حضور اقدس ﷺ په رمضان المبارك کښې له وترو څخه بغير شل رکعته لمونځ کاوه).

قال الزيلعىؒ هو معلول بابى شبية و هو متفق على ضعفه.

او د دې حديث د معلول والي تر څنګ له دې څخه استدلال صحيح دی ځکه چه امت د دې حديث تلقي کړی دی. او امام ابن قيمؒ او امام سيوطيؒ او د اسې نورو د ا تصريح کړې ده چه کوم حديث چه امت تلقي کړي نو هغه به صحيح ګڼل کيږي اګر که هغه حديث د سند له مخې غير صحيح وي. همد ارنګه دې حديث ته د خلفاء راشدينو له تعامل څخه عظيم تائيد او قوت حاصل شوی دی.

همـــــــد ارنګه جمهور علماء د امام بيهقي د "سنن کبـــــــرىٰ" له حديث څخه استدلال کوي چه:

و هو ما رواه يزيد بن خصيفة عن السائب بن يزيد قال كانوا يقومون على عهد عمر بن الخطاب فى رمضان عشرين ركعة و فى عهد عثمان و على.(۱)

---

(۱) د حضرت عمر فاروقؓ په زمانې کښې لومړی دیارلس رکعتونه ادا کيدل بيا حضرت عمرؓ د درويشتو رکعتونو د ادا کول حکم صادر کړ ۲۰ تراويح او ۳ وتر. وروسته په همدې باندې استقرار وشو.

له دې حدیث څخه په واضحه توګه ثابتیږي چه د دریو راشدینو خلفاوو په دور کښې په شلو رکعتونو باندې استقرار راغلی دی او په همدې باندې تعامل او توارث راغلی دی او د رسول اللهﷺ په بناء لکه څرنګه چه د علیکم بسنتي و سنة الخلفاء الراشدین المهدیین (رواه ابن ماجة وغیره) د سُنتو اتباع ضروري ده همدارنګه د خلفاء راشدینو د سُنتو اتباع هم ضروري ده او له دې څخه اعراض او پرې اعتراض د رسول اللهﷺ له حدیثو څخه اعراض او په هغه باندې اعتراض دی۔ اعاذنا الله تعالی منه.

همدارنګه د خلفاء راشدینو دا سُنت هغه سُنت دي چه ادراک ئې په عقل او اجتهاد سره نه شي کیدلی ځکه چه د کوم شي تعداد او اندازه په فکر او رأیې سره نه شي تاکل کیدلی نو داسې سُنت په حقیقت کښې د رسولﷺ سُنت وي۔

څرګنده دې وي چه اهل ظاهرو دا حدیث د سند او متن له مخې معلول ګڼلی دی ځکه چه امام آجريؒ له امام ابو داودؒ څخه روایت کوي چه امام احمدؒ یزید بن خصیفه ته منکر الحدیث ویلی دی، همدارنګه اهل ظاهر وایي چه دا حدیث د متن له مخې مضطرب دی۔ په بعضو روایتونو کښې د یوولسو رکعتونو ادا کول هم راغلي دي۔ کما رواه مالك في المؤطاء۔ همدارنګه دا حدیث د حضرت عائشةؓ له حدیث سره ټکر دی کوم چه له دې حدیث څخه قوي دی۔

جمهورو علماوو اهل ظاهرو ته د دغو اعتراضاتو غابښ ماتوونکي ځوابونه ورکړي دي۔ لومړی دا چه ائمه وو د دې حدیث تلقي کړې دی او په دې حدیث ئې منګولې لګولې دي۔ او خطیبؒ پخپل کتاب الفقیه و التفقه کښې او ابن قیم په اعلام الموقعین نومي کتاب کښې او علامه سیوطيؒ په تدریب الراوي کښې او ابن عبد البرؒ په استذکار کښې او د دې فن د ځینو نورو خلکو په تالیفاتو کښې دا قاعده لیکل شوې ده چه د کوم حدیث چه اهل علم تلقي وکړي نو دا د هغه حدیث په صحت باندې یوه عادله ګواهي ده۔

دویم دا چه یزید بن خصیفه یو مشهور تابعي دی او له ده څخه امام مالكؒ، امام بخاريؒ، امام مسلمؒ او داسې نورو روایت کړی دی۔ ابن حبانؒ ده لره په ثقاتو کښې ذکر کړی دی۔ یحی بن معینؒ، ابو حاتمؒ، نسائيؒ، ابن سعد او امام احمد بن حنبلؒ هم په ثقه وو کښې شمار کړی دی۔ کما فی تهذیب التهذیب و تهذیب الکمال للمزی، و الهدی الساری او حافظ ابن حجرؒ په الهدی الساری کښې د آجري د دې روایت دا ځواب ورکړی دی چه امام احمد بن حنبلؒ د اثرم په روایت کښې ده ته ثقه ویلي دي او دا ئې ویلي دي چه امام احمدؒ هغه راوي ته منکر الحدیث وایي چه پخپل اقران کښې د کوم حدیث په روایت کولو کښې متفرد وي۔ او داسې مسلمه قاعده ده چه د ثقه راوي تفرد د قبول وړ وي تر څو پورې چه په دلیل سره ئې غلط والی ثابت شوی نه وي۔ په دې بناء باندې د یزید بن خصیفه حدیث به مقبول وي۔

او د اضطراب د دعوې ځواب دا دی چه ابن عبد البر او ابو بکر بن العربي د احدیٰ عشر روایت د امام مالكؒ وهم ګڼلی دی لیکن لکه څرنګه چه عبد العزیز بن محمد او یحي بن



سعید القطان د امام مالكؒ متابعین دي۔ کما لا یخفی علی من راجع الی سنن سعید بن منصور و مصنف ابن ابی شیبة. لهذا د امام مالكؒ په وهم کښې لویدل د نه منلو وړ خبره ده۔

او حافظ ابن حجرؒ دې اختلاف لره د اوقاتو په اختلاف باندې محمول کړی دی یعنې کله چه به ئې اوږد قرائت کاوه نو ئې اته رکعاته کول او چه کله ئې لنډ قرائت کاوه نو ئې شل رکعاته کول۔ کما في فتح الباري۔ او ځینو ائمه وو دا اختلاف په ترویج باندې محمول کړی دی۔ لومړی به اته یا دولس رکعتونه کیدل او په آخر کښې په شلو رکعتونو باندې استقرار وشو۔ کما قال فی الشعرانی فی کشف الغمة کانوا یصلونها فی اول زمان عمر بثلث عشر رکعة ثم عمر امر بفعلها ثلاثا و عشرین رکعة، ثلاث لها وتر و استقر الامر علی ذٰلك.

قاله النیموی کما استقر الامر علی اربع تکبیرات الجنائز و کما استقر الامر علی القرأة فی خلافة عثمان رضی الله تعالی عنه کما فی الاوجز. او دا مسلمه قاعده ده چه په ترجیح او تطبیق سره اضطراب ساقطیږي۔

او د اهل ظاهرو دا اعتراض چه د یزید حدیث د حضرت عائشةؓ له حدیث سره ټکر دی کوم چه یو قوي حدیث دی۔ ځواب ئې دا دی چه د حضرت عائشةؓ او یزید په حدیث کښې هیڅ تعارض او ټکر نشته۔ ځکه چه د حضرت عائشةؓ په حدیث کښې له اتو رکعاتو څخه د تهجد لمونځ مراد دی نه د تراویحو او رمضان قیام۔ ځکه چه په غیر رمضان کښې تراویح نه اداکیږي او د تحقیق له مخې تراویح او تهجد ځان ځانته حقیقتونه دي او که چېرته دا خبره تسلیم شي چه تراویح او تهجد ځان ځانته لمونځونه نه دي نو اهل ظاهرو ته ویل کیږي چه د حضرت عائشةؓ په حدیث کښې هم اختلاف دی ځکه چه امام بخاريؒ هم په صحیح البخاري کښې د "باب ما یقرء فی رکعتی الفجر" لاندې له حضرت عائشةؓ څخه د دیارلسو رکعتونو حدیث روایت کړی دی۔

و لفظه کان رسول اللهﷺ یصلّی با للیل ثلاث عشرة رکعة ثم یصلّی اذا سمع النداء با لصبح رکعتین.

## اهل ظاهر د دې اختلاف څه ځواب ورکوي؟

که چېرته اهل ظاهر دا ځواب ورکړي چه د احدیٰ عشر حدیث په غالب باندې محمول دی او زیاتوالی په ځینو وختونو باندې محمول دی نو د اهل په اتو رکعتونو باندې جمود کیدل باطل شو او پخپلې تورې باندې مړه شول۔ او که چېرته اهل له دې تطبیق څخه اعراض وکړي نو د اختلاف له وجهې د حضرت عائشةؓ دواړه روایتونه ساقط شول او د یزید بن خصیفه حدیث به له کوم تعارض څخه پاتې شو او واجب العمل وګرځید۔

څرګنده دې وي چه د جمهورو مسلك د نظر او شواهدو له مخې هم قوي دی ځکه چه په شپه او ورځ کښې اعتقادي او عملي فرائض هم شل رکعته دي نو مناسبه دا ده چه تراویح هم کوم چه د فرائضو مکملات دي شل رکعته دې وي لکه څرنګه چه مخکښیني او وروستني سنتونه هم شل رکعته دي۔

د اهل ظاهر د دلائلو ځوابونه دا دي چه حضرت عائشةؓ حدیث په تهجدو باندې محمول دی نه په تراویحو باندې، همدارنګه په غالب باندې محمول دی نه په همیشه والي

باندې۔ او که نه وي نو د حضرت عائشةؓ روایتونه به سره تکر شي، بلکه امام احمد په زیادات مسند کښې له حضرت علي رضی الله عنه څخه په حسنو اسنادو سره روایت کړی دی چه نبي کریم ﷺ به شپاړس رکعتونه کول، همدارنګه د حضرت عائشةؓ دا حدیث په ابتداء باندې محمول دی په داسې حال کښې چه په شلو رکعتونو باندې استقرار نه وو شوی۔

او د حضرت جابرؓ د حدیث حافظ ابن حجرؒ دا ځواب ورکړی دی چه: لکنه فعل جزئی فی لیلة واحدة لا یدل علی نفی الزیادة تلك اللیلة.

او دویم ځواب ئې دا دی چه دا په ابتداء الامر باندې محمول دی: و قد مر سابقا جواب حدیث السائب.

څرګنده دې وي چه له ابن الهمامؒ سره نورو مشائخو اتفاق نه دی کړی څکه چه د ابن عباس رضی الله عنهما په روایت کښې شل رکعته ادا کول د رسول ﷺ له فعل څخه ثابت دی۔ همدارنګه د علیکم بسنتی و سنة خلفاء الراشدین په حدیث کښې د علیکم لفظ د رسول الله ﷺ او خلفاء راشدینو سنت ته یو شان متوجه دی او په دواړو کښې فرق کول زمونږ له فکر او عقل څخه پورته خبره ده۔ همدارنګه د خلفاوو سُنت اګر که په ظاهره موقوف دی لیکن په حقیقت کښې مرفوع دی۔ بعدمه کونه مدرکا با لرأی و القیاس و هو الموفق و الهادی.

و صلی الله تعالی علی سیّدنا خیر
خلقه محمّد و آله و اصحابه
و اتباعه اجمعین.



# باب ادراك الفریضه

## (په جماعت کښې د شریکیدو احکام او مسئلې)

### یوائې د اقامت په اوریدو سره لمونځ مه ماتوی

**سوال:** یوه سړي د نفلو د نیت په کولو سره په لمانځه شروع کړې وه چه مؤذن د جماعت د لمانځه اقامت شروع کړ۔ آیا نوموړی سړی به نفل لمونځ ماتوي په جماعت کښې به شامليږي او که خپل نفل لمونځ به پوره کوي؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په جماعت کښې شریکیدل واجب دي له دې وجهې متنفل باید د جماعت د فوت کیدو له وجهې خپل نفل لمونځ مات کړي او په جماعت کښې شامل شي۔ هو! یوائې د مؤذن د اقامت د اوریدو په صورت کښې د دوو رکعتونو له پوره کولو څخه مخکښې دې لمونځ نه ماتوي۔

قال العلامة الحصکفیؒ: شرع فیها اداء........ منفرداً ثم اقیمت ای شرع فی فریضة لا اقامة المؤذن و لا الشروع فی مکان و هو فی غیره یقطعها لعذر احراز الجماعة. (الدر المختار علی صدر رد المحتار ج۲، ص۵۰، باب ادراك الفریضة)

قال العلامة حسن بن عمار الشرنبلالیؒ: اذا شرع المصلّی فی اداء الفرض او قضائه منفرداً او فی نفل........ فاقیمت الجماعة فی محل ادائه...... قطع بتسلیمة قائما و بعده اقتدیٰ علی الصحیح. (مراقی الفلاح علی صدر الطحطاوی ص۳٦۵، باب النوافل)

### پـــــه جماعت کښې د شریکیدو په هیله د سهـــــار د سنتو د اداکولو حکم

**سوال:** د سهار جمعه ولاړه وه او د جومات په سرای کښې د سنتو د اداکولو لپاره کوم مستقل ځای نه وو په داسې حال کښې چه د امام قرائت هم اوریدل کیده نو په داسې حالت کښې د سُنتو اداکول ضروري دي او که له جمعې سره شریکیدل او د سُنتو پریښودل؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د سهار د سُنتو په حدیثو کښې ډیر تاکید راغلی دی۔ رسول الله ﷺ فرمایلي دي: عن ابی هریرة رضی الله عنه قال قال رسول الله ﷺ لا تدعوهما ان طردتکم الخیل. (ابو داؤد ج۱، ص۱۸٦، فی باب فی تخفیفهما)

د دې لپاره تر څو چه کیدلی شي د سُنتو د اداکولو کوشش وکړی او په جماعت کښې تر شریکیدلو مخکښې په کوم جلا ځای کښې سُنت اداکړی۔ تر څو پورې چه په جماعت کښې د دوهم رکعت د رکوع د پیدا کولو امکان وي نو سُنت مه پریږدی اګر که ځینو د التحیات د پیدا کولو د ممکن والي قول هم کړی دی په داسې حال کښې چه د ابن الهمامؒ د قول مطابق تر سلام

څخه مخکښې د جمعې په لمانځه کښې د شريکيدو اميد وي نو تر هغو پورې بايد سُنت ادا شي۔ البته که چېرته په جومات کښې د ننه ځای نه وي نو دروازې ته نژدې دې ادا شي۔

قال العلامة الحصكفیؒ: و اذا خاف فوت ركعتى الفجر لاشتغاله بسنتها تركها لكون الجماعة اكمل. و الا بان رجاء ادراك ركعة فى ظاهر المذهب و قيل التشهد. و اعتمده المصنف و الشرنبلالى تبعاً للبحر لكن ضعفه فى النهر لا يتركها بل يصليها عند باب المسجد ان وجد مكاناً و الا تركها. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۲، ص۵۶، باب ادراك الفريضة، مطلب هل الاساءة دون الكراهة الخ)

قال برهان الدين المرغينانیؒ: و من انتهى الى الامام فى صلٰوة الفجر و هو لم يصل ركعتى الفجر ان خشى ان تفوته ركعة و يدرك الاخرى يصلى ركعتى الفجر عند باب المسجد ثم يدخل لانه امكنه الجمع بين الفضيلتين و ان خشى فوتهما دخل مع الامام لان ثواب الجماعة اعظم و الوعيد با لترك الزم بخلاف سنة الظهر الخ. (الهداية على صدر فتح القدير ج۱، ص۴۱۴، باب ادراك الفريضة)

## د سهار د سُنتو د قضايي حکم

**سوال:** که چېرته د سهار سُنت د فرضو له وجهې فوت شي نو له فرضو څخه وروسته ئې قضايي بايد را وګرځي او که د لمر تر ختلو وروسته؟ له ځينو علماوو څخه مو اوريدلي دي چه با لکل ئې قضايي نشته؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د سهار د سُنتو اهميت او تاکيد له ګنو روايتونو څخه ثابت دی، بهتره دا ده چه تر څو کيدلی شي له فرضو څخه مخکښې بايد ادا شي۔ البته که چېرته د مجبوری، په صورت کښې له چا څخه پاتې شي نو له فرضو څخه وروسته د لمر تر ختلو پورې ئې د احنافو علماوو په اتفاق سره قضايي نشته۔ البته د لمر تر ختلو وروسته پکښې اختلاف دی۔ د امام ابو حنيفه په نزد ئې قضائي نشته په داسې حال کښې چه د امام محمدؒ په نزد ئې د نفلو په حکم کښې قضايي را ګرځول افضل دي۔ او که له فرضو سره يو ځای قضاء شوي وي نو له فرضو سره ئې يو ځای د لمر تر ختلو وروسته قضائي را ګرځول کيږي۔

قال ابن نجيم المصریؒ: لم تقض سنة الفجر الا اذا فاتت مع الفرض فتقضٰى تبعاً للفرض سواءٌ قضاها مع الجماعة او وحده لان الاصل فى السنة ان لا تقضٰى لاختصاص القضاء با لواجب.

و الحديث ورد فى قضائها تبعاً للفرض فى غداة ليلة التعريس فبقى ما وراء ه على الاصل. فافاد المصنف انها لا تقضٰى قبل طلوع الشمس اصلاً و لا بعد الطلوع اذا كان قد ادى الفرض و شمل كلامه ما اذا قضاهما بعد الزوال او قبله و لا خلاف فى الثانى و اختلف المشائخ فى الاوّل على قولهما و الصحيح كما فى غاية البيان انها لا تقضٰى تبعاً. لان النص ورد بقضائها فى الوقت المهمل بخلاف القياس و ما ورد على خلاف القياس فغيره عليه لا يقاس. (البحر الرائق ج۲، ص۷۴، باب ادراك الفريضة)

قال العلامة الحصكفیؒ: و لا يقضيها (اى سنة الفجر) الا بطريق التبعية لقضاء فرضها قبل الزوال لا بعده فى



الاصح لورود الخبر بقضائها فى الوقت المهمل بخلاف القياس فغيره عليه بقاس. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۲، ص۵۷، باب ادراك الفريضة)

## د ماسپښين د څلورو رکعتونو سنتو د پاتې کيدلو په صورت کښې له آخري دوه رکعتونو سنتو سره د ترتيب حکم

**سوال:** که چېرته له يو چا څخه د ماسپښين څلور رکعته سُنت فوت شي نو د فرضو له ادا کولو څخه وروسته د دوه رکعتو سُنتو د ادا کولو په وخت کښې به ترتيب څرنګه وي؟ آيا اول به څلور رکعته ادا کوي او که آخري دوه رکعته؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په جواز کښې دواړه صورتونه برابر دي البته په افضليت کښې اختلاف دی۔ د علامه ابن عابدين رحمه الله تحقيق ته په کتو سره بايد لومړی دوه رکعته ادا شي ځکه چه د څلورو رکعتو سُنتو د فوت کيدو په وجه دوه رکعته خو دې کم تر کمه پخپل ځای باندې پاتې شي۔ او که نه وي نو په بل صورت کښې به دواړه سُنتونه پخپل ځای باندې نه پاتې کيږي۔

قال العلامة الحصكفیؒ: ثم ياتى بها (اى سنة الظهر القبلية) على انها سنة فى وقته (اى الظهر) قبل شفعه عند محمدؒ و به يفتى.

قال ابن عابدينؒ: تحت هٰذه العبارة اقول و عليه المتون لٰكن راجح فى الفتح تقديم الركعتين قال فى الامداد و فى فتاوى العتابى انه المختار و فى مبسوط شيخ الاسلام انه الاصح لحديث عائشه ان النبیﷺ كان اذا فاته الاربع قبل الظهر يصليهن بعد الركعتين و هو قول ابى حنيفةؒ كذا فى جامع قاضى خان. (الدر المختار و رد المحتار ج۲، ص۵۸، باب ادراك الفريضة)

قال ابن نجيم المصریؒ: و قضى التى قبل الظهر فى وقته قبل شفعه بيان لشيئين احدهما القضاء و الثانى محله اما الاوّل ففيه اختلاف و الصحيح انها تقضٰى كما ذكره قاضى فى شرحه مستدلاً بما عن عائشةؓ ان النبیﷺ كان اذا فاتته الاربع قبل الظهر قضاهنّ بعده. و ظاهر كلام المصنف انها سنة لا نفل مطلق. و ذكر قاضى خان انه اذا قضاها فهى لا تكون سنة عند ابى حنيفةؒ و عندهما سُنة و تبعه الشارح. و تعقبه فى فتح القدير بانه من تصرّف المصنفين فان المذكور من وضع المسئلة الاتفاق على قضاء الاربع و انما الاختلاف فى تقديمها او تاخيرها. و الاتفاق علٰى انها تقضٰى اتفاق على وقوعها سنة الٰى آخر ما ذكره. و اما الثانى فاختلف فيه النقل عن الشيخين فذكر فى الجامع الصغير للحسامى ان ابا يوسفؒ يقدم الركعتين و محمدؒ يؤخرهما. و فى المنظومة و شروحها على العكس. و فى غاية البيان و يحتمل ان يكون عن كل واحد من الامامين روايتان. و رجح فى فتح القدير تقديم الركعتين لان الاربع فاتت عن الموضع المسنون. فلا يفوت الركعتين عن موضعها قصداً بلا ضرورة. (البحر الرائق ج۲، ص۷۵، باب ادراك الفريضة)

## د جُمعې د ورځې له دوه رکعته فرضو څخه مخکښې د څلورو رکعتونو سُنتو حکم

**سوال:** د جُمعې تر لمانځه مخکښې د څلورو رکعتونو سُنتو د پاتې کیدو په صورت کښې د جُمعې د لمانځه تر اداکولو وروسته د فوت شوي سُنتو د قضایي حکم څه دی؟ اوریدلي مو دي چه ځینې خلك د دې قضایي قائل دي او ځینې ئې بیا نه مني۔ د شریعت له مخې مفتٰی بهٖ قول معلوم کړی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په دې مسئله کښې د ځینو فقهاوو رأیه دا ده چه دا څلور رکعته سُنت د جُمعې له فرضو نه وروسته باید را وګرځول شي۔ قال ابن نجیم المصریؒ: و حکم الاربع قبل الجمعة کا لاربع قبل الظهر. (البحر الرائق ج۲، ص۷۵) لیکن ځینې نور فقهاء کرام وایي چه دا څلور رکعته سُنت کوم چه تر فرضو مخکښې دي چه کله له وخت څخه پاتې شي نو له فرضو څخه وروسته نه را ګرځي۔ ابن عابدینؒ همدې خبرې ته ترجیح ورکړې ده ځکه چه د ظهر د سُنتو په اړه د حضرت عائشةؓ روایت موجود دی۔ په دې بنا باندې د ماسپښین مخکښیني سُنت تر فرضو وروسته را ګرځي او د جُمعې د ورځې د مخکښیني سُنتو په اړه یو ځای هم په روایتونو کښې نه دي راغلي چه د جُمعې تر فرضو وروسته دې را وګرځول شي۔ او په سُنتو کښې اصل دا دی چه قضاء ئې نشته۔ په دې بناء باندې د جُمعې د ورځې سُنت دې باید تر فرضو وروسته ادا نه شي۔

قال ابن عابدینؒ: اقول قال شیخنا الشیخ محمد السراجی الحانوتی. و اما کونها هل تقضٰی اولا فعلٰی ما قالوه فی المتون وغیرها من ان سنة الظهر تقضٰی یقتضی ان تقضی سنة الجمعة اذ لا فرق لٰکن فی روضة العلماء فی باب من سمع الآذان و اذا جاء الرجل الی الجمعة فی وقت الامامة هل یصلی اربع رکعات التی یصلّیها قبل الجمعة ام لا. قال لا یصلی بل یسکت ثمّ یدخل مع الامام فی صلٰوته و سقطت عنه هٰذه الاربع. لما روی عن النبیﷺ انه قال اذا خرج الامام فلا صلٰوة الا المکتوبة آه ذکره فی فتاواه التی وقعت له. و الله اعلم خیر الدین الرملی. اقول فی هٰذا الاستدلال نظر فانهٗ یدل علی انها لا تصلّی بعد خروجه لا علٰی انها تسقط با لکلیة حتّٰی انّها تقضی بعد فراغه من المکتوبة و الا لزم ان لا تقضٰی سنة الظهر ایضاً اذا جاء وجد الامام شارعاً فی الظهر مع انه ورد النهی عن الصلٰوة عند الامامة کما فی حدیث الصحیحین وغیرهما اذا اقیمت الصلٰوة فلا صلٰوة الا المکتوبة نعم قد یقال ان الاصل عدم قضائها اذا فاتت عن محلها. و اما السنة الظهر قائماً قالوا بقضائها لحدیث عائشةؓ انهٗﷺ کان اذا فاتته الاربع قبل الظهر قضاهن بعدهٗ کما قدّمه المؤلف فتکون سنة الظهر خارجة عن القیاس للحدیث المذکور فلا تقاس علیها سنة الجمعة فتأمل. (منحة الخالق علی البحر الرائق ج۲، ص۷۵)

قال العلامة محمد امین الشهیر بابن عابدینؒ: قولهٗ و کذا الجمعة ای حکم الاربع قبل الجمعة کا لاربع قبل الظهر کما لا یخفی بحر و ظاهره انه لم یره فی البحر منقولاً صریحاً و قد ذکره فی القهستانی لٰکن لم یعزه الی احد و ذکر السراج الخانوتی ان هٰذا مقتضی ما فی المتون وغیرها لٰکن قال فی روضة العلماء انها تسقط لما روی انّه علیه الصلٰوة و لسلام قال اذا خرج الامام فلا صلٰوة الا المکتوبة اقول و فی هٰذا الاستدلال نظر لانهٗ انما یدل علی انها لا تصلی بعد



خروجه لا علٰی انها تسقط با لکلیة و لا تقضی بعد الفراغ من المکتوبة و الا لزم ان لا تقضی سنة الظهر ایضاً فانه ورد فی حدیث مسلم و غیره اذا اقیمت الصلٰوة فلا صلٰوة الا المکتوبة نعم قد یستدل للفرق بینهما بشیٔ آخر و هو ان القیاس فی السنن عدم القضاء کما مر و قد استدل قاضی خان لقضاء سنة الظهر بما عن عائشه رضی الله تعالی عنها ان النبیﷺ کان اذا فاتته الاربع قبل الظهر قضاهنّ بعده فیکون قضاؤها ثبت با لحدیث علی خلاف القیاس کما فی سنة الفجر کما صرح به فی الفتح فا لمقول بقضاء سنة الجمعة یحتاج الی دلیل خاص و علیه فتنصیص المتون علی سنة الظهر دلیل علی ان سنة الجمعة ستة کذٰلك. (رد المحتار ج۲، ص۵۸، باب ادراك الفریضة)

## د ادا شوي لمانځه د بیا اداکولو حکم

**سوال:** که چېرته یو څوك فرض، واجب یا سنت لمونځ اداکړي نو د بیا اداکولو حیثیت ئې څه دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** چه کله فرض لمونځ یو ځل ادا شي نو غاړې پرې خلاصیږي بیا اداکول ئې له چا څخه منقول نه دي بلکه په حدیث شریف کښې د یوه فرض له دوه وارې اداکولو څخه منع راغلې ده۔ بحدیث النبیﷺ عن سلمان بن یسار یعنی مولی میمونةؓ قال اتیت ابن عمرؓ علی البلاط و هم یصلون فقلت الا تصلّی معهم قال قد صلیت انی سمعت رسول اللهﷺ یقول لا تصلوا صلٰوة یوم مرتین. (ابو داؤد ج۱، ۹۳، فی باب اذا صلّٰی فی جماعة ثم یدرك جماعة یعید)

البته یو ځل تر یواځې اداکولو څخه وروسته که چېرته په جماعت کښې د شریکیدو موقع په لاس ورشي نو د ماسپښین او ماسخوتن په لمانځه کښې له امام سره شریکیدل بهتر دي تر څو چه له جماعت څخه مخالفت منځ ته را نه شي او حیثیت به ئې د نفلو وي۔ لیکن په مازدیګر، ماښام او سهار کښې به پخپل لمانځه باندې اکتفاء کوي او له امام سره شرکت جائز نه دی ځکه چه تر مازدیګر او سهار وروسته نفل جائز نه دي او د ماښام په لمانځه کښې ځکه چه درې رکعاته نفل شرعاً ثابت نه دي۔ او د وترو هم همدا حکم دی۔ بناء پر دې صورت د سنتو دوباره اداکول په طریقهٔ اولٰی سره نفل ګرځي۔

قال ابن نجیم المصری رحمه الله: لان الفرض لا یتکرر فی وقت واحد و صرح فی الحدیث القدسی ان ما یؤدی مع الامام نافلة یدرك بها فضیلة الجماعة. و قال بعد عدة اسطر اما اذا ادی الامام الفرض و القوم النفل فلا (یعنی فلا کراهة) لقولهﷺ للرجلین اذا صلیتما فی رحالکما ثم اتیتما صلٰوة قوم فصلیا معهم و اجعلا صلٰوتکما معهم سبحة ای نافلة کذا فی الکافی. (البحر الرائق ج۲، ص۷۲/۷۱، باب ادراك الفریضة)

و ایضاً قال بعد صفحة واحدةٍ: و النفل بعد هاتین الصلاتین (ای الظهر و العشاء) لیس بمکروه. و اما فی الفجر و العصر فلا یکره له الخروج لکراهة التنفل بعدهما. و اما فی المغرب فلما فیه من التنفل با لثلاث. او مخالفة الامام ان اتمّها اربعاً. و کل منهما مکروه کما سبق. (البحر الرائق ج۲، ص۷۳، باب ادراك الفریضة)

لما قال العلامة الحسن بن عمار الشرنبلالیؒ: و ان صلی ثلاثاً من رباعیة فاقیمت اتمّها اربعاً منفرداً........ ثم بعد الاتمام اقتدٰی متنفلاً ان شاء و هو افضل لعدم الکراهة الا فی العصر و الفجر للنهی عن التنفل بعدهما و فی المغرب للمخالفة

لانه ﷺ قال اذا صلّيت فى اهلك ثم ادركت الصلٰوة فصلّها الا الفجر و المغرب و قوله فصلّها يعنى نفلا لانهٗ امر به نصاً لرجلين لم يصليا معه الظهر و اخبرا بصلاتهما فى رحالهما فقال عليه السلام اذا صليتما فى رحالكما ثم اتيتما صلٰوة قوم فصلّيا معهم و اجعلا صلاتكما معهم سبحة اى نافلة قال السيد احمد الطحطاوى تحت قوله اقتدٰى متنفلا ان شاء قال فى البحر عن الحاوى انه يدرك هٰذه النافلة فضيلة الجماعة. (الطحطاوى حاشية مراقى الفلاح ص۳۶۶، باب ادراك الفريضة)

## د چـــــا د امداد د غوښتلو يا د والدينو د بلنـــــې په صورت کښې د لمانځه د ماتولو حکم

**سوال:** که چېرته والدين خپل زوی را وبولي او زوی ئې په فرضو يا سُنت لمانځه کښې مشغول وي۔ نو آيا د والدينو په را بلنې باندې زوی خپل لمونځ ماتولی شي او که نه؟ همدارنګه يو څوك په لمانځه کښې مشغول سړي ته د امداد لپاره آواز وکړي نو آيا دا سړی له هغه سره د امداد او مرستې لپاره خپل لمونځ ماتولی شي او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چېرته والدين يا نيکونه خپل زوی يا لمسی را وبولي نو د هغو د حکم د تعميل لپاره د نفل لمونځ ماتول جائز دي البته پرته له ضرورت څخه د فرض لمانځه د ماتولو اجازه نشته۔ په داسې حال کښې چه د استغاثې (يعنې امداد غوښتنې) په صورت کښې د فرض لمانځه ماتول هم واجب دي۔ بلکه که يو چا ته د چا د امداد کولو ضرورت محسوس شي نو پرته له بلنې هم فرض لمونځ ماتول واجب دي۔

قال العلامة الحصكفىؒ: و لو دعاه احد ابويه فى الفرض لا يجيبهٗ الا ان يستغيث به و فى النفل ان علم انهٗ فى الصلٰوة فدعاه لا يجيبهٗ و الا اجابه.

و قال ابن عابدينؒ: تحت هٰذه العبارة اى يطلب منه الغوث و الاعانة و ظاهره و لو فى امر غير مهلك و استغاثة غير الابوين كذٰلك. و الحاصل ان المصلّى متٰى سمع احدا يستغيث و ان لم يقصده با لنداء او كان اجنبياً و ان لم يعلم ما حل بهٖ او علِم و كان لهٗ قدرة علٰى اعانتهٖ و تخليصه وجب عليه اعانته و قطع الصّلٰوة فرضا كانت او غيرهٖ. (الدر المختار و رد المحتار ج۲، ص۵۱، باب ادراك الفريضة و ايضاً فى ۲، ص۴)

قال ابن نجيم المصرىؒ: و فى فتاوى الولوالجى اذا دعاه المصلى احد ابويه فلا يجيبه ما لم يفرغ من صلٰوته الاّ ان يستغيث به. لان قطع الصلٰوة لا يجوز الاّ لضرورة و كذٰلك الاجنبى اذا خاف ان يسقط من سطح او تحرقه النار او يغرقه الماء وجب عليه ان يقطع الصلٰوة هٰذا اذا كان فى الفرض. فاما فى النفل اذا ناداه احد ابويه ان علِم انه فى الصلٰوة و ناداه لا بأس به ان لا يجيبه. و ان لم يعلم يجيبهٗ آه. (البحر الرائق ج۲، ص۷۱، باب ادراك الفريضة) و مثله فى الهندية ج۱، ص۱۰۹، الباب السابع فيما يفسد الصلٰوة مما يتصل بذٰلك المسائل)



## د وتـــــرو د جماعت له دريدو وروسته د فـــــرض لمانځه د پوره کولو حـــــکم

**سوال:** که چېرته يو څوك د څلورو رکعتو فرضو نيت وتړي، د دريو رکعتونو له ادا کولو وروسته د وترو جماعت ودرېږي۔ نو اوس به دا سړی بايد څه وکړي؟ آيا خپل لمونځ به پوره کوي او که به لمونځ ماتوي او د وترو په جماعت کښې به شريکېږي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کوم سړی چه د وترو له جماعت څخه مخکښې د فرضو لپاره دريدلی وي او بيا د دريو رکعتونو له ادا کولو څخه وروسته د وترو جمعه ودرېږي نو دا سړی به څلور رکعته فرض پوره کوي او بيا به د نفلو په نيت سره په جماعت کښې شريك شي البته د مازديګر په لمانځه کښې د اسې کول صحيح نه دي۔

لما قال العلامة الحصكفىؒ: ان صلّى ثلاثاً منها اى الرباعية اتم منفرداً ثم اقتدى با لامام متنفلاً و يدرك بذٰلك فضيلة الجماعة الا فى العصر فلا يقتدى لكراهة النفل بعده. (الدر المختار على صدر رد المحتار ج۲، ص۵۲، باب ادراك الفريضة)

قال العلامة حسن بن عمار الشرنبلالىؒ: ان صلى ثلاثا من رباعية فاقيمت اتمها اربعاً منفرداً حكماً للاكثر...... ثم بعد الاتمام اقتدى متنفلاً ان شاء و هو الفضل لعدم الكراهة الا فى العصر و الفجر. (مراقى الفلاح على صدر طحطاوى ص۳۶۶، باب ادراك الفريضة) و مثله فى البحر الرائق ج۲، ص۷۱، باب ادراك الفريضة)